کووم چه ما دِ په خپل دینِ الٰهی او دَ پیغمبرؐ په سنتو باندِ ے قائم وساتی او دَ خیر او کرامت امداد دِ را بخشش کړی۔

## شلوړم فصل۔ په علاموسره دَخوب رښتینی کیدو په بیان کښے

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه څوک خپل خوب په علامه او دلیل سره په ښهٔ طریقه لیدل غواړی نودے دِ چه څومره کیدے شی په اودس سره په ښی اړخ دِ ے څملی او الله تعالیٰ دِ ے یادوی او زیاته ډوډۍ دِ نهٔ خوری ځکه چه څوک ډیره ډوډۍ خوری هغه الله تعالیٰ نهٔ یادوی دَدهٔ معده ډکه وی او دَ خوراک بخارات دماغ ته رسیږی او طبیعت ئے متخیل کړځی په دے وجه ډیر خوړونکی دَ ډوډۍ مختلف او پریشانه خوبونه وینی، او بیخی لږه ډوډۍ دِ ے هم نهٔ خوری ځکه چه معده کوم وخت خالی وی دَ طعام نه او دے په خالی معده اُودهٔ شی دَ دے سره هم پریشانه خوبونه په وینی، طبیعت غذا نهٔ مونده لو سره ضعیف او سست شی او خوب نهٔ ورځی، او که اُودهٔ هم شی نو پریشانه او پراګنده خوبونه ګوری او سړے باید دَ خوب وخت کښے نهٔ ډیر موړ وی او نهٔ ډیر وږے وی دا دَ دے دَ پاره چه څهٔ خوب او وینی صحیح او درست وی، او خوب دِ هم نهٔ هیر وی۔

دَ حضرت عبدالله ابن مسعودؓ نه روایت دے، چه یَو اعرابی سړے حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته راغلو او دلته عرض ئے اوکړو چه یا رسول اللهؐ، چه پرون مې دا سے یو خوب اولیدلو نو هغه پراګنده خوب ئے بیان کړو۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته او فرمائیل، چه څهٔ شے دِ خوړلے وو؟ دے اعرابی وویلے چه یا رسول اللهؐ، ډیرے ښځے کجورے مې خوړلے وے۔ رسول پاکؐ جواب ورکړو چه دَ دے خوب څهٔ صحیح تاویل نهٔ راځی دَ دے دَ پاره ډیر تعبیر بیانوونکی دَ ډیرو خوبونو تعبیر بیانوی او دَ هغے تاویل درست نهٔ راځی۔ تعبیر بیانوونکی دِ دَ دے خبرو نه نهٔ غافله کیږی او دَ سوال کوونکی نه دِ ے سوال وکړی زوسته دِ ے بیا تعبیر بیانوی دا دَ دے دَ پاره چه بیان شوے خبره رښتینی او درسته وی، او دَ خوب دَ رښتینوالی دا علامے دی کومے چه بیان شوے۔

ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چه انسان ډیر خوبونه ګوری چونکه هغه دَ هغهٔ لائق نهٔ وی دَ دے تاویل دَ دهٔ دَ اقاربو ورور یا پلار یا ځوی ته واپس کیږی، او ځنے وخت دَ خوب تعبیر دَ دهٔ په مړګ تاثیر کوی۔ دَ دے په باره کښے ما دَ عکرمه

بن ابی جهل په بابت کښې تقریر کړې دے چه پلار ئے خوب کښې اولیدلو او د هغې تاویل د هغه په ځوی ظاهر شو لکه څنګه چه د نابالغ ماشوم د خوب تعبیر د هغه په پلار واقع کیږی هر کله چه یو معبر په دے اصولو غور وکړی نو د ده ته به هیڅ څه مشکل نه راپیښیږی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، چه کله بنده ته رنځ او آفت په نظر راشی مګر تاویل د هغې خلاف وی لکه څنګه چه د غم او خوف تعبیر ښادی او خوشحالی ده. الله تعالیٰ فرمائیلی دی وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِنْ بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْنًا[1] ترجمه:- زۀ به د دوئی ویره ضرور په امن بدله کړم).

او د بادشاه نه او د دشمن نه تختیدل او د هغه څه چه د دے مشابه وی د دے امر دلیل دے چه د خوب لیدونکے به د الله تعالیٰ په پناه او امن کښې وی. د الله تعالیٰ کلام دے فَفِرُّوا إِلَى اللَّهِ ۖ إِنِّي لَكُمْ مِنْهُ نَذِيرٌ مُبِينٌ[2]

ترجمه:- د الله تعالیٰ طرف ته زغلئ، زۀ تاسے د دے نه په ښکاره ویروونکے یم.

د دے تاویلاتو قسمونه ډیر زیات دی، انشاء الله په خپل ځائے کښې به ئے بیان کړم.

**پنځم فصل د ښتیا او د دروغژن خوب پیژندلو کښې**

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی چه خلق په شکل، صورت، طبیعت قد او خبرو اترو کښې د یو بل نه مختلف دی او د اختلافِ ښهر او د هوا د وجه نه د یو خوب د بل په شان نۀ وی کله چه د چا په طبیعت د غوښے، حلوا، شراب او همدا رنګه د دے په شان د نورو شیانو د استعمال په وجه وینه غالبه کیږی نو په خوب کښې د رنګ وهل او سینګئ او د شونډو حرکت او خوشحالی او د سرود آواز او هغه شیان چه د دے سره مشابهت لری اوری به نو تعبیر کوونکے د د ده چهره رنګ او د بدن غتوالے او خوشحالئ ته اوګوری. په دے پوه شه چه دا خوب د وینے د غلبے کیدو نه دے او د دے هم هیڅ اصلیت نشته دے.

کله چه د چا په طبیعت ګرم او خشک شیان لکه پنیر، پیاز، تور مرچ خوراک سره صفرا غالبه شی نو دا سړے به په خوب کښې اُور، ډیوه، شمع، لالټین او دا سے شیان ډیر ګوری تعبیر کوونکے دے د ده بدن زیړوالی او د بدن کمزوریا او د حرکت تیزوالی ته اوګوری نو په دے دِ پوهه شی چه په دے سړی د صفرا غلبه ده نو د دے خوب څۀ اصلیت او تاویل نشته، او که چرته د چا په طبیعت

دَ بلغم زیاتوونکی شیان استعمال سره لکه شومله، ماستهٔ، شودهٔ او دَدے مشابه شیانو سره بلغم زیات شی، نو دا سړے په خوب کښے واوره، باران او څهٔ چه دَدے مشابه وی ډیروینی او کله چه تعبیر بیانوونکے دَ خوب لیدونکی رنګ سپین او بدن ئے څورب اُوګوری نو په دِے دِ پوهه شی چه دَدهٔ په مزاج دَ بلغم زیاتوالے دے، دَ دا سے سړی دَ خوب هیڅ اصلیت نشته دے.

او که چرے دَچا په طبیعت دَ سودا راوستونکی شیانو لکه مالګه غوښه او تُرش شیانو او تورو بانجانو سره او دَدے پشان نورو شیانو دَ سودا غلبه وی نو دا سے سړے به خوفناک خوبونه، مار، لړم، تیارهٔ وغیره ډیر وینی کله چه تعبیر کوونکے دَدهٔ رنګ او تورهٔ څهره اوګوری نو دَدهٔ صورت به غمژن او فکرمند اوګوری او بغیر دَ کومے وجه نه به په خپل ځ او ډیره بانډے لاس راکاږی نو په دِے بانډے بیا پوهه شه چه په دهٔ دَ سودا غلبه ده او دَدهٔ خوب بے بنیاده دے تعبیر کوونکی ته پکار دی چه په دِے تولو خبرو غور وکړی او دَهر یو خوب تپوس په ښهٔ شان سره وکړی ښهٔ دِ پوره ځان پوهه کړی او بیا دِے تعبیر بیان کړی، دا دَدے دَپاره چه خوب ئے ربښتینے راشی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چه کوم خاوندان دَ همت وی لکه عاشق معشوقه ګوری په خوب کښے یا یو کسب ګر خپله پیشه (وینی په خوب کښے لکه جُولا کپړے، لوهار اوسپنه اُووینی نو تعبیر بیانوونکی باندے لازم دی چه دوباره تپوس دِے ترے اُوکړی چه پرون دِ څهٔ خوړلی وو او په کوم خیال او فکر کښے اُوده شوے وے، روسته دِے تعبیر بیان کړی.

یا چاخپل ځان په واوره، باران، یخ اوګرم کښے ګرفتار اولیدلو کله چه بیدار شی نو دَ خوب جامه دَدهٔ نه جُدا وی، دا بربنډوالے دَدهٔ دَخوب باعث دے لهذا دے خوب ته څهٔ اصل نشته او بے حقیقته دے.

که چرے چا اولیدل چه په حمام او تمر او ګرمئ کښے وو، نو چه کله بیدار شی نو ځان ئے په ډیرو کپړو کښے تاؤ کړے وو نو په خوب کښے ګرمی محسوس له جامو ډیر والے دے. دا سے خوب هم بے بنیاده دے.

که چرے په خوب کښے څوک اووینی چه دے دَ مرض او یا دَجسمانی درد نه ژاړی او مریض پروت دے او په ربښتیا مریض وو، نو دا خوب هم بے بنیاده دے
که چرے څوک په خوب کښے اووینی چه متیازے کوی او ویخ شو، په جامو کښے

ئے متیازے کړے اولید لے یا ئے دا معلومه کړه چه متیازے زورسره ورته راغلی دی، دا سے خوب بے بنیاده دے او دَدے خوب تعبیرنشته دے۔

## شپږم فصل۔ دَخوبونو په مینځ کښے فرق پیژندل او دهر یو کس خوب تفصیلی بیان

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه خوب لیدونکے دَ دوه ډَ خیزونو نه خالی نهٔ دے، یا به مؤمن وی یا به کافر وی، دَ دے حقیقت کښے څوارلس قسمونه دی۔ (۱) دَ بادشاهانو خوب (۲) دَ قاضیانو خوب (۳) دَ مفتیانو خوب (۴) دَ عالمانو خوب (۵) دَ ازادو خلکو خوب (۶) دَ غلامانو خوب (۷) دَ ناریندهٔ خوب (۸) دَ ښځو خوب (۹) دَ نیکانو خلکو خوب (۱۰) دَ بدکارانو خلکو خوب (۱۱) دَدولتمند خلکو خوب (۱۲) دَ فقیرانو خلکو خوب (۱۳) دَلویانو(بالغو) خلکو خوب (۱۴) دَ نابالغو خوب

په دے ټولو کښے اوله درجه دَ بادشاهانو خوب درست دے او فرمائی چه دَ بادشاهانو خلکو خوب دَ نورو خلکو په خوبونو بانده دومره فضیلت او بهتری لری څومره چه دَ بادشاهانو په رعیت بانده فضیلت دے ځکه چه الله تعالیٰ بادشاهانو ته عزت او سرداری ورکړیده او خلکو ته ئے دَ بادشاهانو دَ اطاعت حکم کړیدے ځکه چه الله تعالیٰ فرمائیلی دی۔ (یَاۤاَیُّهَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَطِیۡعُوا اللّٰهَ وَ اَطِیۡعُوا الرَّسُوۡلَ وَ اُولِی الۡاَمۡرِ مِنۡکُمۡ (النساء)

ترجمه:۔ اے دَ ایمان خاوندانو، تاسو دَ الله اطاعت وکړئ او دَ الله دَرسول اطاعت وکړئ او دَ هغه آمر اطاعت هم وکړئ چه دَ ستاسے نه وی۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی ( مَنْ اَطَاعَ الْاَمِیْرَ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ) ترجمه: چاچه دَ امیر اطاعت وکړو، هغهٔ دَ الله او دَهغهٔ دَرسول اطاعت وکړو۔

لهٰذا کوم خوب چه بادشاه اُوویني هغه خوب بادشاه ته نزدے وی او دَبادشاه خوب زیات صحیح دی۔

۲:۔ دَ قاضی خوب دَ نورو خلکو په خوبونو درجه لری ځکه چه عدل او انصاف او دَ خاص کاروبار بندول او خلاصول دَ قاضی کار دے۔

۳:۔ او دَ مفتیانو او فقهاءِ خوب دَ نورو په خوبونو فضیلت لری ځکه چه دوی اصول فقه او حد ود مسلمانی فرض، سنت او دَ حلالو او دَ حرامو پیژندلو خاوندان دی۔

۴:- دَ عالمانو خوب دَ عوامو په خوب اُوچته درجه لري ځکه چه الله تعالیٰ دوی ته شرافت او توفیق ورکړے دے، دِ دے دَ پاره چه خلک په سمه لاره بندے را اړوي اودَ نیکئ او اطاعت لارے ته خلك را تشویق کړي.

۵:- دَ آزاد خلکو خوب دَ غلامانو په خوب اوچته درجه لري داځکه چه الله تعالیٰ ازادو خلکوته په غلامانو شرف ورکړے دے۔

۶:- دَ غلام دَ خوب نه مولیٰ ته فائده وي ځکه چه غلام ته دَ دے نه حصه رسیږي.

۷:- دَ سړو خوب دَ ښځو دَ خوب نه اوچته درجه لري ځکه چه الله تعالیٰ سړوته په ښځو باندِ په یو څو شیانو ترجیح ورکړے ده. الله تعالیٰ فرمائي: (اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ)[1] ترجمه: سړي په ښځو باندے غالب دي په درجه کښے۔

اوبله خبره داده چه الله پیغمبران سړو کښے راولیږل او ښځو کښے را ونهٔ لیږل۔ اوپیل ځائے کښے فرمائیلي دي فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتٰنِ مِمَّنْ تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَآءِ[2] ترجمه: پس یو سړے او دوه ښځے دَ هغه خلکو څخه چه دَ شهادت دَ پاره ئے تاسو خوښوئ )

بله وجه دَ سړو خوب بهتروالے دَ ښځو په خوب. دا ځکه چه دَ عقل په نزد دَ سړو صبر او بخشش رائے، شجاعت، سخاوت، امارت او خدمت او دا سے نور ښهٔ ښکاره دي. همدا رنګه دَ ښځو په نسبت سړے په فطرت کښے زیات دے همدارنګه دَ ښځو خوب دَ غلامانو خوب ته نزدے دے اودَ نیکانو خلکو خوب فضیلت لري دَ بدکاره خلکو په خوب باندے ځکه چه دَ نیک خلکو خوب طاعت طرف ته مائل وي او دَ ګناه نه لرے وي او په بدکاره خلکو او کافرو باندے دَ قیامت په ورځ همدغه خپل خوب دلیل وي ځکه چه فاسق په ګناه زړور تیا کوي. همدارنګه دَ مالداره خوب فضیلت لري دَ فقیر په خوب باندے ځکه چه مالداره صدقه ورکوي، زکوٰة ورکوي، حج کوي او دا سے نور دَ نیکئ کارونه سرته رسوي کوم چه په پیسو سره سرته رسیږي. په دے وجه دَ مالداره خوب بهتر دے، او رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه (يَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِّنْ يَدِ السُّفْلٰى) ترجمه: اُوچت یعني ورکوونکے لاس بهتر دے دَ لاندے لاس نه یعني اخستونکي لاس نه)۔

دَ تعبیر بیانوونکو یو بے دلے دا هم وئیلي دي چه دَ فقیرانو دَ خوب څهٔ اصل حقیقت نهٔ وي ځکه چه دَ دوئ زړهٔ دَ کنډ اودَ بچو دَ لاسه په غم کښے

پریشانه وی، که فقیرڅه بنه خوب اُووینی نو دَ هغې اثر دیره موده پس ښکاره کیږی۔ اوکه خراب خوب اُووینی نو دَ هغې اثر ډیر زر ښکاره کیږی او دَ دولتمند خوب دَ فقیرانو دَ خوب برعکس وی۔

همدارنګه دَ بالغ خوب معتبر وی ځکه چه په بالغ شهوت غالب وی او نابالغ دَ عقل او ادب نه محروم وی۔

دَ تعبیر بیانوونکو نه دا هم وائی که چرے دَ نابالغ خوب ښهٔ وی نو دَ هغهٔ نیکی مور او پلار ته رسیږی، او که چرته خراب خوب وی نو دَ هغهٔ اثر هم دے ماشوم ته رسیږی۔

دَ نابالغ ماشوم دَ خوب په باره کښے دوه قوله دی یو قول دا دے چه دَ ماشوم خوب رښتیا او صحیح وی او حکم ئے ظاهر وی ځکه چه دَ ماشوم زړهٔ دَ ګناه ځنے پاک او صاف وی او دَ دُنیا دَ شغل نه فارغ وی۔

دویم قول دا دے چه دَ ماشوم خوب صحیح او درست نهٔ وی ځکه چه دَ ماشوم عقل وغیره نهٔ وی۔ دَ نشه ئی او جُنب او دَ حائضے ښځے خوب درست وی۔ دَ مثال په طور صفیه دَ هغه لور خوب کښے اُولیدل چه دَ اسمان نه نمر او سپوږمے دَ دے په غیږ کښے را پریوتل چه دَ خوبه کله را بیداره شوه نو دَ خیبر امیر ئے دَ دے خوب نه خبر کړو۔ دَ خیبر امیر دے ته په مخ څپیړه ورکړه او ورته ئے دا سے ورویٔیل، که چرته ته دا خوب صحیح بیانوے نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به خیبر فتح کړی۔

په بله ورځ رسول الله علیه وسلم خیبر فتح کړو او دَ مسلمانانو لښکر صفیه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راوسته، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ صفیه نه تپوس اوکړو چه دا شین داغ دِ دے په مخ څنګه دے؟ هغې هغه ټول خوب بیان کړو چه دے لیدلے دو هغه پوره شو او دَ دے دَ خوب تعبیر درست راغلو۔ الله تعالیٰ په هر څهٔ ښهٔ پوهیږی۔

## اووم فصل۔ دَ خوبونو په منځ کښے فرق پیژندل

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه دَ مسلمان خوب دَ کافر دَ خوب نه رښتینے دے۔ همدارنګه دَ عقلمند خوب دَ بے عقله دَ خوب نه او دَ نیک خوب دَ بدکاره دَ خوب نه بهتر وی۔ الله تعالیٰ فرمائیلی دی (اَمْ حَسِبَ الَّذِیْنَ اجْتَرَحُوا السَّیِّاٰتِ اَنْ نَّجْعَلَهُمْ کَالَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَوَآءً مَّحْیَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ

سَآءَ مَا یَحْکُمُوْنَ٥ (۱)" ترجمه :- ولې داګمان کوی هغه کسان چه هغوئ ګناه کړې وی داسې ګمان چه زۀ به دوئ دَ هغه خلکو پشان کړم چه هغوی ایمان راوړې وی او نیک عمل ئې کړې وی چه دَ هغوئ مرګ اوژوند برابر دې- بد دې چه دوئ دا فیصله کوی.

همدارنګه دَ بوډاګانو خوب بهتر دې دَ ماشومانو دَ خوب نه او دَ ازادې ښځې خوب بهتر دې دَ وینځې دَ خوب نه.

تعبیر بیانوونکی له دَ هر سړی دَ خوب نیک خیال ساتل پکار دی. اوکله چه دَ خوب لیدونکی نه سوال اوکړی او پراګنده الفاظ واوری نو تول دې دَ عقل په قیاس درست کړی.- دَ الفاظو وړاندې والې او روستوالې درست کړی او بیا دِ روسته تعبیر بیان کړی او بنۀ الفاظ دِ دې دَ اصول تعبیر په نظر کښې او ساتی که چرته میزان کلام نظر کښې ساتی نو بیا به غلطی نۀ وی او څۀ چه بیانوی نو رښتینې به بیانوی ځکه چه مخوانو علماء به هم دا قیاس کولو او تعبیر به ئې صحیح راتلو.

**حکایت** وائی چه یو سړې دَ حضرت ابن سیرینؒ په خدمت کښې حاضر شو او تپوس ئې ورنه اوکړو چه ما داسې خوب لیدلې دې چه دَ مونځ دَ پاره اذان کوومه، نودۀ جواب ورکړو چه تۀ به اسلامی حج کوې.- په همدغه وخت کښې یو بل سړې راغلو او دَ ابن سیرین په خدمت کښې حاضر شو او تپوس ئې ورځنې اوکړو چه ما په خوب کښې خپل ځان دَ مونځ دَ پاره اذان کوونکې اولیدلو، دۀ جواب ورکړو او ورته ئې تعبیر داسې بیان کړو چه په تا به دَ غلا تهمت لګولې کیږی.

شاګردانو ورځنې تپوس اوکړو چه دَ دواړو خوبونو صورت یو وو چه دَ مونځ دَ پاره اذان وو او تعبیر ئې ولې مخالف وو دَ یو بل نه ؟ دۀ جواب ورکړو چه دَ اولنی سړی دَ شکل نه دَ نیکبختئ علامې معلومیدلې نو ما ورته ووئیل چه تۀ به حج ته ځې.- دا دَ الله تعالیٰ ارشاد دې :(وَ اَذِّنْ فِی النَّاسِ بِالْحَجِّ یَاْتُوْکَ رِجَالًا) ترجمه :- او په خلکو کښې دَ حج اعلان (ډنډوره) وکړه، ستا طرف ته به په ډګو راځی- الحج ۲۷

او دَ دویم سړی دَ شکل نه دَ فساد علامې معلومیدلې نو دَ هغۀ مخالف تعبیر م ورته بیان کړو چه په تا به دَ غلا تهمت اولګولې شی، دا دَ الله تعالیٰ ارشاد دې ثُمَّ اَذَّنَ مُؤَذِّنٌ اَیَّتُهَا الْعِیْرُ اِنَّکُمْ لَسٰرِقُوْنَ٥ ترجمه : اواز وکړو اواز کوونکی اې

(۱) الجاثیه ۲۱

دَ قافلے خلکو، تا سو ضرور رغلۓ یئ۔

امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، چه ځمنے وخت یو خوب لیدل کیږی چه دَ هغے تعبیر هم په هغه ورځ ښکاره کیږی او ځمنے وخت یو خوب لیدل کیږی چه دَ هغے تعبیر یو کال پس پوره کیږی او ځمنے شپے خوب لیدل کیږی چه دَ هغے تعبیر شپږ میاشتے پس پوره کیږی او دَ ځنو خوبونو شل کاله پس او دَ ځنو خوبونو تعبیر څلوېښت کاله پس ښکاره کیږی۔

دَ مثال په طور حضرت امیرالمؤمنین حسینؓ دَ وژلو خوب حضرت نبی اکرم صلی الله علیه وسلم دا سے لیدلے وو چه یو سپے دَ دوئ وینه څښی۔ بیا څلوېښت کاله پس دَ دے خوب تعبیر ښکاره شو چه حضرت امام حسینؓ شهید کړے شو۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی چه دَ شپے دَ خوب تعبیر دَ ورځے دَ خوب تعبیر نه قوی وی او اوله شپه (دَ شپے اوله حصه کښے) چه خوب ووینی هغه صحیح نهٔ وی ځکه زیات وخت دَ فکرونو ځمنے او دَ دُنیاڈ کاروبار نه راځی۔ او هغه خوب چه په نیمه شپه کښے وګوری هغه هم درست نهٔ وی او دا دَ پراګنده خوبونو دَ جملے نه وی۔

دَ تولو نه اوچت او ښهٔ خوب دَ سحر یعنی دَ شپے آخرنئ حصه کښے چه اُووینی هغه درست وی ځکه چه دا یوه مقرّبه فرښته ده دَ لوح محفوظ نه ئے خلکو ته ښائی، دَ دے وجه نه دَ دے تاویل درست او صحیح وی۔

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه دَ شپے په اوله حصه کښے خوب اُووینی دَ هغے تاویل تر پنځو کالو پورے وی او که دَ نیمے شپے په وخت کښے اُوګوری نو دَ هغے تعبیر تر پنځو میاشتو پورے وی او دَ سحر په وخت کښے چه اُوګوری نو دَ هغے تعبیر په لسو ورځو کښے ښکاره کیږی۔

خُلاصه دا چه څومره خوب سحر ته نژدے وی نو دَ هغے تعبیر درست زر او لنډ وخت کښے ښکاره کیږی۔

## اتم فصل۔ دَ خوب تعبیر بیانولو دَ پاره دَ علم جفر او فال پیژندل

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی، هر څوک چه دا غواړی چه دَ خوب تعبیر بیان کړی، یعنی تعبیر ویستونکی نه پکار دی، دَ علم جفر او فال پیژندل کوم چه دَ پخوانو استاذانو نه نقل شوی دی۔ اول بایډ تعبیر ویستونکی نه څوک سوال وکړی، دے

دَ نوم تپوس ورنه وکړی. که چرته نوم ئے ښهٔ وی تونیک او ښهٔ تعبیر دِے ورته اوباسی لکه محمد، احمد، حُسین، فضل، سهیل، بشیر، حبیبؑ محبوب او نور هغه نومونه چه دَدے سره مشابهت لری دا دلیل دَ بهتر والی او خوشحالئ دے چه لیدلے وی. او که چرته نوم ئے ښهٔ نهٔ وی اودِے مخالف وی، دلیل ئے دَغم او دَبدئ وی، کله یو سائل دَخوب تعبیر تپوس وکړی او دَ تعبیر بیانوونکی په وړاندے هغه وخت آس یا اوښ یا خروی نو پوهه دِے شی چه دَدهٔ خوب به نیک او ښهٔ وی او خوب لیدونکے به سفر کوی خاص طور سره چه دَدهٔ په وړاندے آس یا اُوښ تیر شی او دلته پکښے وی دَ الله تعالیٰ کلام او بیان دے (وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً ط) ترجمه:- آس، قچرا او خرستاسو سورلئ او زینت دَ پاره دی. (النحل)

جابر مغربیؒ فرمائیلی دی چه یوسړی دَحضرت عبدالله ابن عباسؓ نه دَخپل خوب په باره کښے سوال وکړو هغه وخت یو کارغهٔ را غلو او دَ کور په دیوال کیناستو او دوه آوازونه ئے وکړل. حضرت عبدالله ابن عباسؓ ورته او فرمائیل چه دا ددے دلیل دے چه تا ته څهٔ مصیبت رسیدونکے دے. په هغه شپه دَدهٔ کورته غل راغلو او کورئ ورته سورے کړو، څهٔ چه ئے کور کښے وُو ټول ئے ورنه ویوړل.

حضرت عبداللهؓ فرمائیلی دی چه ما خپلو دوستانوته وئیلی دی که چرته دَ ستاسو نه څوک دَخوب تعبیر تپوس وکړی او دغه وخت کارغهٔ دوه آوازونه وکړی نو دلیل او تعبیر ئے دَ بدئ او دَ نقصان دے او که چرته خلور آوازونه وکړی نو دلیل او تعبیر ئے دَ نیکئ او ښهٔ والی دے او که چرته پنځهٔ آوازونه وکړی نو دَ بدئ دلیل دے او که چرته شپږ آوازونه وکړی، دَ خوب لیدونکی دَ پاره دَ بهترئ دلیل دے.

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه دَ کارغهٔ طاق آواز دَ نیکئ دلیل دَے او جفت آوازونه دَ بدئ دلیل دے.

امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، چه څوک په دے نیت اُوده شی چه څهٔ خوب او وینم او دَدے خوب نه نیک او بد احوال زده کړم نو که چرته په خوب کښے چیلئ (بزه) یا دَچیلئ دَ بچی یا غوا یا آس یا هغه شیان چه دَدے سره مشابهت لری چه دے ئے غوښه خوری نو دا دَخوب لیدونکی دَ تباهئ

دلیل دے اوکه چرته بنده دروازه اووینی او بیا دهٔ څخکښے خلاصه کړے شی او یا خوانهٔ پیدا کړی او وے خوری، نو دا دخوب لیدونکی دپاره دنیکۍ دلیل دے.

## نهم فصل۔ دیاده وتلی اوهیرشوی خوب په بیان کښے

امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی که چرته څوک خوب اوکوری او بیا ورنه هیر شی او تعبیر ویستونکے ورته دخوب پیژندل غواړی، نو ددے دا طریقه ده چه دخوب لیدونکی نه دے دنوم تپوس اوکړی او دهغهٔ دنوم حروف دِ اوشماری او د ابجد و په حساب دِ ورنه ۹۰۹ طرح (منفی) کړی او ودِ کوری چه آخر کښے څومره باقی پاتے شوی دی

که چرته نههٔ باقی پاتے شوے وی، نو دا خوب د فساد دلیل دے چه دهٔ خراب خوب لیدلے دے۔ دالله تعالیٰ کلام دے چه فرمائی (وَكَانَ فِي الْمَدِينَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ. النمل ۴۸) ترجمه:۔ په ښار کښے د نههٔ کسانو ډله وه چه فساد به ئے کولو او اصلاح به ئے نهٔ کوله۔

او که چرته اته باقی پاتے شوی وی نو سفر یا وادهٔ کول به ئے لیدلی وی. دالله تعالیٰ وینا ده (ثَمَانِيَ حِجَجٍ فَإِنْ أَتْمَمْتَ عَشْرًا فَمِنْ عِنْدِكَ القصص ۲۷) ترجمه:۔ اته کاله دِ ے او که لس کاله دِے راسره پوره کړل نو دا ستاله طرفه به وی)

او که چرته اووهٔ باقی پاتے شوی وی، نو دخوب لیدونکی به لیوان یا سپی لیدلی وی۔ دالله تعالیٰ کلام دے چه (وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ۔) الکهف ۲۲ ترجمه:۔ او وائی چه اووه دی او اتم د دوی سپے دے۔

او که چرته شپږ باقی پاتے شوے وی او خوب لیدونکے نیک سړے وی نو دا ددے دلیل دے چه دهٔ په خوب کښے فرښتے او اهل صلاح لیدلی دی او که چرته دخوب لیدونکے بدکاره وی نو دا ددے دلیل دے چه دهٔ به شیطان او اهل فساد لیدلی وی۔ دا ددهٔ په تباهی دلیل دے۔ دالله تعالیٰ ارشاد دے چه: خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِي سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ۔ ترجمه: پیدا کړی دی اسمانونه په شپږ ورځو کښے او بیا ئے استواء وکړه په عرش باندے۔ (اعراف ۵۴)

او که چرته پنځهٔ باقی پاتے شوی وی نو دهٔ خوب کښے اسونه او وسلے لیدلی دی

او که چرته څلور باقی پاتے شوی وی نو دهٔ په خوب کښے اسمان او ستوری کتلی دی. دالله تعالیٰ وینا ده (فِي أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ سَوَاءً لِلسَّائِلِينَ) حٰمٓ سجده

ترجمه :- څلورو ورځو کښې دَ سوال کوونکو دَ پاره برابر دی.

او که چرې درې باقي پاتې شي نوخوب لیدونکی بچ پاته دَ څهٔ کاروئیلی دی. کلام الٰهي دے (مَا یَكُونُ مِنْ نَّجْوٰى ثَلٰثَةٍ اِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ) (دَ درېو سروسرګوشي څلورم الله تعالیٰ دے. بل ځائے الله تعالیٰ فرمائی چه (ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اِلَّا) ترجمه :- درے ورځے مکر.) اعراف ۴۱

او که چرته دوه یایو باقي پاتې شي نو دا دَ دے دلیل دے چه په دین او دُنیا کښې به نفع وی. دَ الله تعالیٰ قول دے (ثَانِيَ اثْنَيْنِ اِذْ هُمَا فِي الْغَارِ اِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهٖ لَا تَحْزَنْ) التوبه ترجمه :- په دوه ؤکښې دوېم کله چه دواړه په غار کښې وو چه خپل ملګری نه ئے اووئیل مهٔ ویریږه) دَ دے تعبیر دا دے چه دَ کوم شي نه په ویره کښې وی دَ هغې نه به محفوظ او امن کښې وی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه چا خوب لیدلے وی او بیا ئے هیر کړے وی او تعبیر ویستونکے غواړی ورته چه ورته دَ خوب حال بیان کړی نو سوال کوونکی ته دِ دوائی چه خپل لاس دِ په خپل وجود کښې په یو اندام کیږده نو که په سر ئے لاس کیښودو نو ګنډګی یا غر به ئے لیدلی وی او که په سترګه ئے لاس کیښودو نو دَ ترږو او بوچینه به ئے لیدلی وی. او که په پوزه ئے لاس کیښودلو نو دَ غرهٔ لمن به ئے لیدلی وی. او که په خُله ئے لاس کیښودلو نو چمن به ئے لیدلے وی. او که په غوږ ئے کیخودلو تو چاؤډ او غار به ئے لیدلے وی، او که دَ ګیرے په ویښتو ئے لاس کیخودلو نو وابنه به ئے لیدلی وی او که په خیټه ئے لاس ایښے وی نو په خوب کښې به ئے نهر (دَ او بولویه ویاله) لیدلے وی، او که په شرمګاه ئے لاس کیخودو، نو شراب خانه یا ورانه زمکه به ئے لیدلے وی، او که په اُوګه ئے لاس کیخودلو، نو محل به ئے لیدلے وی. او که په مټ ئے لاس کیخوهلو، نو میوه دارهٔ وُنه به ئے لیدلی دی. او که په ګوتو ئے لاس کیخودلو نو دهٔ دَ ګل خیرو بناخونه او وُنے لیدلے دی. او که په زنګون ئے کیخودلو نو دهٔ غونډئ لیدلی دی. او که دَ ډکو متیازو په ځائے لاس کیږدی نو دهٔ خرلے او ویران لیدلے دے او که په پنهائ لاس کیږدی نو دهٔ په خوب کښې میوه داره وُنه لیدلے دهٔ.

خضرت دانیالؑ فرمائیلی دی، که چرته څوک خوب او ګوری او هیر ئے کړی، نو دَ څلورو حالتونو نه خالی نهٔ دے. (۱) دَ ډیرو ګناهونو په وجه (۲) دَ

مختلفو کارونو په وجه (۳) دَضعف نیت په وجه (۴) دَطبیعت دَ اختلاف په وجه کله چه دِ ے حالت نه وګرځي نو ضروربه خوبونه هیرشي۔

## لسَم فصل ۔جاهلانو ته دَ خوب تعبیر په بیانولو کښې

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، هوښیارانو وئیلی دی چه جاهلانو (کم عقلو) ته خوب مهٔ بیانوئ او مهٔ ورته دَ تعبیر سوال کوئ او دا وینا دَ خلکو صحیح نهٔ ده او غلطه ده چه که چرته دَ جاهل نه تپوس وکړے دَ تعبیر په باره کښې، او هغه چه څهٔ تعبیر بیان کړی هم هغه رنګ واقع کیږی، داځکه نهٔ واقع کیږی چه دَخوب نماینده فرښته ده او هغه هیڅکله نهٔ خطا کیږی او څهٔ چه دائی حق وی۔ دَ ناپوهه او جاهل په وینا حق نهٔ باطلیږی۔ او دَ عالِم او جاهل منځ کښې ډیر زیات فرق دے۔ الله تعالیٰ فرمائی (قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ۝ الزمر ۹) ترجمه :۔ اُووایه چه آیا برابر دی هغه کسان چه پوهیږی او هغه کسان چه نهٔ پوهیږی یعنی عالِم او جاهل برابرکیدے نهٔ شی۔ او نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی (لَا يَسْتَوِي الْعَالِمُ وَالْجَاهِلُ) ترجمه :۔ نهٔ دے برابر عالِم او جاهل)۔ چونکه دَخوب ظاهرولو والا فرښته ده چه دَ لوح محفوظ نه بنائی، خیر به رسی یا شر به رسی۔ که چرے عالِم او جاهل دا کړنول غواړی نو کیدے شی به ضرور کیږی، نه سِوا دَ قضاء معلق نه چه هغه دَ صدقات او دُعا سره لرے کیږی ۔هیڅکله به ونهٔ ګرځی۔

کله چه ملک ریّان (دَ مصر بادشاه) هغه خوب ولیدلو لکه چه الله تعالیٰ فرمائی (قَالُوا أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ ۖ وَمَا نَحْنُ بِتَأْوِيلِ الْأَحْلَامِ بِعَالِمِينَ[1]) ترجمه :۔ دوئ ووئیل چه دا ګډ وډ خوبونه دی، او مونږ دداسے خوبونو په معنیٰ پوهیدونکی نه یو۔ بادشاه خپل قوم راوبللو او دَ خپل خوب حال تپوس ئے ورځنه وکړو او ورته ئے ووئیل، الله تعالیٰ فرمائیلی دی (يَا أَيُّهَا الْمَلَأُ أَفْتُونِي فِي رُؤْيَايَ إِن كُنتُمْ لِلرُّؤْيَا تَعْبُرُونَ ۝[2]) ترجمه :۔ اے ځما سردارانو! ما ته فتویٰ راکړئ ځما دَ خوب په باره کښې که چرته تاسے ځما دَخوب تعبیر بیانولے شئ۔)

قوم ئے ورته ووئیل، مونږ دَ دے خوب په تعبیر نهٔ پوهیږو۔ بیائے حضرت یوسف علیه السّلام راوغوښتلو او تعبیر ئے ورته ورکړو او هغه داسے ووچه دَ اُووَ کالو دَ قحط بیان ورته اوکړو۔ دَ دے نه معلومیږی چه دَ

نا پوهانو دَ تعبیر نه دَ خوب حق نهٔ باطلیږی۔

## یو لسم فصل۔ په بیان دَ خوبونو حال وخت، قِسم او صورت نه معرفت حاصلول

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی۔ خوب دَ وخت په لحاظ سره بدلیږی، که چرته خوک دشپے خوب کښے اُوګوری چه په پُل یا په لاره ناست دَ دا دَ دهٔ په بزرګئ دلیل دے۔ او چه څهٔ کار کوی هغه کښے به ورته فائده ورسیږی او که هم دغه خوب دَ ورځے اُوګوری نو دے به خپلے ښځے ته طلاق ورکړی۔

که چرے ئے دَ شپے په خوب کښے اولیدل چه سپی چړک نیولے دے، نو دا دَ خبرے دلیل دے چه دَ حاکم عقل سره به ئے کاروبار شروع کیږی او که چرته هم دغه خوب دَ ورځے اُوګوری نو مریض به شی۔

امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی چه حقیقت کښے خوب دَ دین، کسب صنعت او حرفت سره نهٔ ګرځی۔ دَ یو خوب مختلف تاویل عذاب دی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (غُلَّتْ اَیْدِیْهِمْ وَلُعِنُوْا بِمَا قَالُوْا) المائده ۶۴ ترجمه:۔ دَ هغوی لاسونه وتړلے شو او دَ هغوئی دَ خبرو دَ وجه نه په هغوئی لعنت پرے وتلو۔

که چرته دا خوب یو نیک سړی اولیدلو، دا دَ دے خبرے دلیل دے چه دَ ګناهونو او بے کاره کارونو نه به لرے کړے شی او منع به شی۔

دغه شان محمد بن عبدالعزیز په صحیح سند سره عبدالرحمٰن اسلمی نه نه روایت کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ حضرت ابوبکر صدیق رض او حضرت سلمان فارسیؓ په منځ کښے دوستی قائمه کړه او حضرت سلمانؓ یو خوب اولیدلو هغه ئے حضرت ابوبکر صدیق رض ته بیان کړو، دَ هغے خوب په سبب هغه دَ دهٔ نه جُدا شو۔ حضرت ابوبکر صدیقؓ اوفرمائیل چه تر قیامته پورے ستا دَ سر نه لاس لنړا شو۔ حضرت سلمانؓ دَ دے خوب خبر حضرت نبی کریمؐ ته بیان کړو۔ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته هم دغه شان تعبیر بیان کړو کوم تعبیر چه ابوبکر صدیقؓ بیان کړے وو۔

ابو مسلمؒ دَ عطاء بن خبابؓ نه روایت کوی چه محمد بن سیرینؒ فرمائیلی دی چه څوک په منبر ځان اُوګوری نو اوس که چرته هغه سړے نیک وی، نو شرف او بزرګی به بیا مومی۔ او که هغه سړے بدکاره وی په پهانسی (دار) به شی۔

حدیث الحدیث کښے دی چه احمد بن سعدؒ دَ حضرت ابو عبیده رض نه روایت

کوی چه یو ے ښځې دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس وکړو چه ما سے خوب مِ لیدلے چه زما دَ کور دَ چهت ستن په ماماته شوه، نونبی علیه السّلام ورته اوفرمائیل چه ستا خاوند به دَ سفر نه راځی په دویم ځل ئے همدغه خوب بیا اولیدلو او دَ ابوبکر صدیقؓ نه ئے تپوس وکړو دَ خوب دَ تعبیر په باره کښې، نو ابوبکر صدیقؓ ورته اوفرمائیل چه خاوند به دِ مړ شی دواړه خوبونه یو شان دو مګر دَ وخت په مخالفت سره تعبیر مختلف شو۔

حضرت ابوحاتم دَ اصمعی نه روایت کوی چه اشعری دَ تعبیر په باره کښې تپوس اوکړو چه ما په خوب کښې اُولیدل چه غنم دَ اوربشو په بدل کښې خرڅوم۔ حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم جواب ورکړو چه تهٔ قرآن کریم په شعر بدلوے دَ سړی حالت دَ تبدیلی غنم او اوربشے چه دَ خپل اصل نه بدل شوے که چرته څوک همدا خوب اوګوری نو دَ اصمعی خبره دِ یاده لری۔

کرمانیؒ فرمائیلی دی چه د سپرلی موسم کښې خوب که څوک اوګوری داښه خوب دے مګر دیر وخت روسته به ئے تعبیر ظاهرېږی او څوک چه دَ مني په موسم کښې خوب اوګوری نو دَ دے تعبیر به درست نهٔ وی او دَ ګرمی موسم خوب ډیر زر ظاهرېږی۔ دَ دے خبرے دلیل دا دے چه یو سړی دَ ابوبکر صدیقؓ نه تپوس اوکړو چه ماته دَ یوے ونے اوّیا پاڼړے په شمار راکړے شوے دهٔ جواب ورکړو چه تهٔ به اوّیا لړکی وهل کیږے بیا هغه سړے په هم دِے هفته کښې اوّیا ځلے اووهلے شو۔ بیا په دویم کال هم هغه سړی هم هغه دَ اوّیا پاڼړو خوب اولیدلو او دَ ابوبکر صدیقؓ نه تپوس اوکړو دَ خوب تعبیر په باره کښې، ابوبکر صدیقؓ جواب ورکړو چه تاته به اوّیا زرهٔ درهمه درکول کیږی هغه سړی سوال وکړو، اے امیرالمؤمنین! تیر کال مِ همدا خوب لیدلے وو دهغے تعبیر اوّیا لړکی وهل وو او دَ دے تعبیر اویا زره درهمه دی تاسے دَ دے تعبیر دَ فرق معلومات شبکارهٔ کړئ۔ ابوبکر صدیقؓ جواب ورکړو چه تیر کال تا دَ مني په موسم کښې خوب لیدلے وو او سږکال دَ سپرلی موسم دے اُونے په ترقیٔ کښې دی، دَ دے تعبیر همدا دے بیا هغه خوب لیدونکی اویا زرهٔ درهمه وموندل۔

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی چه څوک دَ ورځے دَ اول نه تر نیمے حصے پورے دَ خوب تعبیر تپوس کوی، دَ دے تعبیر په اقبال او نیکی دے او دَ زوال نه روسته شپے پورے دَ شر او فساد دلیل دے او دَ ورځے واوړے (ګلئ) باران دَ

نمرختلو او پریوتلو په وخت دَخوب دَتعبیر سوال نۀ دے پکار۔

جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، چه په ټولو کښے صحیح او درست هغه خوب دے چه دَ سحر نه دَ نمرختلو پورے وی یا دَ نمر په برابرئ باندے بنۀ خوب او ریښتینے راځی او دَ خوبونو تعبیرونه دَ اونو زرغونیدل او دَ میوو پخیدل بنۀ خوبونه دی او دَ دے تعبیر درست وی. او کوم خوب چه دَ یخنئ په ورځو کښے او وینی دَ دے دَ تعبیر حکم کمزورے وی، په یخنئ کښے باد او باران وی او په پسرلی کښے هر شے خوشحاله وی په هر حال سره هر خوب تعبیر دَ حال مطابق او صورت جدا جدا وی۔

## دولسم فصل۔ دَخوب تعبیر ویستونکی دَ ادب او شرط په پیژندلو کښے

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی۔ چه تعبیر بیانوونکے دِ باید هوښیار وی او پرهیزګار هم وی، عالم وی، خاموشی پسند او نیک وی او دَ تعبیر ورکولو په وخت دِ حاضر او بیدار وی او دَ سوال کونکی خوب دِ بنۀ په غور او احتیاط سره واوری او دا دِ معلومه کړی چه سائل بادشاه دے یا رعیت نه بزرګ عالم دے یا جاهل ازاد دے یا غریب غلام دے یا شهری مالدار دے یا درویش سړے یا ښځه فارغ دِله ده یا مشغوله ده۔ په کرمی کښے دا خوب لیدلے دے یا په یخنئ کښے. کله چه دَ هرے خبرے قیاس په عقل سره معلوم کړی لکه څنګه چه استاذان دَ دے علم بیان کوی تعبیر دِ بیان کړی او دَ خپل ځان نه دِ نۀ وائی۔

ابن سیرینؒ سره دَ دے چه دَ دے علم استاذ وو او بے مثله روزګارئ وو سره د دے چه دَ دومره فضیلت خاوند وو، بیا هم که دَ کوم خوب په تعبیر به پوهه نشونو خاموش به شو او هیڅ به ئے نۀ وئیلے۔

ابو حاتم دَ اسمعیؒ نه روایت کوی او هغه دَ ابو المقدام نه چه دَ ابن سیرینؒ نه دَ دیرشو نه ترځلویښتو پورے تپوسونه چا اوکړل نو دَ یو تعبیر به ئے بیان کړو او دَ نورو تعبیرونه به ئے نۀ وئیل دَ دے وجه نه تعبیر بیانوونکی ته پکار دی چه اول دِ دَخوب لیدونکی خبره بنۀ په غور سره واوری او دَ دے په تعبیر کښے بنۀ سوچ او فکر وکړی، که خبره سخته وی او معنی ئے صحیح وی او تعبیر برداشت کولے شی، نو هم هغه وخت دِ تعبیر بیان کړی۔ او که چرے په اصل خوب کښے فضول خبرے وی نو هغه فضول دِ ورڅخه لرے او جدا کړی او دَ اصل او حقیقت دِ تعبیر او معنی دِ بیانه کړی۔

اوکه تولے خبرے مختلفې وي په خپل منځ کښے او سمون نۀ خوري نو پریشا ن خوب دے، دَدے تعبیر دِ نۀ وائي اوکه چرته تعبیر پوهه وي نو دَ سائل نه دِ تپوس وکړي چه زړۀ دِ تنګ دے یا خوشحاله۔ هرڅه چه دَدۀ نه واوري نو په هغې دِ دے دَخوب تعبیر کوي اوکه چرے هغه هیڅ ونه وائي اوکه چرته په دےپوهه شي نو دَ نوم نه دِ دے تعبیر بیان کړي۔ دَ طبیعت، وینا او بد صورتي او خوبصورتي دروغ او رښتیا نه دِ تعبیر بیان کړي اوکه چرته دَدے خوب تعبیر بد شي (خیر) باندے وي نو پټ دِ وساتي۔

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي، په اصل کښے خوب په درے شیانو وي یو جنس، دوېم صفت، دریم په طبع باندے۔ جنس لکه ونے او مرغان وي دا تول دَ سړو خوبونه وي او صفت دا دے چه تعبیر بیانوونکے پېژني چه کومه اُونه ده او مارغۀ دَ کوم جنسه دے او دَ څۀ صفت نه دے، که چرے دَغُوز وُنه وي نو معلومه دے کړي چه عجمي سړے دے ځکه چه عربو کښے دَ غُوز وُنه نۀ وي، اوکه چرته دَ طاؤس مارغۀ وي نو عجمي دے اوکه شُتر مُرغ وي نو سړے عربي دے او طبیعت تے دا دے نو معلومه دِ دے کړي چه دَ دے ونے طبیعت څۀ قسم دے نو دَ هغے ونے په نوعیت تعبیر بیان کړي۔

که چرته دَ غوز ونه وي نو سړے مالداره دے مګر بد معامله بخیل او خراب دے ځکه چه که نۀ دَ غوز وُنه اُوخوځوے نو آواز کوي او تر څو چه دِ غُوز مات کړے نۀ وي نو څِقیُ ترے نۀ راوځي اوکه چرته دَ کهجوري (خرما) وُنه وي نو څۀ کار چه (اختیاروي) نو اسان به وي لکه (کَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ اَصْلُهَا ثَابِتٌ وَّ فَرْعُهَا فِي السَّمَآءِ)۔ ترجمه: لکه پاکه وُنه دَ هغے جرړے ثابتے دي او څانګونه ئے په آسمان دي)۔ ابراهیم ۲۴ هغته شجره طیبه دَ خُرما وُنه ده۔

که چرے مارغۀ والوزي نو تعبیر وروکوونکے دے پوهه شي چه خوب لیدونکے به سفر کوي نو دَ مارغۀ طبیعت دِ وپېژني، که کارغۀ وي نو هغه سړے ضرور شریر او بد عهده دے۔

خوب لیدونکے باید رښتیا دیونکے او دینداره وي څۀ چه ئے لیدلي وي په هغې کښے دِ کمے زیاتے نۀ کوي ځکه چه دِ دے سره په خوب کښے نقصان کیږي او څوک چه خوب اوګوري او دَ هغے نه یریږي نو باید درے ځله آیت الکرسي ووائي او په ځان دِ دے دم کړي او دا دُعا دِ دے ووائي۔

اَعُوْذُ بِرَبِّ مُوْسٰی وَاِبْرَاهِیْمَ مِنْ شَرِّ رُؤْیَا الَّتِیْ رَاَیْتُهَا مِنْ مَّنَامِیْ اَنْ یَّضُرَّنِیْ فِیْ دِیْنِیْ وَدُنْیَایَ وَمَعِیْشَتِیْ عَزَّ جَاؤُكَ وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ وَلَا اِلٰهَ غَیْرُكَ ط

ترجمه:- پناه غواړم په رب دَ موسیٰؑ او په رب دَ ابراهیمؑ له شره دَ هغه خوب چه ما لیدلی دی په خوب کښے دَ دے نه چه ماته نقصان راکړی ځما په دین او دُنیا کښے ستا مرتبه دَ ټولونه زیاته ده اے الله او ستا ثنا لویه ده اے الله او ستا نه بغیر بل معبود نشته دے اے الله۔

دے نه پس دِے دوه رکعته نفل مونځ اوکړی او صدقه دِے ورکړی نو دَ دے خوب بدی او نقصان به وکرځیږی او ختمه به شي۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی چه شیطان په ټولو خوبونو کښے مداخلت کوی او دَ هر شی په شکل کښے راځی مګر دَ الله، فرشتو، پیغمبرانو، اسمان، سپوږمۍ نمر او ستورو په شان نشی کیدے۔ که چرته دَ ده دا توان وے چه ځان دَ دے شیانو مذکوره په شان کولے شوے نو په خلکو کښے به ئے فتنه اچولے وے چه کله به ئے ځان دَ پیغمبرانو په شان ښکاره کولو او وئیل به ئے چه زهٔ دَ ستا نه خوشحاله یم ځه چه غواړے هغه کوه او بل سړی ته به ئے وئیل چه زهٔ ستا پیدا کوونکے یم ستا ګناهونه مے معاف کړی دی او ته مے بخښلے ئے او هغه ځه به ئے وئیلے چه دَ الله تعالیٰ بندګان به ئے ګمراه او بے لارے کول۔

امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی چه کله شیطان دَ حضور پاکؐ په صورت جوړول غواړی، نو دَ اسمان نه پرے اور راپریوزی او دے سوزوی او په ټولو کارونو کښے سخت کار شیطان ته دا دے چه دَ مؤمن زړهٔ روښانه شی او الله تعالیٰ او پیژنی او خوب ئے رښتینے وی۔

## دیارلسم فصل په بیان دَ دا بو لحاظ سائلو دَ تعبیر ورکوونکی او سوال کوونکی

کرمانیؒ فرمائیلی دی چه تعبیر بیانوونکی کښے دا صفت پکار دے چه دَ ده په هر کار کښے هوښیارتیا او رُو والے وی۔ دَ سائل سوال نبه په غور سره داؤری او دَ سوال کوونکی په دین مذهب، اعتقاد باندِ بنه معلومات حاصل کړی او دَ سائل رښتیا او دروغ اوپیژنی ځکه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی اَصْدَقُکُمْ رُؤْیَا اَصْدَقُکُمْ حَدِیْثًا

ترجمه:- څوک چه دَ خوب په باره کښے رښتینے وی هغه خبرو کښے هم رښتینے وی۔

امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی چه په عقلمند سړی باندے لازم دی

چه په اودس سره څملی اودَ اودهٔ کیږی و په وخت کښے الله تعالیٰ یادکړی او دا دُعا دِ ے څملاستو وخت کښے ووائی۔

(اَللّٰهُمَّ اَسْلَمْتُ نَفْسِیْ اِلَیْكَ وَ وَجَّهْتُ وَجْهِیْ اِلَیْكَ وَفَوَّضْتُ اَمْرِیْ اِلَیْكَ وَاَلْجَأْتُ ظَهْرِیْ اِلَیْكَ رَغْبَةً وَ رَهْبَةً اِلَیْكَ لَامَلْجَاَ وَلَا مَنْجَاَ مِنْكَ اِلَّا اِلَیْكَ تَبَارَكْتَ رَبَّنَا وَتَعَالَیْتَ اَنْتَ الْغَنِیُّ وَنَحْنُ الْفُقَرَآءُ اَسْتَغْفِرُكَ وَ اَتُوْبُ اِلَیْكَ اَللّٰهُمَّ اَرِنَا رُؤْیَا صَادِقَةً عَادِیَةً صَالِحَةً غَیْرَ فَاسِدَةٍ غَیْرَ مُجَرَّبَةٍ رَافِعَةٍ غَیْرَ رَاضِیَةٍ۔

ترجمه:۔ اے الله خپل ځان تاته سپارم او خپل مخ ستا طرفته کووم او خپل امر تاته سپارم او خپله ملا تاته تیهووم (رکوع کووم) دَ رغبت او یرے نه دَ خلاصی ځائے نشته دے او نهٔ دَ پناه ځائے شته دے مګر تا پورے ــ اے الله تهٔ برکت اچوونکے او اوچت یے، اے الله تهٔ غنی یے او زهٔ فقیر یم. زهٔ ستا نه معافی غوارم او توبه کوومه. اے الله ماته رښتینے، صادق خوب او ښهٔ خوب بغیر دَ څهٔ قِسم خرابئ نه چه په کښے څهٔ ازمیښت نهٔ وی رفعت بخښونکے وی، ناپسندیده نهٔ وی، وښائے۔

په ښی اړخ دِ ے څملی او چه ویښ شئ همدا رنګے الله تعالیٰ دِ یاد کړی که چرته ښهٔ خوب دِ لیدلے وی، نو شکر او باسه او صدقه ورکړه۔

او که چرته خراب ئے لیدلے وی، نو اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ دِ ووائی۔ (ترجمه:۔ پناه غوارم په الله باندِ دَ شیطان رټلی شوی نه۔) دا دِ ے دوائی او ورسره دِ ے سورة اخلاص پوره ووائی او خپل چپ (ګس) طرف ته دِ چُف کړی او ودِ وائی چه اے الله تهٔ پوهیږے او زهٔ نهٔ پوهیږم، که چرته خیر وی نو ماته دَ دے خوب خیر را ورسوے او که چرته بد وی نو دَ دے خوب بدی زما، نه او دَ ټولو مسلمانانو نه لرے کړه- او دا دُعا دِ ووائی یَا مُجِیْبَ دَعْوَةِ الْمُضْطَرِّیْنَ یَا اِلٰهَ الْعٰلَمِیْنَ وَیَا اَرْحَمَ الرّٰحِمِیْنَ ؕ ترجمه: اے دَ بے قرارو دُعا قبلوونکیه، اے دَ ټول جهان معبوده او دَ ټولو نه زیات رحم کوونکیه۔

دَ څملاستو په وخت او دَ هرکار دَ شروع په وخت دا دُعا ووایه :۔

بِسْمِ اللّٰهِ الَّذِیْ لَایَضُرُّ مَعَ اسْمِهٖ شَیْءٌ فِی الْاَرْضِ وَلَا فِی السَّمَآءِ وَهُوَ السَّمِیْعُ الْعَلِیْمُ ؕ

ترجمه، شروع م وکړه په نامه دَ هغه ذات چه دَ دهٔ نوم سره یو شے هم نقصان نشی رسولے نهٔ په آسمانونو کښے او نهٔ په زمکه کښے او دا الله تعالیٰ اوریدونکے او عالم دے۔ چه کله دَ مونځ نه فارغه شوے نو خپله وظیفه او قرآن شریف او دُعاګانے

ولوله، دَخوب دَ بیانولو په صحیح وخت کښې لاړ شه او تعبیر ویستونکی ته خپل خوب ووایه خو دَ خوب تیرولو وخت کښې کمې زیاتې ونکړې.

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه دَ تعبیر بیانوونکی دَپاره دا شرط دے چه دے په اودس کښې وی او که دَ دهٔ څوک دُشمن وی نو دَ دشمن دَ وجه نه دے ناجائزه خوب بیان نهٔ کړی. او دَ چا بدی چه اُوینې بل چاته ئې مهٔ بنایه.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی چه چا خوب لیدلے وی، په خپل خوب کښې دِ کمې زیاتې نهٔ کوی او دَ دروغونه دِ ځان او ساتی ځکه چه په حدیث شریف کښې دی چه رښتینې خوب دَ الله دَ طرف نه وحی ده، او څوک چه دَ الله تعالیٰ په وحی کښې کمې زیاتې کوی هغه په الله تعالیٰ دروغ وائی. او خوب دَ الله تعالیٰ او دَ بنده ترمنځه یو امانت دے. رسول الله صلی الله علیه فرمائیلی دی چه څوک په ما باندې چه زهٔ رسول یم دروغ وائی نو دے په خپل ځان باندې دَ تباهی او بربادی ګواهی ورکوی، نو که څوک دَ دروغو خوب جوړ وی نو دے دَ رسول الله په قول باندې ګنهګار دے او دا خبره دَ خوب په عظمت او بزرګی دلیل دے او په تعبیر بیانوونکی او سوال کوونکی دَ خوب ادب لحاظ ساتل شرط دی.

**څوارلسم فصل. تعبیر په څو قِسمه دے** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چه تعبیر بیانوونکی ته پکار دی چه اول بایدَ دَ سوال کوونکی (خوب لیدونکی) نوم، قدر، مرتبه، مذهب، خصلت، عقل او فهم معلوم کړی او هغه وخت هم چه آیا دا خوب ئې دَ شپې لیدلے او که دَ ورځې لیدلے دے او فکر دِ ورته وکړی چه سائل دَ سوال کولو په وخت څهٔ حرکت کوی او خوب په څهٔ طور او طریقه بیانوی. فصل او فارسی میاشت دِ معلوم کړی. بیا که چرته قیاس ته نزدې وی بیان دے کړی او تعبیر دِ ورته وښائی.

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی، که چرې یو خوب لیدونکی سوال وکړو دَ تعبیر په باره کښې، نو که دَ دهٔ نوم یا دَ دهٔ دَ پلار نوم دَ پیغمبرانو دَ نومونو پشان وی نو دَ جِذر او فال په طریقه دِ دے دَ هغهٔ خیر او خوشحالئ باندې دلیل حاصل کړی او که دَ دهٔ نوم خراب وی نو دَ دهٔ په شر او فساد دے دلیل حاصل کړی.

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی، دَ یکشنبې (اتوار) دَ ورځې خوب نیک وی، دَ نمر سره تعلق لری او دَ پیر دِ ورځې (دوشنبې ورځ) خوب هم نیک وی او دَ سپوږمۍ سره تعلق لری او دَ نهې (سه شنبې ورځ) دَ ورځې خوب مریخ سره تعلق لری

دَ دے تپوس مۀ کوه۔ دَ چارشنبې دَ ورځې خوب عطارد سره تعلق لری په کومه ورځ سره چه قوم هودؑ او اصحاب الرس هلاک شوی وو او دَ دے تپوس هم مۀ کوه۔ دَ زیارت (پنجشنبې ورځ) دَ مشتری ده۔ دَ اولے ورځے خوب سعادت او خوشحالئ دلیل دے او دَ جمعے دَ ورځے اول زهره ده خوشحالی او عیش او دَ زړۀ دَ خوشحالئ دلیل دے۔

جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، چه دَ خوب تعبیر بیا نونکی دَ پاره دَ خوب په باره کښې ډیره تجربه پکار ده لکه څنګه چه ډاکټرته دَ بیماری او دَ هغې دَ علاج تجربه وی۔

**حکایت** امیر المؤمنین مهدی خوب اولیدلو چه خوب کښې مخ تورشوے دے چه راپیدا رشو نو اوویریدلو۔ تعبیر بیانوونکی ئے راجمع کړل او خپل خوب ئے ورته بیان کړو۔ تعبیر بیانوونکو چه داخوب واوریدلو نو دوئی دَ دے خوب دَ تعبیر نه عاجزه شول۔ بیائے ابراهیم کرمانیؒ چه دَ تعبیر بیانوونکو استاد وو راوغوښتو۔ دهٔ دَ خلیفه خوب واوریدو، نو دهٔ تعبیر بیان کړو چه تاسو کوره کښې به جینئ پیدا کیږی۔ موجوده خلکو ورته تپوس وکړو چه دَ دے تعبیر څۀ دلیل دے؟ دهٔ جواب ورکړو چه دا آیت ئے دلیل دے۔ (وَ اِذَا بُشِّرَ اَحَدُهُمْ بِالْاُنْثٰى ظَلَّ وَجْهُهٗ مُسْوَدًّا وَّهُوَ كَظِيْمٌ. النحل) ترجمه:۔ کله چه دَ جینئ زیرے ورکړے شی نو دَ دهٔ مخ تورشی چه دے غضبناک دی۔ امیرالمؤمنین حضرت کرمانی ته زر درهمه انعام ورکړو او هم په هغه ورځ جینئ پیدا شوه نو بیا لس زره درهمه نور هم دَ انعام په طور ورکړل۔

**حکایت** یو سړی خوب اولیدلو چه دے خصی کړے شو۔ تعبیر بیانوونکو ته راغلو او خپل خوب ئے ورته بیان کړو، یو تعبیر کوونکی ورته ووے چه دا سړے به ډیر زر مړ شی۔ دویم معبر ورته ووے، دَ خپلو ماشومانو نه به جدا شی۔ دریم ورته ووے چه دَ دهٔ اګو (خصیتین) ته به نقصان ورسیږی۔ څلورم ورته ووئیل چه دَ دهٔ نسل به کټ کړے شی۔ پنځم اووے چه دے به خپلې ښځې ته طلاق ورکړی، څۀ ډیره موده نۀ وه تیره شوے چه دهٔ خپله ښځه طلاقه کړه او ماشومان ئے خپل ځان سره یو ځائے په سفر روان کړل او په دریاب کښې په کشتئ کښې کیناستل، هوا مخالفه وه او کشتئ غرقه شوه۔ دَ دریاب په غاړه یو مهے (کب) دَ دهٔ هګئ (خصیتین) او آله تناسل اوخوړل، دَ هغهٔ مال او اولاد ټول هلاک شول او دَ خوب تعبیر هم هغه رنګ پوره شو کوم قسم چه تعبیر بیانوونکو بیان کړی وو۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، چه په قبرستان کښې به تعبیر بیانوونکی

دَخوب تعبیر نۀ بیانوی اوخوب لیدونکے دے ربنتیا ربنتیا بیان اوکړی لکه څنګه چه په جیل (زندان) کښے حضرت یوسف علیه السلام بیان کړے وو. قُضِیَ الْاَمْرُ الَّذِیْ فِیْهِ تَسْتَفْتِیٰنِ ۞ (یوسف ۴۱) ترجمه: فیصله اوکړے شوه چه تاسو دواړه فتوٰی غوښتے وه.

امام جعفرصادقؒ فرمائیلی دی، چه څلورقسم خلکونه دَخوب دَتعبیر پوښتنه کول روا نۀ دی. بے دینه. ښځو نه. جاهلانو نه. دښمن نه.

## پنځلسم فصل په پیژندلو دَهغه مسائیلو کښے چه دَهغے تعبیر اپوټه (بالعکس) وی

په دے ځائے پوهیدل پکار دی چه زیات سوالونه داسے دی چه دَهغے تعبیر اپوټه (بالعکس) وی، ځنے دَهغو نه په دِے فصل کښے بیانیږی دا دَدے دَپاره چه تعبیر ویستونکو باندے پټه نۀ وی.

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چه طاعون خوب کښے لیدل په ویښه جنګ دے او په خوب کښے ژړل په ویښه خوشحالی ده او په خوب کښے خکر لکول دا په ویښه اقرار نامه لیکل دی په خوب کښے دَغابښ درد بے دینی کیدل دی. په خوب کښے ځان په قبر کښے لیدل جیل ځانے ته تلل دی. په خوب کښے دَخراب کورلیدل دَجینکو پیداکیدل دی او په خوب کښے جینکئی پیداکیدل دَدهقانی (زمینداری) دلیل دے دَالله تعالیٰ فرمان دے (نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَاْتُوْا حَرْثَكُمْ اَنّٰی شِئْتُمْ) (البقره ۲۲۳) ترجمه: ستاسے ښځے ستاسے پټی دی دَهرطرفه چه ستاسے خوښه وی پرے راځئ.

په خوب کښے نیکی کول کپړه جوړول دی او په خوب کښے کپړه جوړول نیکی کول دی زاړهٔ شیان په خوب کښے راتلل بد دی په خوب کښے نوے موزه بغیر دَوسلے نه اغوستل بد ده. غم او نکرونه راوړی، او په خوب کښے زړه موزه وسلے سره اغوستل په ویښه خوشحالی ده. که چرته څوک په خوب کښے غلام اخلی، نو بد دی که غلام خرڅوی نو ښهٔ دی او که وینزه اخلی نو دا خوب ښهٔ دے. او که وینزه خرڅوی نو دا خوب بد دے، داسے اُلټه (بالعکس) خوبونه ډیرزیات دی که ټول ذکرکووم نو کتاب اوږدیږی مګر دَهریوشی به تپل ځائے ذکروکړم. انشاءالله

## شپاړسم فصل. دَالله تعالیٰ فرښتو، پیغمبرانو لیدلو کښے

دَدے کتاب مصنف وائی چه دَدے عاجز استاذ دَالله تعالیٰ او دَفرښتو، پیغمبرانو لیدل تعبیر کښے دَخپل کتاب په شروع

کښې دَ مقدمې په ډول یاد کړې دي. مناسب ما هم اوګڼړل چه اول دا بیان کړم او دَ نورو شیانو تعبیر په دَ نورو کتابونو پشان په دیباچه دَ حروف معجم په ترتیب سره بیان کړم دا دَدې دَپاره چه تعبیر ویستونکی اونده کوونکی باندې اسان شي۔

## دَ الله تعالیٰ دَلیدلو تعبیر

حضرت دانیالؑ فرمائیلي دي، چه هر مؤمن بنده الله تعالیٰ په خوب کښې بې مثله او بې مثاله اوګوري (څنګه چه احادیثو کښې راغلي دي) دا دَدې دلیل دې چه دَه ته به دَ الله تعالیٰ دیدار نصیب کیږي، او دَدَه حاجتونه به پوره شي او که بنده ولاړ وي او الله تعالیٰ ورته ګوري خوب کښې نو دصلاح کار او دنفس دسلامتیٔ دلیل دې او دَ الله تعالیٰ مغفرت به ئې نصیب شي او که چرې ګنهګار وي نو توبه به اوباسي.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، که چرې څوک خوب کښې اوګوري چه الله تعالیٰ ورسره دَ راز خبرې کوي، نو دا دَدې دلیل دې چه دې دَ الله تعالیٰ په وړاندې دَ بزرګیٔ خاوند دې. الله تعالیٰ فرمائي (وَقَرَّبْنٰهُ نَجِيًّا)[1] ترجمه: او دَه لره دَ ناز خبرو کولو سره نزدې کړو مونږ.

مریم ۵۲

که چرته دې خوب کښې اوګوري چه الله تعالیٰ دَه سره په پرده کښې خبرې کولې دا دَدې دلیل دې چه دَ دَه دین خلل او دَ خطائی دلیل دې دَ الله تعالیٰ بیان دې (وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّكَلِّمَهُ اللّٰهُ اِلَّا وَحْيًا اَوْ مِنْ وَّرَآءِ حِجَابٍ)[1] ترجمه: دَ یو بشر دَپاره دا نشي کیدې چه الله تعالیٰ ورسره خبرې وکړي مګر دَ وحی په طور او یا دَ پردې شاته)۔

که چرې ځا خوب اولیدلو چه دې الله تعالیٰ مقرب او معزز حساب کړو او بزرګ ئې جوړ کړو نو دا دَ دَه دَ بخشش دلیل دې.

او که چرې خوب کښې اوویني چه الله تعالیٰ ورته نصیحت کوي نو دا دَدې دلیل دې چه دَ خدائ رضا دَه کښې نشته. دَ الله تعالیٰ کلام دې (يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ)[2] ترجمه: نصیحت درکوي تاسو ته دَدې دَپاره چه نصیحت قبول کړئ.

النحل ۹۰

او که چرې اوګوري چه الله ورته زیرې ورکوي، دا دَ الله تعالیٰ دَ رضا دلیل دې او که چرته اوګوري په خوب کښې چه الله تعالیٰ دې یروي، دا دَ الله تعالیٰ دَ غصې دلیل دې او که چرته اوګوري چه دَ الله په وړاندې سرټیټې ولاړ دې نو دا دَ غم او دَ فکر دلیل دې. دَ الله تعالیٰ کلام دې (وَلَوْ تَرٰى اِذِ الْمُجْرِمُوْنَ نَاكِسُوْا

(۱) شورای ۵۳

دَهُمْ وَسَعُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ) ترجمه: او که چه ته ئ او کورے گنهګاران چه د دوئ د خپل رب په وړاندے سرټیټ کړے دے۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که چرته څوک اوګوری چه دۀ ته الله تعالیٰ په خوب کښے څۀ شے ورکړی نو دا د بلا او مصیبت دلیل دے۔ او که چرته اوګوری چه الله تعالیٰ ورته په نظرِ رحمت سره ګوری دا د دے دلیل دے چه الله تعالیٰ به ورته خپل دیدار او جنت نصیب کړی۔ او که چرته اوګوری چه دۀ ته الله تعالیٰ د دُنیا څۀ سامان ورکړے دے، نو دا د سختے بیمارئ دلیل دے مګر د دے به ورته اجر او ثواب رسیږی۔ ځنے تعبیر بیا نو ونکو ویلی دی چه عذاب به مومی۔
که چرے الله تعالیٰ او وینی او بل څوک ورته دوائی چه دا الله تعالیٰ دے دا د دے دلیل دے چه د دۀ به کوم بادشاه ته حاجت پیښ شوے وی۔
که چرے دا سے او وینی چه الله تعالیٰ کومه زمکه یا کوم ځائے کښے راغلے دے دا د دے دلیل دے چه د دے ځائے خلک مظلومان دی او الله تعالیٰ به د دوئ مدد کوی، که دلته قحط وی نو فراخی به پرے راشی، او که ګنهګار وی نو دا خلک به توبه او باسی۔ او که چرته اوګوری چه الله تعالیٰ د دۀ کورته راغلے دے او په مهربانی سره ئے د دۀ په سرلاس راښکلے دے یا څۀ خلعت ئے اغوستے دے دا د الله تعالیٰ د کرم او مهربانی دلیل دے مګر دا سړے به په دُنیا کښے غمژن او بیمار وی، او که الله تعالیٰ په نورانی شکل کښے اُوګوری چه د هغے د اوصافو بیان او نۀ کړے شی، دا د غم او فکرمندئ دلیل دے۔
که چرته خوب کښے اُوګوری چه الله تعالیٰ د دۀ نوم بدل کیخودلو دا د شرف او د بزرګی دلیل دے۔
که چرته الله تعالیٰ ور باندے غُصه کړے وی، دا د ژهد او پرهیزګارئ دلیل دے۔
او که چرته اُوګوری چه الله تعالیٰ ځانته نزدے کړے دے، دا د دے دلیل دے چه د دۀ مرګ نزدے شوے دے۔
جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که چا الله تعالیٰ په خوب کښے په کوم ښار یا کلی کښے اولیدلو، نو د هغه ځائے خلک به شرف، عزت او بزرګی بیا مومی او د هغه ځا یه به ظلم پورته کړے شی. د الله تعالیٰ کلام دے چه فرمائی اَللّٰهُ یَحْکُمُ بَیْنَکُمْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ فِیْمَا کُنْتُمْ فِیْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ۝ الحج ۶۹ ۔ ترجمه: الله تعالیٰ به فیصله

وکړی ستاسې په منځ کښې ستاسې دَ اختلافونو).

که چرې اوګوری چه الله تعالیٰ هغه ګُلُّه کښې خفه دے، دا دَ دے خبرې دلیل دے چه دَ دے ښار قاضی (جج) بے انصافه دے یا دَ دے ښار امیر په رعیت ظلم کوی یا دَ هغه ښار عام خلک بے دینه دی او که همدغه خوب یو غل سړے اوګوری نو دَ هغهٔ به څپے لاسونه غوڅ (قطع) کړے شی او په دے ښار کښې به فساد او بلا او قتل واقع کیږی، دَ الله تعالیٰ کلام دے۔ (وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً حَتّٰٓى اِذَا جَآءَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُوْنَ)[1] ترجمه:- دغه الله تعالیٰ دَ خپلو بندګانو دَ پاسه زورور دے او په تاسې محافظ فرښتې لیږی تر دے چه چاته مرګ راشی نو هغه څمونږ قاصدان وژنی، کښے او کوتاهی نه کوی.

حضرت عبدالله ابن عباسؓ فرمائیلی دی، که چرے څوک په خوب کښې الله تعالیٰ بے مثله او بے نظیره ووینی نو دے به ډیرے نه په کښې وی که مسلمان وی نو دے په آخرت کښې دَ الله تعالیٰ دیدار اوګوری او که کافر وی نو مسلمان به شی. دَ الله تعالیٰ کلام دے. (لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَزِيَادَةٌ)[2] ترجمه: چا چه نیکی کړے ده دَ هغوی دَ پاره نیکی او زیادتی ده). یونس ۲۶

تعبیر بیانوونکے دَ دے عِلم دَ الله تعالیٰ دَ لیدلو په باره کښې وائی که چرے الله تعالیٰ دلسے شکل او صورت کښې اوګوری چه کله ئے نه وی لیدلی دا دَ الله تعالیٰ دَ فضل او کرم تعبیر دے. او که دَ چا په صورت ئے ووینی نو دا سړے به غالب مشهور او نوموړے وی. او که الله تعالیٰ په موځ او تسبیح اووینی نو دا د رحمت او بخشش تعبیر دے. او که غازیانو او مجاهدینو په جهاد کښې اولیدلو نو دَ دوئ سره دَ نصرت او کومک تعبیر دے.

او که چرے الله تعالیٰ اوګوری چه دَ چا دَ سر دَ پاسه خاورے اچوی. دا دَ دے دلیل دے چه هغه خلک به مړهٔ کړی.

او که چرے چا الله تعالیٰ ته په خوب کښې کنځل او کړل نو هغه سړے به کافر شی. که چرته اوګوری چه الله تعالیٰ په تخت ناست یا اُوده ولیدهٔ نو دا نالائق صفتونه دی او دَ دے خبرے دلیل دے چه دا سړے به بے دینه او ګنهګار وی.

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی چه الله تعالیٰ لیدل په خوب کښې په اوده

(۱) الانعام ۶۱

وجهو سره دے۔(۱) معافی او بخښنه (۲) دَ بلا او مصیبت نه محفوظ کیدل.
(۳) نور او هدایت او په دین کښے توت (۴) په ظالمانو باندے کامیابی.
(۵) دَ بلا او دَ آخرت دَ عذاب نه په امن کیدل (۶) په دے ملک کښے به ابادی او عادل بادشاه وی (۷) عزت او شرافت او په دُنیا او آخرت کښے به ئے اوچته مرتبه او درجه وی، دا ټول وجوهات دَ نظر رحمت په صورت کښے دی، او که چرے دے اوګوری چه الله تعالیٰ ورته دَ غُصے په نظر سره ګوری نو دا دَدے خبرے دلیل دے چه دے دَ شرعی حد نه ورتیریږی او دَ مظلوم (په چا چه ظلم شوے وی) دَ پاره دَ انصاف کار نه اخلی او که چرے بادشاه ئے اووینی نو دا دَ دهٔ دَ بے انصافی دلیل دے. او که عالم ئے اووینی نو دا دَدے دلیل چه دَ دهٔ په دین او اعتقاد کښے خلل دے. خلاصه دا چه که الله تعالیٰ دَ رحمت په نظر سره اوګوری، نو دَ مغفرت دلیل دے. او که دَ قهر په نظر سره ورته اوګوری، دَ رحمت او عذاب دلیل دے زما دلیل دا دے چه الله تعالیٰ هر ځائے موجود دے (دَ علم او قدرت په لحاظ) دَ دهٔ لیدل دَ عقل په لاره کښے دی، او په خوب کښے دَ قهر الٰهی نه منکر کیدل نهٔ دی پکار۔

ابو حاتمؒ دَ محمد بن سیرینؒ نه اوریدلی دی چه په ټولو خوبونو کښے دا ښهٔ خوب دے چه الله پاک په خوب کښے بے مثله او بے مثاله اوګوری۔

## رؤیت الملائکة دَ فرښتو لیدل

خوب کښے دَ فرښتو لیدل کامیاب، دیندار او دیانتدار بادشاه دے یا عالم پرهیزګار باندے دلیل دے او په ټولو فرښتو کښے څلور فرښتے جبرائیلؑ، میکائیلؑ، اسرافیلؑ، عزرائیلؑ لوئے فرښتے دی۔

## حضرت جبرائیل علیه السلام

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک جبرائیلؑ خوشحال طبعه او رونړ مخے اُووینی، نو دا دَدے دلیل دے چه په دښمن به کامیابی مومی او مراد (هدف) ته به ورسیږی. او که چرے دَ دے مخالف اوګوری نو دا دَ غم او دَ خفګان دلیل دے. که چرته څوک اوګوری چه جبرائیلؑ ورته خوشخبری ورکوی یا نیکه وعده ورسره کوی او یا دَ کوم کار نه ئے منع کوی، کا دَ عزت، دولت او دَ تسلیٰ او دَ خاطر جمعیٔ دلیل دے که چا ته جبرائیلؑ په خوب کښے څهٔ ورکړی نو دا دَدے دلیل دے چه دَ بادشاه نه به مرتبه ورته حاصله شی او مخے دَ معبرانو (تعبیر بیانوونکی) وائی چه که په خوب کښے ورته جبرائیل څهٔ شے

ورکړے وی نو دا دَ ویرے او دَ وحشت دلیل دے او که چادرته په خوب کښے او دے
چه ته جبرائیل ئے نو دا دَ دے دلیل دے چه جرارۀ خبرے به کوی او خپل
منزل مراد ته به رسیږی او دیانت دارۀ او امانت دارۀ به مشهور شی۔

## حضرت میکائیل علیه السلام

که چا میکائیلؑ په خوب کښے په خپل صورت
کښے اُولیدو نو دَ خیر او بشارت علامه دۀ ځکه چه جبرائیل دَ عذاب راوړونکے
دے او میکائیل دَ خیرو او دَ نورو نعمتونو راوړونکے دے۔
حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه که په خوب کښے اووینی چه دۀ ته
میکائیلؑ څۀ شے ورکړے دے نو دا دلیل دَ خیر او دَ بزرګئ دے او که اوګوری
چه دۀ ته میکائیل څۀ وینا کوی نو دا دَ دے دلیل دے چه دۀ نه به خلکو
ته خیر او منفعت ورسیږی او دے به خلکو کښے قدرمند شی۔

## حضرت اسرافیل علیه السلام

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه
دَ اسرافیلؑ په خپل صورت کښے لیدل دا دَ بزرګئ او دَ قوت او دَ بند بے
علم او پوهے دلیل دے او که چرته په کوم ملک کښے اووینی دا دَ هغه ملك
دَ امن او ابادئ دلیل دے۔ او که چرته په شپیلئ کښے پوکے وهونکے
اووینی نو دا دَ هغوئ دَ بلا او دَ فتنے دلیل دے۔ دَ الله تعالٰی فرمان دے۔ وَنُفِخَ
فِی الصُّوۡرِ فَفَزِعَ مَنۡ فِی السَّمٰوٰتِ وَمَنۡ فِی الۡاَرۡضِ ط ترجمه:۔ او شپیلئ به
پوک وهلے شی او څوک چه په اسمانونو او زمکه کښے دی ټول به بیهوشه شی۔
او که ئے وکوری چه په لاس کښے ئے شپیلئ دہ او پوکے تۀ ورکوی نو دا
دَ هغه ځائے او ښار دَ فتنے، بَلا او ویرے پیدا کیدلو دلیل دے۔
او که چرے تۀ اسرافیلؑ اوګورے چه دَ دۀ کورته راغے او دے اُودۀ دَ
او وینی شی، دا دَ دے دلیل دے چه دَ هغه ښار بادشاه به دَ دۀ نه خفه شی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه که چا اسرافیلؑ په خوب کښے اولیدلو
چه دَ غم دَ که شپیلئ وهی او دَ برکت په طور واوریدہ نو دا دَ دے دلیل دے
چه په دے ملک کښے به وبا راځی او ظالم او شرپسندۀ خلک به هلاک شی او
که خوشحاله او روغ تندے ئے اوګوری نو دا دَ دے دلیل دے چه دۀ ته به دَ
بادشاه نه خیر او رسیږی۔ او که ئے ورته آواز وکړو او بیا ورته غیب شو
نو دَ بادشاه نه به ورله نقصان اورسیږی۔

## حضرت عزرائیل علیه السلام

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک

عزرائیلؑ په اسمان او خپل ځان په زمکه اُوګوري، دَدے تعبیر دا دے چه دَ خپل کار (منصب) نه به لرے کړے شي. او که دَ ځان سره ئے بوځلے اوګوري نو دا دَ هغهٔ دَ مرګ دَ نزدے کیدو دلیل دے او که خوشحاله ئے اوګوري نو دا دَ هغهٔ دَ شهادت دلیل دے، او که دَ عزرائیلؑ سره په پرزونے اوګوري او را او غورځیدو، نو دَ دُنیا نه به زر لاړ شي. او که عزرائیلؑ ئے را او غورځولو نو ځنے معبران وائي چه دا دَ دے دلیل دے چه دے به بیمار (مریض) شي او زر به جوړ شي.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دي چه که چرته ملك الموت په خوب کښے خوشحاله اوګوري نو دا دَ دهٔ دَ ژوندا دَ اوږدیدو دلیل دے. او که سلام اچوونکے اوګوري چه په دهٔ ئے سلام واچولو نو دا دَ دهٔ دَ شهادت دلیل دے او که شیریني (خوارهٔ) ورکوونکے اوګوري نو دَ دے دلیل دے چه روح به ئے په اسانه قبض کړے شي او که غصه کښے اوګوري نو دا دَ خطرناك مرګ دلیل دے او که دَ تریخ شئ (څیز) ورکوونکے اوګوري نو روح به ئے په سختئه سره اُوځي. او که په خوب کښے ورته خوک خبر ورکړي چه ملك الموت په فلاني ځائے کښے دے او دے ئے دَ لرے نه اُوګوري نو دا دلیل دے چه دَ دهٔ به دَ بادشاه سره کار پیښیږي؟ او که اوګوري چه دهٔ عزرائیلؑ وهلے دے نو دے به دَ خلکو دښمن شي.

**دَ عرش حاملین فرښتے لیدل** دا هغه فرښتے دي چه دوئ دَ الله تعالی په حکم عرش الٰهي اوچت کړے دے. که چرته دوئ څوك په خوب کښے اُوګوري نو دے به بادشاه شي او مراد به ئے حاصل شي؛ او که دهٔ سره ئے ملاقات کړے وي نو دَ بادشاه سره به ئے کار پیښیږي او خیر او نفع به اوګوري

حضرت کرمانيؒ وئیلی دي چه په خوب کښے دَ عرش حاملین فرښتے لیدل دا دَ دیندارو سړي سره ملاویدل دي او همدارنګه حج به کوي. دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَتَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ حَآفِّيْنَ مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ)[1] ترجمه:- او ته به فرښتے دَ عرش نه ګیرچاپیره په صفونو کښے ولاړے اُوګورے چه دوئ دَ خپل رب سره ثنا وائي).

او که فرښتے ورسره نهٔ وکړي او خپل عبادت کښے دَ ځان سره شریک کړي نو دا دَ دے دلیل دے چه مرګ ئے نزدے شوے دے.

**دَ کراماً کاتبین فرښتو لیدل** دا هغه فرښتے دي چه دَ خلکو نیکي او

(۱) الزمر ۷۵

بدی نیکی۔ حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه که کراماً کاتبین څوک په خوب کښے اوګوری چه که چرے نیک وی نو په دواړو جهانو نوکښے به خیر او نفع بیامومی او که غریب وی نو غم او فکر به تیروی. دَ الله تعالیٰ کلام دے يَعْلَمُوْنَ مَا تَفْعَلُوْنَ (الانفطار) (هغه ستاسو کارونه پیژنی)

که چرے دا فرښتے په خپلو کښے په جنګ اوګوری دا دَدے دلیل دے چه دا سړے ګناهګار او نا فرمان دے، او دَ الله تعالیٰ دَعذاب مستحق دے دَ الله تعالیٰ کلام دے اِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمِ ١سْمُهٗ يَحْيٰى ٥ زهٔ تا ته دَیو هلک زیرے درکوومه چه دَ هغهٔ نوم یحییٰ دے)۔ مریم

او که فرښتے اوګوری چه دَیو شی دَ اخستلو په انتظار وی، نو دا دَ دے دلیل دے چه په مال او نعمت به ئے زوال راځی، او چه فرښتے ولاړے اوګوری نو هلته به امن وی او که په جنګ کښے اوګوری نو په دُښمن به کامیابی ومومی او که په رکوع او سجده ئے اوګوری نو دا دَدے دلیل دے چه دَدین او دُنیا احکام ئے صحیح دی، او که فرښتے دَ ښځو په شکل کښے اوګوری دا دَدے دلیل دَ چه دے په الله تعالیٰ دَروغ تړی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے: اَفَاَصْفٰكُمْ رَبُّكُمْ بِالْبَنِيْنَ وَاتَّخَذَ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ اِنَاثًا اِنَّكُمْ لَتَقُوْلُوْنَ قَوْلًا عَظِيْمًا ٥ الاسراء ۴۰ ترجمه: ولے الله پاك تاسو ته ځامن درکړی دی او بچیله ئے جینکۍ واخستے، تاسو لویه غټه خبره کوئ)

او که چرے په خوب کښے اُووینی چه وزرے ئے دی او دَ فرښتو سره او تل کوومه، نو دا دَ دے دلیل دے چه دَدهٔ مرګ نزدے دے او په دُنیا کښے به توبه او باسی او مړ به شی او که فرښتے اوګوری دَ لرے نه او نزدے نشی ورتلے نو په دهٔ مصیبت راتلونکے دے۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (يَوْمَ يَرَوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ لَا بُشْرٰى يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِيْنَ ٥ (ترجمه: په کومه ورځ چه فرښتے به اووینی په هغه ورځ ګنهګارو الفرقان ۲۲ ته خوشحالی نشته دے)۔ او که په خوب کښے اوګوری چه فرښتے دهٔ ته دَ خپل اطاعت حکم فرمائی که چرے صالح وی نو خوشحالی به اووینی۔ او که بدکاره وی نو خفګان او تکلیف به اووینی۔ دَ الله تعالیٰ فرمان دے (اِقْرَاْ كِتٰبَكَ كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيْبًا ط (ترجمه: خپله عملنامه ولوله نن ورځ بنی اسرائیل ۱۴ ستا نفس په تا دَ حساب اخستلو دَ پاره کافی دے)۔

او که اُوګوری چه فرښتے ورته په عزت سلام کوی، نو دے به په دښمن کامیابی اُوموی او انجام به ئے په نیکۍ وی۔ او که په یوځائے کښے اوګوری

چه دا کوزیږي نو دَ هغه ځائے خلک به دَ غم نه خلاصے بیا مومی ځکه چه فرښتے تل دَ پیغمبرانو دَ کومک دَ پاره راغلی دي.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دي چه خوب کښے دَ فرښتو لیدل پند او نصیحت دے او که فرښتے نصیحت کوونکی اووینی نو دا سړے به شهیدا شي، او که چرته مقربے فرښتے اوګوري چه دَ هغه ځائے مسلمانان دَ کافرانو سره په جنګ کښے دي، نو دَ مسلمانانو به فتح په نصیب وي. او که هغه ځائے کښے تکلیف، قحط او سختي وي نو دَ هغه ځائے خلکو ته به الله تعالیٰ خلاصے ورکړي او که اوګوري چه دے فرښته شوے دے او اسمان ته لاړو دا دَ دے دلیل دے چه په دُنیا کښے به پرهیزګار شي او دَ تقوٰی لار به اختیار کړي. دَ دُنیا نه به لاس واخلی او دَ آخرت کوشش به کوی. او که وے لیدل چه دَ فرښتو سره اسمان ته تللے دے او واپس رانغلو، نو دَ دُنیا نه به ئی لاړ شي. او خپل نیک تاریخ او نوم به پریږدي.

جابر مغربیؒ فرمائیلی دي که چرته په خوب کښے اوګوري چه فرښته دهٔ ته دَ څه کار زیرے ورکوي نو دا سړے به دَ مرض نه صحت وموهی او حج، جهاد او نیک کار وته ادکړي. او که خپل ځان دَ فرښتو په صورت او شکل کښے اوګوري نو تعبیر ئے دا دے چه دَ غم او قرض نه به خلاص شي او که دولتمند وي نو دولت به ئے نور هم زیات شي او که فقیرے اوګوري نو مالداره به شي.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دي چه که اوګوري چه فرښتے دهٔ ته په څهٔ کار زیرے ورکوي، نو دائے تعبیر دے چه کوم بزرګ سړے به دے په کاربانده مقرر کړي او که فرښته ورته تحفه ورکوي، نو دا سړے به بزرګی او موهی، او که مقربے فرښتے استقبال کوونکے اوګوري دَ دواړو جهانونو دولت به اوموهی. او که اوګوري چه فرښتے دَ دهٔ ملاقات او زیارت ته راغلی او هلته ئے شمع او چراغونه ورسره دي تعبیر ئے دا دے چه هوښیار او عالم ځوي به ئے پیدا شي او که اوګوري چه فرښتے ورته سپینے او شنے کپړے ورکوي نو دائے تعبیر دے چه دے په خپله مړ کیږي او یا به دَ دهٔ په خپلوانو کښے څوک مري او که اوګوري چه دا فرښتے دَ دهٔ په طرف په خوشحالئ سره ګوري نو دَ دهٔ انجام به په خیر او سعادت سره وي او که خوب کښے ورته فرښته مکمل او جامع قرآن ورکوي او یا لیکلے خط ورکوي نو دائے تعبیر دے چه څوک به په دهٔ

حکومت کوی او په دهٔ به کامیاب وی۔

## رؤیت پیغمبران۔ دَ پیغمبرانو دَ لیدلو او زیارت په باره کښې

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه پیغمبرانؑ په درے قسم دی (۱) اُولوالعزم (۲) مرسل (۳) نبی۔

اُولوالعزم۔ شپږ دی:۔ (۱) آدم علیه السّلام (۲) نوح علیه السّلام (۳) حضرت ابراهیم علیه السلام (۴) حضرت موسیٰ علیه السّلام (۵) حضرت عیسیٰ علیه السّلام (۶) حضرت محمد صلی الله علیه وسلم۔

مُرسل هغه پیغمبران دی چه په چا جبرائیل وحی راوړے ده۔ دَدوی تعداد درے سوه دیارلس (۳۱۳) دے۔

او نبیان هغه دی چه په هغوئی جبرائیل علیه السّلام وحی را نه دَه وړې او کنه۔

**اولوالعزم** دَ اُولوالعزم پیغمبر خوب کښې لیدل دَ عزت او دَ دبدبے دلیل دے۔ او که مرسل پیغمبر اووینی نو په دښمن به کامیابی اومومی۔ او که دَ دغه کلی خلک په غم او مصیبت کښې وی نو دَ دین او دَ دُنیا صلاح او خیر او دَ کاروبار ابادی به اوګوری۔ او که پیغمبران دَ یو ځائے نه بل ځائے ته ځی او دَ هغه ځائے خلکو ته بد دُعا کوی نو دا تعبیر ئے دے چه په دغه خلکو به لویه بلا او مصیبت الله تعالیٰ نازل کړی۔ دَ دے علاج الله تعالیٰ ته توبه کول او الله تعالیٰ ته رجوع کول دی۔

**نبی** حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که چرے چا کوم مؤمن بنده په خوب کښې پیغمبر خوشحاله او تازه اولیدلو نو دا دَ غم سختی او بد حالی دلیل دے او که په خوب کښې ورته خفه خیره وادری نو دا ئے تعبیر دے چه دَ دهٔ دَ علم نه برخه مُندلو او دَ خوشحالئ دلیل دے او که چرے دهٔ کوم پیغمبر او وهلو نو دا دَ دهٔ خیانت دے لکه چه الله تعالیٰ فرمائیلی دی (فَبِمَا نَقۡضِهِمۡ مِّيۡثَاقَهُمۡ وَكُفۡرِهِمۡ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَقَتۡلِهِمُ الۡاَنۡۢبِيَآءَ بِغَيۡرِ حَقٍّ) النساء ۱۵۵۔ ترجمه:۔ دَ دوی دَ وعدو ماتولو او کفر کولو دَ الله تعالیٰ په ایا تونو باندے او همدا رنګه دَ پیغمبرانو دَ وژلو په سبب بغیر دَ کومے ګناه نه۔)

**حضرت آدم علیه السّلام** حضرت جابر صادقؒ فرمائیلی دی چه څوک په خوب کښې ادمؑ اوګوری نو عزت او مشری به بیا مومی۔ دَ الله تعالیٰ فرمان دے (وَعَصٰۤى اٰدَمُ رَبَّهٗ فَغَوٰى ۞ ثُمَّ اجۡتَبٰهُ رَبُّهٗ فَتَابَ عَلَيۡهِ وَهَدٰى)
طٰه ۱۲۲

ترجمه :- او نافرمانی او کړه آدمؑ دهوکه شو. بیا دے الله تعالیٰ منتخب کړو تو به ئے قبوله کړه او هدایت ئے ورته بخشش کړلو.)

او که اوګوری چه آدمؑ ورسره خبرے کوی، نو دا دَ علم ښودلو دلیل دے دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَعَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا) البقره ۳۱ ترجمه :- الله تعالیٰ آدمؑ ته ټول نومونه اوښودل). او که اوګوری چه دَ آدمؑ تابعداری نهٔ ده کړے نو دا دَ دے سړی دَ نافرمانی او دَ بد بختئ دلیل دے. او که اوګوری چه آدمؑ دَ دهٔ لاس نیولے دے نو دا دَ عزت، بادشاهی دلیل دے.

**حَوّا علیها السّلام** او که چرے په خوب کښے حوا علیها السّلام اوګوری نو دَ دولت او دَ اقبال موندلو دلیل دے. عیش، خوشحالی، ډیر نعمت او ډیر عمر به ئے نصیب شی.

**حضرت نوح علیه السّلام** که چرے نوحؑ په خوب کښے اوګوری، عمر به ئے اوږدیږی مګر دَ دښمن نه به غم او سختئ اوګوری او خپل مراد ته به اُورسیږی.

**حضرت ادریس علیه السّلام** که چرے ادریسؑ په خوب کښے اُوګوری نو کار به ئے نیک وی او مقام محمود به ئے نصیب شی.

**حضرت هود علیه السّلام** که چرے په خوب کښے هودؑ اوګوری نو دُښمن به په دهٔ افسوس کوی او په آخره به فتح مومی.

**حضرت لوط علیه السلام** که حضرت لوطؑ په خوب کښے اوګوری نو کار به ئے سم شی او دَ زړهٔ مراد به ئے سرته ورسیږی.

**حضرت صالح علیه السّلام** که چرے صالحؑ څوک په خوب کښے اوګوری او ځائے په ځائے بدل کړی نو په دهٔ به دَ خیر دروازے خلاصے او پرانستے شی.

**حضرت ابراهیم علیه السّلام** که حضرت ابراهیمؑ څوک په خوب کښے اُوګوری نو حج به اوکړی او ځنو تعبیرکونکو وئیلی دی چه دَ کوم ظالم بادشاه نه به ورباندے ظلم وکړے شی او همدارنګه دَ مور او پلار سره به ښه خوی کوی.

**حضرت اسمٰعیل علیه السّلام** که چرے حضرت اسمٰعیلؑ په خوب کښے اوګوری نو دَ فتح، غنیمت، زیرے به ورباندے وشی. الله تعالیٰ فرمائیلی دی (فَبَشَّرْنٰهُ بِغُلٰمٍ حَلِيْمٍ) الصّٰفّٰت ۱۰۱ ترجمه :- مونږ دَ یو بُردباره خوی زیرے ورکړو.)

**حضرت یعقوب علیه السّلام** که چرے څوک حضرت یعقوبؑ په خوب کښے اوګوری نو دَ نا متو غم او فکر به ئے خوری او آخر به دَ غم او اندیښنے نه خلاص شی

**حضرت یوسف علیه السّلام** که چرے یوسف ؑ ځوک په خوب کښے اوګوری نو خلک به په ده د دروغو تهمت لګوی او اخیر به بزرګی ته رسیږی۔

**حضرت شعیب علیه السّلام** که چرته شعیب ؑ ځوک په خوب کښے اوګوری نو دښمن به په ده کامیاب کیږی او یا به دے په ځپله په دښمن کامیاب کیږی۔

**حضرت موسیٰ علیه السّلام** که چرے ځوک حضرت موسیٰ ؑ اوګوری نو په اهل وعیال به ګرفتار کړے شی او یا به خوشحاله کړے شی او په دښمن به کامیابیږی۔ د الله تعالیٰ کلام دے۔ وَوَهَبْنَا لَهُ مِنْ رَّحْمَتِنَآ اَخَاهُ هٰرُوْنَ نَبِيًّا ط ترجمه: او د ځپل رحمت نه مونږ هغه ته د هغه رور هارون پیغمبر ورکړو مریم ۲۵ ځنے د تعبیر کونکو دا وئیلی دی چه د موسیٰ ؑ لیدل په خوب کښے دا د هغه ځائے د بادشاه د هلاکیدو دلیل دے۔

**حضرت داؤد علیه السّلام** د حضرت داؤد ؑ خوب کښے لیدل عزت، بادشاهی نعمت او د مال زیاتوالی دلیل دے۔

**حضرت زکریا علیه السلام** د زکریا ؑ خوب کښے لیدل دا د الله تعالیٰ توفیق او اطاعت دلیل دے۔

**حضرت یحییٰ علیه السلام** د حضرت یحییٰ علیه السّلام لیدل خوب کښے دا د خیر کار تعبیر دے۔

**حضرت خضر علیه السّلام** د حضرت خضر ؑ په خوب کښے لیدل او برد سفر رزق او د ډیر عمر دلیل دے۔

**حضرت یونس علیه السّلام** د حضرت یونس ؑ خوب کښے لیدل د غم نه خلاصے او د تیارے نه د خلاصی دلیل دے۔

**حضرت ایوب علیه السّلام** د حضرت ایوب ؑ لیدل خوب کښے نا امیدی په امید بدله کړے شی. همدارنګه به د نیکئ توفیق او د خیر او خیرات توفیق ورکړے شی (به ئے)

**حضرت محمد مصطفٰے صلی الله علیه وسلم لیدل** که چرے ځوک رسول الله صلی الله علیه وسلم په خوب کښے اوګوری نو د غمونو نه به خلاص کړے شی۔ د قرض نه به خلاص شی. که جیل کښے وی را خوشے به شی او که یره پرے وی نو په امن او سکون به شی۔ قحط، تنګی به ئے لرے کړے شی۔ ځنے تعبیر کونکو وائی چه که مالداره وی، غریب به شی۔

حضرت ابوهریره رض فرمائیلی دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی

دی چه چا زهٔ په خوب کښې اولیدم نو صحیح ئې لیدلے یم۔ (مَنْ رَاٰنِیْ فَقَدْ رَأَی الْحَقَّ فَاِنَّ الشَّیْطٰنَ لَا یَتَمَثَّلُ بِیْ) ترجمه:۔ چا چه زهٔ خوب کښې اولیدم نو زهٔ ئې په رښتیا سره اُولیدم ځکه چه شیطان زما صورت نشی جوړولے څوک چه ما په خوب کښې اوګوری نو غم او فکر به ئې نهٔ وی۔ فکرمندی او حیرانتیا مهٔ کوئ چه زما دَ زیارت تعبیر دے۔

که چوته خوب کښې رسول الله صلے الله علیه وسلم تُرش تندے اُوګوری نو دا دُ دین دَ سستئ او ضعف دلیل دے او په دے ملک کښې دَ بدعت بسکاره کیدُ دلیل دے، او که رسول الله صلے الله علیه وسلم دَ اوازونو په ځائے کښې اوګوری نو تعبیرئې دا دے چه هغه وران ځائے به بیا اباد کړے شی۔ او که رسول الله صلی الله علیه وسلم په خوراک کولو اوګوری نو دَ صدقے او زکوٰة مال به ورکړے شی۔ او که رسول الله صلی الله علیه وسلم دا سے ځائے کښې اوګوری چه هلته څه قسم بلا او محنت نشته دے نو په دے ځائے کښې به ډیر زیات نعمت وی او که مسجد کښې یا غمناک ئې اوګورے او یا مریض نو دا دَ دے سړی دُ دین دَ کمزورئ دلیل دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه څوک رسول الله صلے الله علیه وسلم په کوم ځائے یا ښار کښې اوګوری نو دائے تعبیر دے چه هلته به نعمت فراخه وی او خلکو ته به سکون وی او دَ هغه ځائے خلک به په دښمن کامیابی حاصلوی۔

او که دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ اندامونو نه یو اندام کم اوګوری نو دائے تعبیر دے چه دَ هغه ځلئے او سیدونکی په دین کښې سست او کمزوری دی ځکه چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ اندام کمولے دا دَ هغه سړی دَ دین کمولے دے۔ او که اوګوری چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته لوندے وچے میوے ورکړے نو دهٔ ته به په دین کښې پرهیزګاری حاصلیږی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که چرے نبی کریمؐ نقصانی اوګوری هغه نقصان به خوب لیدونکی ته راګرځی ځکه چه خوب کښې نبی کریمؐ نبهٔ خلک وینی او رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوئ ته دَ هغه شیانو زیرے ورکوی کوم شیان چه دوئ ته پیښیږی او بدکاره خلق دَ ګناه دَ ګناه نه بچ کوی چه دَ الله تعالی دَ عذاب نه خلاص شی ځکه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم دَ مؤمنانو دَ پاره دَ خوشحالئ زیرے ورکونکے دے او دَ کافرانو دَ پاره دَ عذابونو او دَ

بن وزیرے ودکوونکے دے۔ که رسول پاک صلی اللہ علیہ وسلم په غصه کښے په خوب کښے اوګوری دَدے تعبیر ښهٔ نهٔ دے۔

حضرت عبدالله ابن عباسؓ فرمائیلی، چه که څوک دَ نبی کریم صلی اللہ علیہ وسلم جنازه خوب کښے اوګوری نو دغه ملک کښے تکلیف او مصیبتونه ډیرزیات راځی او که جنازے پسے تلل اوګوری نو دا دَ نفسی خواهش او دَ بدعت دلیل دے۔ او که اوګوری چه په دۀ نبی کریم صلی الله علیه وسلم افسوس کوی نو دَ دۀ دَ کافر کیدلو تعبیر دے لکه څنګه چه دَ الله تعالیٰ کلام دے

(قُلْ أَبِاللَّهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنتُمْ تَسْتَهْزِئُونَ ۝ لَا تَعْتَذِرُوا قَدْ كَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ - ترجمه:- ورته ووایه آیا په الله او دَ هغهٔ په آیتونو او دَ هغهٔ په رسول باندے ټوقے کوئ، عذر مهٔ کوئ تاسو دَ خپل ایمان نه روستو کفر کړے دے۔

امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی چه په خوب کښے دَ پیغمبرانو لیدل دَ دے لس وجوه دی۔ (۱) رحمت (۲) نعمت (۳) عزت (۴) بزرګی (۵) دولت (۶) برے موندل (۷) سعادت (۸) جمعیت (۹) قوت (۱۰) دَ دوارو جهانونو خیر او دَ هغه کلی دَ خلکو بهتری چرته چه دا خوب لیدلے شوے دے۔

## تعبیر دَ خلفاء راشدینو لیدل په خوب کښے

**(۱) اول خلیفه حضرت ابوبکر صدیقؓ دے** محمد بن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ دۀ لیدل تعبیر دَ خوشحالئ او دَ کرامت دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه که چا دوئ په یو ښار کښے ژوندے اولیدلو، نو تعبیر ئے دا دے چه دَ دے ښار خلک زیات صدقه ورکوی دَ دے تعبیر هله کیدے شی چه روښانه تندے ئے اوګوری، او که ترش تندے ئے اوګوری بیا تعبیر دَ دے خلاف دے۔

**(۲) حضرت عمر بن الخطابؓ** دا امیرالمؤمنین عمر بن الخطابؓ دے

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چه دَ عمر بن الخطابؓ خوب کښے لیدل تعبیر ئے دا دے چه دا سړے عادل او دَ انصاف خاوند دے۔ او که دوئ چرته ښار کښے روښانه تندے او خوش طبعیته اوګوری، نو دا دَ دے امر دلیل دَ

چه دے بنیارکښې به انصاف ښکاره شي.

(۳) **حضرت عثمان بن عفانؓ** دا دریم خلیفه امیرالمؤمنین عثمان بن عفانؓ دے.
امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک دوئ په خوب کښې اوګوری۔ تعبیر ئے دا دے چه دا سړے به اطاعت، زهد، او پرهیزګاری اختیار کړی او که کوم ښار کښې خوش طبعه او روښانه تندے اولیدلو نو تعبیر ئے دا دے چه دَ دے ښار خلک به دَ قرآن مجید زده کړے او علم ته توجه ورکړی.

(۴) **حضرت علی المرتضیٰؓ** دا څلورم خلیفه دَ مسلمانانو دے.
امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک دوئ په خوب کښې خوش طبیعته او په روښانه تندی اوګوری نو تعبیر ئے دا دے چه دے به دَ عزت، شجاعت او سرداری اوموړی اوچه په کوم ښار کښې اُولیدلے شی نو دَ هغه ښار خلکو به دَعدل او دَ انصاف صفت کولے شی مګر کله کله به دَ دوئ تر منځه جنګونه پیښیږی.

**باقی صحابهؓ په خوب کښې لیدل** امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چاچه صحابه کرامؓ خوب کښې اولیدل تعبیر ئے دا دے چه دَ اسلام دین لاره کښې به پوښان وی او په مسلمانانو کښې به ریښتیا وینا والا او په دیانت داری سره مشهوره شی. رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی.
(اَصْحَابِیْ کَالنُّجُوْمِ بِاَیِّهِمُ اقْتَدَیْتُمْ اِهْتَدَیْتُمْ) ترجمه :- زما صحابه کرامؓ دَ اسمان دَ ستورو پشان دی په هریو پسے چه تاسے اقتدا اوکره، تاسے به هدایت بیاموئ.

**دَحضرت امام حسنؓ او امام حسینؓ لیدل** امیرالمؤمنین امام حسنؓ او امام حسینؓ چاچه دوئ په خوب کښې اولیدل نو خیر او خوشحالی به اوموړی او آخر کښې به دَ شهیدانو درجه اوموړی.

**حضرت جعفر طیارؓ** چه څوک حضرت جعفر طیارؓ اوګوری هغه به حج او جهاد کوی.

**دَحضرت ابوهریرهؓ او حضرت انس بن مالکؓ لیدل** چه څوک دوئ خوب کښې اوګوری نو تعبیر ئے دا دے چه دے به دَ سنتو په طرف راغب وی او همدا رنګه علم او شریعت به خوښوی.

**حضرت سلمان فارسیؓ لیدل** که څوک سلمان فارسیؓ خوب کښې اُوګوري، تعبیرئې دا دے چه الله تعالیٰ به ورته عِلم او قرآن په نصیب کړي او انجام به ئې نیک وي.

**دَحضرت عبدالله ابن عباسؓ او ابن مسعودؓ لیدل** که څوک دوئ په خوب کښې اوګوري نو تعبیرئې دا دے چه دے به دَدین په کار کښې کوشش کوي.

**حضرت بلال حبشیؓ** څوک چه حضرت بلال حبشیؓ په خوب کښې اوګوري نو تعبیرئې دا دے چه مشهوربه شي او دَمؤذنانو ثواب به ومومي. اودَ اهل سُنت والجماعت په لاره به تلل کوي. خُلاصه دا چه دَرسول الله صلی الله علیه وسلم صحابهؓ لیدل په خوب کښې تعبیرئې دَخیر او دَ نفع دے.

**عالمان، زاهدان او حکیمان لیدل** چه څوک عالمان، زاهدان، حکیمان خوب کښې اوګوري نو تعبیرئې دا دے چه دَخیر او اطاعت په کارونو کښې به توفیق ومومي او علم به حاصل کړي ځکه چه علماء دَرسول پاکﷺ صلی الله علیه وسلم وارثان دي او دَمسلمانانو لار ښودونکي دي.

که چرته څوک خوب کښې دَعالمانو ډله په یو ښار کښې اوګوري تعبیرئې دا دے چه دَدے ښار خلک به په جاهلانو باندے ګفتار او کردار او امر په نیکئ او منع دَبدئ سره کامیابي اوومومي.

دلته نه دَ الله تعالیٰ دَلیدلو اودَ فرښتو دَ لیدلو او دَ پیغمبرانو دَلیدلو خبرے تمامے شوے اوس به انشاء الله د باقي شیانو بحث شروع کړو دَ حروف معاجمو په نقش باندے.

**تنبیه:-** دَ ابن سیرین کتاب فارسي ژبه کښې دے او دلته دَ فارسي اسماء او افعالو حرف په نظر کښې نیول شوي دي او دلته به دَپښتو اسماء دَ افعالو لحاظ په نظر کښې نیول شوے دے.

**الف ـ ابادی** حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک په خوب کښے وران ځائے اباد اوګوری لکه مسجد، مدرسه، خانقاه، او یا داسے نور شیان نو دا د دین، عقل، اصلاح او د آخرت د ثواب دلیل دے او که اوګوری چه ودانه زمکه په خپله ابادوی لکه سرائے، دوکان وغیره ورنه جوړوی نو دا د دے دُنیا د فائدے او د خیر دلیل دے. او که اباد ځائے وران اوګوری نو تعبیرئے دا دے چه هلته به مصیبت او بلا کانے اوګوری.

امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، چه د ابادئ لیدل د څلورو وجهونه وی (۱) د دُنیا د کارونو سمیدل (۲) خیر او نفع (۳) مراد او کامیابی (۴) د بندو کارونو خلاصیدل.

**اوبهٔ (آب)** د هر شی ژوند په اُوبو دے. د الله تعالیٰ فرمان دے (وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَآءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ) ترجمه. مونږ هر یو شے د اُوبو نه ژوندے کړے دے. (پ۱۷ ع ۳) انبیاء ۳۰

حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه څوک خوب کښے اوګوری چه د اُوبو د پاسه روان دے لکه دریاب، نهر، سیند اُوبهٔ، دا د ده د پاک ایمانی او پاک اعتقادی دلیل دے. او که پاکے، خوږے اُوبه ډیرے څښلے وی، تعبیرئے دا دے چه عمر به ئے اوږد او ښهٔ وی.

او که بے خونده او تروشے اُوبه ئے څښلے وی تعبیرئے دا دے چه د دے تعبیر د اول په خلاف دے.

او که اوګوری چه د دریاب نه بے صفا اُوبهٔ څښی نو تعبیرئے دا دے چه د دے دُنیا لوئے بادشاه به شی. او ځنے تعبیر کونکی وائی چه څومره اُوبهٔ ئے څښلی وی د دے برابر به ئی، مال او نعمت حاصلیږی که چرے اُوبهٔ صفا وی او که ګنده اُوبهٔ وی نو تکلیف، سختی او ویره به ورته رسیږی.

امام کرمانیؒ فرمائیلی دی چه څوک اوګوری چه خوب کښے ګرمے اُوبهٔ څښی دا د بیمارئ او رنځ دلیل دے، او که اوګوری چه ګرمے اوبهٔ پرے واچولے شوے او دے دربانده پوه نشو، تعبیرئے دا دے چه ده ته به بیماری (مرض) او سخت غم رسیږی.

او که اوبو کښے پریوتے ورته ځان بنسکاره شی، دائے تعبیر دے چه غم او رنځ به ګرفتار کړے شی.

اوکه پیالئ کښې اوبه راواخلي نو په مال اوژوند به دهوکه کیږي اوکه دَ ښیښې پیالئ کښې چیلے ښځه ته اوبه ورکړے (عقلمند خلک دَ ښیښې پیالئ دَ ښځې جوړ سرۀ نسبت ورکوي اداوبۀ چه په پیالئ کښې دي) که چرے پیالئ ماته وي نو ښځه به ئے مري او ماشوم به ترینه پاتے شي اوکه اوبه توے شوے او پیالئ خالي شوه نو تعبیرئے دادے چه ماشوم به مړشي او ښځه به ږغ شي اوکه اوګوري چه بے وقوفو خلکو ته اُوبه ورکوي، نو تعبیرئے دادے چه په دُنیا او آخرت کښې به خلکوته دَدۀ نه فائده رسیږي او دوران ځائے به اباد کړي۔

اوکه خوب کښې اوګوري چه په کوم کور کښې اوبۀ اچولے شویدي په هغې کښې داخل شوے دے، تعبیرئے دادے چه غمجن او فکرمند به وي او که اوګوري چه دَ پیالئ صافے اُوبۀ دَ سپي پشان څښي، تعبیرئے دادے چه ژوند به دَ عیش او عشرت سره تیروي۔ مګر داسے کاربه کوي چه به بلا او فتنه کښې به پریوځي او خلکوته به لږلږ مال بخښي اوپه خیرات کښې به ئے خرڅ کوي۔

امام جابر مغربیؒ فرمائیلي دي که اُوبۀ زیاتیدونکے اوګوري، تعبیرئے دا دے چه په دے کال کښې به دَ نعمت فراخي وي اوکه اوګوري چه اُوبه زمکه کښې ښیږي تعبیرئے دادے چه خلکوته به ارام حاصلیږي دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَقِيلَ يَا أَرْضُ ابْلَعِي مَاءَكِ وَيَا سَمَاءُ أَقْلِعِي وَغِيضَ الْمَاءُ هود ۴۴) ترجمه او وئیلے شو چه اے زمکے راکاږه خپلے اوبه او اے اسمانه بس کړه اوبۀ خپلے او ژوړ کښې لاړے اوبۀ)

اوکه اوګوري چه اُوبۀ دَ خلکو سرونو باندے ختلے دي تعبیرئے دادے چه دغه کال کښې به دَ نعمتونو فراخي وي۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (أَنَّا صَبَبْنَا الْمَاءَ صَبًّا عبس ۲۵)

ترجمه:- ما اُوبۀ اُورَوَولے په ښۀ شان سره)

که چرے اوګوري چه دَدۀ کور کښې صفا اوبۀ دي تعبیرئے دادے چه خوشحالي او نعمت به ورته حاصل شي او که اوګوري چه په کور کښې په ګنده اُوبو ولاړ دے نو تعبیرئے دَدے خلاف دے۔

حضرت دانیالؑ فرمائیلي دي، چه پټو او باغ ته دَ نهر او دَ دریاب نه اُوبه ورکول دَ دین او دیانت او دَ نیکو کارونو تعبیر دے۔ او که اوګوري چه په اُوبو کښې روان دے او په دغه وخت کښې ئے پښې مضبوط دے نو دَ حاکم نه به بخت

کار مشغول شي او دَ دهٔ خبره به په دے او نورو کارونو کښے تبدیلیږي. او که رنړو اُوبو کښے روان وي او وجود ئے پکښے ډوب شي، تعبیر ئے دَ دین قوت او دَ توکل کولو په الله تعالیٰ او دَ استقامت دے. او که اوګوري چه اُوبه باغ ته روانے دي نو یا به ښځه وکړي یا به وینځه واخلي او که په خپل ځان توئے شوے اُوبه اوګوري. تعبیر ئے دا دے چه دَ دهٔ نه به خیر او نفع رسیږي. او که اوګوري چه په دهٔ ګنده او پلیتے اُوبه توے شوے نو دهٔ ته دَ نقصان رسیدلو دلیل دے.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي. چه په خوب کښے په اوبو تللو سره په پنځو وجوهو سره وي (۱) یقین (۲) قوت (۳) مشکل کار (۴) مینه (۵) دَ ښار دَ حاکم نه څهٔ کار.

تنبیه:- یاد لرئ چه د باران تعبیر په حرف "ب" کښے بیانیږي او د چینے په حرف "چ" کښے بیانیږي او د کوهي په حرف "ک" کښے، د دریاب په حرف "د" کښے او د کاریز او به په حرف "ک" کښے بیانیږي - په ترتیبو نو د هر یو شي بیا به په خپل ځائے راځي.

## اُوبهٔ دَ پوزے - آب بینی

حضرت دانیالؒ فرمائیلي دي چه دَ پوزے نه اُوبهٔ وتل خوب کښے دَ ځوئ دلیل دے او فقط دَ پوزے اوبه لیدل هم دَ ځوئ دلیل دے. او سرکه وتل دَ پوزے هم دَ ځوئ دلیل دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي، دَ پوزے نه اُوبهٔ وتل لیدل دَ قرض نه دَ خلاصي، تکلیف نه دَ خلاصي دلیل دے او دَ بیمار دَ پاره دَ صحت دلیل دے.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، چه خوب کښے دَ پوزے اُوبهٔ لیدل دَ ځوئ دلیل دے که په بدن اُوغورځیدلے دَ ځوئ دلیل دے او که په زمکه پریوتے نو دَ جینئ تعبیر دے، او په ښځه پریوتل دَ اُمید وارئ دلیل دے چه امید واره به شي لیکن ځوئ به ئے ضائع شي او که ښځه وربانده دَ پوزے اوبه اچوي نو ځوئ به ئے پیدا شي او که اوګوري چه دَ ګاونډي په کور کښے اچولي دي نو دَ هغهٔ دَ ښځے سره به خیانت کوي، او که اوګوري چه دَ کوم سړي په بستره اچولي دي دا هم دَ خیانت تعبیر دے.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي چه څوک اوګوري چه دَ خپلے پوزے اوبهٔ

خوری نوخپل مال به په خپل اولاد او عیال مصرف او خرچه کړی او که دَ خپلے ښځے دَ پوزے او به څښل او گوری نو څوی به ئے پیدا شی او که دَ پوزے او به توری او خیرنے او گوری۔ تعبیرئے دادے چه څوی به ئے په غم او مصیبت پیښیږی۔
او که دَ پوزے اُوبه زیړے او گوری نو څوی به ئے مریض او بیمار شی۔

## اُمید (حمل کیدل)۔ آبستنی

ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک خوب کښے خپله ښځه دَ حاملے ښځے په شانته اُوگوری، تعبیرئے دادے چه دَ ښځے دَ عمر والی په اندازه به دَ دُنیا مال او متاع به حاصل کړی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه نا بالغ ماشوم خپل ځان اُمید وار اُوگوری، که نرهلک وی نو پلار ته به ئے مال او متاع حاصلیږی او که جینۍ وی نو دَ دے مور ته به حاصل شی۔

## اُوبهٔ تروے (تروشے) (آب کامہ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، تروے اُوبهٔ لیدل خوب کښے دَ بیمارئ او دَ غم دلیل دے او څښل ئے خوب کښے دَ بیمارئ دلیل دے۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که تروے او بدبوئے دَ یدلے لیدلے وی او څښلی ورنه نهٔ وی، تعبیرئے دادے چه دَ غم او فکرنه به خلاصے پیدا کړی او که بیمار وی شفا به بیا مومی۔
حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی چه دَ تروو او بولیدل دَ پنځو وجودی
(١) بیماری (٢) غم (٣) جګړه (٤) حاجت (٥) اولاد سره نهٔ جوړیدل۔

## ابنوس (دَ لرګی یو قسم دے)

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چه دَ ابنوس ونے کتلو والا په خپل کار کښے توانه وی مګر مالدار او بخیل به وی، دَ دهٔ نه به هیچا ته فائده نهٔ رسیږی.
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه ابنوس خوب کښے لیدل دَ هغه صفت ښځه به وی کوم چه بیان شو۔
امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، چه خوب کښے ابنوس لیدل تیرشوے تعبیر لری۔

## اُور۔ (آتش)

حضرت دانیالؒ فرمائیلی دی۔ که څوک خوب کښے اُور دَ لوګی نه بغیر اُوګوری تعبیرئے دادے چه بادشاه ته به نزدے کیږی او بندکارونه به ئے خلاصیږی او که اُوګوری چه

دے چاپہ اور کښے غورزولے او سوزولے، تعبیر ئے دا دے چه بادشاه به په دهٔ ظلم او زیاتے کوی مګر دهٔ به خلاصے مومی او همدارنګه خوشحالی او نیکی به ورته حاصله شی۔ حقتعالیٰ فرمائیلی دی: قُلْنَا يَا نَارُ كُونِي بَرْدًا وَسَلَامًا عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ[1]
ترجمه:- او وئیل مونږ چه اے اُوره! یخ شه او په ابراهیم علیه السّلام باندے په سلامتئ شه۔

که اوګوری چه اور نهٔ دے سوزولے، تعبیر ئے دا دے چه په تکلیف سره به سفر کوی۔ او که اُور په لمبو اوګوری نو په تبه به بیمار شی۔ او که اوګوری چه اُور دَ دهٔ اندام سوزولے دے، تعبیر ئے دا دے چه دَ سوزیدو په اندازه به ورته نقصان او خفګان رسیږی، او که او اوګوری چه اُور دَ دهٔ په کور کښے لګیدلے دے او دَ دهٔ بدن ئے سوزولے دے او اُور بلیږی مګر په زړهٔ کښے ئے ورته خطره او ویره نشته دے، تعبیر ئے دا دے چه دهٔ ته به دَ تکلیف او مصیبت په سبب بیماری او کمزوری راشی لکه یعنی، طاعون، پولئ، سُرخه وغیره او که اوګوری چه اور تیولے دے، دا ئے تعبیر دے چه په هم دے اندازه به دَ بادشاه نه حرام مال ورته لاس ته راشی او که اوګوری چه اُور لوګے کوی نو دهٔ ته به حرام مال په تکلیف سره رسیږی او ډیرے جګړے به اووینی او که اوګوری چه اورسره ورته تاؤ او ګرمی رسیدلے دهٔ، تعبیر ئے دا دے چه بل خوک به ئے غیبت وکړی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، چه خوک اوګوری چه په خلکو دَ اُور شعلے اچوی دَدے دا تعبیر دے چه خلکو کښے به دښمنی او عداوت اچوی۔ او که سوداګرے اوګوری چه دَ دهٔ په دُکان او سامان اُور لګیدلے دے، تعبیر ئے دا دے چه سامان به ئے برباد شی یا دَ یو درهم شے به په دوه درهمه خرڅوی او په هیڅا به شفقت نهٔ کوی۔

او که اوګوری چه دَ چا په کور اور لګیدلے دے، تعبیر ئے دا دے چه دا سړے به په جنګ، فتنه او دَ بادشاه په ظلم کښے ګرفتار شی او که اُوګوری چه اُور ئے جامے وسوزولے، دا سړے به دَ خپلوانو سره جنګ کوی او دَ مال په سبب به غمجن وی او که ډیر اور په زمکه لګیدلے وی تعبیر ئے دا دے چه په دے کلی او علاقه کښے به جنګ او فتنه وی او که سوزیدلے شے اوګوری چه په کوم ښار کلی یا محل اور لګیدلے دے او هر څه ئے وسوزول او اُور شعلے کوی او ویره وونکے آواز ورنه راخیژی دا ئے تعبیر دے چه دغلته به جنګ یا سخته بیماری راشی

(۱) الانبیاء ۶۹

اوکه اوګوري چه اُور څهٔ شیان اوسوزول او څهٔ ئے پریښودل او ویرووکے اوازنهٔ کوي، تعبیرئے دا دے چه دے کلي کښے به جنګ وي اوکه شعلے ئے نهٔ وي نو بیماري به راځي اُور که لوګے وي دائے تعبیر دے چه په خپل کار کښے به دهشت اوګوري، اوکه اوګوري چه دَ اسمان نه اور راپریوتو او هغه ښار یا محله یا سرائے اوسوزول تعبیرئے دا دے چه په دغه ښار او ځائے به فتنه او بلا پریوزي، اوکه ویرونکے اواز اوګوري او اُور شعلے وهلے مګر چه چیرته پروت وي هلته ئے نهٔ وهلے، دائے تعبیر دے چه هلته به دَخولے جګړه وي.

اوکه اوګوري چه دَ زمکے دَ لاندے نه یرووکے اور وتلے دے او دَ آسمان طرف ته تللے دے دائے تعبیر دے چه دَ هغه ځائے خلق دَ الله تعالیٰ دَ ښو او غورو خلکو سره دَ هغه اُور دَ طاقت مطابق به دروغو سره جنګ کوي، اوکه ځائے په ځلئے لګیدلے زیات ادر اووینی مګر څهٔ تکلیف نهٔ ورکوي دائے تعبیر دے چه خوب لیدونکے به فائده او نفع حاصلوي اوکه فقیروي مالداره به شي.

حضرت اشعث فرمائیلی دي چه څوک خوب کښے اوګوري چه دَ آسمان نه دَ باران په شان اُور وریږي، دائے تعبیر دے چه هلته به دَ بادشاهانو دَ طرفه وینے تویول او تکلیف راځي، اوکه وے لیدل چه دَ اسمانه اُور راغی او دَ دهٔ دَ خوراک شیان ئے وسوزول، دائے تعبیر دے چه دَ دهٔ عبادت دَ الله تعالیٰ په دربار کښے قبول دے. دَ الله تعالیٰ کلام دے (بِقُرْبَانٍ تَأْكُلُهُ النَّارُ) ترجمه
ال عمران ۱۸۳
په داسے قرباني چه اُور ئے خوري)

اوکه اُوګوري چه اُور دَ اسمانه راوریږي او څهٔ شے نهٔ سوزوي، تعبیر ئے دَ الله تعالیٰ یره ده. دَ الله تعالیٰ کلام دے (عَذَابَ النَّارِ الَّتِي كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُونَ) ترجمه: هغه عذاب دَ اُور چه تاسے دروغ ګڼړلو) - او دهٔ ته به دَ
سبا ۴۲
بادشاه نه ویره وي.

اوکه اوګوري چه دَ اُور په سرناست دے اوګرمیږي، دائے تعبیر دے چه دَ دُنیا او دَ دین کار به ئے پوره کړے شي.

اوکه اوګوري چه اسمان نه اُور راکوزیدلو او دَ زمکے شنه ئے وسوزول، دائے تعبیر دے چه الله تعالیٰ دِ دے نهٔ کوي په دے ملک کښے به مرګ ناڅاپي ډیر راځي اوکه اوګوري چه ډیر زیات اُور ګُنبد یا مناره اوسوزوله نو تعبیرئے دا دے چه دَ دے ځائے بادشاه به مړ کیږي. ځنے تعبیر بیانوونکي وائي که اُور دَ زمکے نه

اُو تلوا او روښانه وو دا ئے تعبیر دے چه د غلته به خزانه وی۔
جعفر صادق فرمائیلی دی که څوک اُوګوری چه په خوب کښے د اُور توټے خوری دا ئے تعبیر دے چه د یتیمانو مال به خوری۔ د الله تعالیٰ کلام دے (اَلَّذِیْنَ یَاْکُلُوْنَ اَمْوَالَ الْیَتٰمٰی ظُلْمًا اِنَّمَا یَاْکُلُوْنَ فِیْ بُطُوْنِهِمْ نَارًا وَّ سَیَصْلَوْنَ سَعِیْرًا) (النساء ۱۰) ترجمه:۔ هغه کسان چه د یتیمانو مال خوری په ظلم او زبردستی سره، بیشکه اچوی به خپلو ګیډو ته اُور او ژر دے چه داخل به شی دوزخ کښے۔
او که اوګوری چه د ده د خولے نه اُور راوځی، دا ئے تعبیر دے چه د دروغو خبرے او تهمت به لګوی او که اوګوری چه په هر ځائے کښے اُور بلیږی، دا ئے تعبیر دے چه د رعیت او د بادشاه په منځ کښے د تاصد کار ورکوی او که اوګوری چه د ده په طرف کښے اُور روښانه دے۔ او څه نقصان نه ورکوی دا ئے تعبیر دے چه ده ته به نیکی رسیږی، د الله تعالیٰ کلام دے (اَفَرَءَیْتُمُ النَّارَ الَّتِیْ تُوْرُوْنَ) (الواقعة) ترجمه: آیا تاسے هغه اُور لیدلے دے کوم چه تاسے بلوئ)۔ او که اُوګوری چه اُور لګی سوزئ، د فساد او د جنګ تعبیر ئے دے۔ د الله تعالیٰ کلام دے (کُلَّمَآ اَوْقَدُوْا نَارًا لِّلْحَرْبِ) (المائدة ۶۴) ترجمه: کله چه هغوئ بل کړی اُور د جنګ د پاره۔
او که اوګوری چه اُور نور خلک سیزی دا ئے تعبیر دے چه په دښمنانو به کامیابی حاصلوی۔ او که اوګوری چه اور دے وسوزولو او دے اُور کښے رڼا ده دا ئے تعبیر دے چه د سرسام په بیمارئ به بیمار شی او که اوګوری چه دے اُور کښے رڼا وه، نو تعبیر ئے دا دے چه د ده د خپلوانو یا خامنو کښے به د چا ځوی پیدا کیږی چه خلک به ئے صفت کوی او د رڼا په اندازه به مال او بزرګی بیا مومی او که میدان جنګ کښے اُور اوګوری، دا د سختو مرضونو تعبیر دے لکه پولئ، طاعون، سرسام، اچانک مرګ وغیره۔ په الله تعالیٰ پناه غواړو د دے نه۔
که چرے اور لوګی سره اوګوری، دا ئے تعبیر دے چه د ده به د بادشاه نه ویره او خوف وی۔ او که بازار کښے اوګوری دا د دے بازاریانو د فسق او بے دینئ دلیل دے چه د غه بازاریان د سوداګرئ او تجارت مال کښے انصاف نه کوی او اخستلی شوی شیانو کښے دروغ وائی۔ او که اوګوری چه کوم ملک کښے اُور لګیدلے دے، دا ئے تعبیر دے چه د هغه ځائے خلک به د بادشاه سره جنګ کوی او د بادشاه نه به په رعیت ظلم کیږی۔

او که نا معلومه میاشتے کښے اُور اوګوری، دا دَ بے دینئ تعبیر دے۔ او که اوګوری چه دَ چا په جامو اُور لګیدلے دے، دا ئے تعبیر دے چه په دے سړی به تکلیف او یره راځی او که خپل ځان په اُور والا اوګوری دائے تعبیر دے چه دهٔ ته به تکلیف رسیږی۔

## اُور بلول ۔ (آتش افروختن)

حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے دَ اُور بلول بادشاه ته دَ قوّت دلیل دے، او بغیر دَ لوګی نه دَ اُور بلول، تعبیر ئے رڼړا، رونق مال، سامان چه دَ زړهٔ خواهش په سبب وی او که دَ لوګی سره اوګوری دا دَ بادشاه په ظلم، فکر او غم او نقصان تعبیر دے۔ او که دَ ګرمیدلو دَ پاره یا دَ نور شی ګرمولو دَ پاره دائے تعبیر دے چه څهٔ شے به طلبوی او ګټه به ورته موهی۔ او که بے فائدے اُور بل کړی اوګوری، تعبیر ئے دا دے چه بے وجه به جنګ کوی۔ او که اوګوری چه دَ یوشی سورکولو دَ پاره اور بل کړی دائے تعبیر دے چه دَ خلکو غیبت دَ پاره به کار کوی دَ پاره دَ دے چه دَ خلکو حال معلوم کړی او که هغه سور کړے شے او خوری نو په هغه اندازه به روزی هغهٔ ته غم او فکر سره ملاویږی۔ او که اوګوری چه دیګ لاندے اُور بلوی په دے دیګ کښے غوښه یا نور څهٔ شے دے، تعبیر ئے دا دے چه دلسے کار به کوی چه هغے نه مالک ته فائده وی او که اوګوری چه دے دیګ کښے دَ خوراک څهٔ شے نشته دے دلئے تعبیر دے چه دَ کار کولو سره به ئے غم او فکر وی او که دَ رڼړا دَ پاره ئے اُور بل کړے وی دائے تعبیر دے چه کار به دَ دلیل سره کوی، او که دَ حلوا جوړولو دَ پاره ئے اُور بل کړے وی دائے تعبیر دے چه دهٔ ته به ښه خبر ورسیګی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی چه که څوک اوګوری چه دَ کوم ځائے دَ پاره ئے اور بل کړے دے، دائے تعبیر دے چه کور یا خپلوانو سره به جنګ کوی او که اوګوری چه دَ خپلے فائدے دَ پاره اُور بلول غواړی مګر بل نهٔ شو، دلئے تعبیر دے چه دَ خپل علم نه به فائده واخلی او که بادشاه وی، نو مرتبه، عزت، دولت به ئے زیات شی، او که اوګوری چه اُور ئے بل کړو او مړ شو نو دا دَ دهٔ دَ هلاکت دلیل دے۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه په کوم ځنګل کښے اور بل کړے دے دَ دے دَ پاره چه په دے رڼړا خلک خپلو ځایونو ته لاړ شی، دائے تعبیر دے چه دَ دهٔ دَ علم نه به خلک فائده اخلی او خلک به په سمه لار شی۔

او که اوګوري چه اُور کمزور دے کیږي او رڼاڼي کمیږي دا ئے تعبیر دے چه دَدهٔ حالات به بدل شي او دَ دُنیا نه به رخصتیږي۔
او که اوګوري چه اور ګیل کړے دے خوسمه رڼا ئے نهٔ ده کړے دا ئے تعبیر دے چه خلک به دَدهٔ دَ علم په وجه بے لارے شي او که یو سوداګر اووینې چه دَ یو کلي دَ پاره ئے اوربل کړے دے مګر اُور هغه اونهٔ سوزولو، تعبیر ئے دا دے چه دَ بد دیانتۍ سره خرڅول کوي او دَدهٔ مال به حرام وي۔ او که اوګوري چه دَ کاونړي دَ کوره اُور اخلي، دا ئے تعبیر دے چه دهٔ ته به مال حرام راځي۔

## دَ اُور رڼا ـ (آتشین روشنائي)

حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که څوک خوب کښے دَ اُور رڼا اوګوري چه په دے رڼا خلک په لاره تللے شي، دا ئے تعبیر دے چه مال تقوٰی به بیا مومي او که ولاړه رڼا اوګوري دا ئے تعبیر دے چه دَ دولت ځائے به ئے همغه وي او که سره کړے دَ اور سکروټه اوګوري تعبیر ئے دا دے چه دَ هغه بادشاه رؤیت به ښکاره شي۔
او که څوک خپل کور کښے دَ اُور سکروټے اوګوري چه دے رڼا ئے کور روښانه کړے دے، دا ئے تعبیر دے چه تجارت او سوداګرۍ ته ترقي وي مال به ئے زیات شي، او که اوګوري چه سکروټے ئے مړے کړے دا ئے تعبیر دے چه دَدهٔ خاندان کښے به جنګ وي۔

## اُور ته سجده کول (آتشین پرستیدن)

حضرت دانیال فرمائیلي دي که څوک اوګوري په خوب کښے چه اُور ته سجده کوي، دا ئے تعبیر دے چه ظالم بادشاه ته به سجده کوي او دَدهٔ خدمت کښے به مشغول وي او صبر او آرام به ئے پکښے نهٔ وي، او که اوګوري چه تندر یا اُور یا دیوے ته سجده کوي، دا ئے تعبیر دے چه دَ ښځو په خدمت کښے به مشغول وي او که سجده او هم بنکلول اوګوري دا ئے تعبیر دے چه دَ بادشاه سیلي به وي۔
او که اوګوري چه دے اُور کښے خوار کرځي دا ئے تعبیر دے چه دَ بادشاه دَ تجارت خیال به کوي مګر نتیجه به ئے ښهٔ نهٔ وي او که اوګوري چه دَ اور نه ئے بدن ته تکلیف اورسید و یا ونهٔ رسید و، دا ئے تعبیر دے چه

بادشاه وخت نه به تسلي او سلامتي او مومي، او كه خوب كښې په اور كښې دننه
لاړو دا ئې تعبیر دے چه په هم دے اندازه به دَ بادشاه نه ګټه او مومي.
اوكه اوګوري چه اور دَدۀ په جامو لاس یا مخ باندے رڼا غورزوي چه
خلك دے رڼا ته حیران دي، دا ئې تعبیر دے چه په دښمن به كامیاب او
په دواړو جهانو به مراد ورته حاصل شي. دَ الله تعالیٰ كلام دے چه (وَاَدْخِلْ يَدَكَ فِيْ جَيْبِكَ تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ). ترجمه: خپل لاس دَ خپل
ګریوان كښې دننه كړه بے نقصانه به راؤځي، دا معجزه دَ موسیٰ دَ فرعون په مقابله كښې وه
حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائیلي دي، كه څوك اوګوري چه خوب كښې اور
ته سجده كوي، دَ بادشاه دَ نوكرئ تعبیر دے، او كه اوګوري چه دَ اور سكروټے
دي نو دَدۀ مطلب به دَدے نه دَ مال جمع كول دي او حرام مال به ښۀ ډیر ګټي.

## دَ اور سكروټه۔ (شرارۀ آتش)

حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، په خوب كښې دَ سكروټے لیدل
تعبیرئې خراب خبره ده چه دۀ ته به رسیږي، او كه اوګوري چه ډیرے سكروټے
ور باندے پریوتے دا ئې تعبیر دے چه په محنت سختي بلا به ګرفتار كړے شي.
حضرت كرمانيؒ فرمائیلي كه څوك اوګوري چه په كوم ښار یا محله دَ اور سكروټے
پریوځي، تعبیرئې دا دے چه دلته به جنګ او فتنه رامنځ ته كیږي او كه غټے
غټے سكروټے اوګوري دا ئې تعبیر دے چه دۀ ته به یا دغه ځلے ته به دَ الله تعالیٰ
عذاب رسیږي. دَ الله تعالیٰ كلام دے (اِنَّهَا تَرْمِيْ بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ كَاَنَّهٗ جِمٰلَتٌ صُفْرٌ) ترجمه: هغه اور بیشكه غورزوي دَ اوچت محل برابر لكه چه هغه زیړ
اوښان دي[المرسلٰت ۳۳]، او كه اوګوري چه په خلكو دَ اور سكروټے غورځیږي، تعبیرئې دا دے
چه هلته به جنګ او جګړے وي او غورزول یا ورسره لوبے كول دَ كنځلو دلیل دے.
حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي، كه اوګوري چه دَ اور حصه ئې په لاس كښې
نیولے ده، دا ئې تعبیر دے چه دَ بادشاه په كار كښې به مشغول وي او كه ورسره لوګے
هم اوګوري نو په كار كښې ورسره دَ ډیرے تعبیر دے.
او كه اوګوري چه اُور دَدۀ په لاس كښې یخ شوے دے، دا ئې تعبیر دے چه
دَ بادشاه خدمت كښې به حرام مال لاس ته راوړي، او كه اوګوري چه دَ اُور ټكړے
خلكو ته وركوي، دا ئې تعبیر دے چه دَدۀ خبرو نه به خلكو ته نقصان وي
او خلك به ئې دښمنان شي او كه په اُور دَ خوراك شے پوخ كړي او وئې خوري

دائے تعبیر دے چہ دَ خلکو نہ بہ ښے ښے خبرے واوری۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی پہ خوب کښے دَ اور لیدل پہ پنځویشتو[۲۵] وجوه سره دی (۱) فتنه (۲) جنګ (۳) فساد (۴) سلامتیا (۵) جنګ جدل (۶) خرابے خبرے (۷) دَ کار نہ منع کول (۸) دَ بادشاه غصه (۹) عذاب (۱۰) دښمنی (۱۱) بے دینی (۱۲) علم او حکمت (۱۳) دَ هدایت لاره (۱۴) تکلیف (۱۵) ویره (۱۶) سوزیدل (۱۷) دَ بادشاه خدمت (۱۸) طاعون (۱۹) سرسام (۲۰) پولے (۲۱) دَ کار فراخی (۲۲) فضیلت (۲۳) حرام مال (۲۴) رزق (۲۵) نفع۔

## انغرے، انګیټھئ (آتشدان)

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چہ خوب کښے نغرے لیدل ښځه ده چہ دَ کور خدمت کوی، کہ انګھیټئ دَ او سپنے وی، دائے تعبیر دے چہ دا ښځه دَ کور دَ خپلوا نو ده او کہ دَ لرګی وی نو دا ښځه منافقه ده او کہ دَ خاورو وی نو دا ښځه دَ تکبر کوونکو او مشرکانو نہ بہ وی۔

امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، پہ خوب کښے انغرے یا انګھیټئ لیدل پہ[۲] دوه وجه دی۔ (۱) خادمه ښځه (۲) ویره

## دَ اُور کانړی۔ (آتش زنہ)

حضرت امام ابن سیرین فرمائیلی دی چہ دَ اُور کانړی او انغری دواړه ـــ زچہ اُور ورنہ پیدا کیږی) یو شے دے، یوقوی او زړور او بل سخت زړے دے، دا دواړه خلکو تہ پہ ترق او پہ لویو کارونو باندے رادړی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، کہ خوب کښے اولیدل چہ دے کانړی نہ اُور ویستلو او چراغ او ډیوه ئے ورباندے بله کړه، کہ خوب لیدونکے بادشاه وی دائے تعبیر دے چہ رعیت بہ دَ دهٔ دَ انصاف او عدل نہ آرام موجی او عالم وی دائے تعبیر دے چہ خلک بہ دَ دهٔ دَ علم او حکمت نہ برخه مند شی او کہ کاروباری وی دائے تعبیر دے چہ دَ دهٔ نہ بہ خیر ښیګړه، بخشش خلکو تہ رسیږی، او کہ غریب وی نو خلک بہ دَ دهٔ دَ ښهٔ خوی او کردار نہ فائده اخلی۔

امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، کہ څوک او ګوری چہ دَ کانړی نہ ئے اور ویستلو، دائے تعبیر دے چہ دَ بادشاه دَ پاره بہ حرام مال راجمع کوی او دَ دهٔ کار کښے بہ رشوت اخلی او کہ دَ دے کانړی نہ اُور او نهٔ لږ وی، دائے تعبیر دے چہ مال بہ غواړی مګر پہ لاس بہ نهٔ ورځی۔

## دَ اُوړو په شان یو ګل- (آرد ګون)

دا دَ یو ګُل غوټۍ ده، تعبیر ئې بیماری، تکلیف دے۔

## اُوړهٔ - (آرد)

اُوړهٔ خوب کښے لیدل مال او دَ حلال نعمت تعبیر دے دَ تکلیف نه بغیر به لاس ته راځی۔

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه اُوړهٔ دَ باران په شان راوریږی، دائے تعبیر دے چه هم دے ان شاء الله به ورته مال او نعمت حاصلیږی دَ هغه ځایه چه اُمید ئے ورنه نه وی۔

علامه ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه دَ اوربشو اوړهٔ دَ دین دَ درستی تعبیر دے او دَ غنمو تعبیر مال او دولت دے چه په سودا ګرئ به لاس ته راځی او ډیرهٔ ګټه به ئے وی او دَ جوارو او باجرے لږ مال تعبیر دے۔

حضرت جعفر مغربیؒ فرمائیلی دی، چه ځان په اوړو خرڅولو لیدل دین دَ دُنیا په بدل کښے خرڅولو تعبیر دے۔

## دَ اُوړو غلبیل (آرد بیز)

حضرت امام کرمانیؒ فرمائیلی دی چه دَ اُوړو غلبیل لیدل داسے سړے چه خپلو دوستانو او خپلوانو کښے به کرځی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے دَ اُوړو دَ چهڼولو غلبیل لیدل یو فضول ښځه یا خراب خادم دے۔

که نوے لوے غلبیل ئے واخستو او یا ورته چا ورکړو دائے تعبیر دے چه څوک ښځه یا خادم لکه څنګه چه موږ بیان اوکړو دَ دهٔ به دوست وی۔

ځنے تعبیر کونکی وائی چه دَ غلبیل لیدل تعبیر یو نیک سړے دے چه دَ دهٔ خدمت کښے به مقیم کیږی او ملګرے به ئے شی۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی چه دَ اُوړو چهڼولو غلبیل په څلور وجوه دے (۱) نیک سړے (۲) فضول ښځه (۳) خادم (۴) لږه ګټه۔

## دَ اُور عبادت کوونکو عبادت خانه (آتشکده)

امام ابن سیرین فرمائیلی دی، په خوب کښے دَ آتش پرستو عبادت خانه لیدل خراب ځائے دے۔

حضرت امام کرمانیؒ فرمائیلی دی چه دَ دوئ عبادت خانه کم عقل خلک او خالی ځائے دے او که اوګوری چه دَ آتش پرستو عبادت خانے ته لاړهٔ او هلته څهٔ

په لاس ورغلل، دائے تعبیرد ے چه په هم هغه اندازه به خواری اوذلت مخې
مکرد بدائی نه به خلاص شي او نتیجه به ئے پښیمانی وي۔

## ارکمے کول۔ (آروغ)

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه خوب کښې ځان ارکمے کوونکے اوګوری دائے تعبیرد ے
چه داسے خبره به کوي چه په ورته عزت حاصلیږي، او که اوګوری چه ډارګمی
سره ډوډی هم راووتله. تعبیرئے دَ مرګ نزدے والے دے۔
محمد بن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوك اوګوری چه تروش ارکمے ئے
اوکړو او خراب ئے غلو، تعبیرئے دادے چه داسے خبره به کوی چه دَ هغے
نقصان او خطره به اووینی او که دَ لوګی پشان وی نو بے وخته خبره به کوی چ
خلک ئے وربانده ملامته کوی او انجام به ئے پښیمانی وی۔

## ازادیدل - (ازادشدن)

حضرت دانیالؒ فرمائیلی دی چه که څوك په خوب کښې اوګوری چه ازاد شو
یا دے چا ازاد کړو. تعبیرئے دادے که بیمار وی روغ به شي، که قرضدار وی
دَ قرض نه به خلاص شي، او که حج ئے نه وی کړے حج به اوکړی، که غلام وی
ازاد به شي که ګنهګار وی توبه به اوباسی، که خفه وی خوشحاله به سی، او دَ
خفګان نه به خلاصے حاصل کړی، که جیل کښې وی خلاص به شي۔ خلاصه
دا چه خوب کښې ازادی لیدل ډیر ښهٔ دی۔

## آسمان

حضرت دانیالؒ فرمائیلی دی، که څوک په اولنی اسمان کښې خپل
ځان اوګوری، تعبیرئے دَ دهٔ دَ مرګ نزدیوالے دے او دویم
آسمان کښې دَ ځان لیدل تعبیرئے دادے چه علم او عقل به حاصل کړی او که
په دریم کښې اوګوری تعبیرئے په دُنیا کښې عزت او بخت او مومی، او په څلورم
اسمان کښې تعبیرئے دَ بادشاه دوست کیدل دی او په پنځم اسمان کښې لیدل
تعبیرئے ویره او خوف به مومی او په شپږم اسمان کښې لیدل تعبیرئے بخت دَ دولت
نیکی به بیا مومی۔ که څوك په اولنی اسمان کښې ځان اوګوری او دروازے بندے
وی تعبیرئے دادے چه دَ دهٔ کار به دَ چا عزتمند سړی په وجه ایسار شي او که
اوګوری چه اسمان ته ئے نظر نهٔ دے کړے او سرئے خکته کړے دے، تعبیرئے
دَ بزرګ سړی دیدار نه به جدا شي. او که اوګوری چه فرښتے دَ اسمانه کوزے
شوے او دَ دهٔ خواکښې تیریږي تعبیرئے دادے چه دَ دهٔ به دَ علم او حکمت دروازے

خلاصے شي۔

حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که څوک ځان په خوب کښې په
اسمان کښې اوګوري، تعبیرئے دے چه سفرکول دي او دے سفرکښې به دَ دُنیا عزت
حاصل کړي او که دَ زمکے او اسمان منځ کښې الوځي، تعبیرئے دے چه دَ نعمت او برکت
سره به سفرکوي او که وے لیدل چه پورته تیغ الوځي تر دے چه اسمان
ته ورسیدو، تعبیرئے دے چه تکلیف او نقصان به ورته رسیږي.
او که اوګوري چه اسمان ته په بیانۀ را تللو تللے دے، تعبیرئے دے چه بزرګي او بادشاهي
به بیاموُمي او غټ کار به کوي او که له اسمانه د اذان آواز واوري تعبیرئے سلامتي
ده او که اوګوري چه دَ آسمانه څۀ مارغۀ ورسره خبرے کوي نو تعبیرئے دے چه به خوشحاله وي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي که څوک اُوګوري چه په اسمان دَ زمکے شان
عمارت جوړ وي، تعبیرئے دے چه مرګ ته نزدے شوے دے۔ او که اوګوري چه دَ
دُنیا دَ بنیادونو خښتو او خاورو نه په اسمان عمارت جوړوي، تعبیرئے دا دے
چه لیدونکے به په دُنیا کښې مغروره وي۔ او که دَ شاتو باران اوګوري، تعبیرئے
خلکو ته نعمت، خیر، غنیمت حاصلیږي۔ او که دَ آسمانه دَ کانړو، مارانو، لړمانو
باران ولیدل، تعبیرئے دا دے چه دَ الله تعالیٰ عذاب به وربانده نازلیږي.
او که خپل ځان ئے زوړند کړے په اسمان اولیدو تعبیرئے دے چه دَدۀ مرتبه به اوچته شي۔

حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي، که څوک اوګوري چه اووم اسمان ته تللے یم
یا داسے ځلئے ته چه دَ چا ګمان وربانده نۀ وو او بیا را نغلم، تعبیرئے دَدۀ مرګ
نزدے شوے او انجام ئے ښۀ دے۔ که خوب لیدونکے نیک او صالح وي اوګوري
چه لاندے راغلم، تعبیرئے دَ دین لاره کښې زُهد او پرهیزګار به وي او که صالح
نۀ وي نو دَ ګناه نه به توبه اوباسي یا به هلاک شي۔ او که اوګوري چه دَ اسمان نه
زمکے ته راغلم، نو تکلیف، بیماري، هلاکت ته به ورسیږي او بیا به صحت او شفا بیاموُمي۔
او که اوګوري خوب کښې چه بنیاد دَ زمکے او آسمان منځ کښې دَ قُبّي پشان چه دَ
کانړو یا دَ خښتو نۀ وي، تعبیرئے دے چه خوب لیدونکے به عمل او علم کښې مغروره وي۔
او که اوګوري چه دَ آسمان دروازے خلاصے شوے دي، تعبیرئے دے چه دے کال کښې به
دُعا قبلیږي. باران او اُوبۀ به ډیرے وي۔ دَ الله تعالیٰ کلام دی (فَفَتَحْنَا
أَبْوَابَ السَّمَاءِ بِمَاءٍ مُّنْهَمِرٍ وَفَجَّرْنَا الْأَرْضَ عُيُونًا فَالْتَقَى الْمَاءُ عَلَىٰ أَمْرٍ قَدْ قُدِرَ) القمر
ترجمه:۔ ما دروازے دَ شیبو شیبو اوبو وریدو دَ پاره پرانستے دي او دَ زمکے چینے

م راخلاصے کړے دَحکم اندازے مطابق اوبهٔ جمع شوے۔

اوکه اوګوری چه دَ اسمان یوه دروازه ورته خلاصه کړے شوه یادَده دَملک خلکودَ پاره نودَخلکو دَخیرا ونعمت تعبیردے اودَده په دوستانوکښے به دَخیر اثر ښکاره کیږی۔ اوکه دَ اسمان نه راپریوتے ځان اوګوری دا دَالله تعالیٰ دَغصے تعبیردے.

امام جعفرصادقؓ فرمائیلی دی،که خوب کښے اسمان شین اوګوری تعبیرئے دادے چه ملك کښے به خیراو بهتری . او امن وی اوکه سپین ئے اوګوری نوتعبیرئے دادے چه دلته به تکلیف او بیماری وی اوکه تورئے اوګوری تعبیرئے دادے چه ملک کښے به لویه فتنه راپورته کیږی اوکه سورئے اوګوری تعبیرئے دادے چه ملک کښے به جنګ اوخونریزی کیږی اوکه دَخپل معمول نه زیات روښانه اوګوری تعبیرئے دادے چه ده ته به په دین کښے رڼړا حاصله شی۔

اوکه اوګوری چه دَده برابر آسمان کښے دروازه خلاصه شوے ده، تعبیرئے دادے ده ته به دَخیردروازے راخلاصے شی عالم اوحاکم به وی او درنه به دیرو خلکوته روزی رسیږی اوکه اسمان کښے دَسرے نخښے په شان اوګوری تعبیرئے دادے چه دَدے ځائے ښوخلکو کښے به دَالله نصرت حاصل شی اوکه دَاسمان عبادت کوی تعبیرئے دادے چه به بے دینه اوګمراه وی۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی چه څوک اوګوری چه دَ آسمانه کانړی دَ باران پشان وریږی، تعبیرئے دادے چه په کلی به سخت عذاب راځی دَالله تعالیٰ کلام دے (وَ اَمْطَرْنَا عَلَیْهَا حِجَارَةً مِّنْ سِجِّیْلٍ) ترجمه :- ماپه دوئی دَپخے خاورے کانړی اُوورول۔ هود ۸۲

اوکه اوګوری خوب کښے چه اسمان نه اوربشے یاغنم وریږی تعبیرئے دے چه دے ملک کښے به خلقوته نعمت، امن اودزندګی سهولتونه حاصلیږی۔

اوسپنه۔ (آهن) امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی لوړه اوسپنه خوب کښے لیدل خادم دے اویا دَ اوسپنے په انداره به دَدُنیامال ورته حاصل شی، اوکه چا خوب کښے ورکړه تعبیر دادے چه دَ دے په اندازه به ورته څوک دَدُنیا مال ورکړی۔

امام کرمانیؒ فرمائیلی دی، دَ اوسپنے خوب کښے لیدل دَ صلاحیت اوبادشاهی سره تعلق لری۔ الله تعالیٰ فرمائی (وَاَنْزَلْنَا الْحَدِیْدَ فِیْهِ بَاْسٌ شَدِیْدٌ وَّمَنَافِعُ

لِلنَّاسِ) ترجمه :- مونږ پیدا کړه اوسپنه په دې کښې سخت جنګ او فائدې دی دَ خلکو دپاره (الحدید ۲۵)
او که اوګوری چه اوسپنه یې دَ کانړی نه ویستې ده تعبیر یې ده ته به سختی رسیږی
دَ الله تعالیٰ کلام دے (قُلْ كُوْنُوْا حِجَارَةً اَوْ حَدِيْدًا اَوْ خَلْقًا مِّمَّا يَكْبُرُ فِيْ صُدُوْرِكُمْ) (بنی اسرائیل)
ترجمه :- او وایه دوئ ته چه شئ کانړی یا اوسپنه یا زیات دَ دے نه کوم چه
ستاسو فکر کښې راځی.
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که څوک لوهار ته وی او دے خوب
او وینی چه ما لوهاری او کړه تعبیر یې دا دے چه دے به دَ چا سره جګړه کوی او
که لوهار وی دا دَ خیر او دَ ښیګړے تعبیر دے. ځنې تعبیر کوونکی وائی چه دَ
لوهارئ تعبیر دَ بزرګ سړی دے کوم چه عادل او انصاف والا وی.
حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ هغه لوهار چه پیژنی یې ته دَ ده
لیدل خوب کښې تعبیر یې بادشاهی ده او که لیدلے وی او پیژندلے نه وی
څه چه یې لیدلی وی هغه لوهار طرفته (نیک او بد) واپس کیږی که خوب کښې اُسپته یا پیتل
اُوبه کړی تعبیر یې دے چه دا سړے دَ خلکو غیبت او بد وائی.
حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی کوم شے چه دَ اُوسپنے وی اګر که ستن
هم وی قوت، ولایت، توانائی او په دښمن کامیاب کیدل دی.

| | |
|---|---|
| اُوسئ - راهو | حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه خوب کښې اُوسئ نیولے ده تعبیر یې دے چه ښائسته ویزه |

به ورته حاصله شی.
او که وے لیدل چه داوسئ مړئ یې پرے کړه تعبیر یې دے چه د یشلے جینئ پغلتوب به مات
کړی او که اُوګوری چه دَ اُوسئ دَ شانه مړئ پریکړے شوید تعبیر یې دے چه دَ ویزے سره
به خلاف شریعت جماع کوی. او که اوګوری چه دَ اوسئ څرمن یې ویستلے ده
تعبیر یې دَ غریبے ښځے سره زنا کول دی. او که اوګوری چه دَ اوسئ څرمن یې
خوړلے ده تعبیر یې دے چه ښائسته ښځه به ورته حاصله شی. او که اوګوری چه دَ اوسئ
څرمن، چربی یا غوښه خوړلے ده یا ورته واپس راځی، تعبیر یې دے چه مالداره ښځه به
ورته په لاس ورشی او که اوګوری چه اوسئ ویشتے ده، نو دَ ښځے دَ طرفه به
غمژن وی.
حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه اوسئ پسے
لاړو او هغه یې وغورځول کړله تعبیر یې دے چه مال غنیمت به ورته ورسیږی او که

اوګوري چه اُوسئ ئے په کور کښے مړه شوے ده، تعبیر ئے دے چه د ښځے د طرفه به ورته غم رسیږي او که اوګوري چه اُوسئ ئے په کانړي یا په غشي ویشتے ده نو ښځے ته به څۀ نامناسبه خبره کوي.

جابر مغربيؒ فرمائیلي دي که خوب کښے اوګوري چه لاس کښے ئے اُوسئ نیولے ده یا ورته چادرکړے، تعبیر ئے د ښځے نه ورته خوئ حاصلیږي.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي په خوب کښے د اوسئ لیدل څلور وجهے دي (۱) ښځه (۲) ویزه (۳) خوئ (۴) د ښځو نه فائده حاصلول.

## اواز

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، چه د سړي آواز به خوب کښے اوچت او لوړ دے تعبیر ئے دے چه خلکو کښے به بزرګي بیا مومي او که اوګوري بل څوک چه د دۀ آواز اوچت شوے دے، دا د دۀ د قدر تعبیر دے چه د دۀ نوم او اواز به اوچت شي او که څوک اوګوري چه د دۀ اواز کمزورے شوے دے، تعبیر ئے د دۀ نوم او اواز به کمزورے شي څوک به ئے نۀ یادوي.

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي چه د سرود پاره اوچت اواز بزرګي او د نوم اوچت والے او د ښځو د پاره اوچت اواز کتل بد دي.

## اره

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي چه څوک اوګوري چه د ارے سره ئے دنه پرے کړے، تعبیر ئے دے چه د دوي خاوند سره به تعلقات ختم شي جدا به شي او هغه به تنګوي. او د هرے ونے تعبیر به حرف واو کښے راځي او که څوک اوګوري چه ارے سره ئے خپل رور یا خور سر پریکړے دے تعبیر ئے دا دے چه په هغه رنګ به ئے خوئ یا رور یا خور پیدا شي.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که څوک اوګوري په خوب کښے اره په لاس ورغله دا ئے خستله یا چاورکړه، تعبیر ئے دا دے چه که خوئ دي بل خوئ به ئے پیدا شي او که لور دي نو لور به ئے پیدا شي او که خوئ نۀ وي خادوي ساتي تعبیر ئے دے چه خوئ او خاروي به ئے پیدا شي.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، اره لیدل خوب کښے په درے وجوده (۱) خوئ (۲) رور یا خور (۳) څوک شریک.

## اَس - (اسپ)

حضرت دانیالؒ فرمائیلي دي، عربي اَس خوب کښے لیدل د بزرګي او عزت تعبیر دے او که اوګوري چه په عربي اَس سور وي او اَس ئے تابع دے، د بزرګي تعبیر لري د اَس

دَ بنۀ والی په اندازه به ئې مرتبه او بزرګی ادموی -

اوکه خوب کښ اوګوری چه کوم اَس ئې اخستے دے خو عربی نه دے یا چا ورکړے دے ورباندے سور دے نو بزرګی او عزت به دَ عربی اَس نه کم ورته حاصلیږی مثلاً زین، یا واګے یا لمسے ئې نه وی، دَ دے شیانو دکموالی په اندازه به ئې په بزرګی کښے کموالے وی۔

اوکه اوګوری چه دَ اس لکئ غټه او اوږده ده تعبیر ئې په دے اندازه به دَ ده نوکران او خادمان وی اوکه لکئ پریکړے اوګوری تعبیر ئې دا دے چه دَ ده به هیڅ نوکر یا خادم نۀ وی اوکه اوګوری چه دَ دۀ دَ اس څۀ حصه یا اندام کمه ده تعبیر ئې دا دے چه دَ کموالی په اندازه به عزت کښے نقصان وی۔ اوکه اوګوری چه دَ اَس سره ئې جنګ کړے او په دۀ غالب شوے دے او تابعداری نۀ کیږی نۀ تعبیر ئې دَ دۀ دَ ګناه دے۔

محمد بن سیرین فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه بربنډ اَس باندے سور دے، تعبیر ئې دَ دۀ ګناه به زیاته وی اوکه دَ بل چا اس وی دَ هغۀ ګناه به زیاته وی اوکه اوګوری چه اس بربنډ دے مګر تابعدار دے، دَ شرافت او بزرګی تعبیر ئې دے اوکه اوګوری چه په اَس سور دے اس په دیوال یا په چهت ولاړ دے تعبیر ئې دا دے چه ګناه به ئې ډیره وی۔

اوکه اوګوری چه په اس سورشي او والوځی یا دَ اَس دَ مارغانو پشان وزرے دی یا دَ مرغانو پشان الوزی، تعبیر ئې دا دے چه به سفر کوی او په دین او دُنیا کښے دَ شرافت او بزرګی تعبیر دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک ځان په تور او سپین اَس سور اوګوری تعبیر ئې دا دے داسے کار به کوی چه خلک به ورباندے شهادت کوی۔

اوکه ځان په اسپه سور اوګوری تعبیر ئې دا دے داسے کار به کوی چه دَ هغے نه مال او سرداری بیا موهی۔ اوکه اوګوری چه رنګ ئې سور تور والی ته مائل وی (کمیت) اَس باندے سور دے، تعبیر ئې دَ بادشاه نه به دولت او بزرګی تر لاسه کړی۔ او که اوګوری چه په اشقر اَس سور دے تعبیر ئې دَ دین درستئ دے او دَ بادشاه نه به عزت موهی۔

اوکه اوګوری چه په زیړ اَس سور دے تعبیر ئې معمولی بیماری به پرے راځی دَ سپین اَس همدغه شان تعبیر دے۔ اوکه اوګوری چه په تورشین اَس سور دے

نو دَ خیر او صلاح تعبیر دے ، او که اوګوري چه په سلیس اس سور دے تعبیر ئے بنځه به بیا مومي او که اوګوري چه دَ اس نه کوز شو تعبیر ئے دَ خپلے مرتبے نه به بریوځي، او که اوګوري چه دَ بربنړ اَس نه کوز شو، دَ ګناه نه به بچ شي.

او که اوګوري چه دَ وسلے سره په اَس سور دے، تعبیر ئے شرافت او مرتبه به بغیر دَ رکاوټه بیا مومي او په دښمن به کامیاب وي. او که اوګوري چه دَ جنګ دَ پاره اسونو ته منډے ورنوي، تعبیر ئے دا دے چه نه به ګناه کیږي او دَ اس دَ منډے په اندازه به ویره وینې او که اوګوري چه په اس سور مسجد ته تللے دے. تعبیر ئے دے کښے هیڅ خیر نشته او که اَس دَ هغه ځای نه بهر راولی نو بنه دے.

او که اوګوري چه اَس راسره وي نه کوي، تعبیر ئے دے چه مال دولت به ورته په لاس ورشي. او که اَس ورسره خبرے کوي تعبیر ئے دے چه اسے کار به کوي چه خلک به ورته حیران وي. او که اوګوري چه پردے اَس دَ دَه کور یا کوټے ته راغلے دے، تعبیر ئے دے چه دا سے مطابق مقام به ورته ملاؤ شي او که اوګوري چه اس دَ دَه کوټے نه بهر تللے دے تعبیر ئے دے چه دَ دَه کوټے نه بنه سړے به غائب او یا مړ کیږي.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلي دي، که څوک اوګوري چه دَه اسپه اخستے یا چا ورکړے تعبیر برکت والا بنځه به ورته په لاس ورشي او که توره اسپه وي تعبیر ئے دے چه هغه بنځه به شریفه او مالداره نه وي.

او که اوګوري چه ابلق اسپه ده تعبیر ئے دَ بنځے مور او پلار به دَ یو نسل نه نه وي او که هغه اسپه اجرمه (یعني توره شنه) وي تعبیر ئے هغه بنځه به ښائسته او خوبصورته وي او که اوګوري چه هغه اسپه شنه رنګی ده، تعبیر ئے هغه بنځه به دینداره او تقوٰی داره وي او که اشقري اسپه (سور زیړ تور والی ته مائل) اسپه اوګوري، تعبیر ئے هغه بنځه به دَ مرتبے او عزیزه وي. او که کمیت (سور رنګ تور والی ته مائل) اسپه اوګوري تعبیر ئے دَ هغے بنځے به نر اولاد پیدا کیږي. او که دَ اسپے سره بچے وي نو دَ هغه بنځے به جینئ کیږي.

او که اوګوري خوب کښے چه دَ اسپے غوښه خوري تعبیر ئے دے چه بادشاه به ئے او غواړي او خپل دوست به ئے جوړ وي او که اوګوري چه چا پسے په اسپه ناست دے یا دَه پسے بل څوک ناست دے نو روستے به دَ مخکی تابع وي.

او که اوګوري چه ډیرے اسپے دَ دَه کور یا کوټه کښے جمع دي تعبیر ئے دے چه باران به ډیر کیږي او سیلاب به راځي.

حضرت اسمٰعیل اشعث رح فرمائیلی دی که څوک اوګوري چه په تیز رفتاره اَس خوشحاله ناست دے تعبیر ئے مالدار بنځه اخلاقو والا بنځه به نکاح کښے راولی او که دے دَدے اهل نه وی نو دَ داسے بنځے سره به نکاح کوی چه نفع به ورته بیا موي۔

او که اوګوري چه دَ اَس غوږ ئے پریکړے شوے دے، تعبیر ئے دے چه دَ سردارانو پیغام به ورته کټ شي۔ او که اوګوري چه دَ اَس دَ سر د پاسه پریوتو او بیا پورته شو، تعبیر ئے دے چه کار کښے به ئے خلل وي او روستو به صحیح شي۔

او که اوګوري چه لکئ پریکړے اس ئے اخستے دے او وربانده سپور دے تعبیر ئے دے چه دَ بے اصله بنځے خاوند به شي او که اَس په لته وهلے تعبیر ئے دے چه بیا به ئے په فضولیاتو مشغول شي۔

او که اوګوري چه په اَس په هوا کښے تلے دے او بیا راګوزشوے دے تعبیر ئے دَ بادشاه نه به هلاک شي۔

او که اوګوري چه اس ئے چاپیره کړیدے، تعبیر ئے دے چه ویره دَ ده دَ عیال دَ هلاکیدو ده او که اوګوري چه اَس ئے ورک شوے دے تعبیر ئے دے چه بنځے ته به طلاق ورکړي۔

او که اوګوري چه اس ئے خرڅ کړو تعبیر ئے دے چه دَ ده عزت او مرتبه به کمه شي او یا به ورنه عیال بیل شي۔ او که اوګوري چه په اَس اپوټه ناست دے تعبیر ئے دے چه دَ ده کار به خراب شي او ورته به ضرر او ملامتی رسیږي۔

حضرت جابر رح فرمائیلی دی خوب کښے اَس کتل دَ خپل نفس خواهش کتل دی۔ او که اَس اوګوري چه سرکش دے تعبیر ئے دے چه دَ ده نفس خواهش سرکش دے۔ او که اوګوري چه اَس تابعدار دے، تعبیر دَ ده نفس دَ ګناه کولو کښے سخت دے دَ اس په بدن دَ هر اندام دَ بادشاهۍ نخښه دی که بادشاه ویته په اَس اوګوري نو دَ عزت او مرتبے تعبیر لري۔ او دَ عامو خلکو په خوب کښے دَ عزت بخت تعبیر لري۔

او که اوګوري چه نامعلوم اَس دَ محلے نه وتلے دے، تعبیر ئے دے چه دے محلے نه دَ بزرګ سړی دَ دُنیا نه سفر دے۔

حضرت خالد اصفهاني رح فرمائیلی دی چه خوب کښے پالان والا اَس دَ سړي قسمت دے۔ په کومه اندازه چه پالانی اَس تابعدار وی په هغه اندازه به ئے نصیب فرمانبرداره دی چه که اوګوري چه پالانی بنا ریا محلے یا سرائے ته تلے دے تعبیر ئے دے چه مسافر عجمی به دلته راځي۔

اوکه اوګوری چه اوږدے لکځ والا اس باندے سوردے، تعبیرئے دا دے چه دَ لکځ په اندازه به ئے تابعداروی اوکه دَ دے خلاف اوګوری تعبیرئے بد حال به ئے وی ژوند به ئے تنګ وی۔

حضرت جعفرصادق رض فرمائیلی دی۔ آس خوب کښے لیدل پنځه وجوه دی. (۱) عزت (۲) مرتبه (۳) حکومت (۴) بزرګی (۵) خیراوبرکت ۔ همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی (اَلْخَیْرُ مَعْقُوْدٌ نَوَاصِی الْخَیْلِ وَالْبَرَکَةُ اِلٰی یَوْمِ الْقِیٰمَةِ وَالذِّلُّ فِیْ اَذْنَابِ الْبَقَرِ) ترجمه :۔ دَ اسونو په تندوکښے ترقیامته خیر وی۔ ذلت اوخواری دَ غوا په لکځ کښے دے۔

اوکه اوګوری چه دَ ده په اَس بیږو ناسته ده۔ تعبیرئے یهودی به دَ ده ښځے سره فساد کوی۔

## اُوښ ۔ (اشتر)

حضرت ابن سیرین رح فرمائیلی دی، که څوک په نامعلومه اوښ ځان سور اوګوری او منهے وهی نو تعبیرئے دَ غم اوفکردے، اوکه اوګوری دے به سفر کوی۔ اوکه اُوښ تو یونه وهی تعبیرئے دَ غم اوفکردے، اوکه اوګوری چه په اوښ ناست او لاره ورنه ورکه ده او سمه لاره نه پیژنی چه کومه ده؟ تعبیرئے خپله لاره کښے به عاجزوی اوخه تدبیریه نه کوی اوکه اُوښه پیدا کړی تعبیرئے ښځه به بیا موهی۔ اوکه اوښه دَ بچی والا دی ښځه به ئے دَ بچی والا وی اوکه اوښ ورپسے منډے وهی تعبیرئے غم دے اوکه اوګوری چه اوښ ورته سر اخوا دیخوا کوی او نه تابع کیږی تعبیرئے غمژن به وی۔

حضرت دانیال ع فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه غُصه ناک اومست اوښ باندے سوردے، تعبیرئے په ده به لوئے سړے قبضه کوی اوکه اوښ سره جنګ کوی تعبیرئے عجمی سړی سره به ئے دښمنی شی اوجنګ به ورسره کوی اوکه دَ اوښانو رمه څروی اوپو هیږی چه زما خپل دی، تعبیرئے چه ده ته به ملک حاصلیږی اودَ هغے ملک په خلکو به حکومت کوی۔ اوکه اوګوری چه دَ اوښ پئی لوشی تعبیرئے بادشاه به هغومره دولت لاس ته راوړی۔

اوکه اوګوری چه دَ پیسُو په ځائے وینے ورنه راوځی، تعبیرحرام مال به ورته ملاویږی۔ اوکه اوګوری چه چا اُوښه بخشش ورکړه یائے خپله اخستے ده، تعبیرئے ښځه به کوی یا به وینزه اخلی۔

اوکه اوګوری چه اُوښه ئے تښتیدلے ده یا چاپټه کړے ده، تعبیرئے دَ ښځے نه

به جدا شي یا به جنګ ورسره کوي.

اوکه اوګوري چه اوښه ئے مړه شویده. تعبیر ئے ښځه به ئے مړه شي. اوکه اوګوري چه اُوښه ئے لنګه شوے ده. تعبیر ئے زوی به ئے پیدا شي اومال به ئے زیات شي. اوکه اوښه خوب کښې اوګوري تعبیر ئے مراد به ئے پوره شي.

اوکه اوګوري چه دَاُوښ غوښه خوري تعبیر ئے بیماریه شي.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه دَاُوښ غوښه ورته چا دیره ورکړے ده. تعبیر ئے دَ هغے چه په اندازه به مال مومي اوکه اوګوري چه اوښ ورسره خبرے کوي تعبیر ئے دَ چه خیر به بیا مومي.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي دَاوښ لیدل په لسو وجهو دي (۱) عجمي بادشاه (۲) امیرسرے (۳) مؤمن سرے (۴) سیل (۵) فتنه (۶) ابادي (۷) ښځه (۸) حج (۹) نعمت (۱۰) مال. عربي اوښ په عربي سړي او عجمي اُوښ په عجمي سړي تعبیر دے. او دَ شُترباني تعبیر ئے تد بر، ولایت اودَ کارونو سمولو والا دے. اوکه اوګوري چه دَدَه اوښان ئے پیدا کړي دي، تعبیر ئے مال به ورته لاس ته ورځي. اوکه اوګوري چه چا ورته اوښ ورکړے دے. تعبیر ئے دَ چه هغے دَ قیمت په اندازه به دَ چا نه نفع مومي.

اوکه اوګوري چه یو قوم اُوښ حلال کړو او غوښه ئے تقسیم کړه، تعبیر ئے دَ هغه ځائے سردار به مري او مال به ئے تقسیمیږي.

حضرت جابرؓ فرمائیلي دي، که اوګوري، چه په یو کلي اُوښ ناست دے تعبیر ئے دے چه غمګین به شي.

اوکه اوګوري چه دَاوښ یوانداام نه ویته رواته ده، تعبیر ئے دَ چه دُنیا سعادت او نعمت به حاصل شي ورته یا به دَ هغے په اندازه وینه او بهیږي. اوکه اوګوري چه اُوښ پیزوان را خلاصوي تعبیر ئے دَ چه دَ تابع سړي سره به دَ هغه جنګ راشي اوکه اوګوري چه په دشته کښې ډیر اوښان پیدا کړي دي. تعبیر ئے بزرګي او خوریزي به ئے پیدا شي په یوه ډله دَ بیابان.

حضرت اسمعیل اشعثؒ فرمائیلي دي، که څوک اوګوري چه دَدَهٔ سره ډیر اوښان دي او ټول دَدَهٔ ملکیت کښې دي، که چرے اوښان عربي وي نو دَ عرب ملک کښې به بادشاه شي، اوکه اوښان عجمي وي نو عجمو کښې به بادشاه شي.

اوکه ښځه اوګوري چه دے اوښ خوړلے دے، تعبیر ئے مال، نعمت به

بیا مومی، او دَ اوښ دَ ځړمنځ هم همدا تعبیر دے۔
ځنې تعبیر کونکی وائی چه دے ښځے ته به وراثت کښې مال په لاس ورځی او که اوښ ورسره خبرے کوی، تعبیر ئے دا دے چه ته به خیر او نیکی رسیږی۔

**اُوښکے - (اشک)** حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که څوک اوګوری چه دَ سترګو نه ئے یخے اوښکے بهیږی تعبیر ئے ښادی او خوشحالی به مومی او که لړے اوښکے لیدل ئے ولیدل تعبیر ئے دا دے چه غمګین او درد مند به وی۔ او که اوګوری چه دَ دهٔ سترګو کښے دَ اوښکو په ځائے ګرد او خاورے جمع شوی دی تعبیر دَ هغې په اندازه به حلال مال بغیرد تکلیفه بیا مومی
او که اوګوری چه اوښکے ئے په مخ بهیږی، تعبیر ئے دا دے چه خپل مال به په اهل عیال خرچ کوی
جعفر صادقؒ فرمائیلی دی که خوب کښے څوک دَ سترګو اوښکے لیدل اوګوری دَ دے ۳ تعبیره ئے دی (۱) واده (۲) غم او فکر (۳) نعمت

**افیم - (افیون)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، افیم خوب کښے لیدل تعبیر ئے غم او فکر دے، خوړل ئے تعبیر ئے غم، فکر او مصیبت دے۔

**امامت کول (امامت کردن)** که څوک اوګوری چه دے دَ کوم قوم امام دے او دے دَ دے قوم امام نهٔ وو۔ تعبیر ئے دا دے چه دَ هغې قوم سردار به وی او ټول به دَ دهٔ تابع وی لکه مقتدیان چه مونځ کښے دَ امام تابع وی او که اوګوری چه یوه ډله تباره دَ مونځ دَ پاره اودهٔ ته او ولاړ شول چه زمونږ امام شه او بادشاه ئے حکم وکړو دے مخکښے شو او امامت ئے وکړو، تعبیر ئے دا دے چه دَ هغې ملک حاکم به شی او دهٔ سره به په هغه اندازه انصاف کوی په کومه اندازه چه قبلے ته برابر والے او مونځ کښے دَ رکوع او سجدے اهتمام دے۔ او که اوګوری چه دَ مونځ نقصان او شو تعبیر ئے دَ نقصان په اندازه به په دهٔ ظلم وغیره کوی۔
حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه په ناستے امامت کوی، تعبیر ئے دا دے چه بیمار به شی او که په دده وی او خلقے ولوستل، تعبیر ئے زر به مړ شی او خلک به ئے جنازه کوی۔

اوکه امام پخوب کښې اوګورې، تعبیرئے دے چه د امام په قدراو مرتبے برابر به عزت او شرافت بیا مومي. اوکه اوګوري چه امام ته ولایت ورکړے شوے دے یا دَ امام سره کور ته تللے دے یا امام ځئ ورځښتي دي یا دَ امام سره ډوډۍ خوړلے ده. تعبیر په هغے اندازه به غم اوفکر بیا مومي.

حضرت جابرمغربيؒ فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه دَ امام سره په جهاد کښے دو، تعبیرئے دے چه په دولت ولایت کښے به ورسره شریک شي.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلي دي چه کوم شے په خپل ځان کښے دامام ته زیات اوګوري نودَ امام نه به بزرګي کښے زیات وي او چه څۀ امام کښے کمے اوګوري په هغه اندازه به ئے نعمت کښے نقصان وي.

حضرت جعفرصادقؒ فرمائیلي دي، خوب کښے امامتي شپږ تعبیرونه دي.
(۱) حکومت (۲) عدل سره بادشاهي (۳) علم (۴) دَ نیک کار اراده (۵) نفع (۶) دښمن

که خوب کښے دَ ښځو امامتي اوګوري، تعبیرئے په کمزورو خلکو به حاکم وي.
اوکه اوګوري چه امام دَ اسمان نه راکوزشوے دے اودَ مسجد امام شوے دے تعبیرپه هغه زمکه دَ الله تعالیٰ رحمت نازل شوے دے اوکه دَ مړي جنازه وکړي تعبیرئے دَ بادشاه نه به حکومت بیا مومي.

## امروت ـ (امرود)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، امروت په خپل موسم خوړل چه شین او خوږ وي تعبیر ئے حلال مال به بیا مومي اوکه زیړ وي بیمار به شي. که موسمي نۀ وي اوکه امروت زیړ یا سور وي اوخوند ئے خوږ وي. تعبیرئے حلال مال به بیا مومي اوکه تُرش او بے مزے وي تعبیرئے دَ غم دے.

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي، چه شین امروت موسم کښے په خوب کښے لیدل تعبیر مراد موندل دي خوړل تعبیرئے نفع ده.

حضرت جعفرصادقؒ فرمائیلي دي دَ امروتو خوړل خوب کښے پنځۀ تعبیره دي: (۱) حلال مال (۲) مالداري (۳) بنځه (۴) مراد ته رسیدل (۵) نفع

اوکه اوګوري چه بادشاه امروت خوري. تعبیرئے دے چه دَ خوراک په اندازه به دَ بزرګ نه نفع مومي.

## انار

حضرت دانیال فرمائیلي دي چه انار خوب کښے لیدل دولت دے لیکن دَ سړي په همت پاندے دے چه په وخت ئے

خوړلے دے۔ که په وخت ئے نۀ وی خوړلے بیا تعبیرئے بد دے او که اوګوری چه انارئے دوی نه شوکولی دی او دے خوړلو، تعبیرئے دا چه د بشاشته شئ به نفع بیا مومی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، خوب کښے خوږ انار دَ مال جمع کول او ځنے تعبیر کونکی وائی چه خوب کښے خوږ انار خوړل یو زر درهمه دی چه بیا به مومی۔ کم ناکم پنځوس درهمه به بیا مومی. تر یبه دا چه اشرفۍ هم بیا مومی. معبرته پکار دی چه دَ خوب لیدونکی دَ همت مطابق تعبیر بیان کړی۔

اوکه اوګوری چه انار په باران کښے خوری تعبیرئے دَ هر یو دانے په بدله کښے به دے په لږکو وهلے کیږی۔ او دَ تروش انار خوړل په موسم او بے موسم بد دی او دَ خوږ انار تعبیر درمیانه دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه په خپل موسم خوږ انار خوری که مسافر وی نو سفر به ئے مبارک او نفع سره وی او که سوداګر وی نو دده سامان او اسباب به خرڅیږی او که وے لیدل چه دَ خوږ انار دانے او مونډلے یا چا ورکړے، تعبیرئے دا چه هغے په انداز ه به تکلیف ورته ملاویږی که دَ انار موسم وی او که نۀ وی۔ که دَ خوږ انار پوستکے یا دانے خوری، تعبیرئے دَ هر شی نه به فائده بیا مومی۔

حضرت جابر صادقؒ فرمائیلی دی خوب کښے خوږ انار خوړل په درے تعبیرونو دے (۱) مال به جمع کوی (۲) پرهیزګاره ښځه (۳) ښار به ئے آباد وی. مګر تروش انار دَ غم سبب دے۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی که بادشاه اوګوری چه انار ورسره دی۔ تعبیرئے دا چه ښار یا ولایت به بیا مومی. دا حال دَ رئیس دے سوداګر ته به لس زره درهمه بازاری ته یو زر درهمه فقیر ته لس درهمه یا یو درهم ملاویږی۔

**انځر۔ (انجیر)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، خوب کښے انځر خوړل که موسم ئے وی یا نۀ وی بد دے که اوګوری چه انځرئے خوړلی دی یا جمع کړی دی یا ورته چا ورکړی، تعبیرئے غم او فکر به مومی ممکن داسے کار به وکړی، چه پښیمانه به شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه خوب کښے زیړ انځر خوړل تعبیر بیماری ده او تور انځر غم او فکر دے. شین به موسم خوړل چه خوږ دی نقصان نۀ ورکوی۔

**انجیل**

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک خوب کښې اوګوری چه انجیل لولی۔ تعبیر ئې دَحق نه په باطله لاړ روان شو۔ او که څوک انجیل لوستونکې اوګوری تعبیر ئې دا دے چه په عیسائی مذهب دے معمولی خیر به مومی که ژبانی وائی تعبیر ئې دَحق نه به باطل ته اوړی او دَ عیسایانو دوست به وی.

**انګور**

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی. دَ تورو انګورو خوړل تعبیر غم او فکر دے بے موسمه یره او ډار دے۔

تعبیر کونکو وئیلی دی چه څومره انګور ئې خوړلی دَ دانو په شمار په لرګو او بېنتونو به وهلے کیږی. دَ سپینو انګورو خوړل په موسم کښې دَ امید نه زیات دَ دنیا خیرا و نعمت دے او بے موسمه خوړل تعبیر ئې دے چه دخوب لیدونکی ته به دلیسے خبره ورځی چه دلالت به دَ مال په خرڅ کوی. او که سرۀ انګور وی په همدے دلالت کوی.

ابن سیرین فرمائیلی دی، سپین انګور خوړل په خپل موسم تعبیر ئې په مال دے چه په زحمت به لاس ته راځی او که تروش انګور وی دلالت په حرام مال دے هر انګور چه سرۀ ښکاره کیږی په عزت او مرتبه دلالت کوی او چه تور ښکاری تعبیر غم او فکر دے، هغه انګور چه خوږۀ او پاکیزه دی تعبیر ئې په مال او مرتبه دے. عزت به ئې زیات شی.

حضرت جابرؓ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه دَ لرګی مشین کښے انګور نچوړ کوی، تعبیر ئې دے چه دَ ظالم بادشاه خدمت به کوی او که په ختته یا خښته نچوړوی تعبیر ئې سیاستدانانو او هیبت ناک بادشاه خدمت به کوی. او که اوګوری چه په لګن کښې نچوړوی، تعبیر ئې دَ بزرګے ښځے خدمت به کوی. او که اوګوری چه په کاسه کښے انګور نچوړ دی تعبیر ئې دَ رذیل سړی خدمت به کوی. او که شیره نچوړ کړی او په چاټو کښے جمع کوی، تعبیر ئې دے چه بادشاه په واسطه مال جمع کړی او که انګور دَ اهل وعیال سره نچوړ کوی، تعبیر ئې دۀ ته او دَ دۀ عیال ته دَ بادشاه نه فائده وی او که خوب لیدونکے دَ بادشاه دَ خدمت لائق نۀ وی بیا به ورته دَ بل امیر یا حاکم نه فائده رسیږی.

حضرت جعفر صادق رضؓ فرمائیلی دی چه تور او سپین انګور په موسم او بے موسم خوب کښے لیدل په درے تعبیرونه دے (۱) نیک بچی (۲) میراث علم (۳) حلال مال۔ دائے هم او فرمائیل چه دَ انګورو نچوړول هم په درے وجهو دے (۱) مال یا خیر او برکت (۲) نعمت فراخی (۳) دَ قحط نه په امن کیدل۔

دَ الله تعالیٰ کلام دے۔ عَامٌ فِیْهِ یُغَاثُ النَّاسُ وَفِیْهِ یَعْصِرُوْنَ ٥ ترجمه:۔ کال دے
چه په دے کښے به خلک فریاد ته رسیږی او په دے کښے به انګور نچوړوی۔

## اذان ۔ ( بانګِ نماز )

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که مؤمن (پاک) پرهیزګار اوګوری چه دَخاص ځائے نه چرته اذان اوری یا نچپله دَ مونځ دَ پاره اذان کوی تعبیر ئے دَ بیت الله شریف حج به کوی، دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَاَذِّنْ فِی النَّاسِ بِالْحَجِّ یَاْتُوْكَ رِجَالًا)
ترجمه:۔ اعلان وکړه په خلکو کښے دَ حج دَ پاره راځی به تا ته پښے ابله

اوکه خاص ځائے بانګ ے اذان کوی، تعبیر ئے دا چه خبرابه خبره به ورته رسیږی اوکه دا خبره کوم بد کاره اوګوری تعبیر ئے دا دے چه په غلا کښے نیول کیږی۔

اوکه اوګوری چه دَ مونځ دَ پاره اذان دَ کوم مسجد یا کوٹے منارے نه کوی، تعبیر ئے، خلک به الله طرف ته رابلی۔

اوکه اوګوری چه په بستره اوده دے او اذان کوی تعبیر ئے، دَ خپلے ښځے سره به مینه او محبت ساتی ۔ اوکه اوګوری چه خپل کور کښے اذان کوی. تعبیر ئے غریب او نادار به دی، بیان کیږی چه دَ دَهٔ دَ کور خلکو نه به ځوك مړ وی۔

اوکه اوګوری چه په کوڅه کښے اذان ورکوی، تعبیر ئے دا دے چه به جاسوسی کوی ۔ اوکه اوګوری چه کوهی یا برف خانه (دَ واورے کارخانه) کښے اذان کوی، تعبیر ئے دا دے چه به زندیق یا منافق وی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی چه ځوك اوګوری چه خپلے ښځے سره اذان کوی تعبیر ئے دا دے چه دَ دُنیا نه به زر سفر کوی. اوکه په اذان کښے کمے یا زیاتے اوګوری، تعبیر ئے خلکو کښے به ظلم کوی۔

اوکه اوګوری چه ماشوم اذان کوی تعبیر ئے دا دے چه مور او پلار به ئے دروغ وائی اوکه اوګوری چه اذان په حمام کښے کوی، تعبیر ئے دا دے چه دَ دین او دُنیاؤ بد حالئ دے۔ اوکه اوګوری چه اذان په قافله یا لښکرګاه کښے کوی، تعبیر ئے خراب دَ
اوکه اوګوری چه جیل (زندان) کښے مجوسی اذان دَ مونځ او اقامت ئے وکړو تعبیر دَ جیل نه به خلاصے مومی۔ اوکه اوګوری چه دَ لوبو په ځائے کښے اذان کوی دا دَ هلاکت تعبیر دے اوکه اوګوری چه دَ غرب سر اذان کوی تعبیر ئے بادشاه، صفا خبرے کوی او دے به الله پاك ځان ته رابلی۔
اوکه اوګوری چه په مینار اذان کوی، تعبیر ئے دا دے چه حکومت

بزرګی به بیا مومی. او که اوګوری چه دَ کور په کونج کښے اذان کوی، تعبیر ئے په حق کار کښے به خیانت کوی او که اوګوری چه په تهه خانه کښے اذان کوی تعبیر ئے سفر به کوی او غم او تکلیف به په کښے پورته کوی او ډیر وخت به پکښے وی. او که اوګوری چه په غر کښے اذان کوی، تعبیر دا دے چه ظالم قوم کښے به ګرفتار کیږی او دهٔ سره به خیانت کوی. او که اوګوری چه په څهٔ شی یا سړی یا په تخت ناست وی یا ولاړ وی او په لوړو کښے اذان کوی، تعبیر دا دے چه لیوتے به شی او که دَ بل چا اذان واوری تعبیر دا دے چه دَ عبادت او طاعت کار و تو کښے به سست وی او خوک به ئے دَ الله تعالیٰ طرف ته رابلی او که څوک اوګوری چه دَ تکبیر اواز اوری تعبیر ئے دَ الله تعالیٰ کارونو کښے به توفیق بیامومی.

حضرت جعفر صادق رح فرمائیلی دی په خوب کښے اذان په دولسو وجهو دی.
(۱) حج (۲) خبرے (۳) حکومت (۴) عزتمند (۵) ریاست (۶) سفر (۷) مرګ (۸) غریبی (۹) خیانت (۱۰) جاسوسی (۱۱) نفاق (۱۲) لاس پریکول.

## ازمرے۔ (شیر)

امام ابن سیرین رح فرمائیلی دی ازمرے خوب کښے دښمن دے که څوک اوګوری چه ازمری سره ئے جنګ کړے دے، تعبیر دے دُښمن سره به جنګ کوی څوک چه فتحه مومی هغه به غالب وی. او که اوګوری چه دَ ازمری په منډهٔ تللے دے، تعبیر ئے بادشاه نه به ویریږی. او که اوګوری چه دَ ازمری نه تښتیدلے دے او ازمرے ئے تالاش کوی. تعبیر دا دے چه دَ چا نه چه ویریږی ورنه به امن کښے وی.

او که اوګوری چه دَ ازمری غوښه خوری. تعبیر ئے دَ بادشاه نه به مال حاصلوی او په دښمن به کامیابیږی. دَ ازمری غوښه خوړل دَ بادشاه نه انعام موندل دی.

حضرت ابراهیم کرمانی رح فرمائیلی دی په خوب کښے ازمرے بادشاه وی او که اوګوری چه دَ ازمری دَ بدن نه ئے څهٔ ټکړی یا چاورکړی یا دهٔ خوړلی دی تعبیر دا دے چه دَ دښمن دَ مال نه به څهٔ خوری او که ازمری سره ئے جماع کړے وی تعبیر ئے دَ خرابو خبرو نه به خلاصون او مومی او خپل مراد ته به ورسیږی او که اوګوری چه ازمری په ترخ کښے نیولے، تعبیر ئے دښمن سره به صلحه کوی او که اوګوری چه ازمرے دهٔ سره جماع کوی. تعبیر ئے دَ بادشاه نه به ذلت او مومی او که اوګوری چه ازمرے دهٔ پسے راشی او ورنه تیر شی تعبیر ئے دَ بادشاه نه به نقصان او مومی.

حضرت دانیال ؑ فرمائیلی دی که څوك خوب اوګوري چه دَ ازمري سَرے مونډلے دے تعبیر ئے دے چه بادشاهي به مومي او که اوګوري چه بادشاه ورته ازمرے ورکړے دے تعبیر ئے دے چه بادشاهي به ورکوي یا خپله بادشاهي کښے به کوم وطن ورکوي او که اوګوري چه دَ ازمري دَ سردَ پاسه ناست دے، تعبیر ئے دولت او مرتبه به ئے زیاته وي

حضرت جابر مغربي ؒ فرمائیلي دي چه خوب کښے نر ازمرے بادشاه دے او ښځه ازمرۍ دَ بادشاه ښځه ده۔ او که اوګوري چه دَ ازمرۍ شودۀ لشي، تعبیرے دَ بادشاه منشي به شي او که زړه ښځه دا اوګوري نو دبادشاه دَ زوئ دائي به وي او که اوګوري چه ازمرے ئے دَشاه نه نیولے دے۔ تعبیر ئے دُښمن به په دۀ کامیابیږي۔ او که اوګوري چه ازمري خوړلے دے۔ تعبیر ئے دَ دُښمن نه به نقصان اوچتوي۔

حضرت اسمٰعیل اشعث ؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه ازمري دِ دے دَ ترخ نه نیولے دے تعبیر ئے دے چه دَ بادشاه مقرب به وي او که دَ دے خلاف اوګوري دَ بادشاه دَ غصے تعبیر دے۔ او که اوګوري چه دَ ازمري سره ئے دوډۍ خوړلے ده۔ تعبیر ئے دے چه دَ بادشاه به پرے اعتماد وي۔

په خوب کښے دَ ازمري غرمن، غوښه، هډوکی دَ دښمن تعبیر دے او که اوګوري چه دَ ازمري غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے دښمن به په اسانه قابو کړي که دَ دے خلاف اوګوري تعبیر ئے هم خلاف دے۔

حضرت جعفر صادق فرمائیلي دي، په خوب کښے ازمرے لیدل په درے وُ وجودے (۱) بادشاه (۲) زړه ورسړے (۳) زبردست دښمن

## الوتل۔ (پرواز کردن)

حضرت دانیال ؑ فرمائیلي دي۔ که څوك اوګوري چه قبلے طرف ته الوزي او بیا خپل ځائے ته راغلو تعبیر ئے دَ سفر نه به واپس زر راشي او ډیره ګټه به اوکړي خوچه په وزرو والوځي۔ او که بغیر دَ وزرو الوزي، تعبیر ئے دَ خپل حالت نه به کرځي او که اوګوري چه یو مے بالاخانے نه بلے بالاخانے ته الوزي، تعبیر ئے دے چه ښځے ته به طلاق ورکوي او بله ښځه به کوي یا به ورنځه اخلي۔

حضرت ابراهیم کرماني ؒ فرمائیلي دي که څوك اوګوري چه په هوا اسمان ته ختلے دے، تعبیر ئے دے چه حج به کوي۔ او که اوګوري چه خپل کور نه نامعلوم ځائے ته الوتلے

دے۔ تعبیر ئے دے چہ مرګ ئے نزدے شوے دے ورته پکار دی چه د ګناهونو څخه توبه اوباسی۔ او که اوګوری چه وزر لری خود مرغانو خلاف دے تعبیر ئے دے چه بیمار به شی او مرګ ته به نزدے شی آخر به شفا بیاموی او که اوګوری چه دیوځائے نه بل ځائے ته الوزی، تعبیر ئے چه نزدے وخت کښے به سفر کوی۔

حضرت جعفر صادق فرمائیلی دی په خوب کښے الوتل په پنځو وجودی (۱) سفر (۲) حج (۳) عزت (۴) د بد حال لیدل (۵) مرګ په الله پناه

## اړخ۔ (پهلو)

حضرت امام ابن سیرین فرمائیلی دی، په خوب کښے اړخ ښځه ده۔ که څوک اوګوری خوب کښے چه چپ اړخ ئے پرسیدلے دے، تعبیر ئے ښځه او ونیځه به ئے حامله وی۔ او که اوګوری چه اړخ ئے سوردے او په وینو د غوښے یو حصه لرے شوے ده او د ده د اړخ نه پریوتے ده۔ تعبیر ئے د ښځے حمل به ئے بے وخته پریوځی۔

اوکه اوګوری چه دواړه لاسونه په اړخونو باندے ایښی دی، تعبیر ئے سخت غم به ورته رسیږی۔

حضرت ابراهیم کرمانی فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه د ده د اړخ هډوکے مات شوے دے، تعبیر ئے دا ته به د پلار یا مور یا اولاد نه غم او فکر رسیږی۔ اوکه څوک اوګوری چه د اړخ څرمن ئے جدا شوے ده او پریوتے ده، تعبیر ئے مال او اولاد به ئے تباه کیږی او که اوګوری چه دواړه اړخونه ئے زیړ شوی دی تعبیر ئے د ده اولاد به بیمار شی او که اوګوری چه په اړخ ئے سورے او شو او د هغے نه جواهر پریوځی، تعبیر ئے د ده کور کښے به پرهیزګاره عالم څوک پیدا کیږی او که اوګوری چه دواړه اړخونه ئے یوځائے شوی دی، تعبیر ئے دا ته به غم او فکر رسیږی۔ اوکه اوګوری چه اړخ ئے قوی او مضبوط شوے دے۔ تعبیر ئے د دین درستی او د بچو قوت دے۔ او که اړخ وړوکے او کمزورے اوګوری، تعبیر ئے د دے برعکس دے۔

حضرت جابر مغربی فرمائیلی دی۔ په خوب کښے اړخ په پنځو تعبیر دے څکه ښځے د سړو د اړخونو نه پیدا شوی دی۔ نو چه څه خیر او شر په اړخ کښے اوګوری، نو تعبیر ئے په ښځو پریوځی۔ او که اوګوری چه د ده ډیر اړخونه دی تعبیر ئے په دے اندازه به ښځے او وینځے لاس ته راوړی۔ او که اووینی چه د اړخ نه ئے ماروتلے دے نو دلیل دے چه د ده کور کښے به نرماشوم پیدا کیږی۔

حضرت جعفر صادق فرمائیلی دی په خوب کښے اړخ لیدل په پنځو وجودی

(۱) بنځه (۲) جینۍ (۳) وینزه (۴) نوکر (۵) زړه بوډۍ بنځه چه په کور کښې وی.

## اخستل او خرڅول. (بیع)

حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی خوب کښې قرآن مجید خرڅول تعبیر ئې دَدهٔ په نزد دین سپك دے. دهٔ خپل ځان ذلیل او سپک کړو، او که څوك اوګوری چه خپل غلام ئې خرڅ کړے دے، تعبیر ئې خپل کار به وربانده تنګ وی او ظالم به وی. او که اوګوری چه خپله بنځه ئې خرڅه کړے ده، تعبیر ئې دَدهٔ حرمت او بزرګی برباد شوه او بد نام به شی او که بله ئې خرڅه کړی وی چه دَدے بنځې نه علاوه وی. اصلاح به ئې و شی.

ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی چه کوم شے په دین کښې خوږ وی دَهغې خرڅول بد دی او اخستل ئې ښۀ دی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی خوب کښې اخستل خرڅول ښۀ شے دے څکه په پیسو سره ئې کوی او که سامان په سامان بدل کړی تعبیر دَهغې اندازے مطابق به نفع مومی.

## ازغے (چنګاله)

ازغے په خوب کښې لیدل بد کردار او تکلیف ورکوونکے سړے دے. چنګاله ته په فارسی ژبه کښې معلاق دائی. که څوک خوب کښې اوګوری چه دهٔ سره ازغی دی یا ورته چا ازغی ورکړی دی تعبیر ئې دادے چه دَ دهٔ سره به صفت خاوند سړی ملګرتیا او دوستی کیږی او که اوګوری چه ازغے ئې په بدن کښې لاړ دے او زخمی کړے دے، تعبیر ئې دَ بد کاره سړی نه به ورته نقصان ورسیږی او که اوګوری چه ازغے ورنه ضائع شو ورته چا ورکړے دے، تعبیر ئې دَبد کردار سړی نه به جدا شی.

## ازغے ـ (خار)

ازغے په خوب کښې قرض دے، که څوك اوګوری چه ازغے دَدهٔ بدن کښې دے یا چا پکښې وتومبل ـ تعبیر ئې دَچا نه به قرض اخلی او دَ ازغی په اندازه به ورنه خبرے اوری او که اوګوری چه دَدهٔ بدن کښې چا ازغے اووهلو تعبیر ئې دے په چا له قرض ورکوی ـ او دَدهٔ نه به خبرے اوری.

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه ډیر ازغی دی او ښپو ته ئې ورته تکلیف رسیدلے دے، تعبیر ئې دادے چه قرضدار به وی او اخیر به ترے خلاص شی.

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی چه ازغے په خوب کښې په درے وجو دے.

(۱) قرض (۲) کنځل (۳) کارونو کښې مشکلات -

**اوربشے - (جو)** اوربشے یوه غله ده - حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه پخې یا اېشنې یا وچے اربشے خوری تعبیر ئے دا دے چه ده ته به یوشے په لاس ورځی - او که اوګوری چه اوربشے ئے په زمکه کرلی دی - تعبیر ئے دا دے چه ده سره به مال جمع شی -

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، په خوب کښې اوربشے مال دے چه په اسانه پیدا کیدے شی او خرڅولو کښې ئے داسے سړے دے چه دُنیا په دین باندے غوره کوی -

**ایره - (خاکستر)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښې ایره ناروا مال دے چه دَ بادشاه دَ طرف نه وی او چا سره نۀ پاتے کیږی. تعبیر ئے بیانوونکے وائی چه داسے علم به حاصل کړی چه پکښې نفع نۀ وی -

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، ایره لیدل خوب کښې په نهو وجو ده :-

(۱) نۀ قبول شوے علم (۲) حرام مال (۳) بے فائدے کار (۴) جګړه (۵) بدکاری (۶) مکر وحیله (۷) افسوس (۸) پښیمانی (۹) داسے کار چه پکښې ښۀ والے نۀ وی -

دَ الله تعالیٰ کلام دے (مَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ اَعْمَالُهُمْ كَرَمَادِ ِاشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ يَوْمٍ عَاصِفٍ) ابراهیم مثال دَ هغه کسانو چه کافران دی په خپل رب دَ دوی اعمال دَ دوی دَ ایرو پشان دی چه دَ باران په ورځ ئے سیلئ پوره کړی او کمزوری ئے) -

**اګئ (دَ چرګے اګئ) - (خایۂ مرغ)** حضرت دانیالؒ فرمائیلی دی، اګئ خوب کښې لیدل تعبیر ئے وینزه دے - که اوګوری چه اګئ چرګے دَ ده په مخکښې واچوله او دۀ ته نۀ ده معلومه چه څنګه ده - تعبیر ئے دا دے چه بنځه به کوی ورو وخت به ورسره وی - او که اوګوری چه پخه کړے اګئ خوری، تعبیر ئے محنت سره به مال حاصلوی او که اوګوری چه نیم پخته اګئ خوړلے ده، تعبیر ئے حرام مال به خوری او ورته به تکلیف او غم رسیږی - او که اوګوری چه دَ پوستکی سره ئے اګئ خوړلے ده، تعبیر ئے دا دے چه دَ مړو کفن به غلا کوی -

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه په خپله ئے اګئ واچوله، تعبیر ئے دا دے چه بنځه به ئے ډیره خوښه وی او په جماع کولو به حرصناک

وی۔ اوکه اوګوری چه په اکوډ مارغانو په شان ناست دے، تعبیر ئې دے چه دَ بنځوسره به کینی او فائده به ورنه اخلی۔ اوکه اوګوری چه اکئ دَ چرګ لاندے اېښی دی او چرګ بهر کړیدی۔ تعبیر ئې دے چه دده مرکار به ژوند ے شی۔ ځنی تعبیر کونکی وائی چه دده کره به ایماندار هلک پیدا شی۔ اوکه اوګوری چه اکئ ماته شوه، تعبیر ئې دے چه لور به ئې پیغله کیږی۔ اوکه اوګوری چه دده سره ډیرے اکئ دی، تعبیر ئې دے چه دده به ډیر هلکان وی او دَ بطے اکئ تعبیر کښے فقیر او بے چاره ځوئ دے او دَ مرغئ اکئ تعبیر ئې خوشحالی ده۔

## اکئ (دَ سړو اکئ)۔ (خایه آدمی)

ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک اوګوری چه اکئ غټه شویده۔ تعبیر ئې قوت او امن، مال به ئې زیات شی۔ اوکه اوګوری چه دواړه اکئ ئې ورے شوے دی۔ تعبیر ئې دَ اول خلاف دے، یعنی قوت، امن او مال به ئې کم شی۔ اوکه اوګوری چه اکئ ئې پریکړے شوے ده، تعبیر ئې دُښمن بر په دده کامیاب شی۔ اوکه اوګوری چه خپله اکئ ئې چاته ورکړے ده او ورته ئې بخښلے ده۔ تعبیر ئې دَ دده ځوی به حرام زاده وی چه نسب به ئې د بل چا نه وی۔

اوکه اوګوری چه اکئ ئې پړسیدلے ده او یا پکښے هوا ننوتلے ده۔ تعبیر ئې ډیر مال به مومی مګر دَ دښمن نه به ئې ویره وی۔ اوکه اوګوری چه اکئ ئې اوږدے شویدی چه په زمکه لړیدلی دی، تعبیر ئې دے چه دده نه به ډیر مال حاصلیږی۔ اوکه اوګوری چه دَ چا اکئ راکاږی، تعبیر ئې دے چه دواړه به دَ یو بل بنځو سره فساد کوی اوکه اوګوری چه دَ خپلے اکئ څرمن ئې ویستلے ده، تعبیر ئې، دَ دده په زوئ به څوک ظلم کوی۔ اوکه اوګوری چه اکئ دَ دده چا سخته نیولے ده۔ تعبیر دَ زوئ دَ مرګ خبر په وادری، که زوئ نه وی نو عزت، حرمت به ئې کم شی، اوکه اوګوری چه دَ بنځه ئې اکئ پریکړے ده۔ تعبیر ئې قوت به ئې کم شی۔ اوکه اوګوری چه اکئ په رسئ یا په بل شی تړلے ده۔ تعبیر ئې قول کارونه به ور باندے بند شی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے دَ سړی اکئ دَ دښمن دَ سختئ نه دَ بچ کیدو تعبیر دے۔ اوکه اوګوری چه دَ دده اکئ نقصان دے تعبیر ئې دښمن به پرے کامیابیږی اوکه اوګوری چه کسه اکئ وتلے ده۔ تعبیر ئې دے به هلاک شی۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، خوب کښے اکئ لیدل په اوو وجو

دی - (۱) زوئ (۲) مال (۳) کوروالا (۴) عزت (۵) مشری (۶) حاجت غوښتونکی (۷) مراد نه رسیدل -

**دَ اِیلئ آکئ - (خایۂ مرغابی)** دَ مرغابئ آکئ لیدل په ځلورو وجو دَه - (۱) مراد موندل (۲) ښځه کول.

(۳) ویـنزه اخستل (۴) دَ زامنو پیدا کیدل -

**اُورے - رائی - (خردل)** امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی - په خوب کښے اُورے (رائی) لیدل دَ فکرونو تعبیر دے -

اوکه اوګوری چه اُورے ئے خوړلے دے، تعبیرئے دَ مال نقصان ښئے دی یا غم او بیماری کښے به ګرفتار شی -

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی په خوب کښے اُورے خوړل تعبیرئے په غم، جګړه او په بیماری دے -

**اُوده کیدل - (خفتن)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، خوب کښے خپل ځان اُوده لیدل خوشحالی او نجات دے - که اوګوری چه په تخت اُوده دے - تعبیرئے مشری به بیاموی دَ دین دَ لارے او پرهیز کارے نه به خبر نهٔ وی ځکه اوده کیدل دَ دین لار کښے غفلت دے - اوکه اوګوری چرته بستره کښے اُوده دے دَ سپکاوی او ذلت تعبیر دے

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دَ مړو تر منځه اُوده دے او خلك ئے ګوری، تعبیر دے چه خلکو منځ کښے به شهرت او موی - دَ الله تعالیٰ فرمان دے - (وَ تَحْسَبُهُمْ اَيْقَاظًا وَّهُمْ رُقُوْدٌ ط) ترجمه: ته ګمان کوے چه دوئ ویښ دی حال داچه دوئ اُوده دی - (کهف ۱۷)

**انعامی جامے - (خلعت)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، انعامی جامے (خلعت) په خوب کښے پاکیزه او ښے دی - تعبیرئے مشری، عزت، بادشاهی موندل، ښځه، وینځه دَه - او دَ انعامی جامو ورکوونکے دَ قدر و قیمت اندازه تعبیر حکم دے -

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوك اوګوری چه چا ورته انعامی جامے ورکړے، تعبیرئے دَ جامو په اندازه به دَ بادشاه نه مال بیاموی - اوکه اوګوری چه کوم عالم انعامی جامے ورکړی دی، تعبیرئے دَ دے عالم نه په علم حاصل کړی

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، که څوك اوګوری چه ورته ښئے یا سپینے

انعامی جامے ملاؤ شویدی۔ تعبیر دَ دین عزت، مرتبه به بیاموهی۔ اوکه زربفت او ریښمینه کپړه دهٔ، تعبیرئے دَ دین او دُنیا عزت به بیاموهی۔

## اُوړهٔ آغږل (آخل)۔ (خمیر کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ اُوړو اغږلو تعبیر دَ دین درستی دهٔ او دَ غنمو اُوړهٔ اغږل دَ داسے مال تعبیر دے چه په تجارت لاس ته راغلے وی اوکه خمیره اُوچته شوے وی، دَ فساد تعبیر دے او په خوب کښے دَ باجرے اُوړهٔ اغږل دَ لږ ے گټے تعبیر دے چه به ورته حاصله وی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دهٔ خمیره کړیده یائے اخستے ده یا ورته چا ورکړے ده۔ که دَ اُربشو خمیره وی نو دَ دین او نیکئ درستی ده۔ اوکه دَ غنمو وی تعبیرئے حلال مال به دَ تجارت نه حاصل کړی اوکه دَ باجرے وی نو لږه فائده به ورته حاصله شی۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، په خوب کښے دَ اُوړو اغږل په درے وجوی (۱) دَ دین زیاتوالے (۲) نفع (۳) حلال مال۔

## اُوګه دَ سړی۔ (شانهٔ آدمی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے دَ سړی اوګه لیدل بنځه ده اوکه اوګوری چه دَ دهٔ اوګه قوی، مضبوطه، لویه ده، تعبیرئے بنځه به کوی۔ او که اوګوری چه دَ چیلئ یا غوئی اوګئے اومونده دا هم دَ بنځے حاصلولو تعبیر دے او که اوګوری چه دَ دهٔ اوګه ماته شوے ده۔ تعبیر ئے دے چه بنځه به ئے مړه کیږی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ اوګے غوښه ئے پورته کړے ده او زګونه ئے ښکاری۔ تعبیرئے دے چه هغه کال به ډیر تکلیف پورته کوی۔ اوکه دَ دے خلاف اوګوری، تعبیرئے هم خلاف دے، اوکه اوګوری چه دَ دهٔ اوګه کښے توروالے دے، تعبیرئے دغه کال به بلا او آفت وی اوکه اوګه کښے توروالے او سوروالے اوګوری تعبیرئے دے چه دغه کال به په نرخونو کښے ارزانی وی، که زیړوالے پکښے وی تعبیرئے دے چه بیماری ده۔ اوکه دَ دے په غاړو بانډے ډیرے کرښے اوګوری تعبیر دے چه په دے کال به ډیر مرګونه کیږی۔

## اوګه۔ (دوش)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے اوګه لیدل دَ سړی دَ پاره زینت دے۔ اوکه اوګوری چه دَ دهٔ بنئ اوګه کمزورے یا ماته ده۔ تعبیرئے دَ اول نه خلاف دے۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوکوری چه دَدهٔ اوکه مضبوطه او صحیح ده، تعبیر ئے دَ دهٔ په ذمه به امانت وی اودَ نا امینهٔ ځائے به مال حاصلوی۔

**ارهټ - (دولابه)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے ارهټ خزانه ده اودَ اباد کور اودَ نعمت نه ډك دے۔که اوکوری چه ارهټ جوړوی که دَدے اهل نه وی تعبیر ئے خپله خزانه جوړوی اوکه اهل نه نهٔ وی نو دَبل چادَ پاره خزانه جوړوی۔

که څوك اوکوری چه بادشاه یا لوئے سړی دهٔ ته ارهټ ورکړے دے، تعبیر ئے دَ بادشاه خزانه یادَ دهٔ دَکور خزانه به ورته حواله شی۔اوکه اوکوری چه دَا رهټ نه اُوبهٔ څښی یا جمع کوی، تعبیر ئے دهٔ ته به دَخزانچی نه فائدهٔ رسیږی۔

**اشرفئ - (دینار)** حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی که څوك اوکوری چه دَدهٔ په لاس کښے څلورو نه زیات دینار دی۔ تعبیر ئے، دهٔ ته به څه خرابه خبره رسیږی یا به داسے خبره اوری، چه بداه سخته ورته معلومیږی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوکوری چه دهٔ سره دَرمه پیسے دی پنځه تعبیر ئے دے چه نیك اوغوره کاربه په عمل کښے راولی اوکه دهٔ سره یو دینار یا زر دینا روی تعبیر ئے دے چه داسے علم به حاصلوی چه دَهغے نه به ورته دینار رملاویږی۔ خو شمیر ئے جفت پکار دے۔اوکه اُوکوری چه دهٔ سره ډیر دینار دی، تعبیر ئے دے چه دَ اولاد نه به ورته تکلیف رسیږی۔

تعبیر کونکی وائی چه خوب کښے دینار لیدل دَ امانتونو اداکول دی، دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَمِنْهُم مَّنْ إِن تَأْمَنْهُ بِدِينَارٍ لَّا يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ ط) آل عمران ۷۵ ترجمه:۔ په دوی کښے ځنے خلك داسے دی که چرے تهٔ دوی سره یو دینار امانت کیږدے هغه به دوی ادا نهٔ کړی) اوکه دَخپل لاس ورغوی (تلی) کښے پنځه دیناره اوکوری، تعبیر ئے پنځه وخته مونځ به اداکوی. اوکه اوکوری چه زیات دینار ورسره دی اوچرته محفوظ ځائے کښے ایښی دی تعبیر ئے دے چه دَ مسلمانانو امانت به په خیال کښے ساتی اوکه اوکوری چه دینار تقسیموی۔تعبیر ئے دے چه خلکو کښے به دَ نیکی حکم کوی او امانت به ورکوی۔

حضرت جابر معربیؒ فرمائیلی دی که چرے اولیدلو چه یو دینار ئے اوموندلو تعبیر ئے دے چه دَ امانت حواله کولو دَپاره چك لیکی او اکثر به په خوب کښے دینار کوری او

په بیدارئ کښې به ورته ملاویږی۔

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائیلی دی، دینار خوب کښې لیدل دین سره لاردی په دینار عکس نۀ وی۔ اوکه اوګوری چه دۀ سره دینار دی اوپه یو مخ ئې دَ الله تعالیٰ نوم دے اوبل طرف ته تصویردے که خوب لیدونکے مسلمان وی مرتد به شی اوکه کافر وی مسلمان به شی۔

حضرت جعفرصادق فرمائیلی دی، په خوب کښې دینار لیدل پنځه مونځونه دی که جُفت دینارا ووینی نودَ پاک دین اوعلم سره دَ نفع دلیل دے اوکه شمار کښې طاق اوګوری تعبیرئې اول نه خلاف دے۔

حضرت حافظ معبر فرمائیلی دی، په خوب کښې دینار لیدل پنځه مونځونه دی اوویلنزه ده او ډیر دینار مال دے چه دَغم او جنګ سره حاصلیږی۔

## اوګه۔ (کتف)

کتف، اوګه خوب کښې صبر او دَ سړی بنائست دے. حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی، که څوک اوګوری چه دَ دۀ اوګه سمه ده دَ مال اودَ بنائست زیاتوالی تعبیردے۔ اوکه ماته او کمزوری اوګوری، دَ دے خلاف ئې تعبیردے۔

حضرت ابراهیم کرمانی فرمائیلی دی که اوګے روغ اومضبوط اوګوری امانت به ادا کوی اوکه دَ دے خلاف اوګوری نو بیا دیانتی به کوی۔ اوکه اوګوری چه دَ دۀ په اوګه ډیر ویښته دی۔ تعبیرئې دے چه دَ خلکوحق، امانت به دَ دۀ په ذمه وی اوکه دَ ویښتو نه صفا اوګوری، تعبیرئې دے چه امانت به ادا کوی.

اوځنې تعبیرکونکو بیان کړے دے که اوګوری چه دَ دۀ په اوګه ویښته نشته دے نو دَ هغه ځایه به مال حاصل کړی چه خیال ئې پرے نۀ وی (نا معلوم)

## اسمانی بجلی۔ (صاعقه)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی چه دَ اسمان بجلی اوردے چه دَ وریځے نه اوځی۔ که څوک خوب کښې اوګوری چه دَ وریځے نه بجلی پریوتے ده تعبیرئې دَ هغې په اندازه دَ هغه ځائے په خلکو به دَ الله تعالیٰ عذاب نازلیږی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے؛ وَيُرْسِلَ عَلَيْهَا حُسْبَانًا مِّنَ السَّمَآءِ فَتُصْبِحَ صَعِيدًا زَلَقًا (الکهف ۴۰) ترجمه:۔ اوپه هغې به دَ اسمانه عذاب رالیږی بیا به هغه پاتے شی یو هوار میدان۔ دَ هغه ملک خلکو ته توبه کول پکار دی۔ دَ دے دَ پاره چه عذاب ورنه لرے شی۔

حضرت ابراهیم کرمانی فرمائیلی دی که اوګوری چه هوا نه اور دَ باران

پښان وربرې. تعبیر ئې دَ هغه ملک په اوسیدونکو به دَ بادشاه دَ طرف بلا او خونریزي دی. او که اوګوري چه بجلي پریوته او دے اوسیزلو. تعبیر ئې خوب لیدونکے به دَ بادشاه عذاب نه هلاک شي.

**ابرک (ځلیدونکي پرقیدونکي کاڼړي). (طلق)** حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، ابرک په کارونو کښې لږ، په سخته سرمایه ده ځکه چه جوهر ئې دَ کاڼړي نه دے او که اوګوري چه چرته نه ئې ډیره سرمایه جمع کړیده. تعبیر ئې، دهٔ ته به په سفر کښې مکر او چل سره مال حاصل شي.

حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه اوبه کړي ابرک ئې په ځان مرلي دي او په اور کښې ننوتے دے. دَ اور نه ورته څه نقصان اونهٔ رسیدو تعبیر ئې دے چه دَ بادشاه بدي به دَ دهٔ نه لرے شي او که اوګوري چه ابرک ئې خوړلے دے تعبیر ئې دے چه مال به په سختۍ سره جمع کوي او که اوګوري چه ابرک ورنه ضائع شو تعبیر ئې دے چه مال به ئې ضائع شي.

**اختر. (عید)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، که دَ قرباني (لوے) اختر اوګوري، تعبیر ئې دے چه دَ کوم هوښیار سره به ئې کار پېښیږي او که وړوکے (رمضان) اختر اوګوري، تعبیر ئې دے چه ملګرتیا به ئې دَ کوم بزرګ سره وي او دَ دین فائده به ورنه حاصلوي.

حضرت ابراهیم کرمانيؒ فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه خلک دَ اختر په خوشحالۍ راوتلي دي، تعبیر ئې دے چه که قید وي راخلاص به شي او که عزتمند و نه وي عزت او مرتبه به ئې نوره هم زیاته شي.

**دَ اوسپنې طوق. (غُلّ)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښې دَ اوسپنې طوق کفر دے او میلان ئې ناحق طرف ته دے. که څوک اوګوري چه دَ دهٔ څټ کښې دَ اوسپنې طوق دے. تعبیر ئې کافر به مري او که اوګوري چه دَ دهٔ طوق په څټ پورے تړلے دے تعبیر ئې، منافق به وي. او که اوګوري چه دَ دهٔ څټ کښې دَ اوسپنې طوق دے او په پښو کښې ئې بیړۍ دي. تعبیر ئې کافر به وي او په دروغو به دَ مسلمانۍ دعوی کوي.

حضرت ابراهیم کرمانيؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه دَ دهٔ لاسونو کښې دَ اوسپنې طوق دے، تعبیر ئې دا دے دَ دهٔ شومتیا او بخیلي دے. دَ الله تعالی کلام دے (وَقَالَتِ الْيَهُودُ

يَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ غُلَّتْ اَيْدِيْهِمْ وَ لُعِنُوْا بِمَا قَالُوْا ﴿مائدہ ۶۴﴾ ترجمه :- او ووئیل یهودو دَ الله پاك لاس تړلی شوے دے، دَ دوئ لاس به وتړلے شی او په دوئ دَ دوئ دَ وینا په وجه لعنت وی.

حضرت ابن عباسؓ فرمائیلی دی چه اهل تعبیران وائی چه که نیک سړے دَ اوسپنے طوق څټ کښے اوګوری، تعبیرئے دَ خراب کار نه به لاس واخلی.

## داوربشو شراب - (فقاع خوردن)

حضرت امام سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے دَ اوربشو شراب څښل تعبیر خیر او نفع دے چه دَ خادم (نوکر) نه به ورته رسیږی. که څوک اوګوری چه دَ اوربشو شراب ئے او څښل تعبیرئے دے چه نوکر نه خیر او نفع به مومی او که دۀ بل چاته ورکړۀ تعبیرئے دۀ ته فائده ورسیږی. او که اوګوری چه دَ شرابو کوزه پریوته او دے هم پریوتلو، دۀ ته به نقصان رسیږی.

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی په خوب کښے دَ شرابو څښل دَ خلکو تعبیر لری، او که اوګوری چه شراب ئے څښلی دی تعبیرئے دے چه دَ کمینه (بخیل) سړی خدمت به کوی. او که اوګوری چه شراب ئے څښلی دی او خواږۀ وو، تعبیرئے نفع به بیا مومی. او که تراوۀ (ترش) وو او بے مزے وو، تعبیرئے دۀ ته به نقصان رسیږی.

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی په خوب کښے دَ شرابو څښل په څلور وجو دی. (۱) نفع (۲) بوسه (۳) خدمت کول (۴) کمینه سړے.

## اِتکی - (فواق)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه دَ دۀ اتکئ دی. تعبیرئے دۀ ته به غصه رائی او تحمل به کوی او بے فائدے خبرے به کوی.

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه دَ دۀ دی خوږ اک وخت کښے ورته اتکئ راغلی دی. تعبیرئے بے ګناه به په چا غصه کیږی. او که اوګوری چه اتکئ دَ دۀ آواز سره اوچت شوی دی. تعبیرئے دروغ به وائی. او په دغه دروغو به ملامته وی. او که اوګوری چه اتکی روا ونرمه وی تعبیرئے په چا به غصه کوی مګر زر به یخ شی. او که اوګوری چه اتکئ دَ دۀ هر څه بهرته ویستلی دی، تعبیرئے مرګ ئے نزدے شوے دے.

**اُوچه غوښه ـ (قدید)** حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی که خوب کښې غوښه اوچه کړی که دَچیلئ وی تعبیر ئې غنیمت دے اوکه دَ آس غوښه وی تعبیر ئې سپاهی خلکو ته به غنیمت حاصلیږی اوکه دَځنګل ځناورو غوښه وی نو دَځنګلی سړی نه به غنیمت حاصل شی۔ اُوچه کړے غوښه ښهٔ نهٔ ده۔

**آتش پرست کیدل ـ (کبر شدن)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښې اوګوری چه آتش پرست شوے دے (دَ اُور عبادت کوی) تعبیر ئې آخرت به پریږدی او دَ دُنیا طلبګار به شی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که خوب کښې اوګوری چه آتش پرست شوے دے او آتش کده (دَ آتش پرستو عبادت خانه) کښې ځائے اخستے دے تعبیر ئې دے چه خوب لیدونکے به بد عتیانو او بے دینو په صحبت کښې وی او دَ نفسی خواهشانو او اهل فساد تابع به وی۔ اوکه اوګوری چه آتش پرستی نه پښیمانه او مسلمان شو تعبیر ئې دے چه دَ ګناه نه به توبه کړی او دَحق په طرف به رجوع اوکړی او دخیر کار کښې به مشغول شی۔

**انبور (دَ اوسپنے انبور) ـ (کلبتین)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې نوکرانبور دے چه په ښهٔ شان سره به دَ بادشاه دَ لاس نه مال اوباسی او په خلکو کښې به ئې خرچ کوی او که اوګوری چه دَ دهٔ په لاس کښې انبور دے۔ تعبیر ئې دهٔ ته به مال، نعمت حاصلیږی۔ او که اوګوری چه انبور ئې ضائع شوے دے۔ تعبیر ئې نقصان او ضرر به ورته رسیږی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی، که خوک اوګوری چه دَ انبور سره ئې دَ اور نه څهٔ شے ویستلے دے تعبیر ئې دَ هغې په انداز به دَ بادشاه نه خوشحالی اومومی۔

**اینه ـ (کلیجه)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی ـ په خوب کښې اینه په ښهٔ زړونو، نعمت، مال باندے تعبیر دے چه به ورته حاصل شی او په اسانه به ورته حاصلیږی۔ اوکه اوګوری چه اینے ډهیر دورسره دے۔ تعبیر ئې ډیر مال، نعمت به حاصل کړی اوکه اوګوری چه اینه ئې په خوله کښې ایښے ده او تیره کړے ئې نهٔ ده، تعبیر ئې دَ دهٔ مال، نعمت به نورو خلکو ته ځی۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے دَ اپنے خوړل په ځلورو وجو دی۔ (۱) حلال مال په اسانۍ سره ملاویږی (۲) فراخه روزی (۳) نعمت (۴) ښه ژوند

## انتوشودارو۔ (کندش)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه ورسره دَ انتوشو ډیر دارو دی، تعبیر ئے بیماری به ئے اوږده شی او آخر به صحت مومی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ انتوشو دارو خوری۔ تعبیر ئے رنځ او بلا کښے به ګرفتار شی او که اوګوری چه پوزه کښے اچولی دی او انتوشے ئے وکړو تعبیر ئے مراد به ئے په مشکله پوره کیږی۔

## دَ اوبو مُشک۔ (مشک آب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه مشك سفر دے۔ که اوګوری چه دهٔ سر په مشک کښے اوبه دی او نوے دے، تعبیر ئے په سفر به ځی او ډیره فائده به حاصلوی او که مُشك ئے زوړ دی۔ تعبیر ئے دَ اول خلاف دے۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښے دَ مشک اُوبه لیدل په دریو تعبیرونو دے۔ (۱) سفر (۲) مال (۳) ژوند۔

## اُستاذ۔ (مُعلّم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے استاذ لیدل تعبیر ئے سردارا وهوښیاری ده که خوب کښے اوګوری چه سبق ورکوی او ماشومانو ته علم زده کوی۔ تعبیر ئے خوب لیدونکے به خلکو ته حقه خبره کوی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه استاذی کوی۔ او هلکانو ته سبق زده کوی۔ تعبیر ئے دَ بادشاهئ لائق نهٔ دے او په خپل ځائے به دَ هغهٔ خبره روا دی۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښے استاذی کول په څلورو وجو ده۔ (۱) حکومت (۲) عزت او مرتبه (۳) سرداری (۴) حکم کول۔

## انارګل۔ (ګلنار)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی، په خوب کښے دَ انارګل پاکه او ښه ناوے ده، خاصکر که ګلنار په ونه کښے اووینی او په موسم کښے وی۔ او که اوګوری چه دَ انارګل دَ ونے نه پریوتو، تعبیر ئے دَ پاکے ناوے یا وینزے دیدار نه به بے ځایه شی۔

## انار بوټے (ناریا)۔ (دَ یو سبزی نوم دے)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے انار بوټے (ناریا)

خوړل که خوبډ وی دچرګ یادچیلئ په غوښه کښې پوخ وی نودخیر او ښیګړے
دلیل دے او که دغوایه یا څه ګنډه غوښه کښے پوخ شوے وی تعبیر ئے غم او فکر دے.

**انډرپایه (پارسنګ) (نردبان)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک
اوګوری چه دَ انډرپایے نه پورته ختلے
دے او هغه پوړئ دَ خښتو او خټو ده. تعبیر ئے دَ خیر، ښیګړے دے. دین به ئے
زیات وی. نیکی به ورته رسیږی او که پوړئ دچوبے او کانړی وی تعبیر ئے سخت
زړے او بے رحمه به وی او که دَ لرګو وی تعبیر ئے دَ دین لحاظ به کمزورے وی او که
اوګوری چه په پوړو پورته ختلے دے که دَچرنے وی بادشاه به شی که نه وی نو خیر
او نفع به مومی. او که اوګوری چه په پوړئ ښکته کوز شوے دے، تعبیر ئے دَ اول نه
خلاف دے.
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه دَ پوړئ نه پریوتے
دے. تعبیر ئے دَ مسرئ، مرتبے نه به اُو غورځیږی او نقصان به ئے کیږی.
حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے پوړے لیدل دَ صلاح او
پرهیزګاره سړی دپاره دلیل دے چه په دښمن به کامیابیږی او دَ بدکار دپاره منافقت دے.

**اودس دَ موخ. (وضوئے نمانځ)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی
که څوک اوګوری چه مخ او لاسونه ئے
په پاکو اوبو وینځلی دی. تعبیر ئے دَ کار تلاش به کوی او پوره کار به مومی
او مطلب به ئے حاصل شی. او که اوګوری چه دَ پلیتو اُوبو سره ئے مخ وینځلے دے
نو تعبیر ئے دَ اول خلاف دے.
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی، که څوک اوګوری چه دَ څپل لاس
او مخ وینځلی دی، تعبیر ئے دَ خپلو دوستانو دَپاره به مننځ غوارې او مراد به ئے پوره شی.

**اریړه - (هلیله)** ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے کابلی
اریړه لیدل تعبیر ئے غم او فکر دے، زیړه
دَ بیماری تعبیر لری او توره اریړه دَ مصیبت دلیل دے که څوک اوګوری چه
په دے اریړو کښے اریړه، چینی، شکرے یا شاتو سره خوری. تعبیر ئے غم او
فکر به ئے کم شی. اریړه خوب کښے لیدل څۀ ګټه نۀ لری.

**ازغی** (شین رنګے ازغی دی او اُوښان ئے خوری (اشترخار) حضرت ابن سیرینؒ
فرمائی، دَ دے ازغی

لیدل په خوب کښې غم او فکر دے. که اوګوری چه اشترخار ازغی اخستی دی او
ورته چاورکړی دی او دهٔ خوړلی دی، تعبیر ئے دے چه دغے په اندازه به غم او فکر
خوری. که اوګوری چه دهٔ چاته ورکړی دی او یا ئے خرخ کړی دی. تعبیر ئے دا دے چه
او فکرونه به خلاصے بیا مومی او که اوګوری چه دهٔ سره اشترخار ازغی دی
او دهٔ اوښ ته ورکړی دی. تعبیر ئے دا سړے به دَ اوښ دپاره
خفه وی.

## الوبخارا، الوچه (آلوئی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې سره
یا توره الوبخارا لیدل په خپل وخت کښې که اُووینی. تعبیر ئے مال او مراد ته رسیدل
دی او زیړه تعبیر ئے بیماری ده. که اوګوری چه توره یا سره یا زیړه اوخوند ئے
خوږ دے که خپله ئے وی او یا ورته چا ورکړے وی او خوړلے ئے وی تعبیر ئے
دَ هغے په اندازه به مال او مراد مومی. او که بے موسمه او زیړ اووینی او
وے خوری تعبیر ئے غم او مصیبت او جنګ دے او که تروش وی نو به دی.

## اِیلئ، مرغابئ۔ (مُرغابی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې
دَ مرغابئ لیدل دَ نورو مرغانو نه ښه ده
که اوګوری چه مرغابئ ئے نیولے ده او یا ورته چا ورکړے ده، تعبیر ئے
مال، بزرګی او نعمت به بیا مومی او دَ زړهٔ مراد به ئے پوره شی. او که اوګوری
چه ډیرے مرغابئ ورته راجمع شوی دی، تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به مال راجمع کړی.
او په دښمن به کامیابی مومی

حضرت کرمانیؒ فرمائی په اِلئ لیدل زندګی ده که اوګوری چه دهٔ سره مرغابی
ده او یا ورته چا ورکړے ده. تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به مال او مشری مومی او
دَ دے هر ډول مال او نعمت دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی په خوب کښے دَ مرغابئ لیدل په څلورو وجو وی:-
(۱) مال (۲) مشری (۳) ریاست (۴) حکومت. ځکه چه الئ کله په هوا کله
په زمکه او کله په اوبو کښے وی، په دے وجه چه مرغابی لیدونکی چه هر قسمه
او غواړی هغه شان مراد به حاصل کړی.

## داندامونو درد (درد اندامها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب
کښے اوګوری چه بند بونه ئے درد کوی
تعبیر ئے دَ لاسه به ئے مال لاړ شی، او که اوګوری چه سر ئے درد کوی، تعبیر

نے هغه ډیره ګناه چه دے کړے وی دَ هغے به توبه او باسی او صدقه به ورکړی.
دَ الله تعالیٰ قول دے (فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا اَوْ بِهٖ اَذًى مِّنْ رَّاْسِهٖ فَفِدْيَةٌ مِّنْ صِيَامٍ اَوْ صَدَقَةٍ) (البقره. ۱۹۶) ترجمه :- پس هغه څوك چه دَ تاسے نه بیمار وی او یا نے سر کښے تکلیف وی، نو دَ روژو فدیه یا صدقه دے ورکړی او یا دے قربانی دے اوکړی
که اوګوری چه تندے نے درد کوی، تعبیر نے دده دَ دین فساد او غم او فکر دے
او که اوګوری چه سترګه نے درد کوی، تعبیر نے څوك به ورته دَ حق لاره ښائی
او که اوګوری چه اوږے نے درد کوی تعبیر نے دَ چا نه به خرابه خبره اوری -
او که اوګوری چه پوزه نے درد کوی او یا نے په ژبه کښے نقصان وو، تعبیر نے دا سے خبره به کوی چه دَ هغے وبال به په دهٔ راځی. او که دا خوب سوداګر اووینی تعبیر نے په تجارت کښے به دروغ وائی او که خپله ژبه پریکړے اووینی تعبیر نے دَ دهٔ په پرهیزګاری او په اصلاح دے.
او که اوګوری چه تالو نے درد کوی او پرسیدلے دے، تعبیر نے دَ چا دحق نه به منکر کیږی. او که اوګوری چه دَ دهٔ خوله درد کوی، تعبیر نے دَ خپلوانو نه به غم مومی. او که اوګوری چه غاړه یا څټ نے درد کوی. تعبیر نے دَ چا امانت به نے په غاړه وی او نه به نے اداکوی. او که اوګوری چه خیټه نے درد کوی تعبیر نے حرام مال به نے خوړلے وی. او که اوګوری چه ملا نے درد کوی، تعبیر نے دَ خپل سردار نه به خفه کیږی. او که اوګوری چه دَ دهٔ اړخ درد کوی تعبیر نے دَ خپلوانو په سبب به درد مومی او بیمار به شی او که اوګوری چه دَ دهٔ زړهٔ درد کوی تعبیر نے په څوئ به مهربان وی. او که دَ لاس درد اووینی، تعبیر نے په همسایه (ګاونډی) دور به ظلم کوی. او که اوګور چه ګوتے نے درد منده دی تعبیر نے کینه ګر به وی او که نوم درد اووینی تعبیر نے عیال به تنګوی او که اوګوری چه اندام مخصوصه نے درد کوی تعبیر نے فساد به کوی. او که دَ کومتیا زو ځائے درد کوی تعبیر نے فساد او حرام به کوی، او که اوګوری چه کوناتی نے درد کوی تعبیر نے په خپلوانو او ملګرو به ظلم کوی او که اوګوری چه خپے نے درد کوی تعبیر نے په ناچارو به رحم نهٔ کوی. او که اوګوری چه په بدن نے داغ لګولے دے تعبیر نے مال به مومی.

## اولاد پیدا کیدل

حضرت ابن سیرین ؒ فرمائی که ښځه په خوب کښے اوګوری چه دَ دے لور پیدا شوے ده یا دَ دے سره ده

تعبیر ئې دے ته به څه ملاویږي او د خپلوانو نه به خوشحاله وي، که سړے اوګوري چه د دۀ خوی پیدا شوے او حالانکه د دۀ ښځه حامله نۀ وه تعبیر ئې د دۀ به لور پیدا کیږي. اوکه اوګوري چه د دۀ لور پیدا شوے دۀ تعبیر ئې د دۀ به خوی پیدا کیږي. حضرت کرمانيؒ فرمائي، که د بادشاه ښځه اوګوري چه د دۀ هلک پیدا شوے دے تعبیر ئې د دے خاوند به خزانه مومي او که اوګوري چه خوی ئې پیدا شوے دے تعبیر ئې د دے به غمژن او فکرمند شي. که اوګوري چه لور ئې پیدا شوے دۀ تعبیر ئې غمژن به وي. او که اوګوري چه خوی پیدا شوے دے تعبیر ئې، کار به ئې اوشي. اوکه پیغله جینۍ اوګوري چه د دے جینۍ پیدا شوې دۀ تعبیر ئې، دا به خاوند کوي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، که څوک اوګوري په خوب کښې چه د دۀ خوی پیدا شوے دے او هم په دغه ورځ ئې ورسره خبر کړے، دا خوب د لیونکي د مرګ تعبیر لري. اوکه اوګوري چه جینۍ پیدا شوے دۀ تعبیر ئې د هغه نسل نه به خوی پیدا کیږي چه د قوم سردار به وي.

## اندازه - (پیمانه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي چه پیمانه په خوب کښې قاصد دے که اوګوري چه دۀ سره پیمانه دۀ او، یا ورته چا ورکړے دۀ، تعبیر ئې صداقت او انصاف به کوي په معامله کښې او ورکړه او فیصلے به په حق کوي او کاروبه به ئې په نظام سره او انصاف به د دۀ معلومه وي اوکه پیمانه ئې ماته شوه یا سوزیدلے تعبیر ئې خوب لیدونکي ته به د مرګ یره وي. که اوګوري چه په پیمانه ئې څه شے پیمانه (اندازه) کړے دے که خوب لیدونکے عالم وي تعبیر ئې قاضي به شي اوکه اهل علم نۀ وي تعبیر ئې د څه معاملے حاجت به ئې قاضي ته پیدا شي او ځنے تعبیر کونکي وائي چه پیمانه په خوب کښې رښتینے سړے او د انصاف خاوند چه د خلکو سره به انصاف کوي.

## لخستل، خرخول - (بیع)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که څوک په خوب کښې اووینې چه لخستل او خرخول کوي تعبیر ئې بنۀ دے څکه چه په پیسو سره ئې کوي او که سامان په سامان بدل کړي، تعبیر ئې د هغې په اندازه به خیر او نفع مومي.

## اوګه - (سیر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې اوګه خوړل حرام مال دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی په خوب کښې اُوګه خوړل خراب خبره ده چه حلګوټې
ئې کوی -که اووینی چه پخکړے اوګه ئې خوړلے، تعبیر ئې د بدے خبرے نه
په توبه اوباسی.
حضرت مغربیؒ فرمائی په خوب کښې اُوګه خوړل تعبیر ئې غم او ژړا ده.
حضرت امام جعفرصادقؓ فرمائی، په خوب کښې اوګه لیدل په پنځو وجو
ده- (۱) حرام مال (۲) بده خبره (۳) غم او فکر (۴) ژړا (۵) د سختی لیدل.

## الج (میوه یا وابسهٔ)

په عربو کښې ورته اعزوروائی، که څوك په خوب کښې اوګوری چه الج ئې خوړلی تکلیف او بیماری
به ورته رسیږی که خوړلو په اندازه.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوك اوګوری چه ده سره الج دی او یا ورته چا
ورکړی دی یا ئې د کوره بهر او غورزولو او وے نه خوړلو تعبیر ئې د سختئ
او بیمارئ نه به امن کښې شی خلاصه دا چه د الج په خوړلو کښې څه فائده نشته.

## اُورلړونے، د اورسمسئ (کفچه آتش)

حضرت نظام وائی که چرے بادشاه ورلړونے اووینی
تعبیر ئې نائب دے او که د دوئ نه ئې بل څوك اووینی تعبیر ئې د دوئ د کور
خدمتګار دے.
حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اووینی چه ده سره ورلړونے دے تعبیر ئې
خدمتګار به ورته حاصل شی که اووینی چه ضائع شوے دے تعبیر ئې خدمتګار
به ئې مری. او یا به ورنه تښتی.

## د انګوروزیلئ (رز)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې د
انګورو زیلئ لیدل تعبیر ئې نیکه ښځه او ښځی
ښځه ده- او که د انګورو پاکیزه او ښته ونه اووینی او په موسم کښې ئې اووینی.
تعبیر ئې نیکه ښځه به کوی او د هغې نه به خیر او نفع مومی او که اووینی چه د
انګورو د څانګو پانړے زیړے شوے دی، تعبیر ئې بیمار به شی او که د ده ملکیت
نه وو تعبیر ئې په هغه مالك کرځی.
حضرت جعفرصادقؓ فرمائی په خوب کښې د انګوروزیلئ لیدل په دریو وجو
وی (۱) نیکه ښځه (۲) نفع (۳) غم او فکر. او که د انګورو زیلئ خرابه اووینی
تعبیر ئې د انګورو د زیلئ په خراب حالت وی.

## ابنوس (د لرګی یو قسم دے)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی چه په خوب کښې د ابنوس لرګے لیدل هغه سړے دے چه په کار کښې سخت او مضبوط وی مګر مالدار او بخیل به وی او چاته به ورنه څه فائده نه رسیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی د ابنوس لیدل په خوب کښې هغه ښځه ده د کوم صفت چه د سړی په باره کښې بیان شوے دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی چه د ابنوس لرګی تعبیر هم دغه سړے دے کوم چه بره بیان شو۔

## انګیټۍ د عود داو دیلولو (عودسوز)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې د عودسوزولو انګیټۍ هوښیاره وینزه یا هوښیار غلام دے، که عودسوز د قلعی وی تعبیر ئے دا دے چه غلام یا وینزه به ئے په اصل کښې عیسائی وی او که د تانبے وی نو په اصل کښې به یهودی وی او که د او سپنے وی نو په اصل کښې به مجوسی وی که اوګوری چه د عودسوزولو انګیټۍ ماته شوه او یا ضائع شوه یا ورکه شوه تعبیر ئے غلام یا وینزه به ئے هلاکیږی۔

## د بدن حصے۔ (اندامها)

امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه د قوم د بدن اعضاء زیاتے شوی دی، تعبیر ئے خاندان او اهل بیت به ئے زیات شی او که اوګوری چه د بدن اندامونه ئے د بدن نه جدا شوے دی، تعبیر ئے د مال نه به په زورڅه اخلی او که اوګوری چه د خپل بدن نه غوښه پریکوی او چرګ ته ئے اچوی تعبیر ئے د خپل مال نه به چاته بخشش ورکوی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه د بدن څه حصه ورسره خبرے کوی۔ تعبیر ئے خلکو کښے به رسوا کیږی۔ د الله تعالیٰ کلام دے (قَالُوٓا اَنۡطَقَنَا اللّٰهُ الَّذِیۡٓ اَنۡطَقَ کُلَّ شَیۡءٍ) :- هغوی به وائی هغه ذات مونږ ګویان کړی یو چه هغه هر شے ګویان کړے دے۔ (حٰمٓ سجده ۲۱)

او که اوګوری چه د بدن څه حصه ئے په لاره روانه ده، تعبیر ئے دا دے کار به کوی چه په هغے ئے اعتبار وی۔ او که اوګوری چه د بدن نه ئے څه جدا شول، تعبیر د ده د خپلوانو نه به څوک په سفر ځی۔

اوکه اوګوری چه اندامونه ئے درد کوی، تعبیر ئے دے چه بیمار به شی.
اوکه اوګوری چه مارغهٔ دَ دهٔ بدن نه ټکره یوړله. تعبیر ئے دے چه مال به ئے څوک په زوراخلی او که اوګوری چه دَ بدن غوښه ئے مارغانو ته اچولے ده تعبیر ئے دے چه خپل مال نه به چاته ورکوی.

حضرت فضیل رح فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه کوم اندام ئے تباه شوے دے. تعبیر ئے په سمه لاړهٔ نهٔ دے.

حضرت جابر مغربی رح فرمائیلی دی چه ماد رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښے عرض اوکړو چه اے رسول الله ص ما یو خراب خوب لیدلے دے. نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، چه څهٔ دِ لیدلی؟ ما اوویل چه خوب مِ اولیدلو چه خلکو ستاسو دَ بدن نه یوه ټکره پریکړه او زما په غیږ کښے ئے کیښودله. رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل، چه دَ حضرت فاطمے رض به یو هلک پیدا شی چه ستا په غیږ کښے به لوئے شی. بیا ماشوم پیدا شو او دَ فضیل رض په پرورش کښے لوئے شو.

## بیت الخلاء (لیټرین) ـ (آب خانه)

حضرت ابن سیرین رح فرمائیلی دی که څوک اوګوری په خوب کښے چه بیت الخلاء جوړ دی. تعبیر ئے دَ دُنیا په مال به حریص وی او مال نه به خرچه نهٔ کوی. ځنے تعبیر کونکو بیان کړے دے چه دهٔ ته به جادو کړه شوے ملاویږی او هغه بنځه به جادوګره او بے دینه دی.

اوکه اوګوری چه په بیت الخلاء کښے وړے یا غټے بولے کړی دی، تعبیر ئے مال به جمع کوی اوکه اوګوری چه دَ بیت الخلاء په جوغړی (کنده) کښے پریوتے دے، تعبیر ئے دَ مال جمع کولو کښے به ډوبیږی اوکه اوګوری چه دَ بیت الخلاء په کوهی کښے پریوتے دے. تعبیر ئے دَ چاته به مال ترڅوی اوکه اوګوری چه غوړین یدلو سره لاس او پښے مات شوی دی، تعبیر ئے سخته بلا کښے به ګرفتار شی.

حضرت جعفر صادق رح فرمائیلی دی په خوب کښے بیت الخلاء لیدل په پنځو وجودی (۱) حرام مال (۲) دَ دُنیا ژوند (۳) خزانه (۴) په حرامو شروع (۵) خدمتګار او حرام خوره بنځه.

## بخښنه غوښتل ـ (استغفار)

یوه شه چه استغفار معنیٰ ده بخښنه غوښتل دَ ګناه نه استغفرالله وئیل

دَ الله تعالیٰ نه بخښنه غوښتل دی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوك خوب کښې استغفار وائی تعبیر ئې الله تعالیٰ به ورته مال او اولاد ورکړی. دَ الله تعالیٰ کلام دے (اِسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ اِنَّهٗ كَانَ غَفَّارًا یُرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَیْكُمْ مِّدْرَارًا وَّ یُمْدِدْكُمْ بِاَمْوَالٍ وَّ بَنِیْنَ)

ترجمه:- دَ الله تعالیٰ نه بخښنه غواړی بیشکه الله تعالیٰ بخښونکے دے، په تاسو باران وروی او دَ مال او اولاد به درسره مدد وکړی.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښې استغفار په څلورو وجو دے (۱) مال (۲) ځوی (۳) دَ الله تعالیٰ نه بخښنه (۴) دَ ګناهونو نه توبه کول.

## بادام - (بادام)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی. په خوب کښې لیدل دَ بادامو نعمت او رزق دے مګر په جګړه به حاصلیږی که چرے په خوب کښې بادام پیدا کړی. تعبیر ئې دا دے چه هغو مره روزی به په محنت حاصله کړی.

او ځنے تعبیر کوونکی بیان کړے دے چه په خوب کښې بادام لیدل تعبیر ئې علم دے او دَ بیمارئ نه شفا ده او دَ بادامو مغز ښه دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوك اوګوری چه سره دَ پوستکو بادام ورسره دی یا چا ورکړی دی، تعبیر ئې دَ بخیل او شوم سړی نه به څه شے په سختئ بیاموی- او که اوګوری چه دَ بادامونه ئې تراخه تیل ایستلی دی تعبیر ئې دا دے چه دَ بخیل سړی نه به ورته دَ هغه تیلو په اندازه فائده رسیږی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، په خوب کښې بادام لیدل مال، نعمت دے. او که بادام پوستکی سره اوګوری، تعبیر ئې مال دے دَ زر به ورته په اسانئ سره ملاویږی.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښې بادام لیدل په دوه وجودی (۱) پټ مال به ورته حاصلیږی (۲) دَ بیمارئ نه به شفا بیاموی.

## بادشاه

حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ دولسو شیانو لیدل دَ بادشاهئ تعبیر دے. (۱) چه اوګوری چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دے امام جوړ کړے دے (۲) چه اوګوری چه علم شریعت ئې قبول کړے دے (۳) دَ نبی کریمؐ خود مبارك ځان سره لیدل چه دَ اقامت او دَ مونځ په انتظار دے (۴) چه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په منبر باندے خطبه

لوستلی وی (۵) دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم جامے ئے په خوب کښے اغوستے وی - (۶)
کوته اوویني چه لاس کښے ئے اچولے ده (۷) چه نمر او سپوږمۍ شوے وی (۸) چه
اوګوری دَ ده بدن دریاب شوے دے (۹) چه اوګوری دَ ده سترګے دَ ښار دیوال
شوے وی (۱۰) اوګوری چه دَ ده سترګه دَ جامع مسجد محراب شوے وی - (۱۱) مر
بادشاه ده ته دَ کوتے ګوته ورکړی (۱۲) اوګوری چه دَ ده سترګه دَ غوایه پشان ده - دادولس
شیان خوب کښے لیدل دَ بادشاهۍ تعبیر لری -

حضرت دانیال فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه بادشاه ده ته جامے یا
توپۍ ورکړے ده - تعبیر ئے په خلکو به رئیس او حاکم وی - اوکه اوګوری چه دَ
بادشاه په سر پاک او صاف تاج دے تعبیر ئے دَ بادشاه دَ شرافت، بخت، عمر
اوږد والے دے . اوکه اوګوری چه دَ بادشاه په سر خیرن، شلیدلے تاج دے. تعبیر
ئے دَ بادشاه دَ بد حال دے - که څوک خوب کښے اوګوری چه دَ بادشاه په سر پټکے
دے لکه څنګه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښے دَ صحابو په سر وو.
تعبیر ئے بادشاه به عادل او انصاف والا دی -

اوکه اوګوری چه بادشاه هوا نیولے ده او هوا ئے تابع ده تعبیر ئے
دَ دُنیا ملکونه به فتح کړی او په ارام به شی -

که خوب کښے څوک اوګوری چه بادشاه شوے دے - تعبیر ئے مالدار به شی.

اوکه څوک خوب کښے اوګوری چه دَ بادشاه په رانګ څه نقصان نه دے شوے
تعبیر ئے دے چه دَ ټولی خلکو ته به نقصان او ضرر نه دی -

حضرت کرمانی فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه بادشاه مړ شو او غم
ئے نه کړو او نه چا ورپسے وژړل او نه ئے کفن او جنازه وکړه. تعبیر ئے دَ دغه کور
به خرابیږی. زړه به ئے فکرمند او بیمار وی.

اوکه څوک خوب کښے بادشاه اوګوری چه کعبه دَ ده کور دے
تعبیر ئے دَ ده بادشاهی ته به زوال نه وی، دښمن نه به په امن وی که اوګوری
چه ده چا ته سلام وکړو یا ده ته بل چا سلام وکړو، تعبیر ئے دَ غم او فکر نه امن دے
او مطلب به ئے پوره شی - دَ الله تعالیٰ کلام دے (سَلٰمٌ عَلَیْکُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوْهَا
خٰلِدِیْنَ ٥ الزمر) سلام دی وی په تاسو او داخل شئ په دے کښے دَ همیشه دَ پاره
خوشحاله اوسئ -

اوکه بادشاه اوګوری چه رسۍ دَ ده په لاس کښے ده یا رسۍ د ده په لاس

کښې تړلے دۀ. تعبیر ئې په سمه لاره به ځي او په عدل او انصاف به قائم وي. دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا وَّلَا تَفَرَّقُوْا) ترجمه: دَ الله تعالیٰ په رسیٔ منګلے ولګوئ او بے اتفاق مۀ کوئ. (آل عمران ۱۰۳)

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که خوب کښې بادشاه سره ځان نزدے اوګوری. تعبیر ئې دَ بادشاه مقرب به وی او که بادشاه په بنو جامو کښې په داسے کور یا کوڅه کښې چه نسبت ئې دۀ ته کیدۀ تعبیر ئې دَ بادشاه سره ملاقات، بزرګی ولایت، عزت، مرتبه، دبدبه، کثرت نوکران، خزانه، مال دے. او که دَ بادشاه نقصان اوګوری، تعبیر ئې دَ اول خلاف دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی که خوک په خوب کښې اوګوری چه بادشاه په مخ پروت دے نو تعبیر ئې دا دے چه بادشاهی به ئې ختمه شی او که بادشاه وګوری چه پۀ زمکه نسوے دے نو دلیل ئې دا دے چه دکوم سړی نه به بادشاه عزت زیات شی.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی چه بادشاه خوشحاله څوک اوګوری، تعبیر ئې دَ دۀ کار به فراخه وی. او که دَ بادشاه وزیر خوب کښې اوګوری تعبیر ئې داسے کار به کوی چه زر به سم شی او که شاهی دربان (ګیټ څوکیدار) اوګوری، تعبیر ئې دا دے چه کار ونه به ئې نۀ کیږی. آخر کښې به مراد ته ورسیږی. او که دَ بادشاه ملګرے اوګوری، تعبیر ئې دَ چانه به ورته نوکری (وظیفه) ورسیږی. او که دَ بادشاه مددګاران او ملګری اوګوری تعبیر ئې، دے به څوک ملامته کړی او ضائع نۀ شے به ورته ملاؤ شی او که دَ وکیل نوکران خوب کښې اوګوری، تعبیر ئې څوک به ئې ملامته کوی چه دَ کمینه شغل نه به عاجز شی. او که دَ بادشاه دَ ښځے برقعه (چادری) اوګوری تعبیر ئې څوک به ورسره دَ دروغو وعدے کوی. او که دَ بادشاه قیدیان اوګوری. تعبیر ئې حاجتمند او غمګین به وی. او که شاهی جلاد اوګوری. تعبیر مراد به ئې زر پوره شی او که دَ بادشاه منشی (محاسب) اوګوری تعبیر ئې دَ کومے ښځے نه به نفع او مومی او که شاهی رکابدار اوګوری. تعبیر ئې سخت دروغ او بے فائدے خبرے به واوری. او که شاهی غاشیه دار (دَ دوتی انتظام والا) اوګوری، تعبیر ئې دۀ ته به غم او فکر رسیږی. او که شاهی جامه دار اوګوری. تعبیر ئې کار به ئې په ښۀ شان سره کیږی او که شاهی دوات دار اوګوری، تعبیر ئې دَ ښځو نه به ورته څۀ حاصلیږی

او که شاهي خان سالار اوګوري تعبیر ئې خوشحاله به وي او مال به ورته حاصل شي۔

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائیلي دي که څوك اوګوري چه بادشاه ښارته راغلے دے او غلبه ئې پرے کړے ده. تعبیر ئې، په دے ښار به آفت راځي. او که خوب کښې بادشاه په خپل کور کښې اوده اوګوري، تعبیر ئې بادشاه ته به دَدهٔ حاجت وي او دے به په څهٔ کار لګوي۔

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي که څوك اوګوري چه بادشاه چرته کلي یا ښار یا سرائے ته ننوتلے دے تعبیر ئې دلته به غم، مصیبت پیښیږي. دَ الله تعالیٰ کلام دے (اِنَّ الْمُلُوْكَ اِذَا دَخَلُوْا قَرْيَةً اَفْسَدُوْهَا) ترجمه:. بیشکه بادشاهان چه کله داخل شي یو کلي ته هغه خراب کړي۔ (النمل ۳۴)

که اوګوري خوب کښې چه بادشاه سره جنګ دے پرے کامیاب شوے دے تعبیر ئې مراد به ئې پوره شي او مطلب ته به ورسیږي۔ او که اوګوري چه بادشاه ورته ښے لاس پریکړے دے۔ تعبیر ئې دهٔ ته به قسم ورکوي، او که اوګوري چه بادشاه دَ تخت نه پریوتے دے یا تخت مات شوے دے یا اسپے لته ورکړے ده یا دَهٔ توره ماته شوے ده یا غوائي په خکرو هلے دے او زخمي کړے ئې دے دا دَ سلطنت دَ زوال نښے دي۔ که چرے عادل بادشاه اوګوري نو دَ عدل په اندازه به دَدهٔ نه شرف او بزرګي اوموي۔ او که اوګوري چه بادشاه ډیر لوے قالین غوړولے دے. تعبیر ئې دَ دُنیا ملک به ورته حاصل شي او عمر به ئې زیات وي۔

حضرت جابر مغربي فرمائیلي دي که بادشاه په خپل کار کښې نیک وي تعبیر ئې دَده عمر او مرتبه به زیاته شي او که مړ بادشاه په خندا او خوشحاله اوګوري او دَده سره ئې خبرے وکړے۔ تعبیر ئې کار به ئې نیک وي۔ او مړ شغل به ئې ژوندے شي۔

## باد اچول۔ (باد رها کردن)

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي که څوك خوب کښې اوګوري چه دهٔ دَ خلکو په منځ کښې باد واچولو او خلکو دَ ے آواز واوریدلو، تعبیر ئې خرابه خبره به کوي چه خلک به افسوس پرے کوي او دَ دے په وجه به خلکو کښې رسوا کیږي۔

او که اوګوري چه باد ئې دَ خلکو منځ کښې واچولو او آواز ئې چا وانهٔ وریدلو. تعبیر ئې دَ اول خلاف دے۔ او هم دا خوب که سړے اوګوري نو دهٔ ته به خوشحالي

حاصلیږي۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلي دي که څوك خوب کښې اوګوري چه باد ځي واچولو او دَ دے آواز او سخا بوی مے، تعبیر ئې دا دے کار به کوی چه دے به پرے خلك ملامته کوی او بې دد به ورته وائي۔ اوکه اوګوری چه آواز خو ئے وو لیکن بوی نه وو۔ تعبیر ئے، دے به بے فائدے کار کوی مګر دَ ده به خیر وی پکښے۔ او که اووینی چه په خپل اختیار ئے هوا اوویستله او خلکو وریورے اوخندل او دے شرمنده شو۔ تعبیر ئے، بے کاره کار سربه ئے ژوند جوړیږی۔

جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، په خوب کښے دَ باد اچولو څلور وجے دي۔

(۱) خرابه خبره (۲) بیغور او ملامتیا (۳) ملامتي کار (۴) رسوائي۔

که اوګوری چه دَ خپلے نه ئے هوا په قصد پریښوده۔ تعبیر ئے، دا سړے بے دینه او بې منى هبه دے۔

## "ب" بادرنګ۔ (خیار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے بادرنګ اووینی، تعبیر ئے دَ کومے بنځے طلب چه کوی دَ هغے نه به بنه خبره واوری او که اووینی چه دَ بادرنګ نه ئے څه حصه خوړلے ده۔ تعبیر ئے دَ هغه بنځے نه به ئے مراد حاصل شی او دَ ځینې اوبلادرنګ حکم یو دے

حضرت جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښے بادرنګ لیدل په درے وجوی

(۱) دَ کار نه پښیمانی (۲) خوشحالی او آرام (۳) دَ خپلوانو او دوستانو نه نفع مونډل۔

## بادرنګ (دَ ترابو قسم دے)۔ (بادروک)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که څوك اوګوری چه خوب کښے بادرنګ خوړلی دی۔ تعبیر ئے دَ ده کار به پوره کیږی او مراد به ئے حاصلیږی۔ ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي (مَا اَطْيَبَكَ وَ مَا اَطْيَبُ رِيْحَكَ) ترجمه: ته ځنګه پاك ئے او ستا خوشبوی څنګه بنه ده۔

حضرت جعفرصادقؒ فرمائیلي دي، بادرنګ په خوب کښے خوړل په درے وجوه دی

(۱) حاجت پوره کیدل (۲) مراد مونډل (۳) دَ غائب زیارت کول۔

## بادرنګ۔ (غوره)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي چه څوک اوګوری چه بادرنګ ئے په موسم کښے خوړلی دی تعبیر ئے د هغے په اندازه به څه شے په تکلیف او مشقت سره حاصل کړی مګر دے کښے به فائده نه دی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی چه څوک اوګوری چه بادرنګ خوری تعبیر ئے غمژن به وی او که اوګوری چه بادرنګ ئے خرچ کړی دی یا ئے چاته ورکړی دی او دَ هغې نه ئے خوړلی نهٔ دی، تعبیر ئے دَ دهٔ غم به کم شی۔
او که بادرنګ ئے په غوبنه کښې پاخهٔ کړی وی نوبنهٔ دی۔

## باران

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی، باران خوب کښې دَ الله دَ طرفه په مخلوق باندے رحمت او برکت دے کله چه عام باران وی او په ټولو ځایونو وشی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے وَهُوَ الَّذِیْ یُنَزِّلُ الْغَیْثَ مِنْۢ بَعْدِ مَا قَنَطُوْا وَیَنْشُرُ رَحْمَتَهٗ[1] ترجمه:۔ دا الله تعالیٰ هغه ذات دے چه نازلوی باران روسته دَ نا امیدۍ نه او خوروی رحمت خپل۔
باران په خپل وخت ډیر بنهٔ دے په هغه وخت چه خلق باران غواړی ډیر بنهٔ دے لیکن که سخت باران په خپله کوڅه کښې اوګوری چه بل ځائے نهٔ دے شوے نو دَ کلی په خلکو دَ غم او فکر دلیل دے۔ او که اوګوری چه باران په ړوندو کیږی نو بیا دَ کلی په خلکو دَ خیر او برکت تعبیر لری۔
او که اوګوری چه په اول کال یا اوله میاشت باران وریږی۔ تعبیر ئے په هغه کال به دَ رحمت فراخی زیاته وی۔
او که سخت او تور باران اوګوری تعبیر ئے بیماری ده چه په دے کښې به هلاک شی۔
حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک په خوب کښې سخت باران اوګوری چه په خپل وخت کښې شوے دے تعبیر ئے دے چه په دے ورځو کښې به دَ بلا لښکر راځی۔ او که اوګوری چه دَ باران او بوسره ږلاس وینځی تعبیر ئے دَ ډیرے او غم نه به په امن شی۔
او که اوګوری چه باران ئے په سر وریږی تعبیر ئے، دے به په سفر ځی او په خیر او نفع به واپس راځی، او که اوګوری چه باران دَ خلکو په سر دونوله نا څاپه مرګ راځی۔ دَ طوفان وریږی تعبیر ئے په دے ملک به خدای نخواسته نا څاپه مرګ راځی۔
او که اوګوری چه دَ باران هر څاڅکی نه اواز راځی تعبیر ئے دَ عزت او مرتبے آوازه به ئے زیات شی۔
او که اوګوری چه دَ باران او بوسره مسح کوی تعبیر ئے دَ ډیرے او دهشت نه به په امن وی۔ او که اوګوری چه ډیر زیات باران وریږی او ټول نهرونه ډک شول

او دۀ ته هیڅ نقصان نۀ دے رسیدلے، تعبیر ئے بادشاه به سختي کوی اوخوب لیدونکے به دَدۀ دَ شر نه په امن کښے وی اوکه اوګوری چه دے نهرونو نشی تیریدے تعبیر ئے دَ بادشاه شرارت به دَ ځان نه لرے کړی. اوکه اوګوری چه اوبۀ دَ هوا نه دَ باران پشان راځی، تعبیر ئے دغلته دَ الله دَ طرفه عذاب او بیماری راځی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه دَ باران په ځائے دَ شهد و باران اوګوری تعبیر ئے، نعمت او غنیمت به په دے ملک کښے ډیر وی، اوخه چه دَ اسمان نه وریدل اوګوری تعبیر ئے دَ هغه شے دَجنس نه دے.

اوکه اوګوری چه دَ باران اُوبۀ شبنمی او صفا رنړے دی، تعبیر ئے په دَ الله پاک به ورته خیر او خوشحالی رسیږی. اوکه دَ باران اُوبۀ تورے او بے مزے اوګوری تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به بیماری وربانندے راځی.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی خوب کښے باران په دولسو وجود دے

(۱) رحمت (۲) برکت (۳) فریادکول (۴) رنځ او بیماری (۵) بلا (۶) جنګ (۷) قتل کول (۸) فتنه (۹) قحط (۱۰) امن موندل (۱۱) کفر (۱۲) دروغ

## برساتی کوټ۔ (بارانی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه څوك په خوب کښے اوګوری چه دَدۀ په بدن برساتی کوټ دے او دَ بادشاه خدمت کوی، تعبیر ئے دادے چه دَدۀ بسۀ کاروته او صفت به خلکو کښے ښکاره وی اوکه برساتی دَ جامو په ځائے په بدن وی، تعبیر ئے په دین اودُنیا به ورته فائده حاصله وی.

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوك اوګوری چه بارانی کوټ دوړئی یا السی (ریو قسم بوټے دے) یادَ مالوچو دے اوشین رنګ ئے دے نو تعبیر ئے ښۀ دے لیکن که بارانی نیلی آسمانی رنګے اوزیړ وی تعبیر ئے دَ ګناه او نافرمانی دے. اوکه سپین وی نو دۀ ته به دَکوم ځائے نه نفع او خیر رسیږی.

## باز

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه باز ئے نیولے دے یا چاورکړے دے او هغه باز دَدۀ تابع دے یعنی په لاس ئے ناست دے نو دا دَ عزت او مرتبے او دَقدر دَ زیاتی نښه ده.

اوکه اوګوری چه باز ئے په لاس ناست دے تعبیر ئے دَ بادشاه نه به عزت او مرتبه بیاموم. اوکه اوګوری چه باز ئے دَ لاسه پریوتو او مړ شو تعبیر ئے دَ مرتبے نه به پریوځی او لاس به ئے تنګ شی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که خوب کښې سپین باز او مومي نو که د بادشاه نوکرانو کښې وی نو د بادشاه نه به عزت او مومی او که د رعیت نه وی نو ډیر دولت به ورته ملاوُ شی او که اوګوری چه چاورته باز او بخښلو تعبیر ئې دا دهٔ ځوی به د مرتبې خاوند او خوبصورته وی او که اوګوری چه باز په چت ناست دے تعبیر ئې دا دهٔ به د نوی بادشاه سره ملګرتیا وی د دهٔ سره به ئې ناسته پاسته وی خیر او نفع به مومی۔ او که اوګوری چه باز او تښتیدو او کورته لاړو د ښځې لمن لاندې ئې پټ شو۔ تعبیر د ښځې به ئې خوبصورته ځوئ پیدا شی۔ او که اوګوری چه د باز پښو کښې د سرو زرو، چاندی جهانجر (پیلے) دی تعبیر ئې د ښځې به ئې جینئ پیدا کیږی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښې اوګوری چه دهٔ باز او موندلو او مړ ئې کړو۔ تعبیر ئې دے چه دا سړے د بادشاه نوکرانو نه وی، لړے به شی د نوکرئ نه او که نوکر نهٔ وی نو غم او فکر به بیا مومی۔ که اوګوری چه باز د دهٔ د لاس نه والوتو او واپس رانغلو که بادشاه ئې اوګوری تعبیر ئې بادشاهی به ورنه ځی۔ او که باز واپس راغلو او د دهٔ په لاس کیناستو تعبیر ئې ملک او قدرت به بیا مومی۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی که څوک خوب اوګوری چه باز د دهٔ تابع دے۔ تعبیر ئې په پنځو وجوده دے (۱) تابعداری (۲) خوشحالی (۳) زیرے (۴) فرمان (۵) مراد ته رسیدل او مال په قدر او قیمت سرهٔ موندل۔ که باز سپین او تابع نهٔ وی د دے تعبیر ئې په څلورو وجوده دے (۱) ظالم بادشاه (۲) حاکم چه بدی طرف ته مائل وی (۳) خیانت کرفقیه (۴) ځوئ چه د مور او پلار نا فرمانه وی۔

## باز (شاهین)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که خوب کښې اوګوری چه باز ورته چا ورکړے دے یا ئې نیولے دے او د دهٔ تابع دے تعبیر ئې د بادشاه یا ظالم سړی نه ورته مرتبه حاصلیږی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی، خوب کښې باز هوښیار سړے دے که خوب کښې اوګوری چه دهٔ باز نیولے دے او یا چا ورکړے دے۔ تعبیر ئې د هوښیار سړی سره به ئې ناسته وی او د دهٔ نه به خیر او نفع مومی۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی په خوب کښې باز لیدل په څلورو وجوده دے (۱) قدر عزت او مرتبه (۲) ځوی (۳) مال او نعمت (۴) حکومت

## باغ ليدل - (باغ ديدن)

حضرت دانيالؑ فرمائيلي دي، خوب کښې دَ باغ ليدل تعبير ئې ښځه ده. که اوګوري چه باغ اُوبۀ کوي تعبير ئې دَ خپلې ښځې سره به جماع کوي. او که اوګوري چه باغ اُوبۀ کوي مګر نۀ اُوبه کيږي. تعبير ئې دَ دۀ ښځه دَ جماع کولو خواهش لري. که خوب کښې اوګوري چه باغ کښې ګُل ريحان کري. تعبير ئې دے چه نيک عمله ځوي به ئې پيدا شي. که اوګوري چه دَ شفتالو باغ کښې کرځي تعبير ئې ځوي به ئې پيدا کيږي چه هغه به ډيرن رعلم او ادب زده کړي. او که اوګوري چه باغ کښې دَ ګل ريحان ګُلن سته ده او دۀ اُوچته کړه او بوي کړه، تعبير ئې دَ دۀ ځوئ به هوښيار او عقلمند وي، دَ ريحان ګل دَ ځوي تعبير دے. که څوک خپل باغ شين او آباد او روانے اُوبۀ او دَ محل والا اوګوري او دَ هغې نه ميوے اوخوري او څه دَ ځان سره اوساتي او دَ خپلې ښځې سره نظاره کوي، تعبير ئې دا دے چه دوئ دَ جنتيانو نه دي.

او که څوک اوګوري چه باغ شين تر او تازه دے او دَ اُونو ميوے خوري تعبير ئې مالداره ښځه به ورته ملاويږي او دَ هغې نه به دولت مومي. او که اوګوري چه دَ مني موسم کښې نا معلومه باغ لين لے دے چه دَ ونو پاڼے زيړے شوے او غورزيدلي دي تعبير ئې غم او فکر به مومي.

او که اوګوري چه باغ کښې محل، ښَينکے، اُوبۀ روانے دي او ښائسته ښځه ئې غواړي تعبير ئې جنت به آخرت کښې سره دَ حورو مومي او دَ شهادت مرتبه به ورته حاصله کړے شي.

او که اوګوري چه دَ دۀ باغ دے يا ورته چا ورکړے دے او دَ دے باغ ميوے خوري تعبير ئې مالداره ښځه به ورته ملاويږي او دَ دے مال به خوري. او که اوګوري چه په باغ کښې دے او دَ اوچتو اونو ميوے په ده را غورځيږي تعبير ئې دَ شريف سړي سره به جنګ کوي او په دۀ به کاميابيږي او که اوګوري چه په باغ کښې دَ ونو په سورو کښې اودۀ دے. تعبير ئې دَ دۀ نسل او زامن به ډير زيات وي.

حضرت ابراهيم کرمانيؒ فرمائيلي دي، خوب کښې دَ باغ ليدل تعبير عزتمند سړے، مالدار او ښائسته سړے دے. او که اوګوري چه دَ اوګلونه غوړيدلي دي او اُوبۀ روانے دي او دے پکښې ناست دے تعبير ئې سپرلي يا ګرمئ وخت کښې يو ښۀ باغ لګولے دے او په هغې کښې ميوې لګيدلے دي

دَ دهٔ مرګ به دَ شهادت وی ځکه دا ټول صفات د جنت دی. اوکه ګرمئ موسم کښې معلوم یا نامعلوم باغ اوګوری، میوے دَ هغې خوړے وی اودَ ونو پاڼے پرېوتے وی تعبیرئے دَ چه بادشاه دوست به وی په دے حال کښې چه بادشاه به دَ خپلو لښکریا تو او نوکرانو نه جدا وی.

اوکه شین باغ ګرمئ کښې اوګوری چه دَ میوو نه ډک تراوتازه او به پکښې روانے دی اودهٔ دَ بیخه او ویستو او خراب ئے کړو، تعبیرئے دَ چه دهغه ملک بادشاه ته به هلاکیدو ویره وی. څوک لوی بادشاه به په دهٔ حمله کوی او یا به برطرفه شی.

اوکه اوګوری چه اور راغلو او دَ باغ ونے ئے وسوزولے، تعبیرئے دَ چه بادشاه ته به ناڅاپی مرګ راځی اوکه باغ کښې ئے دَ ننه اوښان اولید ل تعبیرے دَ دے ملک بادشاه به په دښمنانو کامیابیږی، اوکه اوګوری چه دَ باغ میوے ئے راجمع کړے او کورته ئے یوړے تعبیرئے دَ چه هغې په اندازه به مال او دولت بیا مومی. اوکه اوګوری چه باغ کښې هرڅهٔ راجمع کوی. تعبیرئے دَ چه بادشاه ته به نفع دَ خفګان نه سره حاصلوی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، اصلی خبره دا ده چه باغ خوب کښې لیدل دَ خلکو دَ همت مطابق دَ کاروبار شغل دے. که باغ کښې شینکے اوګوری تعبیرئے دَ دهٔ شغل به نیک وی او کار به ئے سم وی. اوکه دَ میوو او شینکو نه ئے باغ خالی اولید لو تعبیرئے دَ چه دَ دهٔ کار به ښهٔ وی او که باغ ښهٔ او ښائسته اولید لو او دهٔ ته څوک اووائی چه دا باغ دَ فلانی ملکیت دے او هغهٔ دَ دے باغ نه میوه خوړلے وی. تعبیرئے دَ دے په اندازه به دَ هغې باغ دَ مالک نه فائده او مومی. اوکه دَ سپرلی او ګرمئ موسم کښې باغ وران اوګوری چه نهٔ په کښې شینکے وو او نهٔ ونے، تعبیرئے دَ چه بادشاه به په رعیت ظلم زیاتے کوی. اوکه اوګوری چه دَ خپل لاس سره ئے باغ لګولے دے او ونے ئے اولګولے او میوه ئے ونیوله تعبیرئے دَ چه مالداره ښځې سره به نکاح کوی. مال، نعمت او ځامن به ورته حاصل شی او که دغه باغ کښې دَ موسم انګور او وینی نو تعبیرئے دا دے چه دَ خپل همت مطابق به مال او مرتبه بیا مومی.

**قصه** یو سړے حضرت سلیمانؑ ته راغے او ورته ئے عرض وکړو، اے دَ خدائے پیغمبره ما یو باغ خوب کښې اولید لو او هر قسم میوے دی پکښې، په دے باغ کښې ما یو غټ خنزیر هم ولید لو چه ناست

دے۔ ماته خلکو ووئیل چه دا باغ ذدے خنزیر دے۔ زهٔ په دے خبره حیران پاتے شوم۔ ما نور ډیر خنزیران دَ میوو په خوړلو هم اولیدل او خلکو راته ووئیل چه دا ټول خنزیران دَ دے غټ خنزیر په امر دا میوے خوری. حضرت سلیمانؑ ورته اوفرمائیل هغه غټ خنزیر ظالم بادشاه دے او نور خنزیران دَ دهٔ عقلمند حرام خوارهٔ دی چه دَ دے ظالم بادشاه تابع او دین دَ دُنیا په بدله کښے خرڅوی او دَ الله تعالیٰ دَ عذاب په نهٔ ویریږی۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی. په خوب کښے دَ باغ لیدل په اُووه وجو دی (۱) ښائسته ښځه (۲) ځوی او نیکه ښځه (۳) ښهٔ ژوند (۴) مال (۵) اوچتوالے (۶) وادهٔ (۷) ویټزه۔ باغ لیدونکے خوب کښے ښځه قائموونکے دے۔

اوکه اوګوری چه باغوانی کوی تعبیر ئے مالدارهٔ ښځه به کوی او دَ هغے په شغل کښے به مشغول وی او هر قسمه به خوشحاله وی۔

او ځنے معبرین وائی چه دَ باغ لیدل په درے وجودی (۱) دَ کور مالک۔ (۲) دَ ښځے اختیارمند (۳) هغه ځوی چه ورته دَ سترګو یخوالے وی۔

## بالښت۔ (بالش)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی۔ بالښت لیدل خوب کښے خادم غلام دے، که خوب کښے اوګوری چه دهٔ سره نوے، شین بالښت دے یا چاورکړے دے تعبیر ئے ورته به پرهیزګاره غلام ملاویږی اوکه خوب کښے اوګوری چه دَ دهٔ بالښت زوړ او خیرن دے یا زیړ یا تور دے نو تعبیر ئے دَ اول خلاف دے۔

اوکه خوب کښے اوګوری چه دَ دهٔ بالښت شلیدلے یا سوزیدلے یا ورک شوے دے، تعبیر ئے غلام به ئے ضائع کیږی یا به تښتی او یا به خوب لیدونکے په تکلیف او بلا کښے مبتلا کیږی چه دَ هغے په وجه به ورته ټول نوکران جدا کیږی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک په خوب کښے اوګوری چه چا دَ دهٔ دَ کور نه بالښت پټ کړے دے، تعبیر ئے دَ دهٔ ښځے پسے څوک لګیدلی دی یا دَ دهٔ دینځے پسے لګیدلی دی ډے دَ یاره چه دے دهوکه کړی.

معبرین وائی بالښت خوب کښے لیدل، تعبیر ئے دَ دهٔ دَ کور نه به څوک مری۔ اوکه څوک اوګوری چه دهٔ ډیر زیات بالښتونه او مونډل تعبیر ئے

دَ هغې په اندازه به ورته غلامان او وینزې ملاویږي.

حضرت جعفر صادق فرمائیلي دي چه خوب کښې دَ بالښت لیدل په پنځو وجوده (۱) غلام (۲) وینزه (۳) ریاست (۴) نیک دین (۵) پرهیزګاري عدل او انصاف.

**بـام - (بالاخانه)** که څوك اوګوري چه نامعلومه بالاخانه باندې دے تعبیرئے دَ هغې دَ اوچتوالي په اندازه به دَ عزت او مرتبې بنځه مومي.

اوکه کور ورته معلوم وي اودَ هغې بالاخانه وي تعبیرئے شرف او بزرګي به بیا مومي اودَدهٔ کاربه په نظم وي.

حضرت جابر مغربي فرمائیلي دي که څوك اوګوري چه په بالاخانه پادشاه دے. تعبیرئے بزرګي او مرتبه به بیا مومي اوکه اوګوري چه دَ بالاخانے نه پریوتے دے، تعبیرئے دَعزت او مرتبې نه به غورځیږي او په غمونو او فکرونو کښې به ګیریږي.

**بُت** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که څوك اوګوري خوب کښې چه بُت پرستي کوي، تعبیرئے دے چه په الله تعالیٰ به دروغ وائي او په ناروا لاره به ځي اوکه دَ لرګي بت ته سجده کوي تعبیرئے دے چه په دین کښې دَ نفاق پیدا کیدو دے.

اوکه اوګوري چه دَ سرو زربت دے تعبیرئے دے چه دَ خواهش منده ښځے سره به نکاح کوي اوکه اوګوري چه دَسرو زروبت تعبیرئے دَدهٔ زړه به ناخوښو کارونو اودَ مال جمع کولو طرف ته وي. اوکه اوګوري چه هغه بُت دَ او سپینے یا تانبے یا سیکے دے تعبیرئے دے چه ددهٔ غرض دَدین نه دَ دُنیا جوړښت اودُنیا طلبي دَه

حضرت ابراهیم کرمانيؒ فرمائیلي دي که څوک خوب کښې دَ جواهراتو بُت اوګوري تعبیرئے دے چه دَ دین نه غرض دَ حکومت کول اودَ نوکرانو او دبدبے حاصلول دي اوکه اوګوري چه هغه دَجواهراتو بُت لرے شوے دے. تعبیرئے، دَدهٔ غرض دَدین نه مال حرام جمع کول دي. اوکه اوګوري چه بُت په کور کښې دے. تعبیر دے چه دَ خپل عقل او هوښیارتیا نه به عاجز او حیران شي.

حضرت جعفر صادق فرمائیلي دي چه په خوب کښې بُت لیدل په درے وجوده (۱) بے ګټے دروغ (۲) مکار منافق (۳) فریب کاره مفسده ښځه

**بخښنه کول - (بخشش کردن)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که څوک خوب کښې اوګوري چه خپل

مال نیک کار کښې بخشش کوی، تعبیرئې دا دے چه ځوئې دَ پلار به بخښه کوی او یا دَ خپلوانو ته به حاله بخښه کوی او خپل مال به په هغوئې تقسیموی۔
او که اوګوری چه خپل مال ناروا طریقې باندے بخشش کوی تعبیرئې دا دے چه فساد او حرام طرف ته به مائله وی۔ او که اوګوری چه خپل مال پردو ته بخښی تعبیرئې دا دے چه مرګ او ژوند به ئې خراب وی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه دَ چا مال دَ هغهٔ په خوښه بخښی۔ تعبیرئې دا دے چه دَ هغهٔ نیکی او بدی اثر به دَ مال مالک ته رسیږی۔

## بریښنا (بجلی)۔ (برق)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې بجلی لیدل تعبیر دَ بادشاه دَ خزانچی تعبیر لری۔ ځنې معبرین وائی چه بجلی دَ بادشاه دَ بدئ دَ پاره لالچی سړی ته دَ لالچ دَ وجے نه وعده ورکول دی۔ او که اوګوری چه بجلی ئې په هوا یا په وریځ نیولے ده تعبیرئې دا دے کار به کوی چه په هغې به حیران دی۔
او که بجلی رڼا کوونکی اوګوری تعبیرئې دا دے چه دے کال کښې به نعمت ډیر فراخه وی که چرته دَ بجلئ سره نرمه هوا هم وی۔
حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښې دَ بجلی لیدل په پنځو وجو دی (۱) دَ بادشاه خزانچی (۲) بده وعده (۳) ملامتیا (۴) رحمت (۵) سمه لار

## بربنډکیدل۔ (برهنگی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک خپل ځان داسے بربنډ اوګوری چه سړے ورباندے شرمیږی او دَ پټولو کوشش ئې وکړی تعبیرئې دا دے چه حج به وکړی۔ او که اوګوری پټ او مستور او دے نیک سړے ده تعبیرئې دا دے چه ګناه به ئې عفوه شی۔ او که خوب لیدونکے نیک سړے نهٔ وو تعبیرئې خراب دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک خپل ځان بربنډ اوګوری او دَ دُنیا طلبګار وی، تعبیرئې غم او فکر دے، او لنګوټے ئې دَ ملا نه تړلے وه ځان ئې اولیدلو تعبیرئې دا دے چه په طاعت کښې به مجتهد جوړ شی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، بربنډ لیدل، تعبیرئے محنت او رسوائی
ده او که پټ عورت اوګوری نیک سړی ته به ښۀ وی او بدکار ته به بد وی
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی بربنډ لیدل نیک سړی ته خیر او
نیکی ده او بدکاره ته بدی، رسوائی او بے حرمتی ده۔

**بریت۔ (بُروت)** خوب کښے بریت لیدل دَهیبت ناک سړی دلیل دے که چرے خوب اوګوری چه دَده
بریت چا قینچی سره سم کړی دی۔ تعبیرئے نیک دے۔ نقصان به ورته
نۀ وی او که اوګوری چه دَده بریت سمولو په وخت دَ وجود نه پریوتل تعبیر
ئے نقصان او هیبت دے۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی، که څوك اوګوری چه دَده بریت
لوے شوی دی تعبیرئے طاقت دے۔
او که اوګوری چه دَده بریت چا شکولی دی تعبیرئے دَ چاسره به جنګ کوی
او که اوګوری چه دَده بریت اوږده دی، تعبیرئے غم او فکر دے او که واړه
وی تعبیرئے عزت، مرتبه او دَ مراد پوره کیدل دی۔

**بزه۔ (بُز)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے نرچیلے سړے
دے او ښځه چیلۍ ښځه ده۔ او که خوب کښے اوګوری چه نا
معلوم چیلے ئے وژلے دے۔ تعبیرئے دَچه لوے سړی باندے به کامیاب شی۔
او که اوګوری چه دَچیلی څرمن ئے ویستلے ده۔ تعبیرئے ډیر مال به ورته
ملاویږی او دا به جمع کوی او که اوګوری چه دَ هغۀ غوښه خوری تعبیرئے
مال به خوری او که اوګوری چه په هغه سور دے او وریاندے ګرځی تعبیرئے دَچه
جرته دَ لوی سړی سره چل او فریب کوی او هر طرف ته چه غواړی ګرځی به۔
او که اوګوری چه چیلی دَ شانه اوغورزولو تعبیرئے دَچه خوب لیدونکے به دَ مرتبے
پریوزی او که اوګوری چه دَچیلی خکرے اوږدے دی او مضبوطے دی په شمار کښے
زیات دی تعبیرئے خپل عمل او دَ سردار په عمل کښے به مضبوط وی۔
او کارونو کښے به کامیاب وی او که خوب کښے اوګوری چه ویښته ئے زیات شوی
دی تعبیرئے مال به ئے زیات شی۔ او که اوګوری چه پشم ئے اخستے دے
تعبیرئے دَدے په اندازه به دَخوی مال به اخلی که اوګوری چه چیلے ئے اخستے
ده یا چا ورکړے ده۔ تعبیرئے دَچه واده به کوی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی، که څوك خوب کښې اوګوري چه چیلۍ ئې اولوشله او هغه یئ ئې وخښل تعبیر ئې دَ ښځې نه به مال او مومي، اوکه اوګوري چه چیلۍ ئې حلاله کړې ده او غوښه ئې خوړلې ده، دَ هغه ښځې نه به ئې ضرورت پوره کیږي او که اوګوري چه چیلۍ ئې دَ غوښې دَ پاره نهٔ ده حلاله کړې تعبیر ئې دَ ښځې سره به نکاح کوي او دَ هغې نه به فائده نهٔ وي او که اوګوري چه چیلۍ ئې دَ کور نه بهر کړې ده۔ تعبیر ئې دا دے چه ښځې ته به طلاق ورکوي او که اوګوري چه دَ چیلو رمه په کور کښې لري یا بل کوم ځای کښې ده او پوهیږي چه دا زما رمه ده تعبیر ئې په دے اندازه به هغهٔ ته مال، نعمت، غنیمت حاصلیږي او که اوګوري چه دَ چیلو رمه ځنګل کښې څروي او چه کوم ځائې دے غواړي او هلته ئې بوځي تعبیر ئې دا دے چه په عربو او عجمو به حکومت کوي۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلي دي که څوك اوګوري چه دَ چیلۍ غوښه ئې خوړلې ده تعبیر ئې دا دے چه بیمار به شي مګر زر به جوړ شي۔ دَ چیلۍ څرمن پشم، شودهٔ لیدل خیر او برکت دے او هغه مال دَ چه به ورته ملاویږي۔ او که اوګوري چه دَ چیلۍ بچې چا ورکړے دے یا ئې موندلے دے یا ئې په خپله اخستے دے تعبیر ئې مبارك ځوي به ئې پیدا کیږي او که دَ چیلۍ بچے ئې وژلے دے تعبیر دَ دهٔ ځوي به هلاك شي۔ او که اوګوري چه دَ چیلۍ دَ بچې غوښه خوري تعبیر ئې دا دے چه دَ ځوي دَ مال نه به څهٔ حصه خوري۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلي دي چه چیلۍ خوب کښې لیدل دَ لښکر مقدمه ده که چیلۍ پیدا کړي او و ربانده سورشي تعبیر ئې دا سړے دَ لښکر سردار به وي او که عام سړے وي تعبیر ئې دا دے چه دَ دهٔ ملاویدل به دَ لښکر سردار سره اوشي او مال دار به شي۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلي دي چه ما دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي دي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم او فرمائیل که څوك په خوب کښې اوګوري چه دهٔ چیلۍ واخستو او کور ته ئې بوتلو تعبیر ئې دا دے چه خلو ییښتو ورځو کښې به دَ دهٔ فقیري او غریبي لرې شي۔ او که دا خوب دَ چیلو څرڅوونکې اوګوري نر او ښځې به جمع کوي۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلي دي دَ چیلۍ خوب کښې لیدل او دَ هغې غوښه خوړل دَ مال جمع کول دي۔ ځینې معبرین وائي چه دهٔ ته به

جمع شوے مال ملاویږی.
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی چه دَ چیلئے لیدل او خوړل که خوند ورله دَه تعبیر ئے دَ خیر اودَ فائدے دے او که بے خوندہ وَه نو دَ غم او فکر تعبیر لری.

**بستره. (بستر)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، بستره خوب کښے لیدل تعبیر ئے ښځه دَه اودَ نیک او بد تعلق ئے ښځے سره دے. که خوب اوګوری چه بستره ئے بسترے سره بدله کړے دَه یا دَ یوے بسترے نه بلے بسترے ته لاړ دے تعبیر ئے دوېمه ښځه به کوی او اولنے ښځے ته به طلاق ورکوی. او که اوګوری چه دَ بسترے حالت بدل شوے دے تعبیر دَدے دَ ښځے حالت به ئے بدلیږی. او که اوګوری چه بستره ئے دَ بل چا شوے دَه اودَ بل چا بستره دَ دَهٔ شوه تعبیر دَدے چه بَله ښځه به کوی او اولنے ته به طلاق ورکوی او که اوګوری چه خپله بستره ئے خرڅه کړه او یائے غونډه کړه تعبیر دَدے چه ښځے ته به طلاق ورکوی او یا به ورنه غائبه کیږی او دَدے دواړو نه به یو کس مړ کیږی.

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوك خپل ځان په یوه نا معلومه بستره اوګوری تعبیر ئے دَ هغے دَ قیمت په اندازه به ورته نقصان ملاویږی. او که اوګوری چه بستره دَ دَهٔ په یو نا معلوم کښے خوره شوے دَه او دے پرے ناست دے. تعبیر دَدے چه بزرګی او نفع به بیا مومی او دښمن به ئے ناکامه شی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی. بستره په خوب کښے ولایت او تن اسانی دَه دَ الله تعالیٰ کلام دے (مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ فُرُشٍ بَطَائِنُهَا مِنْ إِسْتَبْرَقٍ) ترجمه، په داسے فرشونو به تکیه لږولی وی چه هغے کښے به دننه ریښم وی. (الرحمٰن ۵۴)

او که خوب کښے اوګوری چه بستره ئے دَ کور نه بهر اچولے دَه او بیا ئے کورته راوړله تعبیر ئے ښځے ته به طلاق رجعی ورکوی. او که خپل ځان په درے ګو بسترو ملاست اوګوری تعبیر دَدے چه دَ بسترو په شمار به ښځے کوی یا به وینځے اخلی. او که خپله بستره په خپل کور کښے اووینی او یائے په

غار کښې اوګوري او د غار نه ئې بهر نشي راوېستے، تعبیر دے چه ښځه به ئې بیماره شي او د تکلیف نه به نه خلاصیږي. اوکه خپل ځان په ترمه بستره اوده اوګوري، دا کال به په ده مبارک وي او که اوګوري چه د ده بستره پښم نه ډکه ده تعبیر دے چه ډیر به مالداره ښځه کوي. که اوګوري چه د ده بستره اوشلیده یا اوسوزیده. تعبیر دے چه مرګ ئې نزدے شوے او د ده عیال ته به د دین او د عیال شرم نه وي.

اوکه اوګوري چه د ده د ریښمو بستره په سوترو بستره بدله شوے ده. تعبیر ئې بدکاره ښځه به لرے کړي نیکه ښځه به کوي اوکه اوګوري چه د ده بستره مړ وخوړله ده او سوړے کړیده. تعبیر ئې د ده ښځې سره چا نالائقه معامله اوکړه او دے وربانده پوه شو او راضي شو اوکه ویلي چه د ده بستره هوا کښې زوړنده ده او د ده بستره په اوچت ځائے غوړولے شي تعبیر ئې دا دے چه د ده شغل به اوچت وي او دولت به بیا موږي.
اوکه اوګوري چه بستره د ده د هوا نه په زمکه راغورزیدلے ده تعبیر ئې د ده ښځه به بیماره شي او بیا به ښه شي.

حضرت دانیال فرمائیلي دي که خپله بستره شنه اوګوري تعبیر دینداره او پرهیزګاره ښځه به کوي. اوکه اوګوري چه بستره ئې زېړه وه او نوے شوه. تعبیر دے چه بیا خویه ښځه به ئې نیک خویه شي.
اوکه اوګوري چه شنه بستره ئې سره شوے ده تعبیر دے چه ښځه به ئې د فساد طرف ته مائله شي اوکه د دے خلاف اوګوري نو د فساد نه به ښه والي طرف ته مائله شي. اوکه اوګوري چه د ده بستره د سرو نه سپینه یا زیړه شوه. تعبیر دے چه ښځه به ئې د ګناه نه توبه اوباسي، بیماره به وي او د مرګ ویره به ئې وي او که اوګوري چه خپله بستره ئې غوړولے ده او بالښت ئې پرے ایښے دے، تعبیر دے چه دے به ښځه کوي یا به غلام وینزه اخلي اوکه په خپله بستره بالښت لګیدلے اوګوري. تعبیر ئې په غلامانو دے. د الله تعالیٰ کلام دے (وَ نَمَارِقُ مَصۡفُوۡفَةٌ) (الغاشیه ۱۵) ترجمه: او قالینونه په قطار قطار لګیدلي وي.

اوکه نامعلومه ځائے بانده بستره اوګوري، تعبیر دے چه زمکه به اخلي او یوه (قلبه) به پکښې کوي او ځنې معبرین وائي چه وراثت به مومي.

اوکه اوګوري چه په بستره باندے اُودهٔ دے، تعبیردے چه اسانتیا او آرام به
مومي۔ اوکه اوګوري چه په هوا کښے په بستره باندے اُودهٔ دے۔ تعبیردے
چه دَ ښځے په وجه به مرتبه او بزرګي بیا مومي۔ اوکه اوګوري چه دَده بستره
شلیدلے ده، تعبیرئے دَدهٔ ښځه به ناکاره وي۔ معبرین وائي چه دَدهٔ
ښځه به مړه کیږي۔
اوکه اوګوري چه دَ دهٔ په بستره اُور لګیدلے دے او وسوزیدله تعبیرئے
دے چه یا به ښځے ته طلاق ورکړي او یا به مړه شي۔
حضرت جعفرصادقؒ فرمائي په خوب کښے بستره لیدل په څلورو
وجوه دي (۱) ښځه (۲) ویره (۳) ولایت (۴) ژوند، نفع اوتن آساني.

## بطه - (بط)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښے بطه لیدل تعبیرئے مال او نعمت دے چه په خپل کور او ملکیت کښے اوګوري هغومره مال او نعمت به مومي اوکه اوګوري چه ډیرے بطے دَدهٔ په کور یا په کوڅه کښے جمع شوي دي او اوازونه کوي تعبیرئے دادے چه په دے کلي به آفت او مصیبت راځي اوکه اوګوري چه دَ بطے سره خبرے کوي تعبیرئے دَ مالداره ښځے په وجه به سفر کوي او هغے کښے به عزت او فائده اومومي۔
حضرت ابراهیم کرمانيؒ فرمائیلي دي په خوب کښے دَبطے لیدل دَخاندان یو عزتمند مالداره او دبدبے والا سړے دے اوکه اوګوري چه دهٔ څه مونډلي دي تعبیرئے دَ هغے صفت والا سړي نه به څهٔ بیا مومي.
حضرت جعفرصادقؒ فرمائیلي دي په خوب کښے سپینه بطه لیدل مال دے یا مالداره ښځه ده او توره بطه لیدل ویره ده اوکه اوګوري چه بطه ئے اووژله او دَ هغے غوښه ئے اوخوړله، تعبیرئے دَ ښځے حال به میراث کښے مومي۔

## بادشاه (سلطان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که اووینی چه بادشاه چرته سرائے یا مسجد یا ښاریے یا کلي ته راغلے دے، تعبیرئے دلته به غم او مصیبت پیښیږي دَ الله تعالیٰ فرمان دے (اِنَّ الْمُلُوْکَ اِذَا دَخَلُوْا قَرْیَةً اَفْسَدُوْهَا) ترجمه: بادشاهان چه کوم کلي یا ښاریے ته داخل شي نو هغه خرابوي، که او وینی چه بادشاه په جنګ کښے په

بادشاه کامیاب شوے دے، تعبیر ئے دے چه څه حاجت چه لری هغه به پوره شی او څل مقصد ته به اورسیږی. که اووینی چه بادشاه ورته بے لاس پریکړے دے. تعبیر ئے دے چه دهٔ ته به قسم ورکوی. که اووینی چه بادشاه دَ تخت نه پریوتے دَ یا تخت مات شوے دے یا آس په لته وهلے دے یا ئے توره ماته شوے ده یا غواړی په ښکر وهلے دے او دے ئے زخمی کړے دے، دا ټول دَ بادشاهئ زوال نښے دی. که چرے بادشاه عادل او انصاف دار اووینی، تعبیر ئے دَ عدل په اندازه به شرف او بزرګی بیا مومی. که اووینی چه بادشاه ډیر لوے قالین غوړولے دے، تعبیر ئے دَ دهٔ ملک به لوئے شی او عمر به ئے اوږد وی.

حضرت مغربیؒ فرمائی که بادشاه خپل کار نیک اووینی تعبیر ئے دے چه عزت او مرتبه به ئے زیاته شی. که مړ شوے بادشاه خندان رُویه او خوشحاله اووینی او دَ دهٔ سره خبرے وکړی. تعبیر ئے دے چه دَ دهٔ کار به نیک وی او دَ دهٔ مسر شغل به بیا راژوندے شی.

## بنګړی یا ګړے. (یاره)

دا دَ لاس دَ ګهو دَ جنس څخه ده.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اووینی چه دهٔ دَ سرو زرو ګړے په لاس کښے اچولے دی تعبیر ئے دے چه څهٔ تکلیف او زحمت به ورته رسیږی. او که دَ سپینو زرو وی تعبیر ئے، کمتر غم او فکر به ورته ورسیږی. خلاصه دا ده چه دَ ښځو دَ استعمال څیزونه دَ سړو دَ پاره ښهٔ نهٔ دی همدا رنګه دَ سړو څیزونه دَ ښځو دَ پاره ښهٔ نهٔ دی او کلو بند او دَ غوږونو والئے وغیره چه دَ بادشاهانو دَ پاره زینت دے هغه دَ سړو دَ پاره ښځے دی او دَ ښځو دَ پاره خاوندان دی. دَ هغے قیمت په اندازه څهٔ چه دوئ لیدلی دی او وضاحت او تفصیل دَ هر شی اغوستل دَ لفظ مطابق دَ دے کتاب په اول کښے بیان شوے ده.

## بلبل لیدل. (بلبل دیدن)

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی بلبل لیدل تعبیر ئے عقلمند ځوی او غلام دے خوب کښے دَ دهٔ او از اوریدل تعبیر ئے دَ خوشحالئ خبر دے. که خوب کښے اولیدل چه بلبل والوتو تعبیر ئے دَ دهٔ ځوی یا غلام به ضائع کیږی. او که اوګوری چه بلبل دَ دهٔ په لاس کښے مړ شو تعبیر ئے دے چه دَ دهٔ ځوئ یا غلام به مړ کیږی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که څوك اوګوري چه دَدهٔ سره بلبلان دي، تعبیر ئې دَ دې چه هغې په اندازه به غلامان اخلی. اوکه په خوب کښې اوګوري چه بلبلان ئې مړهٔ کړي او دَ هغوی غوښه ئې اخستې ده تعبیر ئې په میراث کښې به ورته ډیر غلامان رسیږی.

## بلغم لیدل ۔ (بلغم دیدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی بلغم خوب کښې لیدل مال دے۔ چه دَ هغې بنهٔ کولودَ پاره مال خرچ کوی۔ که څوك اوګوري چه څوك بلغم ځائې په ځائې غورزوی تعبیر ئې دَ دې چه اول خلاف دے۔ که څوك اوګوري چه دَ مرئ نه بلغم په پاك ځائے غورزوی۔ تعبیر ئې په سم ځای به مال خرچ کوی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که بیمار اوګوري چه دهٔ بلغم غُرځولی دی تعبیر ئې دَ دې چه بیماری نه به شفا مومی اوکه اوګوري چه توربلغم ئې غُرځولی دی تعبیر ئې دَ دې چه غم او فکر دے اوکه بلغم کښې وینه اوګوري تعبیر دَ دې چه مال به ئې څهٔ نقصان اوشی اوکه اوګوري چه بلغم ئې په خپل کور کښې غُرځولی دی، تعبیر ئې به پردو خلکو به مال خرچ کوی. اوکه اوګوري چه په جومات کښې بلغم غُرځولی دی، تعبیر ئې دَ دې چه مال به دَ صلاح په طور په پردو خلکو خرچ کوی۔

## باتئ ۔ (پلیته)

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی، که څوك اوګوري په خوب کښې چه باتئ بله کړي تعبیر ئې حاکم دے چه خلک ورنه ګیر چاپیره وی او دَ دهٔ خدمت کوی اوکه باتئ بله نهٔ وی، نو دَ دے تعبیر دَ اول نه خلاف دے۔

## بیړئ اچول ۔ (بند نهادن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې بیړئ لیدل تعبیر دَ دهٔ په دین کښې خلل دے او دَ اسلام په دروغه مُدعی دے۔ همدارنګه بخیل دے۔ چاته دَ دهٔ نه هیڅ فائده نشته دے۔ ځنې معبرین وائی، که څوك نیک سړے په خپل لاس کښې اتکړئ اوګوري، تعبیر ئې دَ دې چه دَ خراب او ناموافقه کار نه به منع شی اوکه دَ لرګی بند اوګوري کوم شے چه مونږ بیان کړے دے کم او اسان به وی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک خپل مخ کښې د
لرګی بیړۍ اوګوری تعبیر ئې دَ دهٔ په ذمه پر دے امانت دے چه
هغه ته ئې دے ورکړے۔ اوکه دَ لرګی بیړۍ په پښو کښې اوګوری تعبیر ئې
دَ حق اطاعت نه به بند شی اوکه په سفر کښې وی نو سالم به کور ته راشی
اوکه په څټ کښې دَ چاندی هتکړۍ اوګوری تعبیر ئې دے چه د ښځې په وجه به
غم او زحمت ورته رسی اوکه دَ سرو زرو هتکړی اوګوری تعبیر ئې دَ مال
په وجه به ورته غم رسیږی۔ اوکه دَ تانبې اوګوری تعبیر ئې دا دے چه دهٔ
دَ غم وجه کسب او معاش دے۔ اوکه اوګوری چه هتکړۍ ماتے کړیدی
تعبیر ئې دے چه دهٔ دین کښې خلل دے۔ که دَ لاس هتکړۍ ئې ماتے وی او
که اوګوری چه دَ دهٔ د پښو نه چا بیړۍ ویستلے دی۔ تعبیر ئې دَ بادشاه
دَ نوکری نه به خلاصے او مومی۔ اوکه په خپلو پښو کښې بیړۍ اووینی تعبیر
ئې دے چه دهٔ ملګرتیا به دَ کوم منافق سره وی۔ اوکه خپلے خپے سره په رسۍ تړلی
اوګوری، تعبیر ئې دے چه دهٔ ته به دَ چا نه فائده وی.

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی که څوک اسیر اوګوری چه دَ دهٔ پښو کښې
پرته بیړۍ اوګوری تعبیر ئې دے چه دَ خپل وطن نه به په سفر ځی او په هغه
کښې به اوسیږی. اوکه په دواړو پښو کښې بیړۍ اوګوری تعبیر ئې ولایت
به او مومی اوکه اوګوری چه پښو کښې څلور هتکړۍ دی۔ تعبیر ئې دَ دهٔ
به څلور ضامن وی۔ اوکه اوګوری چه دهٔ دَ پښو نه بیړۍ ویستلے دی تعبیر
ئې، دَ غمونو نه به خلاصے او مومی۔ اوکه امیر اوګوری چه دَ دهٔ پښے په
هتکړو او زنځیرونو کښې دی، تعبیر ئې دے چه دهٔ ته به دَ عیسایانو نه فائده
وی او ځنې معبرین وائی چه دَ دهٔ کار به اسان وی۔ اوکه اوګوری چه دَ دهٔ
هتکړۍ دَ چاندۍ دی تعبیر ئې دے چه د ښځې سره به نکاح کوی یا به چرته په
ښځه عاشق کیږی اوکه چرے اوګوری چه دَ دهٔ هتکړۍ دَ سرو زرو دی،
تعبیر ئې دے چه یا به په سفر ځی یا به بیمار شی اوکه دَ اوسپنے هتکړۍ اوګوری تعبیر
ئې دے چه چرته لرے سفر به کوی.

حضرت جابر معربیؒ فرمائیلی دی۔ په خوب کښې هتکړۍ لیدل دَ دین
مضبوطوالے دے ځکه چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی (اُحِبُّ الْقَیْدَ
فِی النَّوْمِ وَلَا اُحِبُّ الْغُلَّ لِاَنَّ الْقَیْدَ ثُبَاتٌ فِی الدِّیْنِ ط) ترجمه: زهٔ په خوب کښې

قید خوښوم او دَ ښځې بنل نهٔ خوښوم ځکه چه دَ پښو بند په دین کښې ثابت قدمي ده
حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، هتکړۍ لیدل خوب کښې په غلو روو چې دي. (۱) کفر (۲) نفاق (۳) بُخل (۴) لاس دَ ګناه نه منع کیدل۔
او ځنې معبرین وائي په خوب کښې هتکړۍ لیدل تعبیر ئې دا سې دے چه دَ ظالم بادشاه دَ ظلم نه به بچ شي۔

## بنفشه۔ (یو قِسم تریاق ګل دے)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي چه په خوب کښې په موسم کښې بنفشه اوګوري تعبیر ئې دا دے چه ښځې یا دَ وینځې نه به ورته ځوځ ملاویږي او یا به ئې ځوي پیدا شي۔ او که دا چرے دَ خپلے ونے نه جُدا اوګوري تعبیر ئې دا دے چه دا سړے به په غم او فکر کښې ګیریږي۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلي دي که ښځه اوګوري چه بنفشه اوباسي او خپل میړهٔ ته ئې ورکوي۔ تعبیر ئې میړهٔ به ورته طلاق ورکوي او که اوګوري چه دهٔ ته دَ بنفشه دسته ورکړے ده۔ تعبیر ئې دا دے چه دوئ کښې به جدائي راځي۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلي دي دَ بنفشه ونه تعبیر ئې بدخویه او نا موافقه وینزه ده۔

## بنیاد کیښودل۔ (بنیاد نهادن)

که څوک خوب اوګوري چه نوے بنیاد ئې ایښے دے تعبیر ئې دا دے چه هغې په انداز به دَ خاص او عام نه فائده اوګوري او که په نا معلوم ځائے باندے بنیاد ایښے دے او دا ورته نهٔ دي معلوم چه دا دچا ملکیت دے تعبیر ئې دَ دین او دُنیا کارئې بے فائدے دے۔ او که اوګوري چه بنیاد ئې پخپله زمکه ایښے دے، تعبیر ئې دَ حلالې روزۍ نه به فائده او ګټوي۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه بنیاد ئې دَ ښخو خښتو او چونے ایښے دے۔ تعبیر ئې دا دے چه دهٔ ته به حلال مال ملاویږي۔ او که اوګوري چه کچه (خامو) خښتو بنیاد ئې په هوا کښې ایښے دے۔ تعبیر ئې دَ دین په کار کښې به ئې مرتبه اوچته وي۔ او که اوګوري چه دَ ښخو خښتو بنیاد ئې ایښے دے او اوچت کړے ئې دے۔ تعبیر ئې دا دے چه دَ دُنیا کار و بار کښې به مشغول وي او که خوب لیدونکے پخپله بنیاد ږدي او مزدوري اخلي، تعبیر ئې د بادشاه

نه به نفع مومي. او که او ګوري چه بنیاد ئې د کچه وُخښتو او خښتو جوړ کړې ئې او او چت ئې کړو. تعبیر ئې دا دے چه د عام خلکو نه به فائده حاصلوي.
حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه ده ښار جوړ کړے دے. تعبیر ئې دا دے چه د خلکو د له به پناه کښې اخلي او که اوګوري چه قلعه ئې جوړه کړے ده تعبیر ئې دا دے چه د دښمنانو د شرارت نه به په امن کښې وي. او که اوګوري چه محل ئې جوړ کړے دے. تعبیر ئې دا دے چه د دُنیا په کارونو کښې به مشغول وي او که اوګوري چه سرائے ئې جوړ کړے دے او پکښې ناست دے تعبیر ئې دا دے چه د فائدے شے به اوګوري.
او که اوګوري چه مسجد ئې جوړ کړے دے، تعبیر ئې دا دے چه خلک به د ښه طرف ته رابلي. او که اوګوري چه د منارے بنیاد ئې ایښے دے. تعبیر ئې دا دے چه نوم به ئې په نیکو کښې ظاهر یږي. او که اوګوري چه نقشه والا شے ئې جوړ کړے تعبیر ئې دا دے چه ښځه به کوي. او که اوګوري چه حمام (سقاوه) ئې جوړ کړے تعبیر ئې غم او فکر کښې به پریوزي. او که اوګوري چه باغ ئې جوړ کړے دے تعبیر ئې پرهیزګاره او دولتمنده ښځه به کوي او که اوګوري چه قبر ئې جوړ کړے تعبیر ئې، د قدر او مرتبے تلاش به کوي او که اوګوري چه بنیاد تیار شوے دے تعبیر ئې، د دین او د دُنیا کاروبار به پوره کوي او که نیمګړے وي تعبیر ئې د ده کار به نیمګړے وي. او که اوګوري چه قبرستان ئې جوړ کړے تعبیر ئې د آخرت په کارونو کښې به مشغول شي.

## بهئ - (به)

بهئ یوه میوه ده چه د هغې تخم بهئ دانه ده ده. د بهئ په لیدلو کښې د دے فن استاذانو اختلاف کړے دے. ځنې وائي چه بهئ خوب کښې اوګوري تعبیر ئې د بزرګ او سردار سړي سره به ملاویږي د هغوئ نه به نفع او خیر او مومي او ښه صفت به ورته اوري.
او ځنې وائي چه د بهئ لیدل تعبیر ئې خوئ دے او ځنې وائي چه بیماري ده چا چه بیماري ښودلے ده هغوئ داسے وائي چه زیړ رنګ ئې د بیماري تعبیر دے څوک چه د لوے سفر تکلیف سره وائي د وئ په دے دلیل وائي، کوم وخت آدمؑ د جنت نه را ویستل کیدو نو جبرائیلؑ ورته بهئ ورکړے وو په دے وجه د لوئے سفر او غم او فکر تعبیر لري ځکه چه آدمؑ دُنیا ته د قسما قسم غمونو، فکرونو سره راغلے وو چه ورته ورسیدل او چا چه په خوئ سره تعبیر کړے دے. د دوي

دادلیل دے چه کله آدمؑ دُنیاته راغلو نودَ ههٔ خوړلو سره ئے منی زیاته شوه په دے وجه دا ډیر اولاد پیدا شو. او څوک چه وائی چه بزرګ سردار نه به ښهٔ تعریف، خیرا و فائدے او مومی دَدوئ دلیل چه دَ ههٔ درکونکے حضرت جبرائیلؑ وو او اخستونکے حضرت آدمؑ وو. په دے وجه ئے ښهٔ تعریف او نفع ئے او موندله استاذا توچه هر یو تعبیر دَدے خوب بیان کړے سرسری نهٔ دے بیان کړے۔

حضرت جعفرصادقؒ فرمائیلی دی په موسم په خوب کښے دَ شنه ههٔ لیدل تعبیر ئے څوی دے او که بے وخته او زیړ اوګوری نو تعبیر ئے بیماری ده چه بیمار به شی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی دَ ههٔ لیدل دَ بیماری تعبیر دے که په موسم کښے اوګوری او که بے موسمه او که زیړ رنګه ههٔ اوګوری، دَسختے بیمارئ تعبیر لری۔

## بیزو۔ (بوزینه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے دَ بیزو لیدل دَیو فریبی ملعون دُښمن تعبیر لری. که اوګوری چه دَ بیزو سره ناست دے او دَ دهٔ تابع دهٔ تعبیر ئے، په دښمن به کامیاب شی او تابع به ئے کړی. او که اوګوری چه بیزو سره جنګ کوی او ورنه ویریدو تعبیر ئے بیمار به شی مګر زر به جوړ شی یا به ئے په بدن کښے نقصان وی چه به ورنه نهٔ خلاصیږی۔

حضرت ابراهیمؒ فرمائیلی دی که اوګوری خوب چه بیزو ئے وژلے ده تعبیر ئے دښمن به ناکام کړی او که اوګوری چه دَ هغې غوښه ئے خوړلے ده. تعبیر ئے، غم او خفګان کښے به ګرفتار شی. او که اوګوری چه چا ورته بیزو بخښلے ده. تعبیر ئے څوک به ورسره دښمنی کوی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه دهٔ بیزو وژلے ده۔ تعبیر ئے، بیمار به شی مګر زر به جوړ شی. او که اوګوری چه بیزو ګئی به اَس ناسته ده، تعبیر ئے، یهودی به دَ دهٔ ښځے سره فساد کوی او بیزو دَ دهٔ په خوب کښے فساد ناکه ښځه او جادوګره ده۔ او که اوګوری چه بیزو دَ دهٔ کورته راغلے ده تعبیر ئے، په هغه کور کښے به ښځه جادو کوی او که اوګوری چه بیزو ورسره خبرے کوی، تعبیر ئے، دَ دهٔ ښځه به نقصان کوی او که

اوګوري چه د ے بېزو خوړلے د ے تعبیر ئے،د ے به بیمار شي او یا به دَ
خپل اولاد نه بد ے خبر ے واوري۔ او که خوب کښے اوګوري چه بېزو ورته
څه شے ورکوي یا دهٔ ورنه واخستو او وے خوړلو، تعبیر ئے خپل مال
به برباد کړي په اهل بیت خرچه کړي۔

## بیت المعمور

بیت المعمور په څلورم اُسمان یو مکان د ے هلته فرښتے حج کوي۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که څوک خوب کښے اوګوري چه بیت المعمور ته تللے د ے تعبیر ئے،دَ خلکو په وړاندِ ے به دَ علم او امانت سره ښکاره شي اودَ بیت الله شریف حج به کوي او دَ دښمنانو نه به په امن کښے وي او که بیت المعمور په زمکه کښے اوګوري تعبیر ئے،دَ عالم او انصاف والا بادشاه به ملګر ے وي۔ او که اوګوري چه بیت المعمور کښے ئے کور جوړ کړ ے او یا په کښے اُوده د ے۔ تعبیر ئے،دَدهٔ مرګ نزد ے شو ے د ے۔ او که اوګوري چه دَ بیت المعمور نه اخوا دیخوا طواف کوي، تعبیر ئے،دَ دُنیا نه به سفر کوي۔ او که چا بیت المعمور دَ مسجد په شکل اُولیدو او په هغے کښے ئے مونځ اوکړو تعبیر ئے،ټول مرادونه به ئے پوره کړ ے شي۔

حضرت ابراهیم کرمانيؒ فرمائیلي دي،که څوک اوګوري چه دَ مکے نه تر بیت المعمور لار پرانستے ده۔ تعبیر ئے، په د ے کال کښے به حج او عمره کوي او که اوګوري چه بیت المعمور ښاګسته شو ے د ے او فرښتے ورنه طواف کوي تعبیر ئے، عالمان او اهل دین به په انتظام سره وي.
او مرتبه به موم‍ي۔

## بُوډا کیدل۔(پیر شدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که خوب اوګوري چه بُوډا شو ے د ے او ویښتان ئے سپین شوي دي۔ تعبیر ئے،عزت او مرتبه به بیا مومي۔
او که نامعلوم بوډا اوګوري چه خوشحاله د ے تعبیر ئے،دَ کوم دوست نه به ئے مرادونه پوره کړ ے شي او که معلوم بوډا په خوب کښے اوګوري چه خوشحاله د ے تعبیر ئے،دَدهٔ نه به هغهٔ ته کوم شے ملاویږي۔
او که تریو تند ے او غمګین ئے اوګوري دَد ے تعبیر دَ اول په خلاف د ے.
حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي که څوک خوب کښے اوګوري چه بُوډا ځوان شو ے د ے تعبیر ئے،دَدهٔ عزت او مرتبه کښے به نقصان وي۔ دُنیا

کښې به مغروره وی او که ځوان یا ماشوم او ګوری چه هغه بوډا شوے دے
تعبیر ئې عزت او مرتبه به بیا مومی او د آخرت کار کښې به مشغول وی.

**برګے مرض۔ (پیسی)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی برګے مرض په خوب کښې لیدل مال او دولتمندی ده او
که اوګوری چه د دهٔ په وجود برګے مرض دے تعبیر ئې په دے اندازه به دولت او مال حاصل کړی او څنے معبران وائی چه برګے مرض خوب کښې لیدل تعبیر ئې میراث دے.
حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی برګے مرض په خوب کښې لیدل په څلورو وجو دے (۱) مال (۲) میراث (۳) نفع (۴) د شغل کار ظاهریدل.
حضرت جابر معربیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه د دهٔ صحبت د برګی مرض بیمار سره شوے دے که هغه پرهیزګاره او نیک وی تعبیر ئې دهٔ ته به د آخرت څهٔ ګټه حاصل کړے شی. او که دا خوب مفسد او بخیل سړے اوګوری تعبیر ئې د حرامونه به نفع مومی.

**بیهوشی۔ (بیهوشی)** حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښې اوګوری چه بیهوشه شوے دے او
عقل ورنه لاړ دے. تعبیر ئې دا سے کار به ورته پیښ شی چه حیران او پریشانه به وی مګر نتیجه به ئې ښهٔ وی.
حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی په خوب کښې بیهوشی په دوه برخوده اول په کارونو کښې سختی (۲) حیرانتیا، پریشانی عاجزی او لاچاری.

**بے هوشی۔ (مستی)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې بے هوشه کیدل تعبیر ئې حرام مال او د
موڅ سستی ده. د الله تعالیٰ کلام دے (یَآاَیُّهَا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَقۡرَبُوا الصَّلٰوةَ وَاَنۡتُمۡ سُکٰرٰی) ترجمه: اے مؤمنانو مهٔ نزدے کیږئ موڅ ته په دا سے حال کښې چه تاسے نشه یئ)
حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، په خوب کښې بیهوشی په څلورو وجوده (۱) مال (۲) دولت (۳) طاقت او کمزوری (۴) هغو مره ویره.

**بد هضمی۔ (تخمه)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک خوب اوګوری چه دے بد هضمه شوے دے

تعبیر ئے، دے دَسود مال خوری او دے وربانذے خرابیږی، ورته پکار دی چه توبه اوباسی دَ پاره دَدے چه دَ الله تعالیٰ عذاب نه خلاص شی. دَ معبرینو اتفاق په دے دے چه خوب کښے بدهضمی لیدل دَبیګرے دلیل دے حضرت جعفرصادق رح فرمائیلی دی، بدهضمی لیدل خوب کښے په څلورو وجودی (۱) دَسودمال (۲) فساد (۳) حرام مال (۴) دَنفسی خواهشاتوتابعداری.

## بدن دَ انسان - (تن مردم)

حضرت ابن سیرین رح فرمائیلی دی، دَ انسان بدن خوب کښے لیدل تعبیر ئے غم اوفکر دے چه دَ خلکو رزق دے او څومره چه بدن کښے زیاتے کمے وینی، تعبیر ئے عیش او معاش دے، او که اوګوری چه بدن ئے کمزورے او مانده دے. تعبیر ئے فقیری او بندکارونه دی. او که خورب بدن اوګوری، تعبیر ئے مالداری او دَ کار فراختیا ده. اوکه اوګوری چه دَ بدن نه ئے تار (رشته) وتلے دے او اوږد شوے دے تعبیر ئے به عیش او فراخی سره به ژوندون تیروی او مال به ئے زیات شی. اوکه اوګوری چه رشته اوتار اوشلیدو تعبیر ئے دَدے خلاف وی.

که اوګوری چه وجود ئے دَ اوسپنے یا دَ تانبے شو، تعبیر ئے عمر به ئے اوږد وی، روزی، نعمت به په دهٔ فراخه وی اوکه اوګوری چه بدن ئے دَ شیشے شو. تعبیر ئے، مرګ ئے نزدے دے.

حضرت ابراهیم رح فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه دَدهٔ وجود تندرست او صحیح دے. تعبیر ئے دَدهٔ کار به په انتظام سره وی، او دَدهٔ راز به پټ وی. او که اوګوری چه دَدهٔ بدن کمزورے دے، تعبیر ئے فقیر به شی او راز به ئے ښکاره شی.

حضرت جعفرصادق رح فرمائیلی دی، که څوک په خپل بدن بانذے زیاتی اووینی، تعبیر ئے قوت، مالداری او کامیابی ده په دُښمن او که خپل بدن بانذے نقصان اوګوری تعبیر ئے دَ اول خلاف دے او که اوګوری چه په وجود دهٔ پرسوب دے تعبیر ئے دَ بیماری دے.

## باجے یو قسم - (سو رود)

حضرت ابن سیرین رح فرمائیلی دی په خوب کښے سو رود لیدل تعبیر ئے دَ دُنیا مستی او دروغژنے خبرے دی که اوګوری چه سو رود غکوی تعبیر ئے

په دردغو به خوشحاله وی او که سورود سره رباب، باجه او شپیلئ اوګوری تعبیرئے مصیبت دے۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه شاه رود ئې مات کړو یائے اوغورزولو تعبیرئے دَدروغوخبرو نه به توبه اوباسی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه شاه رود غږوی، تعبیرئے دَلوئے ښځے سره به ملاویږی او دَهغے نه به عزت او مرتبه حاصلوی.

**بُزغلے (تخم) (شیه)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه ورسره بزغلے دے او یائے اخستے دے او په هغے کښے ئے سوری کړی وو۔ تعبیرئے دَ دهٔ لور به پیدا شی او که داسے نۀ وی، نوغمژن به شی اوشین او تور بوټے په دین کښے خیرنهٔ دے۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی په خوب کښے سپین اوشین بزغلے لیدل دَخیرا ونفع تعبیر لری۔ دَغنو په نزدزیړبوټے دَ بیمارئ تعبیر لری۔

**بوتل** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے بوتل لیدل تعبیر ښځه ده. داسے هم وائی چه دا یو نوکر دے چه دَ ښځو خدمت کوی مګر پائیدار نهٔ وی۔ که خوب کښے اوګوری چه چا ورته خالی اوتش بوتل ورکړے دے، تعبیرئے غریبه ښځه به کوی او که اوګوری چه دے بوتل کښے دَ بنفشه دَ ګل تیل دی تعبیرئے دَدیندارے ښځے (دیندار ښځه به کوی)

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے دَ بوتل لیدل تعبیرئے مالداره ښځه ده. او که اوګوری چه دَ دے بوتل نه ئے په سر تیل مرلی دی تعبیرئے دَ ښځے دَ مال نه به ورته څهٔ ملاویږی۔ او که اوګوری چه دَ بوتل نه ئے څهٔ شربت څښلے دے لکه دَ سیب (منړه) او دَ انار شربت وغیره تعبیرئے په هغے اندازه به ورته دَ ښځے مال ملاویږی، او که دَ شیشے سپین بوتل صفا اوګوری، تعبیر پرهیزګاره او مالداره ښځے سره به واده کوی۔

او که اوګوری چه بوتل مات شوید ے تعبیرئے دَ دهٔ ښځه به هلاک کیږی۔

او که اوګوری چه بوتل ئے ضائع شوید ے تعبیرئے ښځے ته به طلاق ورکوی۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دهٔ سره بوتل دے او په بوتل کښے ګلاب یا بل څهٔ خوږ شے دے تعبیر خوش طبعه او موافقه ښځه به کوی۔ او که ګلاب تروش وی تعبیرئے دَ اول خلاف دے۔ او که بوتل کښے څهٔ

بنځه شي اوګوري، تعبیر ئې تقوی دار او هم ښائسته ښځه به کوي.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي په خوب کښې دَ بوتل لیدل درې تعبیره لري (۱) ښائسته ښځه (۲) وینزه (۳) دَ کور نوکر۔

**بوتل** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، په خوب کښې بوتل لیدل تعبیر ئې نوکر دے هغه نوکر چه څوک ورته دَ کور چاپیانے ورکوي که څوک اوګوري چه دَ دهٔ سره بوتل دے او په هغې کښې اوبهٔ یا ګلاب یا بل کوم بو شے دے چه خوراک ئې حلال وي او هغه ئې او خوړل، تعبیر ئې دَ نوکر نه به ورته څهٔ شے ملاویږي. او که اوګوري چه بوتل مات شو او یا ضائع شو تعبیر ئې دَ دهٔ نوکر به تښتي۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلي دي په خوب کښې بوتل لیدل تعبیر ئې نوکر دے خو هغه نوکر چه دَ هغهٔ په لاس کښې هر یو شے وي.

**باجه۔ (صنج)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي چه په خوب کښې دَ باجې لیدل تعبیر ئې بې فائدې او دروغ خبرے دي او که اوګوري چه دَ دهٔ مخکښې باجه غږوي تعبیر ئې په دروغو او باطلو به خوشحال دي او که اوګوري چه دَ باجې سره ډیرئ او رباب غږوي تعبیر ئې دَ غم او دَ فکر دے چه دَ هغه ځائے خلکو ته به رسیږي۔ او که اوګوري چه باجه ماته شوے ده او یا غورزیدلے ده۔ تعبیر ئې دَ بې فائدے او دروغو خبرو نه به توبه اوباسي.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي په خوب کښې دَ باجې غږول په پنځو وجو دي (۱) خراب خبر (۲) بې فائدې کار (۳) اسباب (متاع) (۴) دُنیا (۵) غم او فکر

**باورچي۔ (اشپز)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، په خوب کښې لیدل دَ باورچي دا یو حرصناک سړے دے که اوګوري چه دَ باورچي کار کوي او پخ کړے خوراک ئې مزیدار دے تعبیر ئې خیر او نیکي به بیا موي او که خوراک مزیدارنهٔ وي، تعبیر ئې دَ اول خلاف دے۔

**بوتل (دَ شرابو بوتل)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښې دَ شرابو بوتل لیدل تعبیر بد شکله بوډئ ښځه ده چه هغې ته مال او دَ خوښې شیان سپاري۔ او که دے بوتل کښې اوبه یا دَ ګلاب شربت یا نور داسې شیان چه خوړل ئې

حلال وی خوب کښې اوګوري تعبیرئې بد شکله بوډۍ به حلال خوره وی اوکه بوتل کښې داسې شے ووچه مستی رازولی تعبیرئې دابد شکله بوډۍ به حرام خوره وی۔

مغربیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوري چه دهٔ سره دَشرابو بوتل دے تعبیرئې دَبد شکله بوډۍ سره به ئې ملاقات او صحبت اوکړے شی اوکه اوګوري چه دَشرابو بوتل نه ئې اوبهٔ یا شربتِ ګلاب اوڅښلو تعبیرئې دهٔ نه به دَبوډۍ نه څهٔ خیر او ګټه رسیږی اوکه اوګوري چه دَشرابو بوتل نه ئې تروش شے واخستو تعبیرئې دے به څهٔ غم او فکر کوی اودَ تش بوتل نه څهٔ خیر او شر نهٔ رسیږی اوکه اوګوري چه دا بوتل مات شو نو دَبد شکله بوډۍ نه به جدا شی۔

## بھوس۔ (کاه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې بھوس لیدل ډیر مال او نعمت دے چه دَ غنمو وی اوکه اوګوري چه دهٔ سره ډیر بھوس وی او کورته ئې راوړی دی۔ تعبیرئې دَحلالو مال او نعمت به حاصل کړی۔ اوکه اوګوري چه دَ وربشو بھوس دی، تعبیرئې تیر شوے مفاد به کم حاصلوی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی اوکه اوګوري چه بھوسو ځائې (درمند) ته اور ورغلو او دے پوهیږی چه دا ځما ملکیت دے۔ تعبیرئې مالدار به شی او دَدواړو جهانو مراد به حاصل کړی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوري چه دَ بھوسو (وښو) په ډیری اور لګیدلے دے او وابسهٔ وسوزیدل، تعبیرئې بادشاه به په دهٔ تاوان بردی او مال به ورنه اخلی اوکه اوګوري چه څاروی دَدهٔ وابسهٔ (بھوس) خوری۔ تعبیرئې په کوشش سره به خپل مال ضائع کړی۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی دابسهٔ خوب کښې لیدل په درې وجو دی (۱) حلال مال (۲) دَژندګی کسب (۳) دَزړهٔ مراد او خوشحالی۔

## باجره۔ (ګاورس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښې اوګوري چه باجره خوری تعبیرئې مال او مراد به مومی اوکه اوګوري چه ډیره باجره ورسره ده تعبیرئې په هغه اندازه به مال په تکلیف مومی اوکه اوګوري چه دهٔ باجره خرڅه کړې ده تعبیرئې

دۀ ته نقصان رسیږی.
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که خوب کښې اوګوری چه دَدۀ سر ته بازجره دۀ تعبیر ئې لږ خیر او نفع او لږ مال به بیا مومی.

## بوټي - (کبر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه کبر جمع کوی، تعبیر ئې غمژن به شی خاصکر چه په موسم وی او که اوګوری چه دا بوټی خوری تعبیر ئې دَدۀ غم او فکر به زیات دی او دَکبر خوړلو کښې هیڅ فائده نشته دے.

## بیره - (کنار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښې بیره لیدل تعبیر ئې پاک مال دے په ټولو میوو کښې دَدے خاصیت شته دے او دا هم وئیلے شی چه جنت کښې دَ آدم علیه السّلام میوه بیره وه. که اوګوری چه دۀ بیره خوړلے ده تعبیر ئې په هغه اندازه به مال حاصل کړی خاصکر چه په موسم کښې ئې خوړلے وی.
حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښې دَ بیرے لیدل حلال مال او فراخه روزی ده او که اوګوری چه ورسره دَ بیرو ډهیرے لګیدلے دے. تعبیر ئې ډیر مال به بیا مومی.

## بوډا - بوډئ - (گنده پیر)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی په خوب کښې بوډئ لیدل دُنیا ده، او غټ بوډا مسلمان دے چه په جامو ښائسته دے. تعبیر ئې حلال مال به مومی. که اوګوری چه غټ بوډا په خیرنو جامو کښې دے او کافر دے. تعبیر ئې حرام مال دے او بوډئ ښائسته او دَ ښو جامو میرمنه، تعبیر ئې دا جهان او هغه جهان دے. او که اوګوری چه غټے بوډئ ښځے سره ئې وادۀ کړے دے او دے پوهیږی چه دا دَدۀ ملکیت دے. تعبیر ئې مال به حاصل کړی.
او که اوګوری چه بوډئ ښځه ده او دَ کوره ئې ویستلے ده یائې طلاق ورکړیدے. تعبیر ئې، دَ دُنیا دَ پرینبودو کوشش کوی او دَ آخرت لاره ګوری. او که اوګوری چه غټے بوډئ ښځے سره ئې جماع کړے ده تعبیر ئې دَ دُنیا مراد به مومی.

**بورئ - جوال - (گوال)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښې بورئ په عالم سړی تعبیرلری اوکوم شیان چه په هغې کښې بنۂ او بد دی په دے قول دحضرت علیؓ تعبیرشویدے فرمائیلی ئې دی اِنَّ الْقُلُوْبَ وَعِيَةٌ - ترجمه: بیشکه زړونه محافظ دی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که بورئ نوے پاکیزه او فراخه وی نو په ډیرے نفع تعبیر لری که داسے نۂ وی په لږے نفع تعبیر لری

**برستن - (لحاف)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې دبرستن لیدل تعبیرئې ښځه ده که خوب کښې اوګوری چه دَدۂ سره پاکه او نوے برستن ده - تعبیرئې ښځه به کوی او که اوګوری چه نوے برستن ئې اخستے ده، تعبیرئې پیغله وینزه به اخلی او که اوګوری چه برستن ئې ضائع شوه، تعبیرئې ښځے ته به طلاق ورکوی او که برستن خیرنه او شلیدلی وی تعبیرئې اولاد به ئې ناساره او جنګیرک دی -

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَدۂ سره برستن ده تعبیرئې مالداره او دینداره ښځه به کوی - او که برستن سپینه وی تعبیر ئې، ښځه به ئې عیاشه وی او که برستن زیړه وی تعبیرئې بیماره ښځه ده او که رنګداره برستن وی تعبیرئې دَچلناکے او مکارے ښځے دے -

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی په خوب کښې دَنوے برستن لیدل درے وجے لری (۱) دَعلم خاوندګا ښځه (۲) پیغله جینئ (۳) پیغله وینزه.

**بادامو حلوا - (لوزینه)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که لوزینه دَخوړے سره په ګډه کښې ایښے خوب کښې اوګوری تعبیرئې دَچانه به ښۂ خبره واوری او که اوګوری چه دۂ ډیره زیاته لوزینه خوړلے ده، تعبیر په هغې اندازه مال به حاصلوی - او که ګوری چه دۂ چاته لوزینه ورکړے ده تعبیرئې، دۂ ته به ښۂ خبره کوی - یا به دَدۂ دَپاره نیک کار کوی -

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، لوزینه خوب کښې خوړل تعبیرئې مال او نعمت دے - که اوګوری چه دۂ لوزینه خوړلے ده یا ئې اخستے ده یا چا ورکړے ده - تعبیرئې په هغې اندازه به مال او نعمت حاصلوی او خرچ کوی به ئې او که اوګوری چه دۂ چاته لوزینه ورکړیده - تعبیرئې دۂ ته به مال او نعمت ورکوی.

اوکه اوګوری چه لوزینه ورنه ضائع شوه یا چا ورنه پټه کړه تعبیرئے، خوب لیدونکے به نقصانی کیږی۔

**بُوتئے ۔ (مامیشا)** ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه مامیشا په وخت او بے وخته دَغم او فکر تعبیر لری۔ اصلی خبره داده چه خوب کښے مامیشا لیدل ښه نۀ دی۔

**بانڑهٔ ۔ (مژګان)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے بانڑهٔ لیدل دَ دین خیال ساتل دی۔ که خوب کښے څوک اوګوری چه دَدهٔ بانڑهٔ رپیږی تعبیرئے بیمار به شی اوکه اوګوری چه دَ سترګو بانړه ئے پریوتی دی تعبیرئے دَدهٔ دین به خراب وی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه بانړه ئے کاږهٔ شوی دی، تعبیرئے دَ هغے په اندازه به ئے دَ مال نقصان وی او بانړهٔ رپیدل دَ بیماری تعبیر لری۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی په خوب کښے دَ بانړو لیدل په څلورو وجوده (۱) دَ دین حفاظت (۲) موافق دوست (۳) مال او رزق (۴) خوشحالی دَ زوی په قدر، خلاصه داچه دَ بانړو لیدلو کښے هر قسمه خیر او شر لیدل په دے څلورو وجودی۔

**بابسه (ښکاری مارغهٔ دے)۔ (واشه)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښے بابسه تابعدار اوګوری چه دَ لاس نه والوځی او په آواز راځی او هغه ئے داسے عادت کړے وی تعبیر ئے حلال مال او مرتبه ده۔ که اوګوری چه بابسه سپینه او پاکه ده او دَدهٔ په لاس تابعدار ناسته ده۔ تعبیرئے دَ مالدار کسری نه به عزت، مرتبه او قدر او مومی اوکه اوګوری چه باخه والوته او تار دَ دهٔ په لاس کښے پاتے شو تعبیر ئے دَدهٔ مرتبه به ختمه شی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی چه باخه لیدل دَ بادشاهانو دَ پاره ملک او سرداری ده او دَ مالدار دَ پاره مالداری ده او دَ غریبانانو دَ پاره ځوئے دے۔ که اوګوری چه باخه دَ دهٔ دَ لاس نه پریوته او مړه شوه که خوب لیدونکے بادشاه وی دَ ملک نه به جدا شی اوکه امیر وی دَ عزت او رتبے نه به پریوځی که مالدار وی نو فقیر به شی اوکه فقیر دی دَدهٔ به ځوی مړ شی۔ څنے تعبیر کونکی

دائی چه باخه بے شرمه سړے دے۔ که خوب کښے اوګوری چه د هٔ د باخے غوښه خوړلے ده۔ تعبیرئے په دے اندازه به د دښمن مال خوری۔ او که اوګوری چه کوم ځائے کښے ډیرے باخے راجمع شویں ی هلته به بدمعاشان خلق راجمع شوی وی۔
حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښے باخه لیدل په څلورو وجوده (۱) قدر او مرتبه (۲) حکومت (۳) مال (۴) نفعه

## بنیادم په شکل بوټے - (یبروج)

دے بوټی ته ابروصنم هم وائی او د انسان په شکل کښے دی۔
حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه د دهٔ سر د ابروصنم بوټے دے یا چا ورکړے دے۔ تعبیرئے د چا کمینه او د لنډ قدخاوند سړی په خدمت کښے به مشغول شی او د هغهٔ نه به تکلیف مومی او که اوویني چه د ابروصنم بوټے ئے خوړلے دے تعبیرئے دے به چرته د داسے صفت سړی د مال نه څهٔ اوخوری او د یبروج بوټے په خوب کښے لیدل د کومے نفع تعبیرنهٔ لری۔

## د بوټی یو قسم (کافورسپرغم)

دا یو قسم بوټے دے چه د هغے غوټئ او ګُل زیړوی او د کافورو بوی ورنه راځی که اوګوری چه د کافورسپرغم بوټے د دهٔ په زمکه کښے توکیدلے دے، تعبیرئے د دهٔ تعریف او صفت به د هرچا په ژبه کښے وی۔ او که اوګوری چه د کوم ځایه ئے ویستلے دے، تعبیرئے د دغه ځائے نه به د دهٔ تعریف ختم شی۔ او که خوړلی ئے وی تعبیرئے غم او فکر به ورته رسیږی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خپل موسم کښے کافورسپرغم لیدل په درے وجو وی۔ (۱) صفت او شاباش (۲) کمتره نفعه (۳) پاکیزه خبره آوریدل او وئیل۔

## د بلبل او مینا پشان مارغهٔ (هزارداستان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی چه په خوب کښے هزارداستان مارغهٔ خوږ اوازه او خوږ ژبه څوی دے مګر ضعیف الاحوال به وی او د علم ادب او د کمال خاوند به وی او خلک به ئے خوښوی۔ که اوګوری چه هزارداستان ورته چا ورکړے دے، تعبیرئے د دهٔ به په دے صفت څوی پیدا کیږی که اوګوری چه د باغ نه ئے نیولے دے۔ تعبیرئے د دهٔ ناسته به د داسے خلکو سره وی چه هغوئی به نیک اخلاقه او ښهٔ خلک وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، هزار داستان مارغهٔ په خوب کښے خوش آواز ښځه ده۔ که اوګوری چه هزار داستان مارغهٔ ئے اخستے دے۔ تعبیرئے خوش اوازه او سندرغاړے وینزه به اخلی۔ که اوګوری چه هزار داستان ئے د لاسه الوتے دے۔ تعبیرئے ښځے ته به طلاق ورکوی او یا به ئے وینزه مړه کیږی او یا به تښتی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی۔ هزار داستان مارغهٔ په خوب کښے ځوی او غلام دے چه دوئی به خوش آوازه او د خوږو خبرو والا وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښے هزار داستان لیدل په پنځو وجو وی (۱) ښځه (۲) زوئی (۳) قاضی (۴) حکیم (۵) غلام

## بوس۔ (سبوس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے بوس لیدل تعبیرئے محتاجی ده۔ که څوک په خوب کښے اووینی چه د بوسو (د اوربشو) ډوډئ خوری، تعبیرئے په هغه ملک کښے به قحط او تنګی راشی۔ او که اووینی چه بوس ئے د کوره بهر غورزولی دی، تعبیرئے نعمت او فـــراخی ده۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښے د بوسو لیدل په دریو وجو دی (۱) محتاجی (۲) قحط (۳) د ژوند تنګی۔

## بستان افروز (سور رنګے ګل دے)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښے د بستان افروز ګل لیدل تعبیرئے د خوشحالی سبب دے مګر دین کښے به وی۔ که اوګوری چه دا ګل ئے اخستے دے او یا ورته چا ورکړے دے، تعبیرئے خوشحالی او ښادی ده چه خوشحاله به شی۔ که اوګوری چه دا ګل ئے چا ته ورکړے دے۔ تعبیرئے هغـه به خوشحاله کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که په خپل موسم کښے دا ګل اوګوری، تعبیرئے سرداری ده۔ او ځنے معبرین وائی چه دغه ګل په خوب کښے لیدل تعبیرئے خوش طبعه، مالداره او باجماله ښځه ده۔ که اوګوری څوک چه دغه ګل چرته ټکـوی تعبیرئے، د دهٔ دوستی به چرته تاجر دوست سره شی۔ او که اوګوری چه بستان افروز ګل د زمکے نه او باسی۔ تعبیرئے خوب لیدونکے به د کوم سړی د صحبت نه جدا شی۔

## بخشش ـ تحفه ـ ورکړه (عطاء)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک په خوب کښې اووینی چه

دهٔ ته څهٔ شے په بخشش ورکړے شوے دے ـ تعبیر ورکوونکے باید تپوس ورنه وکړی چه دغه درکړے شوے شے څهٔ قسم دے؟ سرهٔ زر دی یا سپین زر دی او یا کپړه ده او بخشش ورکوونکے معلوم دے که نهٔ دے معلوم ښځه ده او که سړے کله چه دا ټولے خبرے بیان کړے شی بیا دِ ے ورته تعبیر بیان کړی. که هغه شے ښهٔ شے او دَخوښے وی تعبیر ئے دا دهٔ ته به خیر او نیکی رسیږی او که بخشش ورکوونکے نا معلوم سړے وی، تعبیر ئے دَ دُنیا په وجه به ورته ذلت رسیږی او که بخشش دَ خطاء په وجه وی دا ټول دروغ دی او که اووینی چه بخشش ئے اخستے دے او بیائے واپس کړے دے تعبیر ئے دَ دهٔ نیکی او بدی به بخشش ورکوونکی طرف ته رجوع کوی. که اووینی چه دهٔ ته چا میوه یا کپړه یا بل خوږ شے بخشش کښے ورکړے دے. تعبیر ئے دَ هغه سړی سره به تعلق او ملاپ حاصل شی او که بخشش ورکوونکے یهودی یا عیسائی وو او هغه ښهٔ شے وو او دهٔ په مینه واخستو. تعبیر ئے، دَ دهٔ ایمان به په خطره کښے وی که یهودی یا عیسائی په خوب کښے اووینی چه دهٔ ته کوم مسلمان څهٔ بخشش کښے ورکړے دے او دهٔ په خوښه اخستے دے تعبیر ئے دا دے چه مسلمان به شی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه چا ورته بخشش ورکړے دے او دهٔ دَ هغهٔ شکریه ادا کړه. تعبیر ئے، دَ مال زیاتوالے او صحت مندی به وی ـ او که شکریه ئے نهٔ وه اداکړے نو تعبیر ئے دَ دے خلاف دے.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی که اووینی چه بخشش کوم ښهٔ شے دے او بخشش ورکوونکے کمینه سړے دے ـ تعبیر ئے بد دے.

## "پ" پولئ ـ (ابله)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه په خوب کښے پولئ لیدل دَ دولت زیاتوالی تعبیر لری که اوګوری چه دَ دهٔ بدن کښے پولئ دی تعبیر ئے په دِ ے اندازه به دهٔ ته مال ملاویږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی په خوب کښے په بدن پولئ لیدل تعبیر ئے حرام مال به ورته ملاویږی.

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی چه په بدن باندے پولئ لیدل په پنځو وجودی (۱) زیاتوالے دَ مال دے (۲) ښځه به ملاویږی (۳) ماشوم

به پیدا کیږی (۴) مراد به ئے پوره کیږی (۵)، که پولیٔ سپینه وی نو دَ یرے نه به په امن کښے وی۔

## پیټے اوچتول۔ (بارکشیدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه که څوک په خوب کښے اوګوری چه دَ دهٔ په شا سپک بوجھ (پیټے) دے۔ تعبیر ئے دَدے په اندازه به دهٔ ته ګټه رسیږی۔ اوکه اوګوری چه په شائے دروند بوجھ دے تعبیر ئے ګناه ئے زیاته ده۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (لِيَحْمِلُوٓا اَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ)[1] ترجمه:۔ دَ باره دَدے چه اوچتوی به دویٔ خپل پیټے دَقیامت په ورځ پوره۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک په خوب کښے اوګوری چه ډیر پیټی لری اودے پوهیږی چه دا څه دے تعبیر ئے دادے چه دَ پیټی دَ وزن مطابق دهٔ ته فائده یا نقصان رسیږی۔ اوکه اوګوری چه دَدے پیټی مالک نهٔ دے نو بیا هم دَدهٔ نیکی او بدی دَخوب لیدونکی طرف ته رجوع کوی۔

## پړسیدل۔ (اماس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه خوب کښے پړسیدل دَ مال تعبیر لری اوکه اوګوری چه دَدهٔ په بدن پړسوب ښکاره شوید ے تعبیر ئے دَهغے په اندازه به مال ورته حاصل شی، خاص هغه پړسوب چه ریم (نو) هم پکښے وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه دَدهٔ په بدن باندے پړسوب دے او تکلیف دے، تعبیر ئے په دے اندازه حلال مال به اوموی اوکه دَ پړسوب نه ورته تکلیف نهٔ وی نو تعبیر ئے حرام مال به ورته حاصلیږی۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښے په وجود پړسوب پنځهٔ قسمه تعبیر لری (۱) مال ورسره زیات وی (۲) ښځه فائده منده وی (۳) هلک به ئے کیږی (۴) مراد به ئے پوره کیږی (۵) دَغمونو نه به په امن کښے وی۔

## دپیغمبری دعوای کول

حضرت دانیالؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه دَ نبیانو نه یو نبی شوید ے او خلک دَ الله او دَالله تعالیٰ توحید طرف ته رابلی۔ تعبیر ئے، اول به په بلا او تکلیف کښے ګرفتار وی او بیا به په دښمنانو برے موهی اوکه خپل ځان نیک عمله او پرهیزګاره اوګوری تعبیر ئے همدا دے مګر تکلیف به ئے په دنیا کښے لږ وی اوکه اوګوری چه مالدار او دَ دین بے والا شوے دے۔

تعبیر ئے دَ دُنیا نعمت به ورباندے فراخه شي مګردين به ئے تباه شي.

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه دَ دهٔ نوم بدل شوئے چه بنهٔ نوم ورته لکه محمد، محمود، سعيد، سعد صالح، علي وغيره نومونه سره بللے شي تعبير ئے دے به ذکرخير او نيکي سره يادیږي او که دَ دے نه خلاف اوګوري په بدي به یادیږي او که اوګوري چه بادشاه یا امیراو یا قاضي شوے دے تعبیر ئے خپل کاروبار کښے به عدل او انصاف کوي او که دَ دے برعکس اوګوري دَ بدي تعبیر لري. جابر مغربيؒ وائي.

او که اوويني چه دَ صلاح حال نه فساد طرف ته بدل شوے دے تعبير ئے بدنصيبي او بد بختي ده که دَ دے برعکس وي نو دَ دين او دُنيا سعادت او بخت تعبير دے

## پریوتل - (افتادن)

حضرت ابن سيرينؒ فرمائیلي دي که څوک خوب کښے اوګوري چه په مخ پريوتے دے تعبير ئے پريشاني ده خاص هغه وخت چه په جنګ جګړه کښے وي.

او که اوګوري چه دَ کوم ځائے نه پريوتے دے لکه غر، بالاخانه يا ديوال نه تعبير ئے، مراد به ئے پوره کيږي.

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي که خوب کښے اوګوري چه دَ کوم ځائے نه پريوتے دے تعبير ئے اميد به ئے نهٔ پوره کيږي او که دَ غرهٔ نه لاندے پريوتو تعبير ئے، دَ غوښتو په اندازه به بد حال کيږي او بدن ته به ئے تکليف اورسي او که اوګوري چه ورته سخت زخم رسيدلے دے او اندام ئے وينه وتلے ده تعبير ئے، دَ زخم په اندازه به نقصان ورته ورسيږي او که اوګوري چه خپه ئے اوخويده او پريوتو، تعبير ئے، دهٔ ته به غم او تکليف رسيږي او که اوګوري چه پريوتے او تکليف ورته نهٔ دے رسيدلے تعبير ئے سهولت او اساني ده.

او که څوک اوګوري چه دَ دهٔ دَ کورچوکاټ نه ماديالرم يانور خوږونکي حشرات پريوتي دي. تعبير ئے دَ بادشاه نه به ورته غم او فکر رسيږي.

او که اوګوري چه ديوال يا بالاخانه ورباندِ پريوتے دي تعبير ئے دَ دا ځائے نه به مال ورته ملاويږي چه اميد به ئے ورنه نهٔ وو او په دے به ډيرخوشحاله وي کار به ئے روان وي او الله پوهيږي

**پتیله (دیگچے)۔ (پاتیله)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی خوب کښې پتیله لیدل کور ښځه ده. که څوک خوب کښې اوګوری چه نوے پتیله ئے اخستے ده یا دۀ چاله ورکړے ده تعبیر ئے کور والے (ښځې) ته به ئے څۀ آفت رسیږی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه په پتیله کښې څۀ شیان دَ خوراک دی. تعبیر ئے دَ کور والے دَ طرفه به ورته خیر او نفع رسیږی. که اوګوری چه په پتیله کښې څۀ شیان دَ خوراک دی مګر خراب دی تعبیر ئے دَ کور والے دَ طرف نه به څۀ ضرر ورته رسیږی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې پتیله لیدل څۀ قابل قدر شے نۀ دے۔

**پهره ورکول۔ (پاس داشتن)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې پهره ورکول په دوه وجو دی که اوګوری چه دَ نیکو خلکو پهره ده تعبیر ئے په دواړو جهانونو نفع او خیر دے که اوګوری چه دَ شاهی محل څوکیداری کوی تعبیر ئے دَ بادشاه نه به نفع او خیر او مومی که دا خوب تجار اوګوری نو په سوداګرئ کښې به ئے زیاته ګټه اوشی. او که دَ نیکانو او ښو خلکو حفاظت اوګوری تعبیر ئے دَ هغوئ نه به دَ دُنیا نفع او خیر او مومی۔ او په خوب کښې پهره دار لیدل تعبیر ئے قدر، مرتبه او ولایت خاوند لیدل دی او نور کارونه به سم کړی او خلک به دَ دۀ په انتظام کښې وی۔

**پورته تلل (ختل)۔ (بالا رفتن)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه دَ غر په سر ناست دے یا په بالاخانه یا په ږهیرئ یا په محل یا داسے نور ځایونه شول تعبیر دَ کوم شے چه تلاش کوی هغه به بیا مومی او مراد به ئے پوره شی. او ځینے تعبیر کونکی وائی چه که څوک اوګوری چه په سخته بره ختلے دے تعبیر ئے، دَ کوم شی په تلاش کښې چه تللے وی هغه به په سخته باندے او مومی او که اوګوری چه په اندر پایه ختلے دے تعبیر ئے به عزت او مرتبه بیا مومی چه هغه پوهه او اندر پایه دَ ختے دی او که اوګوری چه پوړے دَ چونے او دَ کانړی ده، تعبیر ئے دَ دۀ په دین کښې به خلل دی۔

حضرت ابرهیم فرمائیلی دی کومے پوړئ چه ډچونے اوډ کاڼی وی په هغې ختل تعبیرئے په دُنیا به عزت او شرف بیا مومی او که اوګوری چه پوړئ ډکه خښتو او خټے نه جوړه ده تعبیرئے آخرت کښے به اوچته درجه بیامومی۔ او که اوګوری چه بره اسمان ته ختلے دے او بیا راغلو تعبیرئے سخت بیمار به شی۔ آخر به ښهٔ شی۔

حضرت جعفر صادق فرمائیلی دی په خوب کښے پورته ختل په پنځو وجودی (۱) حاجت پوره کیدل (۲) ښځه غوښتل (۳) عزت او مرتبه (۴) مراد موندل (۵) ډ کاروبار زیاتولے۔

## پالان

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی په خوب کښے پالان لیدل تعبیرے ښځه ده۔ که څوک اوګوری چه ډډهٔ سره پالان دے یائے ډ جانه اخستے دے۔ تعبیرئے دادے چه ښځه به کوی یا به وینزه اخلی۔ او که اوګوری چه پالان ډډهٔ پشادے تعبیرئے ډ ښځے به تابعداروی او ښځه به ورباندے زوره ورہ وی۔ او که اوګوری چه پالان ئے ضائع شو تعبیرئے ښځه به ترے جدا کیږی او یا به طلاق ورکوی۔

حضرت جابر مغربی فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه خوب کښے چه ډهٔ خپل پالان صفا او پاکیزه ساتلے دے تعبیرئے ښائسته او نیک سیرته او ښهٔ ښځه به ورته ملاویږی او ډ هغې نه به خیر او نفع اومومی۔ او که اوګوری چه پالان سخت او خیرن دے تعبیرئے ناموافقه او جګړه ماره ښځه به کوی او ډ هغې نه به نقصان او تکلیف او مومی۔

## ډ پښو ګړه - (پابند)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی په خوب کښے ډ پښو ګړه لیدل تعبیرئے او ریدل ډ ښځے او من پسند ے خبرے دی یا ډ زور او عیال ښکلول دی یا ډ دوست که چرته ډیرے ګړے اوګوری نو په هغے اندازه به نعمت او حلاله روزی اومومی۔ که اوګوری چه بوډئ ښځے پابند ورکړی دی تعبیرئے په هغے اندازه به نعمت او مال بیامومی۔ او که اوګوری چه ډدهٔ سره ډیرے ډ پښو ګړے دی او ټولے ورته بخښلے شویدی یا ضائع شویدی تعبیرئے که نعمت لری یا به ډیر خرچ کړی او یا به ئے ضائع کړے شی۔

## پښنے - (پائے)

حضرت دانیال فرمائیلی دی که څوک پوه پښنه پریکړے یا ماته کړے شوے اوګوری ډدهٔ به نیم مال ضائع کیږی

اوکه خپلې دواړه پښې پرېکړې یا ماتې اوګوري تعبیر ئې دادے چې ټول مال به ئې. یا به په خپله مري. او ځنې تعبیرکونکي وائي، که څوک دواړه پښې ماتې یا پرېکړې اوګوري تعبیر ئې په سفر به ځي. اوکه څوک اوګوري چه دَ دهٔ پښې دَ اوسپنې یا دَ تلنې دي. تعبیر ئې دادے چې عمر به زیات وي او مال به ئې باقي وي اوکه اوګوري چه دَ دهٔ پښې دَ ښیښې دي تعبیر ئې دادے چې عمر به زر ختم شي او مال به ئې پاتې نشي. ځکه دَ ښیښې بقا او پایښت نه وي. اوکه اوګوري چه دَ دهٔ پښې شلې دي نو دا دَ دهٔ دَ حال دَ کمزورئ تعبیر دے په هرحال که خیر وي یا شر.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که نیک سړے اوګوري چه دَ دهٔ پښې شلې شوي دي تعبیر ئې دَ دین دَ زیاتې دے، دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ)[1] ترجمه :- او په شل څه حرج نشته ).

اوکه اوګوري چه دَ دهٔ پښې په رسئ تړلې شوې دي تعبیر ئې دَ چانه به ورته فائده رسیږي. اوکه اوګوري چه دَ دهٔ پښې نشته دے او دَ لرګي په ځانګوړو ګرځي تعبیر ئې چه په چا اعتبار کوي دَ هغهٔ نه به وفاداري نه ګوري.

اوکه شاهي حاکم اوګوري چه دَ دهٔ دواړه پښې کټ شوي دي، تعبیر ئې دَ خپل کار نه به معزول شي او مال به ئې ضائع شي. اوکه اوګوري چه دَ دهٔ پښې دَ اوسپنې دي تعبیر ئې مال به ئې زیات شي اوکه اوګوري چه دَ دهٔ پښې دَ چاندي دي او ګیتې ئې (پوندے) ئې دَ سرو زرو دي همدا تعبیر ئې دے. اوکه اوګوري چه دَ دهٔ پښې درد کوي تعبیر ئې نقصان به اوچتوي اوکه اوګوري چه دَ دهٔ پښه دَ ستنې پورې تړلې ده. تعبیر ئې ښځه دے ځکه چه ونه دَ سړي په شان ده. او ستنه دَ مړي پشان ده. اوکه اوګوري چه دَ دهٔ پښه په جال کښې ده یا زمکه کښې ننوتې شوې ده. تعبیر ئې چه څومره دَ دهٔ پښه ننوتې شوې وي په هغې انداره به مکر او فریب کښې ګرفتاره کیږي. اوکه اوګوري چه پښه ئې غره یا کوم ځائے کښې خوښېدلې ده تعبیر ئې دَ دین او دُنیا کارنه به منع شي یا به څوک ورته دا سې خبره کوي چه دَ هغې نه به بیمار شي اوکه اوګوري چه په غوئ باندے پښې خوځوي. تعبیر ئې دَ کار په لټون کښې به وي.

حضرت ابراهیم کرمانيؒ فرمائیلي دي، که څوک خوب کښې اوګوري چه دَ دهٔ پښه دَ اوښ یا دَ غوئ دَ نوکونو پشان ده تعبیر ئې دَ دهٔ قوت او مال به زیات شي اوکه اوګوري چه دَ دهٔ پښه دَ اَس یا دَ خر پشان ده. تعبیر ئې دَ دهٔ

(۱) النور ۶۱

قوت او مرتبه به زیاته شي. او که خپله پښه د درنده د پنجې پشان اوګوري تعبیر ئې حرام مال به حاصلوي او که خپله پښه د چرګانو د پنجو پشان اوګوري د دغه کسب او ژوند د قوت تعبیر لري او په دښمن به کامیاب وي.

حضرت جعفر صادق رح فرمائیلي دي، په خوب کښې د پښو لیدل په اوه وجووي (۱) عیش (۲) عمر (۳) کوشش کول (۴) د مال طلب (۵) قوت (۶) سفر (۷) بخښه او په خوب کښې پښه کوډول یا وهل د غم او مصیبت تعبیر لري۔

**پازیب. ښنګلئ (پائے اورنجن)** حضرت ابن سیرین رح فرمائیلي دي که څوک خوب کښې اوګوري چه د ده په پښو کښې پازیب دي۔ تعبیر ئې غم دے او که د چاندۍ وي نو سختي به ورباندې کمه دي۔

حضرت ابن سیرین رح فرمائیلي دي، د ښځې پازیب لیدل تعبیر ئې خاوند دے اولیدل ئې ښه دي او د سرو زرو لیدل د ښځو د پاره ملکیت دے او سړو د پاره حرام دي۔ او که اوګوري چه پازیب ئې د پښو نه ویستلي دي یا ورک شوي دي تعبیر ئې، د زړه غم نه به نجات اومومي۔

**پانچې (د جیلو وغیره پلنبے). (پاچه)** حضرت ابن سیرین رح فرمائیلي دي که څوک خوب کښې اوګوري چه د پانچې غوښه خوري، تعبیر ئې، چه څومره ئې خوړلے ده په هغې اندازه به نعمت ورته ملاویږي که او وینې چه د غوا پانچې خوري تعبیر ئې چه څومره ئې خوړلي دي په هغې اندازه به په دے کال کښې ورته د نعمت فراخي وي۔

حضرت جابر مغربي رح فرمائیلي دي پانچې خوړل په خوب کښې د خوراک په اندازه خاص چه کچه ئې خوړلي وي تعبیر ئې د یتیمانو د مال خوړل دي یعنې د یتیمانو مال به ئې خوړلے وي۔

**پردۀ۔ (پرده)** حضرت ابن سیرین رح فرمائیلي دي که څوک خوب کښې اوګوري چه پرده د ده په دروازه زوړنده ده که تنګه دی او غټه وي تعبیر ئې غم او فکر دے یره او خوف دے او آخر کښې امن دے که اوګوري چه د سرائے په دروازه یا د مسجد په دروازه یا په بازار کښې لګیدلې ده تعبیر ئې غم، فکر او د ډیرے خطرے دے۔

حضرت ابراهیم کرماني رح فرمائیلي دي که خوب کښې اوګوري چه پرده ضائع

شوه نو خوب لیدونکے به دَغم او فکر نه خوشحالی او مومی۔ همداړنگه دَیرے
نه به امن کښے شی۔
اوکه پرده اوګوری او نامعلومه وی، تعبیرئے دَډیر فکر او غم دے اوکه
هغه معلومه ده نو آسانه به وی۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، نوے پرده بادشاه ته لیدل ښهٔ دی
او دَ رعیت دَ پاره بده ده او زړه پرده په هر حال نهٔ ده ښه۔

## پرده اچول په چا۔ (پرده داری)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک خوب کښے اوګوری
چه په چا پرده اچوی تعبیرئے مراد به ئے پوره کیږی عزت او مرتبه به ئے زیاتیږی
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه دَ کوم عادل بادشاه پرده
کوی، تعبیرئے دے به مصلح او دَ نیکی طرف ته مائل کیږی او حلال مال
به بیا مومی اوکه په ظالم او مفسد بادشاه پرده اچوی تعبیرئے دَ فساد
طرف ته به مائل کیږی همداړنګه حرام مال به بیا مومی۔

## پتنګ ۔ (پروانه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی په خوب کښے
پتنګ لیدل ضعیف او کم عقل سړے دے
چه خپل ځان کم عقلیا سره به هلاکت ته رسوی۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که چا خوب کښے اولیدل چه پتنګ
دَ دهٔ دوستو والوتو او دهٔ اونیولو تعبیرئے دَ پیغلے وینزے نه به ئے خوئی پیدا
کیږی۔ اوکه اوګوری چه پتنګ ئے مړکړو او دَ دهٔ لاس کښے هلاک شو، تعبیر
ئے، خوئی به ئے هلاک شی۔

## پانړه ۔ (برګ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے دَ
اُونو پانړے لیدل تعبیرئے دَ اُونو پانړو مطابق په
اخلاق ډے چه په موسم کښے وی۔ اوکه اوګوری چه دَ اونو شنے پانړے ئے په موتی
کښے راخستے دی تعبیرئے خوب لیدونکے به خوش اخلاقه وی۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه دَ اونے تازه پانړے
ئے راخستے دی تعبیرئے دَ هغے په اندازه به ورته درهم ملاویږی۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی په خوب کښے دَ پانړو لیدل دَ هغه ونو
چه میوه ئے خوړه وی، تعبیرئے نیک خوی او نیک اخلاق دی او دَ ترونی

میوے پانړے تعبیر په بد خوبئ دے او هغه وئے چه میوه نه نیسی تعبیر ئے د اشرفو او روپو په ملاوید و دے.
بعضے تعبیرکونکی وائی چه میوه دار و پانړو په لیں لو تعبیر په اشرفو او روپو ملاویدو سره دے.

## پړانګ - (پلنګ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، پړانګ لیدل خوب کښے مضبوط دشمن دے.
که څوک خوب اوګوری چه د پړانګ سره جنګ کوی تعبیر ئے خپل دشمن سره به جنګ کوی او دښمن به پرے غالب او کامیابیږی مطلب دا که پړانګ کامیاب شو نو دښمن به کامیاب شی. او که دے په پړانګ کامیاب شی نو دے به په دښمن کامیاب شی. او که اوګوری چه د پړانګ غوښه ئے خوړلے ده. تعبیر ئے، جنګ کښے به پریوځی مګر آخر کښے به کامیاب شی او شرف او برزګی به حاصله کړی.
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه په پړانګ سور دے تعبیر ئے، عزت او مرتبه به اوګوری او دښمن به نا کام کړی. او که اوګوری چه د پړانګ سره جنګ کوی او په یو بل نه کامیابیږی تعبیر ئے د بادشاه نه به ورته خطره رسیږی یا به سخت مریض شی او جوړ به شی.
او که اوګوری چه ازمرے پړانګ خوری تعبیر ئے د دښمن نه به ورته خطره پیښیږی. او نتیجه به ئے امن وی. او که اوګوری چه د پړانګ څرمن یا هډوکی یا ویښته ئے اخستی دی یا چا ورکړی دی تعبیر ئے د هغې په اندازه به د دښمن مال مومی. او که اوګوری چه پړانګ ئے وژلے دے تعبیر ئے څو اسلام نه به ګرځیږی او ده ته به څه خیر نه وی.
حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښے د پړانګ لیدل په درېو وجو دی (۱) قوی دښمن (۲) دښمن نه مال اخستل (۳) بادشاه نه ویره.

## پړانګ، لیوه - (یوز)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، پړانګ لیوه لیدل خوب کښے دښمن دے او دښمنی به ئے په ده ظاهریږی. که څوک خوب کښے اوګوری چه ده د پړانګ سره جنګ کولو او دے ورباندے کامیاب شو تعبیر ئے په دښمن به کامیاب شی.
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه ده پړانګ اونیولو تعبیر ئے دا دے به د دښمن سره ملاقات وکړی او که اوګوری چه پړانګ ورنه اوتښتید لو

تعبیر ئے' دښمن به ورنه اوتښتي. او که اوګوري چه پرا نګان دَده ډیرتابع دي تعبیر
ئے دښمنان به ئے خوار او ذلیل کړے شي.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلي دي که خوک اوګوري چه دَپړانګ غوښه خوري
تعبیر ئے' دَهغه غوښے په اندازه به دَ دښمن نه مال اخلي. او ځنے تعبیر کونکي وائي
که خوک اوګوري چه پړانګ ئے اُوژلو تعبیر ئے' په دهٔ کښے به څهٔ خیر او نفع نهٔ وي
او که اوګوري چه پړانګ ئے په خپل څټ کښینولے دے او بوځي ئے' دے به دَدښمن
څهٔ پیټے پورته کوي. که اوګوري چه څهٔ اندازه پړانګان دَدهٔ کور یا کلي ته راغلي
دي تعبیر ئے' دَ دښمنانو نه به نقصان او ضرر رسومي' په هغه اندازه چه دهٔ لیدلي وي

## پنبه دانه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي. پنبه دانه خوب کښے
جګړه مار او بیهوده سړے وي.

## پنبه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي' پنبه خوب کښے لیدل حلال
مال دے په هغه اندازه چه دهٔ لیدلے دے دَ لړ او ډیر ونه
پنبه دانه خوب کښے تعبیر ئے هغه مال دے چه په اسانئ سرهٔ ئے لاس ته راوړي
بغیر دَ کوم تکلیف او سترې کیدو نه.

امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي' په خوب کښے پنبه لیدل درے وجه دي.
(۱) حلال (۲) نفع (۳) سترکول.

## پنیر

حضرت محمد بن سیرینؒ فرمائیلي دي چه خوب کښے خشک پنیر
اوګوري تعبیر ئے مال دے چه دَ سفر نه به حاصلیږي او تازه پنیر
ډیر مال دے چه سفر کښے مومي.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلي دي تازه پنیر مال او نعمت دے چه په
اسانه حاصلیږي. او خشک پنیر لږ مال دے چه دَسفر نه حاصلیږي که خوب
کښے اوګوري چه پنیر ډوډئ سره خوري تعبیر ئے دهٔ ته به سفر کښے لږ مال
په غم او فکر سره حاصلیږي. ځنے تعبیر کونکي وائي چه دهٔ ته به بیماري رسیږي
چه دَ هغے نه به زر خلاصے او مومي.

## پوزے. (بوریا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښے
پوزے یو کمینه سړے دے همدارنګه کم اصله
او کمزورے ښځه ده. که اوګوري چه پوزے ئے بونړلے دے او ورنه فارغه
شوے دے' تعبیر ئے خپل کار به خلاص کړي. او که اوګوري چه دَ کور دَ

پاره پوزے جوړوی، تعبیرئې بنځه کولو کښې به مشغول وی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که څوک خوب اوګوری چه د دهٔ سړی پوزه دے او یا چاورکړے دے، تعبیرئې د بنځې نه به ورته د پوزی د لوی په اندازه نفع او رسیږی.

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، پوزے لیدل په دریو وجو دی.
(۱) نفع (۲) دَ بنځې طلب (نکاح کول). (۳) پخپلے ابادی کولو کښې مصروفیت (مشغول کیدل)

## پوستکے

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک خوب اوګوری چه دَ یخنی وخت کښې پوستکے اغوستے دے تعبیرئې دَ ژوند څهٔ شے به ورته رسیږی او که دَ ګرمی وخت وی هس انتعبیرئې دے مکړ نتیجه به ئې غم وی.

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که خوب کښې اوګوری چه دَ ګډا یا چیلی پوستکے لری تعبیرئې مالداره بنځه به کوی او دَ هغې نه به مال مومی. او که اوګوری چه دَ (رویا) (اوسئ) پوستکے لری. تعبیرئې مالداره بنځې سره به نکاح کوی. او که اوګوری چه دَ اوسئ نوے پوستکے اغوستے دے تعبیرئې مالداره بنځې سره به نکاح کوی مکر چلنکاره او مکاره به وی. او که اوګوری چه دَ اوسئ پوستین ئې اغوستے دَ تعبیرئې، ناکاره او بد کرداره بنځه به کوی او دَ هغې نه به تکلیف وینی. او که اوګوری چه دَ سنجاب پوستکے ئې اغوستے دے تعبیرئې دے چه د ناموافقه بنځې سره به واده کوی او که اوګوری چه دَ پیشو پوستکے ئې اغوستے دے تعبیرئې بد اخلاقه بنځې سره به واده کوی چه غله او بد کرداره به وی. او که اوګوری چه دَ وشق پوستکے ئې اغوستے دے تعبیرئې دَ اصیلے او پرهیزګاره بنځې سره به واده کوی او که اوګوری چه دَ مړے پوستکے ئې اغوستے دے تعبیرئې ناپاکے بنځې سره به کوژدن کوی. او که اوګوری چه پوستکے شلیدلے یا سوزیدلے دے یا ضائع شویدے تعبیرئې دَ مال نقصان به ئې کیږی او په غم به ګرفتاره کیږی.

## پُل جوړول - (پل ساختن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې دَ پُل لیدل، تعبیرئې بادشاه یا لوے سړے دے چه دَ هغهٔ په وجه به خلك مراد ته رسیږی.

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی دَ پُل تعبیر نیک دے که اوګوری خوب کښې چه په پُل تیر شویدے تعبیرئې دَ بادشاه نه به ورته عزت او مرتبه حاصلیږی او دَ دهٔ نه به نفع مومی، او که اوګوری چه بنیادئې په پُل

اینبے دے او کورئے وربانندے جوړ کړیدے تعبیرئے بادشاهي او ولایت به ورته ملاوېږي - او یا به ډیر مال جمع کړي - دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَالْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ[1]) ترجمه :- خزانے دَ سرو زرو ټکوي -

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي په خوب کښے دَ پُل لیدل څلور وجې دي (۱) دا سے سړے چه دَ ټولو په کار به راځي او دَ هرچا حاجتونه پوره کوي. (۲) بادشاه (۳) نیکي کامیابي موندل (۴) ډیر مال حاصلول - او که او کوري چه پل خراب شوا و پریوتو، تعبیرئے دَ بادشاه حالت او دَ ملک په تباه کیدو تعبیر دے.

## پله - (پتهه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، پله په خوب کښے مال او دَ هغې جمع کولو والا دي. که او کوري چه پله دَ دَهٔ په اندام کښے چپه شویده یا شلیدلے ده. تعبیرئے هغه دوست چه دَ دَهٔ دَ کار وکیل وي ورنه جدا شي یا به دَ دُنیا نه رحلت وکړي او که او کوري چه دَ دَهٔ دَ بدن پلے وچے شویدي تعبیرئے دَ دوستانو نه به جدا شي -

حضرت ابراهیم کرمانيؒ فرمائیلي دي چه دَ دَهٔ دَ وجود پلے سختے او قوي دي تعبیرئے دا دے چه دَ دَهٔ خپل خپلوان او اهل بیت به په بد حاله او ضعیف وي

## پیاز

حضرت ابراهیم کرمانيؒ فرمائیلي چه پیاز خوب کښے لیدل تعبیرئے حرام مال، بدي، خرابه خبره ده که خوب لیدونکے نیک وي او او کوري چه کوشش کوي دَ پیاز خوړلو نه ځان وساتي، نو خیر دے که نیک نه وي نو حرام مال به را جمع کړي او په دے کښے به تل خرابے خبرے اوري - که سور پیاز ئے لیدلي وي او که پوخ پیاز ئے خوړلي وي تعبیرئے آخر به دَ حرام مال نه به توبه اوباسي او الله تعالیٰ ته به رجوع وکړي -

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، په خوب کښے دَ پیاز خوراک دَ دے درے وجے دي (۱) حرام مال (۲) غیبت او بده خبره (۳) په کار کښے پښیمانه کیدل -

## پیاله

حضرت محمد بن سیرینؒ فرمائیلي دي. پیاله په خوب کښے وینزه ده چه دَ هغې سره به عیش او خوشحاله وي. که او کوري چه دَ پیالے اُوبه ګلاب اُوبه څښي. تعبیرئے دَ وینزے سره به خوشحاله وي او دَ دے نه به نیک ځوي پیدا شي. او که او کوري چه هغهٔ اُوبه یا ګلاب دَ پیالۍ نه توئے کړے، دَ دَهٔ ځوي به مړ شي.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، پیاله په خوب کښے دَ ۲ وجے لري.

(۱) البقره ۱۴

(۱) وینزه (۲) خادم او نوکر۔

## پیغمبر

دَدے بیان په سپارسم فصل کښے تیر شوے دے هلته ئے اوګورئ۔

## پیمانه

حضرت محمد بن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے پیمانه لیدل تعبیرئے قاصد دے۔ که څوک خوب کښے اوګوری چه دَدهٔ سره پیمانه ده او یا چا ورکړے ده، تعبیرئے صداقت او انصاف به کوی او که څوک خوب کښے اوګوری چه پیمانه ماته شوه یا اوسوزیله تعبیرئے خوب لیدونکی ته دَ مرګ خطره او ویره ده۔ او که خوب کښے اوګوری چه دَ پیمانے سره څهٔ اندازه کوی۔ که اهل علم وی تعبیرئے قاضی به شی او که اهل علم نه وی تعبیرئے دَ انصاف دَ پاره به قاضی ته محتاجه وی۔ دَ بلے وینا موافق پیمانه دَ راستی او انصاف خاوند سړے دے چه دَ خلقو انصاف کوی۔

## پوزه۔ (بینی)

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی چه خوب کښے پوزه لیدل تعبیرئے عزت او مرتبه ده دلیدونکی چه څومره په پوزه کښے کمے یا زیاتے او نقصان اوګوری تعبیرئے دلیدونکی په مرتبه او قدر کښے کمے او زیاتوالے دے۔ که څوک اوګوری چه دَدهٔ پوزه ورکوتے شویده، تعبیرئے دَ دهٔ دَ مرتبے دَ کمید ودے۔ که څوک اوګوری چه دَدهٔ پوزه پریوتے ده تعبیرئے دَ قدر او مرتبے نه به پریوزی او که اوګوری چه دَدهٔ دَ پوزے سورے لوے شوے دے تعبیرئے په دهٔ به روزی فراخه شی۔ او که سورے تنګ شوے وی تعبیرئے دَ دهٔ رزق به تنګ شی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک اوګوری چه دَدهٔ دَ پوزے نه کړینګ وتے دے، تعبیرئے دَ کوم سردار نه به نفع مومی۔ او که اوګوری چه دَدهٔ دَ پوزے نه چینجے، مچ وغیره ځناور وغیره وتلے دے تعبیرئے دَ دهٔ کره به هلک پیدا کیږی او که اوګوری چه دَدهٔ پوزه کښے سورے دے او پرے پکښے اچولے دے تعبیرئے دَ خلکو میلمستیا به کوی یا دَ اوچتے بنځے سره به ملګرتیا کوی او دَ هغے نه به مال او نعمت مومی او که اوګوری چه دَ دهٔ دَ پوزے سر تړلے شوے دے او ساه نشی اخستے تعبیرئے، دَدهٔ کار به بندیږی۔ او که اوګوری چه په پوزه کښے خبر کوی تعبیرئے دَدهٔ دولت به بربادیږی او که اوګوری چه دَ دهٔ دَ پوزے غرمن پورته شویده تعبیرئے دَدهٔ نقصان به کیږی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی چه څوک او وینی چه دَ پوزے نه ئے

وینه وتلې ده او تعبیر بشودونکی ته اووائي چه زما د پوزې نه وینه وتلې ده تعبیر ئې ډیر مال به مومي او که اوګوري او اُوائي چه وینه ئې د پوزې نه څخي نو تعبیر ئې دا دے چه مال به ورنه لاړ شي تعبیر بیانوونکی ته پکار دی چه د خوب بیانوونکي په وینا باندې تعبیر بیان کړي او خبره ئې په فال کښې په نظر کښې وساتي او که اوګوري چه د پوزې سورې د ده دواړه پوشیدې دي تعبیر ئې هوښیارې ښځې سره به صحبت کوي. او که اوګوري چه د پوزې سرئې پریکړې شوې دے تعبیر ئې د ده د څوي ختنه (سنت) به وي. څنې تعبیر کونکي وائي چه د ده په عزت او مرتبه کښې به نقصان وي.

حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه څه شے د ده پوزې کښې په زور ننوتے دے تعبیر ئې غصه او نیکي ده او که اوګوري چه د پوزې نه ئې وینه وتلې ده تعبیر ئې د ښځې حمل به ئې اوغورځیږي او څنې تعبیر کونکي وائي چه دا سړے به فقیر شي. او که اوګوري چه وینه د ده د پوزې نه وتلې ده او خپله وینه ګنده نه ده تعبیر ئې ښځه یا څوي به د کوره ادیا سي یا به ورته تکلیف ورکوي. او که اوګوري چه د ده پوزه په زمکه پریوتې ده تعبیر ئې د ده به لور پیدا کیږي او که اوګوري چه خپله پوزه وینځي تعبیر ئې څوک سړے به د ده ښځې ته دهوکه ورکوي او که اوګوري چه د ده د پوزې نه چرګ وتلے دے تعبیر ئې د ده به څلور ښځې څوئې پیدا کیږي.

څنې تعبیر کونکي وائي چه د پوزې نه وینه وتل مال دے چه د ده ته به د خپل ملک بادشاه نه ملاویږي. او که اوګوري چه د پوزې نه ئې لږه شین رنګه وینه راغلې ده. تعبیر ئې مور به ئې مړوي او غرځیږي.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه د ده پوزه ډاډ هاتي خرتم پشان او یا د دے نه لویه ده. تعبیر ئې د هغې په اندازه عزت او مرتبه به ئې زیاته شي او د ده خپلوان به هم عزت او مومي. او که څوک اوګوري چه د ده پوزه کښې خوشبوئي تلې ده تعبیر ئې، ده کره به نیک عمله څوئې پیدا شي. او که اوګوري چه د ده پوزه کښې بد بوئي تلې ده تعبیر ئې د دے خلاف دے.

جاحظ فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه د ده پوزه نه شته دے تعبیر ئې د ده او د اولاد منع کښې به اختلاف پریوځي. او که اوګوري چه چادر پا...

خوشبوی کړے ده تعبیر ئے د دهٔ نه به ورته نفع حاصله شي۔
اوکه دا خوب بنځه اوګوري، تعبیر دے کره به نیک عمله خوئ پیدا شي
اوکه اوګوري چه د دهٔ پوزے لاندے بد بوی کیخودلے شوے ده تعبیر ئے دهٔ
ته به په دے سړي غصه راځي۔
حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي په خوب کښے پوزه لیدل په پنځو وجو
ده (۱) عزت (۲) مال (۳) شرافت (۴) خوئ (۵) خوشحاله ژوند۔

## پټکے

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه د کتان پټکے
په لاس کښے لري تعبیر ئے د یو نیک او مصلح سړي نه به ورته نفع
ورسیږي۔ اوکه اوګوري چه پټکے د دهٔ نه ضائع شوے دے او یا سوزیدلے دے،
تعبیر ئے زیان او نقصان به ورته ورسیږي۔
امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، پټکے په خوب کښے لیدل په دریئو وجودی
(۱) نفع (۲) وینزه (۳) لږ ورکول۔

## پټکے دسر۔ (دستار چاچه)

ابن سیرین فرمائیلي دي پټکے خوب کښے
لیدل تعبیر ئے دین دے که سپین یا شین
یا د کتان یا د پُنبے پټکے اوګوري تعبیر ئے دین دے۔ که اوګوري چه شین او پاک
پټکے لري تعبیر ئے اصلاح د دین ده اوکه د ریښمو پټکے اوګوري تعبیر ئے
د دُنیا ښهٔ حال دے۔ اوکه اوګوري چه د دهٔ پټکي پورے نور پټکے یو ځائے
شوے دے، تعبیر ئے په بزرګئ او مرتبه کښے به ئے زیاتوالے راشي۔ که
اوګوري چه د دهٔ پټکے غرځیدلے او یا ضائع شوے دے تعبیر ئے د دین نقصان
دے او د دهٔ بے عزتي ده۔
حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي که خپل پټکے ورنه پټ شوے اوګوري تعبیر
ئے نقصان د مرتبے او د قدر دے اوکه اوګوري چه پټکي نه تاو ورکوي او ښهٔ
ئے ساتي۔ تعبیر ئے د دین خاوند انو او د دُنیا د خلکو سره به موافقه کوي۔
اوکه اوګوري چه نقشه دار پټکے لري تعبیر ئے سفر کښے به مشهور شي
په خلکو کښے اوکه شین پټکے او شنے جامے اوګوري تعبیر ئے، د دُنیا نه
به د شهادت سره لاړ شي۔
حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي چه څومره لوئے پټکے اوګوري په
هغه اندازه به د دهٔ عزت او مرتبه زیاته وي۔ اوکه اوګوري چه لنډ او

خیرن پټکي لري. تعبیر ئې نقصان دَ عزت اودَ مرتبې دی. اوکه سور پټکي اوګوري تعبیر ئې په چا به ظلم کوي. اوکه زیړ پټکي اوګوري تعبیر ئې بیمار به شي. اوکه نیلي رنګ اوګوري تعبیر ئې دا دَ چې ته به مصیبت پېښیږي اوکه تور اوګوري تعبیر ئې نقصان او ضرر رسیږي. مګر قاضي او خطیب نه. اوکه په سر باندې دَ ریښمو پټکي اوګوري تعبیر ئې دا دې به منصف او حاکم به وي او خلک به ئې خوښوي اوکه او پرد پټکي تاؤشوي اوګوري تعبیر ئې دَ سفر نه به زر راشي او دَ ریښمو پټکي تعبیر ئې دَ دین فساد دې.

امام جعفر صادق فرمائیلي دي، پټکي خوب کښې لیدل په اوۀ وجودي.

(۱) دین (۲) ریاست (۳) عمل (۴) ولایت (۵) مرتبه (۶) قدرت (۷) سفر

## پېغلتوب - (دوشیزګي)

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي که اوګوري چه دۀ دَ پېغلې سره نکاح کړیده تعبیر ئې حرام مال به بیا مومي اوکه پېغله نه وي او خوب کښې اوګوري چه پېغله ده تعبیر ئې دا دَ هغه سړي دَ ستر او دَ پرهیزګارۍ دې.

حضرت کرماني فرمائیلي دي که څوک خوب کښې اوګوري چه دۀ ته پېغله جینۍ ملاؤ شوې ده، تعبیر ئې هم دې کال کښې به پېغله ښځه کوي یا به وینځه اخلي

## پتون - (ران)

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي په خوب کښې پتون لیدل، تعبیر ئې قوت دې. که څوک اوګوري چه دَ دۀ پتون مات شوې دې یا غوټه یدلې، تعبیر ئې دَ خپلوانو نه به جدا شي، کمزورې به شي او غربت (فقیري) کښې به مړشي. اوکه اوګوري چه دَ دۀ پتون څیرې شویدې همدغه تعبیر لري.

حضرت ابراهیم کرماني فرمائیلي دي چه ښې پتون دَ پلار له طرفه په خپلوانو تعبیر لري او کس پتون دَ مور دَ طرفه په خپلوانو تعبیر لري که اوګوري چه دَ دۀ پتون نرې شویدې تعبیر ئې دَ خپلوانو کار به کمزورې شي اوکه اوګوري چه دَ دۀ پتون بریکړې شوې دې، تعبیر ئې دَ خپلوانو نه به دَ جدائي تلاش کوي اوکه اوګوري چه دَ دۀ پتون مات دې تعبیر ئې چرته دَ سردار نه به ورته ذلت او خواري رسیږي. اوکه اوګوري چه دَ دۀ دَ پتنونو نه غوښه پریوتې ده. تعبیر ئې دَ دۀ دَ خپلوانو مال به ضائع شي.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه د ده پتونو په رسئ تړلی شوی دی تعبیر د خپلوانو نه به نه جدا کیږی او نکاح به وکړی اوکه اوګوری چه د خپل پتون غوښه ئے خوړلے تعبیر په دے اندازه به د خپلوانو مال خوری۔

## پنډۍ۔ (ساق)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے پنډۍ لیدل مال او ژوند دے چه د خلکو وربانده یقین وی او اهل تعبیر بیان کوی چه پنډۍ د خلکو د پاره عزت او مرتبه ده. که اوګوری چه د ده پنډۍ مضبوطه ده تعبیر ئے د ده کاربه ښه وی۔ اوکه د ده پنډۍ کمزورے وی تعبیر ئے د ده کار به ضعیف او بے انتظامه وی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه د ده پنډۍ د اوسپنے ده، تعبیر ئے، عمر به ئے اوږد وی او مال به ئے پائیداره وی، اوکه اوګوری چه د ده پنډۍ ماته شوے ده، تعبیر ئے د ده په بدن به خرابی راځی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی چه پنډۍ لیدل د ښځو د پاره میړه او د سړو د پاره ښځه ده. اوکه اوګوری چه د ده پنډۍ یو بل سره انختی دی۔ تعبیر ئے ویره او هلاکت دے اوکه اوګوری چه د ده په پنډۍ ویښته دی تعبیر ئے قرض اربه وی اوکه اوګوری چه د پنډۍ نه ئے ویښته خرئیلی دی تعبیر ئے د قرض نه به خلاص شی۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښے د پنډۍ لیدل څلور وجه دی. (۱) مال (۲) زندګی (۳) د ښځو د پاره خاوند (میړه) (۴) او د سړو د پاره ښځه۔

## پاره (رِیلی کړے سیکه)۔(سیماب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه د زرو په کان کښے ورد ننه شوے یا ئے د هغے ځائے نه زر اخستی دی، تعبیر ئے ښځه به ئے په بد کار کښے مبتلا کیږی۔ که اوګوری چه زر ئے خرچ کړی یا ئے چاته ورکړی دی تعبیر ئے د ښځے د مکرنه به امن کښے شی. که اوګوری چه د زرو په چینه کښے ډوب شوے، تعبیر ئے، ښځه به وربانده جادو کوی۔

## پیپړه۔ (شُش)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، پیپړه لیدل خوشحالی ده. که څوک اوګوری چه چا پیپړه ورکړے ده او هغه سړے معلوم وی تعبیر ئے، ده ته به خیر

رسیږي. او که اوګوري چه چاته ئے ورکړیده تعبیر ئے، هغه کس ته به د دهٔ نه خیر رسیږي.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلي دي که چرے اووینی چه کچه یا غه پیږه ئے خوړلے ده او دَ هغه څنا وروچه دَهغه غوښه حلاله ده. تعبیر ئے په هغے اندازه به مال حاصل کړي.

## پرتوګ ـ (شلوار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، پرتوګ لیدل خوب کښے ښځې وینزه ده یا کمینه ښځه ده چه وادهٔ به ورسره کوي. که چرے اوګوري چه نوے پرتوګ ئے اخستے دے او اغوستے ئے دے تعبیر ئے ښځې وینزه به اخلي. که اوګوري چه پرتوګ اغوستے ښځه ئے لیدلے ده. تعبیر ئے دَ ښځے سره جنګ کوي. او که اوګوري چه چا ورته نوے پرتوګ ورکړے دے، تعبیر ئے نوکران به ئے زیات وي. او که اوګوري چه دهٔ نوے پرتوګ او موندلو تعبیر ئے نوے نوکر به بیا مومي. او که اوګوري چه دهٔ سره خیرن پرتوګ دے تعبیر ئے دَ الله تعالیٰ دَطرفه به عذاب اومومي. دَ الله تعالیٰ کلام دے (سَرَابِیْلُهُمْ مِّنْ قَطِرَانٍ تَغْشٰی وُجُوْهَهُمُ النَّارُ) ترجمه :- دَ دوئ پرتوګونه دَ تارکولو وي او دَ دوي مخونه اُورپټ کړي وي. (ابراهیم ۵۰)

که اوګوري چه سُور پرتوګ ئے اغوستے دے، تعبیر ئے عزتمنداه ښځه به پیدا کړي (وادهٔ به ورسره وکړي) او که اوګوري چه زیړ پرتوګ ورسره دے. تعبیر ئے بیمار به شي. او که اوګوري چه دهٔ سره شین پرتوګ دے تعبیر ئے خلق به ئے ملامته کوي او ښځو دَ پاره رنګین پرتوګ ښهٔ دے، که ښځه اوګوري چه نوے پرتوګ ئے اخستے دے، تعبیر ئے، میړهٔ (خاوند) به کوي او که اوګوري چه دَ دَ پرتوګ ورک شوے دے تعبیر ئے، وینزه یا نوکر به ئے تښتي او که اوګوري چه دهٔ دَ ښځے پرتوګ اغوستے دے، تعبیر دهٔ ته به دَ ښځے نه ذلت رسیږي.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، چه پرتوګ په خوب کښے لیدل په درېو وجودي (۱) ښځه (۲) وینزه (۳) دَ کور نوکر او خادم.

## پارے اوګوګړو مرکب ـ (شنګرف)

ابن سیرین فرمائیلي دي پاره ګوګړو مرکب لیدل په خوب کښے غم او فکر دے. که اوګوري چه شنګرف ورسره دي، تعبیر ئے، غم

په بیامومی۔
اوکه اوګوري چه شنګرف ئې خوړلی دی تعبیر ئې بیماربه شي اوکه اوګوري
چه شنګرف نمئې بت او تصویر جوړ کړے دے تعبیر ئې دَ دُنیا په لهولعب
او بے فائدے کارونو کښې به مشغول شي او په هغې به مئین وی اوکه اوګوري
چه په شنګرف ئې څه لیکلي دي۔ که قرآن مجید وی یا دُعا یا دَ توحید خبره وی
نو دَ نیکی تعبیر لري اوکه دَ دے خلاف ئې لیکلي وی نو تعبیر ئې نقصان دے۔

## پُل صراط۔ (صراط)

محمد بن سیرینؒ فرمائیلي دي، که څوک اوګوري
چه په پل صراط ولاړ دے، تعبیر ئې خراب
کارونه به ئې سم شي ځکه چه صراط نیغه لاره ده دَ الله تعالیٰ کلام دے۔
وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا (الفتح ۲) او ورته ئې اوښودله نیغه لاره۔ که اوګوري
چه دَ پل صراط نه تیرشوے دے، تعبیر ئې لوئې بلا او مرګ نه به
خلاصے اومومي۔ که اوګوري چه دَ صراط نه په دوزخ کښې پریوتے دے تعبیر
ئې په بلا مصیبت او غم کښې به پریوځي۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه دَ پل صراط نه تیرشوے
دے تعبیر ئې دَ آخرت دَ پاره به نیک عمل کوي۔
امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، دَ پل صراط لیدل خوب کښې په شپږو
وجودی (۱) نیغه لاره (۲) تکلیف (۳) ویره (۴) ارام دَ بادشاه دَ طرفه (۵) ګناه (۶) کینه

## پسته۔ (فستق)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي۔ پسته خوب
کښې لیدل مال او نعمت دے۔ که اوګوري چه دَ هُ
سره دَ پستے مغز دے او دَ هُ خوړلے دے تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به مال
او نعمت وی۔ اوکه اوګوري چه دَ هُ سره دَ پستے مغز دے تعبیر ئې دَ بخیل
سړی نه به فائده اوګوري۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه دَ هُ ته چا دَ پستے مغز
ورکړے دے، تعبیر ئې مال او دولت دے۔

## پیسے۔ (فلوس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، پیسے خوب
کښې لیدل جنګ او دُښمنی ده۔ که اوګوري چه دَ هُ
سره پیسے دی تعبیر ئې دَ چا سره به جنګ کوي۔ که اوګوري چه زیاتے پیسے
ورسره دی تعبیر ئې سخت غم کښې به ګرفتار شي۔ که اوګوري چه پیسے ئې

ذکور نه بهراچولے دی تعبیر ئے دَ غم او فکر نه به خلاصے اوموی۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، خوب کښې پیسے لیدل تعبیر ئے مُفلسی دہ (غریبی)۔

## پنجره۔ (قفس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه دهٔ سره پنجره ده، تعبیر ئے کوم ځائے کښې به ګرفتار شی۔ ځنے تعبیر کونکی وائی چه دَ خپلو عزیزانو او خپلوانو نه به چاسره قید ځائے ته ځی۔ او که اوګوری چه پنجره ماته شویده یا ضائع شویده تعبیر ئے جیل خانے تنګوالی نه به خلاصے اوموی۔
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی۔ پنجره خوب کښې په دریؤ وجو ده۔ (۱) جیل (زندان) (۲) تنګ ځائے (۳) دَ شادر فروشو سرائے۔

## پخکړے غوښه۔ (ګوشت پخته)

حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائیلی دی۔ دَکبابونو پخکړے غوښه بهتره ده۔ که اوګوری چه دَ چیلی دَ غوښے کباب خوری۔ تعبیر ئے دُ کوم لوئے سړی نه به فائده اوموی۔ او که اوګوری چه دَ څنګلی ځناورو دَ غوښے کباب ئے خوړلی دی، تعبیر ئے دهٔ ته به نفع دَ مشرانو له طرفه ملاویږی۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی، دَ غوښے کباب او سره کړے غوښه دَ نفع دلیل دے۔

## پټی (دَکرلو زمکے)۔ (کشت زار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی۔ کرلے شوے زمکے زرغونیدل چه ورته معلومه وی او په معلوم ځائے کښې په خپل موسم لیدل تعبیر ئے دَ خلکو زامن دی او که اوګوری چه پټی ئے ریبلے دے تعبیر ئے خلک به جنګ کښې مړهٔ کیږی۔
حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی که اوګوری چه پټی کښې دے تعبیر ئے دَ دُنیا او دَ دین بنیګړے عمل به کوی او که اوګوری چه پټی ئے اوکرلو او ئے ریبلو او دانے ئے ورنه اوویستے تعبیر ئے دُ دهٔ امید به پوره کیږی۔ او که اوګوری چه په پټی کښې ځی تعبیر ئے دَ غازیانو سره به جهاد ته ځی۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی پټے ریبل په خوب کښې تعبیر ئے جنګ او جګړے دی او ځنے تعبیر کونکی که اوګوری چه پټی ته تللے دے او خلکو

شین ریبلے دے تعبیر ئے مصارفو کښې به ځی او که اوګوری چه پټی کښې اور لګیدلے دے او ټول پټے سوزیدلے دے۔ تعبیر ئے په دے ملک کښې به قحط راځی۔ او که اوګوری چه پټی ته ئے اوبه ورکړی دی تعبیر ئے داسے کار به ورنه کیږی چه د دُنیا او آخرت نفع به پکښې وی او که اوګوری چه په پټی اور لګیدلے دے او سوزولے دے۔ تعبیر ئے د بادشاه نه به ورته نقصان رسیږی۔ او که اوګوری چه پټی کښې یولوئے نهر راغلے دے۔ تعبیر ئے په دے ملک کښې به قحط او تنګی راځی۔ او که اوګوری چه د غنمو وږو نه دانے غُرنه یدلی دی تعبیر ئے، دهٔ ته به نقصان رسیږی. او که نهٔ پیژنی چه دا د چا ملکیت دے تعبیر ئے خوب لیدونکی ته به ئے نقصان وی۔ د الله تعالیٰ کلام دے (نِسَاۤؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَاْتُوْا حَرْثَكُمْ اَنّٰى شِئْتُمْ) (البقره ۲۲۳) (ستاسے ښځے ستاسے پټی دی چه څنګه ستاسے خوښه وی ورته راځئ)۔ او که پټے په خپل موسم کښې شین اوګوری تعبیر ئے په دے ملک کښې به نعمت او فراخی وی او که د دهٔ زمکه وی تعبیر ئے د دهٔ مراد به پوره کیږی او که وختی پټے او ریبی او وږی ئے کور ته یوسی تعبیر ئے مصیبت دے. او که اوګوری چه پټی کښې د ملګرو سره تللے دے، تعبیر ئے، جهاد ته به ځی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، پوخ پټے په خپل موسم کښې ریبل تعبیر ئے ښهٔ والے او نفع ده۔ او که کچه او شین وی تعبیر ئے بیماری ده۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی چه په وخت پټے ریبل په خوب کښې تعبیر ئے د الله تعالیٰ امر به په ځائے راوړی او د فقیرانو په حق کښې د صدقے ورکولو توفیق تعبیر لری۔ د الله تعالیٰ کلام دے وَاٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ ۔الانعام: ۱۴۲ د ریبلو په ورځ د هغهٔ حق ادا کړی۔ او که اوګوری چه لیدلے دے او ریبلے ئے دے۔ تعبیر ئے د دهٔ د کار انجام به ښهٔ وی۔

## پېزار (کفش) پنړے،

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې د پنړے لیدل تعبیر ئے ښځه ده او که اوګوری چه دهٔ سره نوے پنړے دی او خپو کښې ئے اچولی دی. تعبیر ئے ښځه به کوی او یا به وینزه اخلی۔ او که اوګوری چه د بل چا

پنړے په خپو کښے اچولے دی تعبیر ئے کنړه ښځه به کوی که دَ پنړے رنګ تور وی تعبیر ئے ښځه به ئے جګړه ماره وی اوکه دَ پنړے رنګ سُور وی تعبیر ئے ښځه به ئے ډولی او عیش پسنده وی. اوکه رنګ ئے زیړ وی نو ښځه به ئے بیماره وی اوکه سپین رنګ وی نو تعبیر ئے دے چه ښائسته ښځه به نکاح کښے راولی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که دغوا دخرمنے پیزار ئے اچولے تعبیر ئے اصیله ښځه به کوی اوکه دَ ګډے دَ خرمنے وی تعبیر ئے دَ عربی ښځے سره به وادهٔ کوی اوکه اوګوری چه پیزار دَدهٔ دَ پښونه پریوتے دے او ضائع شوے دے تعبیر ئے غم بے حرمتی او بے عزتی ده اوکه اوګوری چه پیزار دَدهٔ خپو کښے تنګ وی تعبیر ئے دَدهٔ ښځه به تباه کاره وی. دَ زړے پنړے لیدل خوب کښے دَ نوے نه بهتر دی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښے دَ پیزار لیدل په اوهٔ وجودی.
(۱) ښځه (۲) خادم (۳) ویتزه (۴) قوت (۵) ژوندا (۶) مال (۷) سفر

## پخکړی شراب۔ (مے پخته)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی۔ دَ شرابو تعبیر حرام دے۔ که څوک اوګوری چه شراب ئے وڅښل او نشه شو تعبیر ئے دهٔ ته به ډیره ویره رسیږی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے۔ (وَتَرَى النَّاسَ سُكٰرٰى) ترجمه: او ته به وینے خلک نشه۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی چه دَ انګورو شرابو څښلو سره دَ نشے په اندازه دَ مال او نعمت کمے وی. اوکه اوګوری چه دهٔ سره شراب دی او دهٔ په خوښه څښلی دی تعبیر ئے دَ خلکو سره به جنګ او جګړه کوی. اوکه اوګوری چه شرابو کښے ډوب شوے دے. تعبیر ئے جنګ کښے به هلاک شی.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دهٔ شراب څښلی دی تعبیر ئے حرام مال به په حراموبه لوی اوکه اوګوری چه شراب ئے دَ روجو سره ګډ کړی دی تعبیر ئے داسے مال به حاصل کړی چه ځنے به حلال او ځنے به حرام دی او دا هم وائی چه دَ ښځو نه به مال اخلی اوکه اوګوری چه شراب خرڅوی تعبیر حرام شے به خرڅوی۔

## پرناله (دَ اوبودَ پارهٔ دَ بامونو ناوه)۔ (ناودان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوریؒ

دَ باموُنو نه اوبهُ دَ پرنالے نه بغیر بهیږي نو تعبیر دلته به جنګ جګړه او وینې تویږي. اوکه اوګوري چه دَ باران نه بغیر ناوه بهیږي تعبیر ئے دغه ځائے خلکو ته به دَ بادشاه دَ طرفه غم او تاوان رسیږي. اوکه اوګوري چه وریځ او باران دے او دَ پرنالونه اوبه بهیږي. تعبیر ئے په دغه ځائے خلکو به الله تعالیٰ نعمت او بخشش وکړي.

حضرت مغربیؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه دهٔ په خپل بام (چهت) ناوه اینښے ده. تعبیر ئے دَ کوم لوئے سړي نه به نفع او مومي. اوکه اوګوري چه دَ دهٔ دَ کور پرناله پریوته او ماته شوه. تعبیر ئے دَ اول خلاف دے. که اوګوري چه ناوه دَ او سپینے یا دَ تانبے ده، تعبیر ئے تل به ئے کار په انتظام سره وي. اوکه اوګوري چه دَ چا پرنالے نه ئے اوبه څښلي دي تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ چانه نفع او مومي.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، پرناله لیدل خوب کښے په دریؤ وجوده (۱) دَ ښار رئیس (۲) بادشاه (۳) لږه نفع او خیر

## پهلوان - (پَل)

په دے پوه شه چه پهلوان مبارک او مقابله کوونکے سړے دي.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که بادشاه دا اوګوري چه دَ چا پهلوان سره په جنګ کښے دَ جنګ افسر یا پهلوان جوړ شوے دے تعبیر ئے دے به خپله بادشاهي کښے قوت او دبدبه او مومي. اوکه عالم دا اوګوري چه بحث کښے نوموړے وو تعبیر ئے په خپل مقابل به کامیاب شي. او که سوداګر دا اوګوري چه دے جنګجو پهلوان جوړ شوے دے تعبیر ئے تجارت کښے به ډیر مال حاصل کړي. اوکه دا خوب یو سپاهي اولیدو تعبیر ئے مالداره به شي او څه مال به لاس ته راوړي. دَ الله تعالیٰ کلام دے یَآ اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا ارْکَعُوْا وَاسْجُدُوْا وَاعْبُدُوْا رَبَّکُمْ وَافْعَلُوا الْخَیْرَ لَعَلَّکُمْ تُفْلِحُوْنَ ٥

ترجمه :- اے مؤمنانو، رکوع کوئ او سجدے په ځائے راوړئ او بندګي کوئ دَ خپل رب او نیکي او ښیګړه کوئ دَ دے دَ پاره چه تاسے کامیاب شئ.

که څوک اوګوري چه دهٔ دَ چا سره جنګ وکړو او په هغه کامیاب شو تعبیر ئے دے به په دښمن به کامیاب شي. که اوګوري چه دهٔ دَ چا ښځے سره جنګ وکړو او په هغے کامیاب شو، تعبیر ئے حال به دَ دهٔ خراب وي او دے به

خوار اولاچاره دی۔

**پودینه یوقسم۔ (ترخون)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، ترخون په خوب کښې بد کردار ه سړے دے ځکه چه دَ ترخون سپیلنی دی او سپیلنی چه سرکه کښې خشت کړی. او څهٔ موده پس ئے راوباسی نو دَ دے خوند دَ خپل حال نه اوړیدلے وی او خوند ئے بدل شوے وی بیا هغه کری چه هغه وتوکیږی هغے ته ترخون وائی۔ که اوګوری چه دهٔ سره ترخون دے یا ورته چا ورکړے دے تعبیرئے دا ده چه به دَ دے سړی نه څهٔ نقصان رسیږی۔ اوکه اوګوری چه چا ته ئے ترخون ورکړے دے یائے دَ کوره بهر اچولے دے۔ تعبیرئے دَ دا سے سړی نه به جدائی لټون کوی او دَ هغهٔ نه به لرے اوسی.

**پالک ساګ۔ (اسفاناخ)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې دَ پالک ساګ لیدل غم او اندیښنه ده، او دَ دے خوړل تعبیرئے ضرر او دَ مال تاوان دے اوکه په غوښه کښې پوخ کړے اووینی، تعبیرئے خیر او نفع ده دَ خوړلو په اندازه.

**پرتوګ غابښ۔ پټئ۔ (شلوار بند)** پرتوګ غابښ دَ خلکو په عورت باندے تعبیر لری. که اوګوری چه دهٔ سره مضبوط او سخت پرتوګ غابښ دے تعبیرئے دَ دهٔ عضوتناسل به مضبوط او سخت وی۔ اوکه زوړ پرتوګ غابښ اووینی دده عضوتناسل به کمزوره وی.

**پیالئ۔ کټورے۔ (جام)** حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوک په خوب کښې اووینی چه پیالئے دَ اوبو نه ډکه یا دَ کلابو اُوبو نه ډکه او دَ هغے نه ئے څښلی تعبیرئے بنځه به کوی یا به وینزه اخلی او دَ هغے به پرهیزګاره ځوئ پیدا کیږی چه دَ هغهٔ نه به راحت ئے ځوی به ئے مړ شی او مور به ئے پاتے شی اوکه اوګوری چه دَ پیالئے نه اُوبهٔ تویے شوے او پیالئے پاتے شوے تعبیر شوه او اوبهٔ پاتے شوے تعبیرئے بنځه به ئے مری او ځوی به ئے پاتے شی اوکه پیالئے ماته شوے وی او اُوبه تویے شوے وی۔ تعبیرئے، مور او ځوی به ئے هلاک شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه پیالئے دَ هغهٔ دَ کور په دیوال لګیدلے دی، تعبیرئے دَ هغه پیالو په اندازه به ورته وینزے او بنځے حاصلے کړے شی

اوکه پیالئ سپینې یا شنې اووینی تعبیرئ، دَده بنځې به نیکې او پرهیزګارې وی.
اوکه پیالئ سرې وی تعبیرئ دده بنځې به عشق پرسته او مفسدې وی.
اوکه زیړې پیالئ اووینی تعبیرئ بنځې به ئې بیمارې او زیړې وی.
اوکه تورې پیالئ اووینی دَده بنځې به غمژنې او فکرمندې وی.

## پوزې، بوجۍ - (حصیر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که څوک په خوب کښې اووینی چه دَه سره پوزې دې او یا ورته چا ورکړې دې تعبیرئ دَ هغه پوزې په اندازه به نفع مومی. اوکه اووینی چه پوزې جوړ وی، تعبیرئ چرته په بنځه به عاشق وی. اوکه اوګوری چه پوزې کم قیمته دې او هغه ئې بونړی تعبیرئ هغه بنځه به بې اصله او نقیره وی. اوکه اووینی چه هغه پوزې قیمتی او صفادې تعبیرئ اصیله او دولتمنده بنځه به کوی.

حضرت مغربیؒ فرمائی که اوګوری چه پوزې بونړی او خرڅوی تعبیرئ دَه ته به غم اورسیږی.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی، په خوب کښې پوزې لیدل په درې وجو وی (۱) بنځه (۲) نفعه (۳) غوښتل چه دَه ته به دَ هغې نه نعمت حاصلیږی.

## پرده لویه - (سراپرده)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې خپل ځان په پرده کښې اووینی او بوهیږی چه دَدَه ملکیت دې تعبیرئ مرتبه او مشری به بیا مومی، دا هم کیدې شی دَ لښکر مشر به شی. که اووینی چه دَ بادشاه په لویه پرده کښې مقیم شوې دې، تعبیرئ، دَ بادشاه ته به عزت او مرتبه بیا مومی. که اووینی چه دَ بادشاه لویه پرده پریوتې ده. تعبیرئ دَدَه دَ بادشاهۍ ختمیدل به وی. که اووینی چه دَ بادشاه لویه پرده سوزیدلې ده، تعبیرئ بادشاه به مړ شی. که اووینی چه دَ لوئې پردې نه بهر کړې دې، تعبیرئ بادشاه به شی او ملک به حاصل کړی.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی په خوب کښې لویه پرده لیدل په پنځو وجوده (۱) بادشاه (۲) ریاست (۳) ولایت (۴) دولت (۵) سپاهی جوړیدل.

## پښتورګې - (ګرده)

پښتورګې په خوب کښې پټ مال دې چه به ورته حاصلیږی او هغه به خرچ کوی که اووینی چه

دهٔ سره پخکړے یا وریت کړے پښتورگے دے، تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به حلال مال بیا مومی که اووینی چه دَ دهٔ سره دَ هغه ځنادرچه دَ هغے غوښه حلاله ده، دَ هغے کرده ده تعبیر ئے دَ حلال مال موندل دی او که دَ حرامو ځناورو پښتورگی ورسره وی تعبیر ئے حرام مال دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، پښتورگے موندل په خوب کښے پټه مال دے او ځنے تعبیر کونکی وائی چه پښتورگے په خوب کښے ځوئے دے ځکه چه دَ ځوئ سرمایه منی ده چه دَ پښتورگی نه اوځی.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی که اووینی چه دهٔ سره دَ اس پخکړی پښتورگی دی، او دهٔ خوړلی، تعبیر ئے دَ یو لوے سړی نه به مال مومی. که اووینی چه دَ غوای پښتورگی ورسره دی تعبیر ئے په دغه کال به مال او نعمت لاس ته راوړی او که دَ گډ پښتورگی ورسره وی تعبیر ئے په دغه کال به دَ دښمن نه مال بیا مومی او که کچه پښتورگی ئے خوړلی وی تعبیر ئے، حرام مال به بیا مومی. که اووینی چه ډیر پښتورگی ورسره دی او خوړلی ئے نهٔ دی هغه څهٔ چه مونږ دویئیل دَ هغے نه به کم وی.

## پنړے - (نعلین)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اووینی چه دَ دهٔ دَ پنړو تسمے شلیدلی دی، تعبیر ئے په سفر کښے به ډیر دخت وی که اووینی چه دَ دهٔ په پنړو کښے سورے دے. تعبیر ئے، دَ څهٔ کار په وجه به دَ سفر ته پاتے شی، او تکلیف به او باسی. که اووینی چه دَ دهٔ پنړے شنے دی، تعبیر ئے دَ دهٔ سفر به دَ آخرت دَ پاره وی که اووینی چه دَ دهٔ پنړے نشته دے او دَ دے په وجه دَ سفر نه پاتے شوے دے تعبیر ئے، وینزه به بیا مومی.

حضرت مغربیؒ فرمائی که اووینی چه دَ دهٔ پنړے تورے دی تعبیر ئے دَ هغهٔ ښځه به مالداره وی. او که پنړے سرے وی تعبیر ئے، دَ دهٔ ښځه به عیاشه او عشق پسنده به وی. که اووینی چه دَ دهٔ پنړے سپینے دی تعبیر ئے چه دَ هغهٔ ښځه به پاکیزه او ښائسته وی. که اووینی چه دَ دهٔ په پنړو کښے هر قسم رنگونه دی، تعبیر ئے، دَ دهٔ په ښځه کښے به دا ټول صفتونه وی. که اووینی چه دَ دهٔ دَ پنړو بندونه دَ غواړ دَ څرمنے دی تعبیر ئے، دَ هغهٔ ښځه به اصلی عجمی وی. که اووینی چه دَ دهٔ دَ پنړو بندونه دَ اوښ دَ څرمنے

دی، تعبیر ئے دَ دهٔ ښځه به اصلی عربه وی. که اووینی چه دَ تللو په وخت کښې پښه پرېوته او ضائع شوه، فکر دے وکړی چه هغه پښې دَ څهٔ شی دَ خرمنے وے که دَ اوښ دَ څرمنے وی تعبیر ئے ښځه به ئے بیماره شی.

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائی که اووینی چه دَ دهٔ پښې شلیدلی دی نو هدغه تعبیر لری.

حضرت امام جعفر صادق فرمائی، په خوب کښې پښې لیدل په دریو وجو دی. (۱) سفر (۲) ښځه (۳) وینزه.

## پودینه - (نعناع)

حضرت ابن سیرین فرمائی په خوب کښې پودینه غم او فکر دے که اووینی چه دَ دهٔ ملکیت په زمکه کښې پودینه شته تعبیر ئے په غم او فکر کښې به گرفتار شی.

که اووینی چه پودینه ئے خوړلے ده تعبیر ئے غم به ئے ډیر زیات وی.

که اووینی چه پودینه دَ بل چا په زمکه کښې ده. تعبیر ئے دَ زمکے خاوند ته به غم او فکر وی که اووینی چه پودینه ئے دَ زمکے نه وبستلے او غورځولے ده، تعبیر ئے دَ غم او فکر نه به خلاصے او مومی.

## پنیر وچ کړے شوے (ترف)

چه وُچ شوے وی او تروش دی. په خوب کښں وُچ پنیر لیدل غم او فکر دے که اوگوری چه وُچ شوے پنیر ئے خوړلے دے تعبیر ئے قرض دار به شی او د هغے پر سبب به غمژن وی ځکه چه خوند ئے تروش او رنگ ئے خیژن دی. حضرت جابر مغربی فرمائی، په خوب کښں وُچ پنیر لیدل کم تر مال دے

## "ت" تانبه - قلعی (ارزیز)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی که څوک خوب کښې اوگوری چه دَ دهٔ سره ډیر قلعی ده، تعبیر ئے دَ دُنیا نه ډیر متاع به حاصل کړی چه هغه به دَ لوښو دَ لاندے وی، لکه کاسه او پیاله او دَ دوئ په شان او که اوگوری چه دا دَ دهٔ ملکیت دے، تعبیر ئے په هم هغه اندازه نوکران او خادمان به بیا مومی.

حضرت کرمانی فرمائیلی دی که څوک اوگوری چه قلعی ویلی کوی، تعبیر ئے دَ خلکو به ژبے دَ دهٔ په بد وگویا شی.

حضرت امام جعفر صادق فرمائیلی دی قلعی په خوب کښې لیدل په دریو وجو دی (۱) نفع (۲) نوکر (۳) دَ کور سامان

## تانبه - (مِس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، مِس دَیهودیانو دَ پاره ده. که څوک اوګوری چه دَ دهٔ سره مِس دی تعبیر ئے ډیر مال به حاصل کړی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه دَ تانبے لوښی لکه لوټه او ګلاس یا دَ دے پشان شول، تعبیر ئے وادهٔ او نکاح کول دی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که څوک خوب اوګوری چه تانبه ئے ویلی کړله او صفا ئے کړله تعبیر ئے مشکل کار به دَ دهٔ په لاس اسان شی وائی چه خوب لیدونکے به حلال مال په تکلیف سره حاصلوی۔

## نور باتینګر - (بانجان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی توربا تینګر خوړل چه هر څنګه وی په موسم او بے موسمه اُوچ او تازه ټول سره برابر دی چه هر څومره اوخوری دَ هغے په اندازه به غم او فکر اوچتوی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه ورسره زیات تور باتینګر دی مګر ټول ئے خرڅ کړل او یا ئے چاته اُوبخښل او یا ئے دَ خپل کور نه بهر او غُرزول او خوړ لی ئے نهٔ دی تعبیر ئے دَ غم او فکرنه به خلاصے او موسی۔

## تیُونه - (پستان)

تیونه په خوب کښے جینئ ده هغه که یا ریا تے چه اوګوری صلاح او فساد د ے او دَ دے تعبیر په جینکوثابتیږی. که اوګوری چه دَ تیوتونه پے (شودهٔ) روان شویدی، تعبیر ئے دَ دهٔ په جینئ به نعمت او رزق فراخه وی او حلال مال به موی که اوګوری چه دَ تیوتونه دَ شودو په ځائے وینی روانے شویدی تعبیر ئے حرام مال به موسی. که اوګوری چه تیونه دَ اندازے نه زیات اویزان شوی دی، تعبیر ئے جینئ به ورکړه راشی۔

او که سړے اوګوری چه دَ دهٔ په تیونو کښے شودهٔ راجمع شوی دی که ښځه نهٔ لری، نو ښځه به وکړی او بچے به ئے پیدا شی او که ښځه ئے وی ماللا ره به شی او که داخوب زړه ښځه اوګوری تعبیر ئے فقیره او تنګلاسته به شی. ئے اوګوری تعبیر ئے، ماشوم والی کښے به مړه شی۔ که ئے اوګوری تعبیر ئے عمر به ئے اوږد شی او که جینئ

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلي دي که سړي اوکوري چه دَ چا تیُونه روي تعبیر ئې بیمار به شي. او که دَ هغۀ ښځه حامله وه او دا خوب اوکوري نو ځوئ به ئې پیدا شي. او که ښځه اوکوري چه تیُونه روي تعبیر ئې دَ دُنیا کارونه به ئې په ښۀ شي

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلي دي، دَ سړي تیُونه تعبیر دَ هغه ښځه ده او دَ ښځې تیُونه لور ده. که ښځه اوکوري چه دَ دې تیونه پرېکړې شوي دي، تعبیر ئې لور به ئې مړه شي او که سړي اوکوري چه دَ هغۀ تیُونه پرېکړې شوي دي تعبیر ئې ښځه به ئې مړه شي. او که ښځه اوکوري چه دَ دې تیونو لاندې ویښتۀ پیدا شوي دي تعبیر ئې لور به ئې پیدا شي. او که اوکوري چه دواړه تیونه ئې غټ شوي دي تعبیر ئې دَ اولاد حال به ئې ښۀ شي یا به ئې دَ لور واده اوکړې شي او که اوکوري چه دَ خپلو دواړو تیُونو نه شودۀ څښي تعبیر ئې غم او ملامتیا به ورته رسیږي. که اوکوري چه دَ هغۀ تیونو نه شودۀ کیږي ته څې تعبیر ئې نقصان به ورته ورسیږي. او که اوکوري چه دَ هغۀ یوتې په اور سوزیږي لې دې، تعبیر ئې دَ دۀ لور ته به دَ بادشاه کار پېښیږي. او که اوکوري چه په ټول بدن ئې تیونه دي تعبیر ئې دَ دۀ اولاد او خادمن به ډیر دي او که ځوئ نۀ وي نو مال به ئې زیات شي مګر خلکو ته به ملامته وي. که اوکوري چه ښځه ئې دَ تیونو نه زوړنده کړیده تعبیر ئې، دَ دې به حرامي ځوئ پیدا کیږي.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي. دَ تیُونو لیدل په خوب کښې په پنځو وجودي (۱) دروکے اولاد (۲) لونړه (۳) نوکران (۴) دوستان (۵) رونړه

## ترخ - (بغل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي. ترخ خوب کښې لیدل تعبیر ئې ملامتیا او بدي ده چه دۀ ته به ورسیږي او دَ ترخ ویښتۀ تعبیر ئې مراد ته رسیدل او په دُښمن کامیابیدل دي.

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي که اوکوري چه دَ ترخ نه ئې بد بوي راځي. تعبیر ئې حرام به موهي.

حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي، که اوکوري چه دَ دۀ دَ ترخ نه خراب بوي راځي تعبیر ئې حرام مال به موهي، او که اوکوري چه دَ ترخ نه لاندې لاسُونه ساتي تعبیر ئې خپل مراد ته به ورسیږي او دښمن به ناکام کړي.

دَالله تعالیٰ کلام دے (وَاضْمُمْ یَدَكَ اِلٰی جَنَاحِكَ تَخْرُجْ بَیْضَآءَ) طٰهٰ ۲۲۔خپل لاس ترخ کښے نته باسه سپین به راووځی)۔ ځنے تعبیرکونکی وائی چه داپه مروت اوځوانمردی تعبیر دے۔ اوکه څوک اوګوری چه دَده ترخ کښے هیڅ قسم نقصان نشته دے تعبیرئے دَ نامرادئ اودَ دښمن دَ غلبے دے۔
اوکه اوګوری چه دَده دَترخ نه بدبوی راځی، تعبیرئے ده ته به په سختئ مال ملاویږی۔ اوکه اوګوری چه دَ ترخ نه لاندے خوله روانه ده تعبیر ئے دَخولے په اندازه دَمال نقصان به ورته رسیږی۔

## تندے۔ (پیشانی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی تندے خوب کښے لیدل تعبیرئے دَ خلکو عزت اومرتبه ده ځکه چه الله تعالیٰ ته دَ سجدے کولو ځائے دے ځنے وائی دَ تندی لیدل تعبیرئے، ځوئ دے چه دَده دَاهل بیتو نه به مالدار شی که څوک اوګوری چه دَده په تندی نښه ده۔ تعبیرئے خوب لیدونکے به دَخلکو په وړاندے په دینداری سره مشهور شی۔که څوک خوب اوګوری چه په تندی چاوهلے دے او وینه ورنه روانه ده۔تعبیرئے، دَ خلکو په وړاندے به ئے عزت او مرتبه زیاته شی۔ که څوک اوګوری چه دَده تندے ورو کے اوتنګ شوے دے تعبیرئے دَ اول خلاف دے۔که څوك اوګوری چه دَدهٔ تندے دَخپل حال نه متغیرشوے دے تعبیرئے ده ته به تاوان ورسیږی۔ اوکه څوک اوګوری چه دَدهٔ په تندی وینښتهٔ راغلی دی تعبیرئے، دے به قرضدار شی۔ اوکه اوګوری چه دَ هغهٔ په تندی راغلی وینښتهٔ سرهٔ یاسپین دی، تعبیرئے هغه قرض به دَ بال بچ په وجه وی۔ اوکه اوګوری چه په تندی ئے پرسوب دے، تعبیرئے، مال به ئے زیات شی۔ اوکه اوګوری چه دَدهٔ دَ تندی نه مار یا لړم یابل شے وتلے دے، تعبیرئے دَدهٔ به عالم اوپرهیزګاره بچے پیدا شی۔که اوګوری چه په تندی ئے دَرحمت آیت لیکل شوے دے تعبیرئے عاقبت به ئے ښهٔ وی۔ اوکه اوګوری چه په تندی ئے دَعذاب آیت لیکلے شوے دے، تعبیرئے عاقبت به ئے ښهٔ نهٔ وی۔
حضرت جعفرصادقؒ فرمائیلی دی، تندے خوب کښے په شپږ وجوده دے (۱) مرتبه اوعزت (۲) عظمت اوبزرګی (۳) مال اره ځوئ (۴) رزق (۵) ریاست

(۶) سخا او نیکي۔

**تصویر۔ (پیکر)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي. تصویر خوب کښې لیدل ښځه ده. که څوک خوب کښې اوګوري چه دۀ سره تصویر دے، تعبیر ئې ښځه به کوي۔ او که اوګوري چه تصویر ئې د چا نه اخستے دے تعبیر ئې وینزه به اخلي، او که اوګوري چه د دۀ نه تصویر ضائع شوے دے یا د لاسه پریوتے دے او مات شوے دے تعبیر ئې ښځې ته به طلاق ورکړي یا به ئې ښځه مړه کیږي که د خپل تصویر شکل په بل شکل اوګوري تعبیر ئې دا دے چه کومه ښځه دۀ لیدلے ده د هغې مطابق به ئې احوال ښکاره شي۔

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي که خپل تصویر په بدله صورت بدل اوګوري. تعبیر ئې حال به ئې بدل شي. او که اوګوري چه په خپل حال او په خپل صورت شوي دے، تعبیر ئې په خپل حال باندے به الله تعالیٰ ته رجوع کوي او که خپل تصویر په دیوال کښې اوګوري تعبیر ئې خلک به د دۀ نه غم اوګوري او په دۀ به ظلم کوي۔

حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه د سړي تصویر ئې د حیواني تصویر سره بدل شوے دے تعبیر ئې دا سړے به بې دینه او دروغژن وي او یا به د الله تعالیٰ په صفاتو کښې ناجائزه خبرے واني. او که څوک اوګوري چه د چا تصویر د هغۀ د جنس نه دے تعبیر ئې خوب لیدونکي ته به سخت کار پیښیږي او دے به هغې کښې حیران وي. په خوب کښې تصویر لیدل د داسې سړي لیدل دي چه په الله تعالیٰ دروغ وائي

**تصویرونه۔ (تندیسها)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که اوګوري په خوب کښې چه د تصویرونو سورے په زمکه پریوتے دے او هغه سورے تور وي غم او فکر دے۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلي دي، تصویرونه خوب کښې لیدل په دریو وجو دي (۱) غم او فکر (۲) د مرتبې نقصان (۳) کار کښې خیانت۔

**تاؤ ورکول۔ (تاب دادن)** حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي که خوب کښې اوګوري چه رسئ ته تاؤ ورکوي که اوږده رسئ وي اوږد سفر به کوي او که لنډه رسئ دي نو لنډ سفر به کوي۔ او که

اوګوري چه دَ خټه شي کنډولو دَ پاره تاؤ ورکوي تعبیر ئے دَ خټه مصلحت دَ پاره به کار کوي یا دَ ځان دَ پاره به دَ نفس راحت یا ریاضت کوي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي چه تار او رسئ ته تاؤ ورکول په دریؤ وجودي (۱) سفر او ورنه راګرځیدل (۲) دَ نفس ریاضت (۳) دَ بندو کارونو پرانستل او فراخي۔

## تاج

حضرت محمد بن سیرین فرمائیلي دي، دَ بادشاهانو دَ پاره دَ تاج لیدل تعبیر ئے ملک او ولایت دے او دَ ښځو دَ پاره تعبیر میړه او دَ عامو خلکو دَ پاره نیک حال دے۔

که څوک اوګوري چه دَ دهٔ په سر دَ سرو زرو تاج پیولے دے تعبیر ئے لویه مرتبه به او مومي مګر دَ دین او دَ شریعت لاره کښے به کمزورے وي او که همدا خوب کومه ښځه اوګوري تعبیر ئے دَ دے خاوند به دَ دُنیا په کارونو کښے دَ مرتبے خاوند وي۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلي دي که خوب کښے څوک اوګوري چه بادشاه دَ چا په سر تاج ایښے دے، تعبیر ئے دهٔ ته به دَ بادشاه نه بزرګي او مراد حاصل شي۔ او که اوګوري چه بادشاه دهٔ نه تاج ورکړے دے او په سر ئے ایښے دے۔ تعبیر ئے ښائسته او مالداره ښځه به کوي چه دَ هغے نه به دَ دهٔ زړهٔ مراد او انصاف مومي۔

او که اوګوري چه تاج دَ دهٔ دَ سر نه پریوتو او مات شو تعبیر ئے، ښځے ته به طلاق ورکړي او که څوک اوګوري چه تاج دَ دهٔ دَ سر نه واخستلے شو تعبیر ئے دَ دهٔ نه به دَ دهٔ ښځه جدا کیږي او که اوګوري چه تاج دَ دهٔ دَ سر نه پریوتو او مات شو تعبیر ئے دَ دهٔ ښځه به مړه کیږي یا به دَ دهٔ دَ کور نه څوک مري۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي که بے میړه ښځه اوګوري چه دَ دے دَ سر دَ پاسه تاج دے تعبیر ئے خاوند (میړهٔ) به وکړي۔ او که میړوخه ښځه دا خوب اوګوري، تعبیر ئے په نورو ښځو به سردار ه کا شي او که ښځه اوګوري چه دَ دے دَ سر نه تاج کوز کړے شو تعبیر ئے دَ دے خاوند به بله ښځه کوي یا به ورته طلاق ورکوي۔ او که څوک اوګوري چه دَ بادشاه دَ سر دَ پاسهٔ ملغلارو تاج دے تعبیر ئے عزت او مرتبه به حاصلوي او عزت به ئے زیات شي۔

## تیارهٔ ۔ (تاریکی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، خوب کښې تیارهٔ
لیدل دَ دین لاره کښې ګمراهي ده. که څوک اوګوري چه
تیارهٔ ئې په خپله کړیده یا چا کړیده. تعبیرئې دَ هغې په اندازه به ګمراهي
اومومي، که اوګوري چه په تیارهٔ کښې وو او هغه تیارهٔ په رڼا بدله شوه،
تعبیرئې توبه به وکړي او دَ دین لارے به ورته پرانستلے شي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که څوک اوګوري چه اول په تیارهٔ کښې وو
او بیا ورباندے رڼا شوه او بیا تیارهٔ شوه، تعبیرئې داسړے منافق دے
دا قول دَ الله تعالیٰ دے (وَإِذَا أَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوا وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ)
ترجمه، کله چه په دوئ تیارهٔ شي او دریږي که الله تعالیٰ او غواړي نو غوږونه به ورنه واخلي)

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، تیارهٔ خوب کښې غم او فکر دے او که اوګوري
چه هوا سخته توره تیارهٔ شوه تعبیرئې دَ وطن خلکو ته به غم او فکر رسیږي۔
او کاروبار کښې به ئې تباهي راځي او که اوګوري چه هوا روښانه ده، اچانک ورباندے
وریځ راغله، تعبیرئې په دے ملک کښې به ناڅاپه مرګونه راځي۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی. تیارهٔ خوب کښې لیدل په پنځو وجوهٔ
(۱) کفر (۲) حیرانی (۳) دَ کار بندیدل (۴) بدعت (۵) ګمراهي کښې پریوتل۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښې اوګوري چه دَ
تیارے نه رڼا ته راغلو، تعبیرئې دَ غریبئ نه به مالدارئ ته راځي او دَ غم نه
به خلاص شي او کار به ئې ښهٔ شي او ګمراهي نه به لرے وي۔
که مالدار سړے اوګوري چه دَ تیارے نه رڼا ته لاړ دے تعبیرئې
مال به ئې زیات شي که فقیر اوګوري چه مالداره شو، تعبیرئې کار به ئې
خراب شي۔ الله تعالیٰ په حقیقتونو ښهٔ پوهیږي۔

## تبخ ۔ (تابه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، تبخې په خوب
کښې دَ کور خڼ متکار دے چه دَ کور دَ پاره منتظم
وي او په خپل عیال او په نورو خرچه کوي. که څوک اوګوري چه دَدهٔ سره
توے تبخې دے یا ورته چا ورکړے دے تعبیرئې، نیک خڼ متکار به ورته
حاصل شي یا به ورنه جدا شي۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوري چه په تبخې څهٔ شے پخوي
تعبیرئې دَدهٔ دَ خڼ متکار کار به درست وي او که اوګوري چه په تبخې څهٔ خوري

تعبیر ئے دۀ ته به دَ خوراک دَ خل متکار نه فائده وي که اوګوري چه هغه خوراک تروش او ناپسند يده وو تعبير ئے په غم او فکر دے۔
په دے کښے درے قولونه دي (۱) خادمه (نوکره) ده (۲) ځکنے وائی دا سړے وي چه ښار ونو ته پیغام اوړي راوړي (۳) ځکنے وائي ښځه ده.
که خوب کښے اوګوري چه ئښیښے تبخے دَ دۀ په کور کښے دے تعبیر ئے ښځے ته به طلاق ورکوي۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه دۀ سره تبخے دے یا ورته چا ورکړے دے تعبیر ئے دَ تبخی په اندازه به ښځه نوکره یا وینځی ورته حاصله شي یا به دَ دۀ نوکره ښځه دَ دۀ سره ملګرتیا کوي چه دَ هغے نه به فائده اوچتوي. که اوګوري چه دَ دۀ تبخے ضائع شوے دے تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

## تبه۔ (تب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که څوک خوب کښے اوګوري چه دَ دۀ همیشه تبه وه، دَ لږ وخت دَ پاره ورته نۀ لرے کیده. تعبیر ئے همیشه به ګناه او فساد کښے مشغول وي پکار دي چه توبه او باسي چه دَ عذاب نه خلاصے او نجات او مومي۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي که څوک خوب کښے اوګوري چه دَ دۀ لویه تبه ده، تعبیر ئے وجود به ئے ښۀ او عمر به ئے اوږد وي او که اوګوري چه لږه تبه ئے دۀ تعبیر ئے دَ اول خلاف دے۔

## تبر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، تبر لیدل دا سے خل متکار دے چه په وینا به کار کوي او که ورته دَ څۀ کار او وئیلے شي نو دے غواړي چه مات کړے ئے کړي دَ دے دَ پاره چه بیا ورته دَ کار او نۀ وئیلے شي۔
حضرت جابرؒ فرمائیلي دي تبر خوب کښے لیدل ویروونکے سړے دے که مدد او کړي نو منافق دے او په خلکو کښے جنګ او جدائي اچوي که اوګوري چه تبر لري یا ورته چا ورکړے دے. تعبیر ئے دَ دۀ به په همدے صفت سړي سره به ئے دوستي شي، او که اوګوري چه تبر ئے مات شوے دے او یا ضائع شوے دے تعبیر ئے دَ دۀ دَ مرګ نیټه نزدے شوے ده۔

## تخت

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که یو سړے اوګوري چه په تخت ناست دے او په تخت ئے څۀ اچولي نۀ دي تعبیر ئے

سفر به کوی۔ او که اوګوری چه په تخت اُوده دے او په تخت ئے څټ غوړولی دی تعبیر ئے عزت به مومی دَ هغهٔ تخت دُ قدر او قیمت په اندازه او په دښمنانو به کامیاب وی مګر دَهغوئ نه به غافل وی که داسې دَبن کارو دَهلے ځنے وی تعبیر ئے دے به په دار وخیژولے شی خاص هغه وخت چه خپل ځان په خپله په تخت اُوده اووینی۔ او که اوګوری چه تخت مات شو او دے ورنه پریوتو تعبیر ئے دَ عزت او مرتبے نه به پریوځی او حال به ئے خراب وی۔

## تخت۔ (عرش)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی، تخت په خوب کښے لیدل مالدار اری، بزرګ یا غوښتونکے مال دے که اوګوری چه تخت ښائسته کړے شوے دے تعبیر ئے دَدهٔ به لوئے سړی سره ناسته راشی او نصرت او عزت به بیا مومی۔

او که تخت سپک اوګوری تعبیر ئے دَ خلکو په وړاندے به ذلیله شی۔ او که خپل ځان دَ تخت دَ پاسه ناست اوګوری تعبیر ئے دَ لوئے سړی سره به ئے ناستے او ملاقات اوشی او دَ هغهٔ نه به عزت او مرتبه او مومی که اوګوری چه دَ تخت نه لاندے راغلے دے تعبیر ئے دَ اول خلاف دے۔

حضرت امام جعفر صادق فرمائیلی دی۔ دَ تخت لیدل په پنځو وجودی (۱) دَ بزرګ سړی سره ملګرتیا (۲) اوچتوالے (۳) مرتبه (۴) عزت (۵) مشروالے

## تخم کرل۔ (تخم کاشتن)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی، که څوک خوب کښے اوګوری چه تخم ئے اوکرلو او بیائے راجمع کړو تعبیر ئے بزرګی او عزت به بیا مومی۔

او که اوګوری چه چرته ئے کرلی دی هم هغه ځائے نه ئے خوری دَدے تعبیر دَاول نه بنهٔ دے او که اوګوری چه تخم ئے کرلی دی هیڅ ورنه حاصل نهٔ شول او دے وربانندے پوه نهٔ شو چه هغه څهٔ شول او نه ئے په کمو او زیاتو پوهه شو۔ تعبیر ئے غم او فکر کښے به ګیریږی۔

حضرت کرمانی فرمائیلی دی، که اوګوری چه غنم ئے کرلی دی تعبیر ئے دهٔ نه به خیر او نیکی ورسیږی که اوګوری چه اوربشے ئے کرلی دی تعبیر ئے لږ مال ئے مال به جمع کړی که اوګوری چه باجره ئے کرلے دهٔ، تعبیر ئے لږ مال به جمع کړی که اوګوری چه مسور، باقلاء، لوبیا او دَدے پشان نورشیان

ئے کرلی دی، تعبیر ئے، غم او فکر دے۔

حضرت دانیال فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه پخپله زمکه کښې غم کری، تعبیر ئے ښځه به کوی او کار به ئے جوړ شی او که اوګوری چه کرلے شوے زمکه نۀ ده کرلے شوے تعبیر ئے دَ چا سره به په جنګ واقع شی او که اوګوری چه یو نا معلوم ځائے ئے کرلے دے او زر غونه شویدا ئے تعبیر ئے غزا به کوی او غزا به ورته اسانه شی او نیکی به کوی او که اوګوری چه په زمکه کښے کرل کوی تعبیر ئے مال او نعمت به حاصل کړی که اوګوری چه اوربشے یا غنم یا دَ او نو بوټی په خپله زمکه کښے کری تعبیر ئے عزت او مرتبه به ئے زیاته شی په هغه کرلی شوے اندازه۔

حضرت امام جعفر صادق فرمائیلی دی، دَ تخم کرل په څلورو وجوی۔
(۱) مرتبه او بزرګی (۲) فساد (۳) حرام مال (۴) کټه په تجارت کښے

## تخمونه لیدل

حضرت ابراهیم کرمانی فرمائیلی دی، تخمونه لیدل دَ هغه شیانو چه ترش او بے مزے تعبیر ئے غم او فکر دے هغه خاص تخمونه چه دَ هغے خوړل سخت او مشکل دی مګر دَ هغه تخمونو خوړل چه خوږ او مزیدار وی تعبیر لږ فائده ده۔

حضرت جابر مغربی فرمائیلی دی په خوب کښے دَ تخمونو خوړل او لیدل ښۀ دی مګر هغه ښۀ نۀ دی چه زاړۀ او، یا خوچینجو خوړلی وی.

## تله - (ترازو)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی، تله په خوب کښے لیدل قاضی دے. که څوک خوب کښے اوګوری چه دۀ سره نوے تله ده او یا ورته چا ورکړے تعبیر ئے دلته قاضی دے او فقیهه عالم پاک دے او دَ تلے چابړے دا دَ قاضی قوت او روین ل دی او کوم درهم چه په دے کښے دی دا خصومت او مقدمه ده چه قاضی په وړاندے کیږی. او کانړے دَ تلے دا دَ قاضی عدل انصاف او ورکړه ده چه قاضی ئے دَ دواړو دلو منځ کښے کوی دَ فیصلے په وخت کښے که اوګوری چه تله برابره ولاړه ده او یو طرف ته کږه نۀ ده تعبیر ئے قاضی به انصاف کوی او که اوګوری چه تله برابره نۀ ده تعبیر ئے قاضی منصف نۀ دے په امر کښے یو طرف ته کوږ دے۔

حضرت کرمانی فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه دَ تلے ډنډے ماته ده

تعبیر ئے، په هغه ځائے کښې به قاضی مرشی که اوګوری چه په تله کښې نقصان او زیاتوالے دے تعبیر ئے دَ قاضی په عدل او انصاف کښې زیات والے او کموالے دی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، دَ تلے درست کول دا دَ قاضی نجات او خلاصے دے دَ دوزخ نه۔

## تله جوړوونکے۔ (ترازوگر)

تله جوړوونکے په خوب کښې عادل بادشاه یا انصاف دار قاضی یا عادل وزیر دے

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلی دی دَ قیامت تله په خوب کښې په شپږ وجوه

(۱) قاضی (۲) بادشاه (۳) فقیه عالم (۴) قاصد (۵) رښتینے حاکم (۶) بے انصافه حکم

که څوک دَ قیامت په تله کښې نیکی دَ بدئ نه زیاته اوګوری تعبیر ئے جنت ته به ځی او دَ عذاب نه به نجات او مومی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے، فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِيْنُهٗ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝ الاعراف دَ چاچه نیک عمل دروند دے پس دا کسان کامیاب دی۔

او که دَ دے خلاف اوګوری تعبیر ئے دَ دوزخ مستحق دے۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِيْنُهٗ فَاُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فِيْ جَهَنَّمَ خٰلِدُوْنَ ۝) المومنون: دَ چاچه بدی درنه شی دا هغه خلق دی چه تاوان ئے رسولے دے خپلو ځانونو ته او دوئ به دوزخ کښې همیشه وی۔

## تروش شیان۔ (ترشیها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، تروش خوړل خوب کښې تعبیر ئے غم او فکر دے لکه تروشه میوه۔ که اوګوری چه چا ورته تروش شے ورکړیدے تعبیر ئے دَ دۀ نه به بل چاته غم او فکر رسیږی۔ خلاصه دا چه تروش شیانو خوړلو کښې خیر نشته دے۔

## ترنجبین۔ (ترنگبین)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی ترنجبین لیدل خوب کښې بے منته حلال مال دے دَ الله تعالیٰ کلام دے۔ وَاَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ ۝ (۱) دَ البقرہ مونږ درته من او سلویٰ خورئ دَ پاکیزه هغو شیانو ځنې چه زۀ ئے درکوم۔

که اوګوری چه ډیر زیات ترنجبین لری او، یا ورته چا ورکړی دی تعبیرے

ئې ډیره روزي به دَ هغه ځایه اومومي، چه امید ئې نه وي او کاروبار به ئې په انتظام سره وي.

حضرت امام جعفر صادق رضؒ فرمائیلي دي که خوب کښې ترنجبین او خوري او یائې اوګوري تعبیر ئې په دریو وجود ے (۱) مال او روزي حلاله بې منته (۲) روزي او کاردنو کښې اسانتیا (۳) دَ زړه مراد ترسره کیدل.

## تریاق۔ (تریاک)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، په خوب کښې تریاق خوړل دَ بیماري وجه ده. تعبیر ئې دَ غم نه په خلاص شي او تهول کارونه به ئې ښهٔ شي او که دَ دے خلاف اوګوري نو دَ غم او دَ نقصان او دَ مختلف قسم فکرونو تعبیر لري.

## تسبیح کول۔ (تسبیح کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، په خوب کښې تسبیح کول دَ الله دَ امر تابعداري ده. که اوګوري چه تسبیح وائي په خوب کښې تعبیر ئې دَ الله تعالیٰ دَ امر به تابعداروي او دَ غم او فکرنه به خلاصے اوموخي. او که اوګوري خوب کښې چه دَ خپل ځان سره تسبیح لري تعبیر ئې دا ده ته به غم او فکر رسیږي مګر اجر او ثواب به ورته ډیکښې ملاویږي. او که اوګوري چه دَ تسبیح سره دَ الله تعالیٰ شکر اداکوي تعبیر ئې په دین کښې به قوي وي او مال به حاصل کړي. او که دا قسم خوب څوک دَ ملک حاکم اووینې تعبیر ئې دَ دهٔ ملک به آباد شي. دَ الله تعالیٰ قول دے وَلَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ (ط ابراهیم) که تاسو شکر کنړارشئ نو ربه ئې درته زیات کړم.

## تندکا۔ (تشنگي)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښې دَ تندې نه په اوبو مړیدل ښهٔ دي. که اوګوري چه ډیر تږے شوے دے او اوبه ئې پیدا نهٔ کړے تعبیر ئې دین دَ پاره یا دَ دُنیا دَ پاره به ورته غم او تکلیف رسیږي که څوک خوب کښې اوګوري چه تږے وو او اوبه ئې پیدا نهٔ کړے یا چا ورکړے خودهٔ او نهٔ ځښلے، تعبیر ئې دَ غم او فکر نه به خلاصے اوموخي او آخر به مراد ته رسیږي.

حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي، تنده لیدل خوب کښې دَ دین فساد دے. که اوګوري چه په تنده کښې اوبه پیدا کړي او وے ځښلے، تعبیر ئې ګناه به کوي او بیا به توبه اوباسي او نیک او پرهیزګار به شي.

## تعویذ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک اوګوري خوب کښې چه دده سره تعویذ دے یا د الله تعالیٰ د نومونو نه یونوم دے تعبیر ئے، که بیماروی شفا به بیا مومی که څه وهم لري نو وهم به ئې لرے شی او که قید ی (جیلی) وی راخلاص به شي او که سفر کښې وی نو سالم به واپس راشي.

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوري چه تعویذ لیکی او خلکوته ئې ورکوی تعبیر ئې خلکوته به ورنه نفع رسیږي۔ او که اوګوري چه تعویذ لیکی او خلکوته ئې ورکوی او د هغې قیمت ورنه اخلی. تعبیر ئې غمژن او فکرمند به وی۔

## تکبیرکول۔ (تکبیر کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښې اوګوري چه تکبیر کوی تعبیر ئې د دښمنانو د شر نه به خلاصے اومومی او د خیرات دروازے به په دهٔ پرا نستلے شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښې لیدل د تکبیر کول په څلور وجوو وی (۱) د دښمن نه امن کښې کیدل (۲) د فتنے او بلانه به امن کښې وی (۳) خیر او برکت (۴) د بند و کارونو خلاصیدل۔

## تندر۔ (تندر)

په فارسئ ژبه کښې د اسمان ګرزنګ ته وائی او د دے خوب کښې یره او ډار دے د حاکم او د عوامونه.

ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښې اوګوري چه باران کښې پرق کم دے تعبیر ئې خلکوته به یره کمه وی او خیر او نعمت زیات ورته حاصل شی، او که اوګوري چه سخت باران او پرق هم سخت دے خوب لیدونکے به د موریلار دُعاء ته ویره مومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چه د رعد لږ پرقیدل او لږ باران وریدل د پرهیزګارو او نیکو خلکو دُعاء سره ویره دهٔ۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښې د پرق لیدل په پنځو وجو دی (۱) عذاب (۲) حکمت (۳) تکلیف (۴) دبدبه (۵) د بادشا غصه که اوګوري چه د باران وریدو په وخت د پرق آواز آوری تعبیر ئې په هغه ملک کښې به خیر او برکت ښکاره شی. که اوګوري چه باران

پړق او بریښنا ده تعبیر ئے دَ دغه ملک خلکو ته به دَ بادشاه نه ویره او دهشت دی که اوګوری چه باران کښے داوره هم وریږی تعبیر ئے دغه ملک کښے به فتنه، عذاب او مرګونه راښکاره شی او که اوګوری چه پړق سخت آوازکوی تعبیر ئے دَبادشاه هیبت به په ملک کښے خورشی که اوګوری چه تند روو او پړقاهم وو او هوا تیاره وه۔ تعبیر ئے ظالم بادشاه به راښکاره کیږی.

**تنور** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، خوب کښے تنور لیدل بزرګ او دَکور بادشاه دے او څښے تعبیر کونکی وائی چه خوب کښے تنور لیدل دَکور مالکه ده، که اوګوری چه روغ تنور لری تعبیر ئے دَکور کاروبه به ئے درست او په انتظام سره وی او که اوګوری چه تنور پریوتو اوخراب شو. تعبیر ئے غم او آفت او بیماری او دَکور بربادی به وی۔

او که اوګوری چه په تنور روټئ پخوی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به حلاله روزی او مومی او کار به ئے ښهٔ شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه په تنور کښے سخت اور بے رڼرا دے او بغیر دَ لوګی دے تعبیر ئے بیت المقدس یا به حج ته ځی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (مِنْ شَاطِیءِ الْوَادِ الْاَیْمَنِ فِی الْبُقْعَةِ الْمُبٰرَكَةِ)[1]

ترجمه: دَکناره دَکندے نه چه ښی طرف دَ دوه مبارک ځائے کښے (مکه یا بیت المقدس)

او څښے وائی چه خوب لیدونکی ته به خیر او نفع حاصلیږی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، دَ تنور لیدلو دوه وجے دی۔

(۱) خیر او نفع خاصکر چه نوے وی (۲) چه هیبتناک سرے رحم لری۔

**توبره (دَ اَش دَ ځلے خلته)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، توبره خوب کښے لیدل خیر او برکت دے خاصکر چه نوے وی که اوګوری چه توبره لری یا ورته چا ورکړیده تعبیر ئے دَ چا نه به ورته خیر او برکت ورسیږی او که اوګوری چه دَ ده توبرے ضائع شویدی دَ دے تعبیر دَ اول خلاف دے۔

**توبه کول۔ (توبه کردن)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه خوب کښے دهٔ توبه کړیده تعبیر ئے دَ ټولو ګناهونو نه به پښیمانه شی، او دَ دُنیا نه به لاس واخلی او دَ آخرت په طلب کښے به شی او نیک عمل به کوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی پہ خوب کښې تو یه کول خلور وجودی۔ (۱) دګناه نه پښیمانی (۲) دخدائے رضا (۳) دآخرت لاره (۴) نیک بختی۔

## تورات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښې اوګوری چه تورات لولی تعبیرئے په ښکاره دلیل دے چه دۀ ته به د صاحب اقبال او مرتبې والا سړی نه په قوت حاصلیږی او که اوګوری چه تورات ئے په ښکاره لوستلو تعبیرئے دے به دچا سره جنګ او جګړه کوی او په هغه به کامیابی مومی او مراد به ئے حاصل شی او که څوک اوګوری چه چاته ئے د تورات تعلیم ورکولو، تعبیرئے دهغه کس نه به دۀ ته خیر ورسیږی۔

## توره۔ (خنجر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښې اوګوری چه لاس کښې ئے توره ده تعبیرئے، دچا سره به ئے دښمنی شی۔ که اوګوری چه توره ئے ماته شوے ده یا ضائع شوے ده تعبیرئے دښمنی به ئے ختمه شی او صلحه به ئے منځ کښې راشی او که اوګوری چه په لاس دده کښې توره ده تعبیرئے چه کوم کول عواړی دچا مدد به ورسره په دے کښې حاصلیږی او که اوګوری چه د تورے سره توره اسلحه هم ورسره ده تعبیرئے په دښمن به کامیابی حاصله کړی اوکار به ئے په انتظام سره وی۔

## توره۔ (شمشیر)

حضرت دانیال فرمائیلی دی چه توره پوخ کښې لیدل تعبیرئے ښځه ده او بغیر پوخ نه (تیکی)، مال، مراد، حکومت دے۔ که اوګوری چه توره په لاس کښې لری تعبیرئے دده به ځوئ پیدا شی۔ که اوګوری چه توره د پوخ نه بهر ده همدا رنګه تعبیر لری او که اوګوری چه توره په پوخ کښې ده او هغه پوخ ئے مات شوے دے او توره روغه او سالمه ده۔ تعبیرئے ځوی به ئے سالم وی او مور به ئے مری۔ او که اوګوری چه دده لاس کښې بربنړه توره ده او په چائے پورته کړے ده تعبیرئے دغم او فکر خبره ده چه چاته به ئے کوی او که اوګوری چه په توره ئے څوک وهلے دے او زخمی کړے ئے نه دے، تعبیرئے د هغه سړی په باره کښې به ئے ژبه په حق پرانستی وی او که اوګوری چه توره په چا زر او چلیده

تعبیر ئې کوم سړے چه ئې زخمي کړيدے دَهغه نسل به ختم شي. که اوګوري
چه دَ دهٔ په خټه کښې توره زوړنده ده تعبير ئې دَ هغه ولايت ذمه واري به
په ده دي او که دَ تورے پوخ اوږد زوړو تعبير ئې دَ ولايت احتمال نه لري
او که اوګوري چه دَ تورے پوخ لنډ دے تعبير ئې دا ولايت به دهٔ نه سپاري
او که اوګوري چه دَ تورے پوخ لنډ دے او مات شوے دے تعبير ئې هغه
ولايت به دَ دهٔ نه لاړ شي او که څوك اوګوري چه بغير دَ جنګه ئې څوك په توره
وهلی دی تعبير ئې دا سړے به مشهوره شي

حضرت کرمانیؒ فرمائيلي دي که اوګوري چه په خپل لاس کښې ئې
توره زوړنده کړے ده. تعبير ئې ځوی به ئې پيدا شي، که ځوئي نه وي
نو حکومت به بيا مومي. که چا خوب کښې اوليدل چه چا ډيرے تورے ورکړيدي
تعبير ئې مالداره به شي که اوګوري چه پوخ او توره دواړه مات شويدي
تعبير ئې مور او ځوی به ئې دواړه مړهٔ کيږي. که اوګوري چه چا په توره
وهلے دے او وينه ورنه روانه شوے ده او جامے وربانديے ککړه شويدي
تعبير ئې په ده به دَ حرام مال تهمت ولګيږي که اوګوري چه توره ورنه
واخستے شوه تعبير ئې په کوم کار کښې چه دے وي ورنه به واخستلے شي
او که اوګوري چه توره ئې ملا پورے تړلے ده تعبير ئې عمر به ئې زيات شي.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائيلي دي که اوګوري چه دَ اوسپنے توره ورسره
ده تعبير ئې دَ دهٔ کار به مضبوط وي او که اوګوري چه دهٔ سره دَ سپينے توره
ده تعبير ئې دَ مالداره ښځے نه به خير او ښيګړه او مومي. او که اوګوري
چه دهٔ سره دَ سرو زرو توره ده تعبير ئې دَ دين او دَ عمل نه به قوت
مومي. او که اوګوري چه دهٔ سره دَ لرګي توره ده تعبير ئې دَ ده کار به
کمزورے وي. که اوګوري چه دهٔ سره دَ ټهيکري توره ده تعبير ئې دَ ده کار به
دَ ښځو نه به قوت او مومي، او که اوګوري چه دَ هغهٔ دَ تورے پوخ مات شويدے
تعبير ئې دَ دهٔ دَ خاندان نه به يو کس مري. که اوګوري چه دهٔ سره دَ
نيزه توره ده تعبير ئې دَ دهٔ کار به روان شي او که اوګوري چه دهٔ سره دَ
لاجوردو توره ده تعبير ئې دَ دهٔ کار به پائيداره وي. او که اوګوري چه دهٔ
چه دَ دهٔ توره دَ آئينے په شان ده او پړق کيږي تعبير ئې
به دَ بادشاه نه عزت او مهرباني مومي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، په خوب کښې توره لیدل په پنځو وجودی (۱) بچی او اولاد (۲) ولایت (۳) دلیل (۴) نفع (۵) په دشمن کامیابیدل۔ په خوب کښې د توري جوړوونکے سړے قوي او فصیح ژبانه سړے دے۔

## تهوکانړے (لاړے) (خیو)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوري چه تهوکلی دی تعبیر ئے دغه ځائے مناسبه خبره به کوی۔ او که اوګوری چه په مسجد کښې تهوکلی دی، تعبیر ئے د دین په باره کښې به خبره کوی، همدارنګه چه په هر ځائے کښې تهوکلی وی تعبیر ئے د هغه ځائے خلکو په باره کښې به خبره کوی او که اوګوری چه په دیوال ئے تهوکلی دی تعبیر ئے دا دے ځائے کښې به مال خرچ کوی چه په هغے به الله تعالیٰ راضی نۀ وی۔ او که اوګوری چه په زمکه ئے تهوکلی دی فائده ورکول به ئے په خپله اوګوری۔ او که اوګوری چه په ونه ئے تهوکلی دی تعبیر ئے، وعده به ماتوی او په دروغو به قسمونه خوری۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی چه کړے تهوکانړے په اوږد عمر تعبیر دے او یخ تهوکانړے په مرګ تعبیر لری۔ او بد لیږی په بد لیدلو د خوب سره او توره تهوکانړے په غم او فکر تعبیر لری۔ او زیړے تهوکانړے په بیماری تعبیر لری۔

او د خلے اوبه چه د خلے نه راووځی بغیر د دے نه چه جاے کنده کړی تعبیر ئے د باطل او دروغژن علم تقریر به کوی او که ډ دے اهل نۀ وی، نو دروغ به وائی، او که اوګوری چه بلغم ئے د مرئے نه اوویستلو او لستونړی باندے واچول تعبیر ئے خپل مال به په خپل اولاد خرچ کړی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه چا د وینو کنده تهوکانړے چا د دهٔ په مخ تهوکلی دی تعبیر ئے د دهٔ په اهل کښې به څوک پیغور ورکوی او که اوګوری چه تهوکانړے د وینو سره ګډ شوی تعبیر ئے، حرام به خوری، دروغ به وائی، په وعده به وفا نۀ کوی۔

## تنډرے (دراج)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، تنډرے خوب کښې ښائسته ښځه ده مګر بے مینے ده چه د خاوند سره وخت نۀ تیروی۔ که اوګوری چه تنډرے ئے نیولے دے او یا ورته چا ورکړیدے تعبیر ئے دا قسم ښځه به کوی۔ او که اوګوری چه

دَ تنذرى غوښه ئې خوړلې ده تعبیرئې دَ هغې په اندازه به دَ ښځې مال حاصلوى۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه ډیر تنذری ورسره دی او پوهیږی چه دائې خپل دی، تعبیرئې دَ هغې په اندازه ښځې اوبنز به حاصلوى او که اوګوری چه تنذرے ئې دَ لاسه والوتو تعبیرئې ښځې ته به طلاق ورکوى۔

**دَ تور لرګی ونه۔ (درخت آبنوس)** تور لرګی ونه لیدل هغه سړے چه په خپل کارکښې عاجزه وى دَ هغهٔ تعبیر دے او ځینې تعبیرکونکی بیان کوى چه ښځه یا وینزه ده۔

**تلل۔ (رفتن)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ خپل ښار نه ځی او نا معلومه ځائې ته روان دے تعبیرئې عاجز او حیران به وى او که ښځه او خوئى ورسرهٔ وى تعبیرئې ټول به حیران او پریشان وى۔ او که اوګوری چه دَ اُوښ پشان ځی تعبیر دَ دُنیا سعادت به او مومی، او که اوګوری چه دَ درنده په شان ځی تعبیرئې بد دے۔ که اوګوری چه دَ لرم پشان ځی دَ دے همدا تعبیر دے او که اوګوری چه دَ ښکاری مارغانو پشان ځی تعبیرئې خیر او نیکی ده۔ او که اوګوری چه داسے په تیارهٔ کښې دے او دَرنړا طرف ته ځی تعبیرئې دَ باطل لارے نه دَ حق لارے طرف ته به ځی۔ او که اوګوری چه دَ ورانئې نه ابادئ طرف ته ځی، تعبیرئې دَ تنګئ نه به فراخئ ته راشی۔ او که اوګوری چه دَ آبادئ نه خرابی طرف ته ځی تعبیرئې دَ اول خلاف دے او که خراب ځائې ته ځی تعبیرئې بد دے۔ او که نیک ځائې ته ځی تعبیر ئې خیر او نیکی ده۔

**تورے۔ (سپرز)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، تورے لیدل خوب کښې مال او خوشحالی ده۔ که اوګوری چه دَ غوایئ تورے ورسره دے، تعبیرئې دهٔ ته به په دے کال کښې څه حاصلیږی او که اوګوری چه دهٔ سره تورے دے، تعبیرئې دهٔ ته به دَ قوم بزرګ سړی نه څه حاصلیږی۔ او که اوګوری چه دهٔ سره دَ ځنګلی ځناورو تورے دے، تعبیر دهٔ ته به دَ بیچارهٔ سړی نه مال حاصلیږی۔ او که اوګوری چه دهٔ سره ډیر توری

دی تعبیر ئے دهٔ ته به دَ هغے تورو په اندازه غم رسیدلے مال حاصلیږی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے هرقسم تورے لیدل مال دے او دَ کوموځنا وروغوښه چه حلاله ده، تعبیر ئے حلال مال دے او دَ کوموځناوروچه غوښه حرامه ده تعبیر ئے حرام مال دے.

**تَلَلُ (وزن کول)۔(سنجتن)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه دهٔ سره تله ده او څه یرے وزن کوی تعبیر ئے دَ خلکو په منځ کښے به انصاف کوی که اوګوری چه صحیح کوی تعبیر ئے حکم به منصفانه کوی. دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَزِنُوْا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيْمِ) الشعراء: ۱۸۲ او صحیح تلے سره وزن کوی. که اوګوری چه صحیح تول کوی که دَ علماءِ دَ ډلے نه دی نو قاضی به شی او که عالم نهٔ وی نو دَ قاضی به محتاجه شی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، صحیح تول خوب کښے په څلورو وجوده (۱) برابرحکم (۲) نیکی (۳) انصاف ته محتاجی (۴) حاکم کیدل او که صحیح تول نهٔ کوی تعبیر ئے دَ اول خلاف دے.

**تهال سطل** حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی. تهال خوب کښے دَ خدمتګارے دے تعبیرلری. که اوګوری چه نوے تهال ئے اخستے دے تعبیر ئے وینزه به اخلی او که اوګوری چه دَ دهٔ په تهال کښے سورے دے تعبیر ئے چه دَ دهٔ وینزه به عیب جنه وی.

**دَ تارومیوے اُوبهٔ (سیکی)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی. سیکی خوب کښے حرام مال دے که اوګوری چه دَ تارومیوے د اوبو منځ کښے واقع شوی دے تعبیر ئے فتنه کښے به پریوځی. او که اوګوری چه سیکی څښی، تعبیر ئے په هغے اندازه به حرام مال بیا مومی. که اوګوری چه سیکی پخوی اوخوری تعبیر ئے حرام مال به په سختئ سره لاس ته راوړی که اوګوری چه دَ دهٔ په کور کښے ډیرے دَ تارو اوبهٔ دی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ دهقان نه نفع او مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ تارو اوبه کښے وچے او څښی تعبیر ئے، ځنے حلال او ځنے حرام مال به او مومی. که اوګوری چه دَ تارو اُوبهٔ خرڅوی، تعبیر ئے حرام مال به خرڅوی او په سود به ئے ورکوی، او دَ تارو

او بوخښلو کښې خیر نهٔ وی او دَ حاکم دَ پاره دَ منصب نه لرے کیدل وی او دَ کهجورو او به غم او فکر دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، تا هٔ دو اُو به لیدل خوب کښې په درې وجو دی۔ (۱) حرام (۲) نکاح کول (۳) دَ دے دُنیا نعمت او دَ تا هٔ دو اُو به خړ خوړو کے یو داسے سړے وی چه دَ جنګ او دَ فتنے طلبګار دی۔

## توشک۔ (شادروان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه توشک ئے غوړولے دے او پوهیږی چه دا دَ دهٔ ملکیت دے تعبیر ئے دَ هغهٔ دَ فراخوالی په اندازه به عمر او زندګی به اُوږده شی۔ که اوګوری چه دوستانو سره خپل بنار کښې یا بهر بل ځائے کښې په توشک ناست دے، تعبیر ئے مال، نعمت، روزی او اوږد عمر دے۔ او که اوګوری چه پردی ځائے کښې ئے دَ دهٔ دَ پاره توشک غوړولے دے او دے نهٔ پوهیدو چه دا دَ چا ملکیت دے تعبیر ئے حالت به ئے بد شی او سفر کښې به مړ شی۔ او که وړوکے توشک خوب کښې اوګوری تعبیر ئے لږه روزی او لنډ عمر دے او که اوګوری چه توشک ئے غونډ کړو او دَ خپل ځان سره ئے اخستے دے تعبیر ئے دَ خپل ځائے نه به پردی ځائے ته لاړ شی۔ که اوګوری چه په توشک دَ چا تصویر جوړ شوے دے او هغه دهٔ پیژندلو او دَ هغهٔ سره ئے خبرے کولے، تعبیر ئے دَ دهٔ به په دروغو صفت کوی۔ که اوګوری چه توشک ئے خرڅ کړے دے او یا ئے چا ته ورکړے دے تعبیر ئے بد دے۔

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی که اوګوری چه توشک ئے غوړولے دے تعبیر ئے دَ عمر اوږدوالے او دَ کاروبار کیدلو تعبیر لری او که اوګوری چه وړوکے توشک دے او دَ دهٔ دَ لاندے لوئے شو۔ تعبیر ئے دهٔ ته به روزی فراخه شی۔ او که دَ دے خلاف ئے اوګوری۔ تعبیر ئے روزی به ئے تنګه شی او که اوګوری چه لوئے توشک ئے غوړولے دے او دهٔ په خپل لاس غونډ کړو او دَ کور په کونج کښې کیښودلو تعبیر ئے خپل دولت او مستقبل به خراب کړی

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه توشک زوړ او شلیدلے دے تعبیر ئے دَ دُنیا په عشرت کښې به مشغول وی، که اوګوری چه توشک تور یا اسمانی رنګه دے تعبیر ئے غم او فکر دے او که اوګوری چه توشک زیړ دے

تعبیرئے بیماری دہ او کہ اوګوری چہ توشک سپین دے تعبیرئے نعمت او
دَ حلالے روزی دہ۔
حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی کہ اوګوری چہ نامعلومہ توشک
پہ یونامعلومہ ځائے کښے غوړیدلے دے تعبیرئے څہ چہ ئے پہ لاس کښے دی
ورنہ بہ لاړ شی کہ اوګوری چہ معلوم توشک دَ چا پہ کور کښے غوړولے
شوے دے، تعبیرئے دَ کور خاوند تہ بہ روزئ نعمت حاصل شی۔
کہ اوګوری چہ نامعلومہ کور کښے توشک غوړیدلے دے اودے پرے
ناست دے تعبیرئے سفر تہ بہ لاړ شی او هغہ سفر کښے بہ مال، نعمت
حاصل کړی۔
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، دَ توشک لیدل پہ خوب
کښے پہ څلورو وجوو وی (۱) حلالہ روزی (۲) عمر (۳) نفع (۴) زندګی

## تیکے۔ (دَ تورے پوخ)۔ (غلاف)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی تیکے پہ خوب کښے ښځہ دہ۔ کہ
اوګوری چہ دَ تورے تیکے مات شویدے او تورہ سالمہ پاتے شوہ تعبیر
ئے روغ او سالم ځوی بہ ئے پیدا شی او مور بہ ئے مړہ شی او دَ چاړے
تیکے همدا تعبیر لری۔

## تولیہ۔ (فوطہ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ تولیے او دَ تولیے دَ کپړے خوب کښے لیدل خوشحالی
او اسانی دہ۔ کہ اوګوری چہ تولیہ دَ تارونو (پُنبے) دہ چہ دَ دَهٔ سر کا دہ۔
تعبیرئے دَ دین او دُنیا اسانی دہ چہ دے بہ ئے مومی خاص هغہ تولیہ چہ
نوے او فراخہ وی۔ کہ زړہ او شلیدلے اوګوری نو تعبیرئے دَ دے خلاف دے۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی، تولیہ خوب کښے دَ صالح او نیک کردارہ سړی
لباس دے، کہ اوګوری چہ دَ تولیے کپړے لباس ئے اغوستے دے او خوب
لیدونکے پکښے پټ دے، تعبیرئے، دَ دهٔ پہ زیاتوالی بہ پردہ وی کہ لیدونکے
دَ خوب فاسق وی، تعبیرئے، توبہ بہ اوباسی او دَ اصلاح پہ لټون کښے بہ شی۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، کہ بادشاہ دَ تولیے کپړہ اوګوری
تعبیرئے عدل او انصاف بہ کوی۔ کہ قاضی اوګوری چہ دَ تولیے جامہ
ئے اغوستے دہ تعبیرئے، فیصلہ بہ صحیح کوی او کہ مشرک ئے اوګوری تعبیر

ئې مسلمان به شي او که فاسق ئې اؤګوري توبه به اوباسي او که غل ئې اؤګوري نو توبه به اوباسي او د اصلاح لارې په لټون کښې به شي۔

## تقسیمول ۔ (تقسیم کردن)

تقسیمول: حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که اؤګوري چه د یو ے پړے منځ کښې څه شے تقسیموي، تعبیرئې د خلکو په منځ کښې د انصاف فکر او لحاظ کوي. او که اوګوري چه خپل مال په خیر او صلا تقسیموي. تعبیرئې د دۀ به ځامن راځي او خپل مال به د دوئ په منځ کښې تقسیموي که اوګوري چه خپل مال په بدۍ او شر تقسیموي تعبیرئې د دۀ به مال تباه شي۔ که اوګوري چه د چا مال د هغۀ په خوښه تقسیموي. تعبیرئې د هغه فساد او صلاح به دۀ ته راګرځي۔

## تاله قلف (قفل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښې تاله لیدل د دُنیا او د دین د کارونو د سمیدو تعبیر لري. که اوګوري چه تاله زر پرانستلے شوه، تعبیرئې کارونه به په دۀ راپرانستلے شي کیدے شي چه د اسلام حج اوکړي۔ او که اوګوري چه وے نشو کولے چه تاله ئې پرانستلے وے تعبیرئې کار به ئې ډیر وخت روسته کیږي۔

حضرت جابرمغربیؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه مضبوطه تاله ئې چرته په یو ځائے لګولے ده تعبیرئې خپل مال به یو نیک سړي ته وسپاري۔ او که اوګوري چه د دۀ تاله سسته او کمزورے ده تعبیرئې د دے خلاف دے

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائیلي دي، تاله لیدل خوب کښے په شپږو وجووي (۱) د کارجوړول (۲) قوت (۳) دلیل (۴) نفع (۵) ښځه (۶) په یو نیک سړي اعتماد کول۔

## تارکول ۔ (قیر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه ډیر زیات تارکول لري او کورته ئې راوړل تعبیرئې د هغې په اندازه به نعمت کورته راوړي۔ او که اوګوري چه تارکول ئې د کور نه بهر اچولي دي، تعبیرئې د اول خلاف دے۔

که اوګوري چه قیر کښے اؤرپریوتے او سوزیدلی دي تعبیرئې بادشاه ئې لرے کوي او مال به ورنه ستون کړي او که اوګوري چه تارکول ئې خوړلي

دی تعبیر ئې حرام به خوری او ځنې وائي چه غم به ورته ورسیږی۔

**تالو۔ (دکام)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دده تالو او مرئې دومره لویه دهٔ چه د لوټې والی بنده شوې ده تعبیر ئې دا دُنیا به حریص دی او دخلکو غیبت به کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه ددهٔ تالو لاندې شونډو ته رسیدلې دې۔ تعبیر ئې ددهٔ کاروته به بند شی۔که اوګوری چه ددهٔ تالو غټ شوید ې او پریکړې ئې دی او غورزولی ئې دی تعبیر ئې دُنیا حرص اولالچ به کوی او دخلکو غیبت به کوی۔

**تختیدل۔ (ګریختن)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښې تختیدل خلاصیدل دی، که اوګوری چه ددشمن یا دخوړونکی ځنا ورنه تختیدلې دې، تعبیر ئې دشر او یرې نه به امن کښې پاتې شی او په دشمن به کامیاب شی۔ ځکه چه حضرت موسیٰؑ لیدلی وو چه د فرعون علیه اللعنة نه تختیدلې دې۔ بیا دفرعون دشر نه خلاص شول او آخر ورباندې کامیاب شو۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دښمن نه پټ تختی، او دښمن اولیدلو تعبیر ئې فکرمند به شی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه خلک تختی تعبیر ئې په دهٔ به دلوئې سړی نه تهمت لګیږی۔ دالله تعالیٰ قول (یَوۡمَ تَرَوۡنَهَا تَذۡهَلُ كُلُّ مُرۡضِعَةٍ عَمَّاۤ اَرۡضَعَتۡ) الحج: هغه ورځ چه ته اووینې هره یئ ورکوونکی به خپل بچې هیرکړی۔

که اوګوری چه شیخ نیکې او پرهیزګارې نه تختی که اوګوری چه شیخ د سړونه تختی وې تعبیر ئې ښهٔ دې۔ وې تعبیر ئې بد دې او که فاسق وی

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښې منډې وهل خوشحالی دهٔ په دې شرط چه هلته دغم آواز وی۔

**تُحفه۔ (هدیه)** حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دهٔ چاته تحفه ورکړیده۔ که هغه شے د دواړو منځ کښې لائق وی دواړو ته به نفع وی او که خراب شے وی، نو تعبیر ئې دواړو ته به دیو بل نه نفع نهٔ وی بلکه شر او فساد به وی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که یو سړے خوب کښے اوګوری چه چا ورته څۀ شے هدیه ورکړے که هغه شے ښۀ او پسندیده وی تعبیر ئے اصلاح او خیر دے. او که هغه شے پسندیده نۀ وی تعبیر ئے شر او فساد دے. که څوک اوګوری چه زاړۀ سرې یا زړے ښځے ته هدیه ورکړی تعبیر ئے خیر او نفع به مومی. که اوګوری چه ځوان سړی یا ځوانے ښځے ته هدیه ورکړه. تعبیر ئے د دے خلاف دے.

**تعویذ - (بازوبند)** حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه د دۀ په مټ د سرو زرو تعویذ دے تعبیر ئے د خپلو رونړو یا د بل چا نه به ورته غم او بدی رسیږی او که سپینو زرو تعوین ئے په مټ وی تعبیر ئے خپله لور یا خور نۀ به وادۀ کیږی او که همدغه خوب ښځه اوګوری تعبیر ئے دے نه مال، نعمت او ارام دے. که اوګوری چه د سپینو زرو یا د او سپنے تعوین ئے په مټ دے تعوین ئے دۀ ته به د ورور نه مدد او ملګرتیا وی. که اوګوری چه تعوین ئے مات شو او یا ضائع شوے، تعبیر ئے د دے خلاف دے.

**توته کرکی - (پرستو)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که څوك په خوب کښے اووینی چه دۀ سره توته کرکی دی او یا ورته چا ورکړی دی تعبیر ئے چه د چا نه جدا شوے وو هغه به ورسره بیا مینه او محبت کوی او هغه سره به قرار ے ومومی. که اوګوری چه توته کرکی ئے وژلی او یا ئے د لاسه پریوتی دی تعبیر ئے چه د چا سره مینه کوی د هغۀ نه به جدا شی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی توته کرکی په خوب کښے لیدل مال او عقلمند سړے دے. او که ښځے توته کرکی ئے لیدلی وی، تعبیر ئے مال اره عقلمند ښځه ده. که اوګوری چه توته کرکی ئے په لاس کښے مړشوے دی تعبیر ئے د دۀ دوست به مری او دے به غمژن کیږی.

حضرت مغربیؒ فرمائی که اوګوری چه توته کرکی ئے نیولی دی تعبیر ئے د غمونو نه به خلاصے مومی او د ډیرے او خطرے نه به امن کښے شی.

**لګن (تهالے) - (طشت)** حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښے لګن لیدل خدمتګاره ښځه

ده۔ حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، لګن په خوب کښے لیدل وینزه ده
چه دَ کور ضروریات ورته سپاری۔ که اوګوری چه دهٔ سره تهالے دے او یا
ورته چا ورکړے دے او یائے اخستے دے۔ تعبیرئے خدمتګاره ښځه به
کورته راولی او یا به وینزه اخلی۔ که اوګوری چه لګن مات شوی ے
او یا ضائع شوے دے۔ تعبیرئے هغه وینزه به تښتی او یا به مره کیږی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوک په خوب کښے اووینی چه لګن
ئے اخستے دے، تعبیرئے خدمتګاره ښځے سره به واده کوی او یا دَ
وینزے سره۔
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی، په خوب کښے لګن لیدل په درېو
وجودی (۱) خدمتګاره ښځه (۲) وینزه (۳) دَ ښځو نه نفع

## خانك (تهالے)۔ (تغار)

په خوب کښے خانك لیدل غم شریکه
او نیکه ښځه ده چه کور بهٔ سمبالوی
او خلکو ته بهٔ لاره ښائی او دَ شر او فساد نه روستو کیږی۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی که څوک په خوب کښے اووینی چه
خانك ئے مات شوے او یا ضائع شوے تعبیرئے هغه ښځه به مری
او یا به ورنه جُدا کیږی او دَ ځنے معبرانو په قول لوے تهالے وینزه او خادمه ښځه ده

## تهالے ـــ طاس

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، تهالے په خوب
کښے لیدل خدمتګاره ښځه ده او یا وینزه ده
که څوک اوګوری چه دهٔ سره تهالے دے او یا ورته چا ورکړے دے۔ تعبیر
ئے خدمتګاره ښځه به کورته راولی، او یا به وینزه اخلی۔ او که اوګوری
چه تهالے مات شوے دے، تعبیرئے هغه ښځه به ورنه جدا شی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی تهالے په خوب کښے نیک کرداره وینزه ده
که اوګوری چه دهٔ ته چادَ او بو تهالے ورکړو او دهٔ وڅښلے تعبیرئے
دَ دهٔ به ځوئے پیدا کیږی۔ او که اوګوری چه تهالے مات شو او اُوبه پاتے
شوے تعبیرئے وینزه به ئے مره شی او ځوئے چه لری هغه به پاتے
شی۔ او که اوګوری چه اُوبهٔ توئے شوے او تهالے سلامت پاتے شو تعبیر
ئے ځوئے به ئے مری۔ او وینزه به ئے پاتے شی۔
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی، په خوب کښے تهالے لیدل

په څلورو وجودي (۱) ښځه (۲) ویښزه (۳) ځوی (۴) دَ ښځو ته نفع .

## تنبو، خیمه. (خرگاه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې لوئے تنبو لیدل ښهٔ دی که اوګوری
چه په لوئے تنبو کښې ناست دے، تعبیرئے دَ دُنیا څخهٔ سامان به بیا مومی
اوکه اوګوری چه تنبو دَدهٔ ملکیت دے تعبیرئے ښځه به کوی اوکه
تنبو سپین یا شین وی تعبیرئے په خیر او نیکئ دے اوکه تنبو معلوم
وو او شین هم وو او ورکښې ناست وو تعبیرئے دینداره به وی اوکه تنبو
نا معلومه وو تعبیرئے شهید به شي - او سپین تنبو تعبیرئے مال او
نعمت دے اوکه سور تنبو وو، تعبیرئے په لهو لعب به مشغول وی
اوکه اوګوری چه تنبو اسمانی رنګه وو. تعبیرئے په غم، فکر او په
مصیبت دے. او تور تنبو په لږه نفع تعبیر لری اوکه تنبو دَدهٔ ملکیت
وی تعبیر دَ ښهٔ او بد په خوب لیدونکی راګرځیږی.

حضرت ابن سیرین رحمه الله فرمائی که اوګوری چه
څپل ځان لپاره ئے خیمه لګولے ده یائے دَ بل
چادَ پاره لګولے ده او هلته ناست دے که چرے تنبو وی نو دَ تنبو دَ
وړوکوالی او لویوالی په اندازه به مال مومی اوکه سوداګر وی تعبیر
ئے سفر به کوی او مال به بیامومی او که څوک مشر دا خوب او وینی
تعبیرئے غم او فکر دے. اوکه تنبو زوړ وی زیات نقصان به ورته وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه دَ تنبو نه بهر وتلے دے- تعبیر
ئے عزت او مشری به بیامومی- که اوګوری چه بادشاه په تنبو کښې ناست
دے، تعبیرئے کار به ئے نیک شي او په دښمن به کامیابی مومی.
که اوګوری چه بادشاه څپلے خیمے ته غوښتے دے او هلته پکښې ناست دے
تعبیرئے دَ بادشاه نه به مرتبه او بزرګی بیامومی او کار به ئے په نظم شي.

## تریخے. (زهره)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که اوګوری په خوب کښې چه دَ خلکو تریخے خوری. تعبیرئے
غصه به خوری اوکه دَ څاروو تریخے خوری تعبیرئے بد خویه او غصناک به وی.
حضرت جابر مغربیؒ فرمائی که اوګوری چه دَ دهٔ وجود دَ خلکو په تریخو
ګنده دے، تعبیرئے خلکو ته به تکلیف ورکوی اوکه اوګوری چه دَدهٔ بدن

دَ خاروو دَ تریخو نه ګنډ ه دے تعبیریٔ دَ حرا موجامے به اغوندی. که اوګوری چه دَ دهٔ بدن دَ تریخو په ورکولو سره ګنډه دے. تعبیریٔ دَ بد خویه او بد اخلاقه سړی سره به یٔ ناسته وی.

## دَ تلے لړ - (قپان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښے دَ تلے لړ خونخوار سړے دے او په خوب کښے دَ تلے لړ او ریډل دی او دَ هغے ړنړے دَ حکم په وخت زیاتے دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی دَ تلے لړ په خوب کښے قاضی دے او که اوګوری چه دهٔ سره دَ تلے لړ دے، تعبیریٔ دَ قاضی دَ وکیل سره به یٔ ناسته وی. او که اوګوری چه څۀ شے ورسره پخوی تعبیریٔ ملګرتیا به یٔ دَ قاضی سره وی.

## تخم دے یو قسم - (کروبه)

حضرت ابن سیرین فرمائی که اوګوری چه دهٔ سره کروبه دے تعبیریٔ غمژن او فکرمند به وی، او که اوګوری چه کروبه یٔ خوړلے ده. تعبیریٔ دَ چا سره به جنګ او جګړه کوی او ورته به غم رسیږی ځکه چه دَ دے خوند خراب او بے مزے دے.

## "ټپ". توپ وهل - (بر جستن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که یو سړے اوګوری چه دَ یو ځائے نه یٔ توپ وهلے دے تعبیریٔ چه په کوم حال دے دَ هغے نه به یٔ حال بدل شی. که توپ یٔ لوئے وهلے وو. تعبیریٔ سفر به کوی. که اوګوری چه دَ دهٔ لاس کښے لرګے یا نیزه ده او په هغے باندے دَ یو ځائے نه بل ځائے ته توپ وهی تعبیریٔ په قوی او مضبوط سړی به یقین کوی دَ دے دَ پاره چه دَ دهٔ سره مدد اوکړی چه هغه کار دَ دهٔ په رائیه نظر مطابق وشی. او که اوګوری چه دیوال نه یٔ توپ وهلے او په خاروی ناست دے تعبیریٔ هلاک به شی که اوګوری چه دَ کور کوټے نه یٔ توپ وهلے او هغه دَ دهٔ خپو کښے پریوته او دے مړشو تعبیر یٔ ښځه به ورنه جدا شی او بیا به واپس ورته راشی.

که اوګوری چه دَ زمکے نه یٔ هوا ته توپ وهلے دے او دَ قبلے طرف ته یٔ مخ کړے دے بیا یٔ ځان په مکه یا مدینه منوّره یا حرم کښے اولیدلو تعبیریٔ دا ټول دَ حج تعبیرونه دی. که اوګوری چه دَ نامعلوم ځائے نه یٔ نامعلوم ځائے ته توپ وهلے دے. تعبیریٔ هلاک به شی.

که اوګوری چه شکون سره ئے ټوپ وهلے او هلته اوېزان شوے دے. تعبیر ئے په هغهٔ به عیش تباه شی. که اوګوری چه هوا ته ئے ټوپ وهلے دے او مرغئ ئے نیولے دهٔ تعبیر ئے ښځه به اوکړی او بل واده به وکړی. که اوګوری چه په لرګی یا په همسائے دیوځلئے نه بل ځلئے ته ټوپ وهلے دے، تعبیر ئے دَ غم ا فکرنه به خلاصے او مومی او کار به ئے په نظم برابر سره کوی

## ټو ټتیل مارغهٔ (بوتیمار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی بوتیمار مارغهٔ خوب کښے لیدل روزی ده او حلال مال دے چه دَ ښځے نه به ورته رسیږی. که اوګوری چه بوتیمار مارغهٔ ئے نیولے دے یا ورته چا ورکړے دے، تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به مال خوری دَ ښځے نه.

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه بوتیمار مارغهٔ ئے مړ کړو او دَ هغے غوښه ئے اوخوړله تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ ښځے مال خوری

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، بوتیمار مارغهٔ لیدل تعبیر ئے بزرګی دهٔ. که اوګوری چه بوتیمار مارغهٔ ئے نیولے دے اوګورته ئے راوړیدے تعبیر ئے دَ خپلوانو نه به ښځه کوی او دَ هغے نه به نفع حاصله کړی.

## ټپوس - (کرګس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، ټپوس دَ مرغانو بادشاه دے. نهایتی قوی او لرے لیدونکے او دَ ډیر عمر خاوند دے که یو سړے اوګوری چه دَ ټپوس مارغهٔ لری تعبیر ئے دَ بزرګ سړی نه به نفع بیا مومی. او دَ بادشاه نه به مال حاصل کړی. که دهٔ سره دَ ټپوس هډوکی یا سره کړے غوښه وی همدغه تعبیر لری. حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه دے ټپوس مارغهٔ نیولے دے او پورته هوا ته ئے اوچت کړیدے، تعبیر ئے، لرے سفر به کوی، او دَ هغه سفر نه مال او نعمت به ښهٔ ډیر حاصل کړی مګر دین کښے به ئے فساد وی ځکه چه نمرود علیه اللعنة دَ ټپوس سره آسمان ته لاړ واو مړ نه شو. او که اوګوری چه ټپوس دے دَ هوا نه را غورزولے دے یا ئے خپله دَ ټپوس دَ پنجو نه غورځیدلے دے تعبیر ئے دَ شرف او بزرګئ نه به بیریوزی او کار به ئے خراب شی. که اوګوری چه ټپوس دے آسمان ته خیژولے دے او هلته مقیم شوے دے، تعبیر ئے سفر ته به لاړ شی او هلته به مړ شی. او

که مقیم نهٔ شو او بیا زمکے ته راغلو۔ تعبیرئے دَ بادشاه نه به بزرگی اوموی
کنه نودَ بزرگی سرې یا دَ خپلوانو نه به بزرگی اوموی اوبغیردَ پنجونه
دَ تپوس لیدل دا دَ فرښتے لیدل دی ځکه چه دَ عرش حاملین فرښتے
دَ تپوس په شکل دی۔ که اوګوری چه تپوس دَدهٔ دَسرد پاسه ښکارکوی
تعبیرئے خوب لیدونکے به تجارت کوی۔ که اوګوری چه دَ تپوس سره جنګ
کوی اودے ورباندے زوروَرشو تعبیرئے دَ لوئے سړی سره به ئے جنګ شی
اودے به وربانده کامیاب شی اوکه دَدے خلاف ئے اوګوری تعبیرئے
دښمن به پرے غالب شی۔
که خوب کښے دَ تپوس بچی اوګوری که واده ئے کړے وی نوځوئ به ئے
پیدا شی اوکه واده ئے نهٔ وی کړے تعبیرئے دولتمندے جینئ سره به واده
اوکړی۔ که اوګوری چه تپوس پرے ناست دے تعبیرئے دے به په دارزورند
کړے شی۔
حضرت دانیال فرمائیلی دی که اوګوری چه په کوټه کښے تپوس راکوز
شوے دے تعبیرئے هلته به بادشاه راکوزیږی۔ که اوګوری چه په
هغه کوټه کښے ئے تپوس وژلے دے، تعبیرئے دَدے ملک بادشاه به معزول
شی یا به هلاک شی۔
حضرت امام جعفرصادق (رض) فرمائیلی دی، تپوس خوب کښے لیدل په شپږو
وجو وی۔ (۱) بزرګی (۲) حکم (۳) ریاست (۴) ثنا اوصفت (۵) مرتبه (۶) امر
کول او منع کول۔

## تپوس - (زغن)

حضرت ابن سیرین (رح) فرمائیلی دی تپوس لیدل
دَهغه ځائے دَ بادشاه لیدل دی که اوګوری
چه تپوس ئے تابعدار دے، تعبیرئے دَدهٔ به علامه دی۔ چه بزرګی
ته به ورسیږی۔ که هم دا خوب حامله ښځه اوګوری تعبیرئے هلک
به ئے پیدا شی چه دَ بادشاه نزدے سړے به شی۔
حضرت کرمانی (رح) فرمائیلی دی که اوګوری چه تپوس ئے دَ لاسه الوتے
دے تعبیرئے که ښځه ئے حامله وی نو مړځوئ به ئے پیدا شی یا به
دَ دُنیا نه لاړه شی۔
حضرت امام جعفرصادق (رض) فرمائیلی دی، تپوس خوب کښے لیدل په څلورو

وجودی (۱) عاجزی (۲) سرداری (۳) اولاد (۴) مال۔

**توخلے۔ (سرفه)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې توخیدل په پنځو وجوه دی (۱) تر توخلے (۲) اوچه توخلے (۳) دَ بلغم توخلے (۴) چه وینه پکښې راشي۔(۵) چه صفرا پکښې وی۔ که خوب کښې اوګوری چه توخلے سره ئې بلغم راځي تعبیرئې دَچا په وړاندې به دَ موجوده بلا شکایت کوی یا دَ هغه مال چه ضائع شوې وی۔ که اوګوری چه دَ دهٔ وچه توخلے دهٔ تعبیرئې دَ دهٔ شکایت به دَ بې فائدې نه وی که اوګوری چه دَ دهٔ تر توخلے دهٔ تعبیرئې دهٔ ته به دَ خپلوانو نه شکایت وی که اوګوری چه تر توخلے دَ وینو دهٔ تعبیرئې دهٔ ته به دَ ځامنو نه شکایت وی که اوګوری چه دَ دهٔ دَ صفراوی ئې توخلے دهٔ تعبیرئې دَ دهٔ به دَ ښځې نه شکایت وی

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دهٔ ته توخلے راځي تعبیرئې دَ دهٔ دَ عاجزئې دلیل دې۔ که اوګوری چه دَ دهٔ توخلے مرئې کښې پاتې شو دهٔ۔ تعبیرئې دَ دهٔ مرګ نزدې شویدې۔ که اوګوری چه دهٔ ته دَ بودا کانو توخې پیدا شویدې او بلغم هم غُرزوی تعبیرئې دَ غم او محنت نه به خلاصې او نجات بیا مومي۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی که خوب کښې اوګوری چه توخیږی تعبیرئې دهٔ ته به دَ بادشاه دَ طرفه څهٔ آفت رسیږی۔

**تیپر۔ (شلغم)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی شلغم په خوب کښې غم او فکر دې که اوګوری چه تیپرئې چا ته ورکړیدی تعبیرئې هغهٔ ته به دې تکلیف رسوی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی پوخ تیپر دَ خام نه ښهٔ دې۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه تیپرئې دَ ځان نه لرې کړیدې تعبیرئې دَ غم او فکر نه به نجات پیدا کړی۔

**توپئ۔ (کُلاه)** حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی، توپئ لیدل خوب کښې دَ هغې دَ قیمت په اندازې برابر عزت او مرتبه ده که اوګوری چه په سَرئې دَ غازیانو توپئ ده تعبیرئې په دښمن به کامیاب شي۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښې اوګوری چه

په سر ئې دَ ترکۍ ټوپۍ ده تعبیر ئې په سختۍ سره به نفع مومي که اوګوري چه دَ آتش پرستو ټوپۍ په سر ده تعبیر ئې دَ دُنیا عزت به او مومي که داسے نه وو نو په دین کښې به کمزورے شي، او که په خوب کښې په خپل سر دَ بادشاهانو ټوپۍ اوګوري تعبیر ئې عزت او مرتبه به بیا مومي۔

او که اوګوري چه دَ دهٔ په سر عنابي ټوپۍ ده۔ تعبیر ئې خوشحالي او نفع به او مومي۔ که اوګوري چه په سر ئې رومي ټوپۍ ده تعبیر ئې دَ دُنیا او دَ دین خیر او نیکي به حاصله کړي۔ او که اوګوري چه په سر ئې په ټوپۍ پټکے وهلے دے۔ تعبیر ئې داسے کار به کوي چه دَ خلکو نه به ئې پټول غواړي۔ که اوګوري چه دَ ریښمو ټوپۍ ور سره ده تعبیر ئې دَ خلکو نه به نفع او مومي۔ که په سر ئې دَ جواهرو ټوپۍ اوګوري تعبیر ئې په خلکو کښې به عزت مند وي۔ او صحبت به ئې دَ هغه چا سره شي چه دیندار او غازي وي۔ او که دَ اوسپنې ټوپۍ په سر اوګوري تعبیر ئې دَ بادشاه نه به قوت، عزت او مومي، او که دَ لرګي اوګوري تعبیر ئې خپل ځان به خلقو کښې خوار معلوموي دروغ او بے فائدے به لګیا وي۔

حضرت کرماني فرمائیلي دي که اوګوري چه دَ کرمۍ ټوپۍ په یخنۍ کښې په سر ایښې وي، تعبیر ئې خیر او نفع به او مومي۔ او که دَ دے خلاف ئې اوګوري تعبیر ئې دَ خلکو نه به بے مراده پاتے شي که اوګوري چه په سر ئې توره ټوپۍ ده او په ویښه ئې همدا په سر کوله تعبیر ئې خیر او نفع به بیا مومي۔ او که اوګوري چه دَ سر نه ئې ټوپۍ پریوتے ده تعبیر ئې دَ خپلې وظیفې نه به معزوله شي او یا به ورته سخت غم ورسیږي۔ که اوګوري چه دَ ذکر شوو ټوپو، نه یوه دهٔ ته خلکو په سر کیخوده تعبیر ئې دَ هغې ټوپۍ دَ قیمت په اندازه به دَ بادشاه نه قدر او مرتبه او مومي۔ که اوګوري چه دَ دهٔ دَ سر نه ئې ټوپۍ کوزه کړیده تعبیر ئې دَ خپلې مرتبې او عزت نه به پریوځي۔ که ښځه اوګوري چه په سر ئې دوه ګوتهیزه ټوپۍ ایښې ده۔ تعبیر ئې دَ هغې ښځې به یو هلک پیدا شي چه هغه به بادشاه شي۔ که اوګوري چه دَ دهٔ په سر وزیر ټوپۍ ایښې ده، تعبیر ئې داسړے به بے دینه وي مګر بادشاهانو دَ پاره به ښهٔ وي۔

حضرت جابر مغربي فرمائیلي دي که اوګوري چه په سر کړے

توپئ لیدل دہ تعبیر ئے شرف او مرتبہ بہ ئے زیات کړے شی کہ اوګوری چہ توپئ زړہ او شلیدلے دہ، تعبیر ئے غمګین بہ شی کہ اوګوری چہ پردی سړی دَ دۂ دَ سر نہ توپئ لرے کړے تعبیر ئے دَ بزرګ سړی نہ بہ لرے شی۔ کہ اوګوری چہ توپئ دَ سمور یادَ لومبړے دَپوستکی نہ دہ یا دَ دوئ پشان شیا نو دَ پوستکو نہ دہ تعبیر ئے شرف او بزرګی بہ بیا مومی دَ داسے سړی نہ چہ هغہ پہ دین کښے کامل نۂ وی کہ اوګوری چہ داسے توپئ ئے پہ سر کړے چہ هغہ ئے پہ ویینہ هیڅکلہ نۂ دہ پہ سر کړے کہ سپینہ وہ تعبیر دَ نیکئ دے کہ شنہ وہ تعبیر ئے دَ بلائ دے۔

او کہ پہ ویینہ ئے داسے توپئ پہ سر کړے وی بیا بدہ نۂ دہ او دَ سری توپئ لیدل تعبیر ئے بیماری دہ۔

حضرت ابراهیم اشعث فرمائیلی دی کہ اوګوری چہ دَ تیلے نہ جوړہ توپئ پہ سر کړے تعبیر ئے دَ هغے توپئ دَ قیمت پہ اندازہ بہ شرف او بزرګی بیا مومی مګر پہ دین کښے بہ ئے نقصان وی۔ کہ اوګوری چہ توپئ ئے پہ اور کښے پریوتے دہ تعبیر ئے بادشاہ بہ پہ دۂ تاوان لګوی۔

حضرت جعفر صادق فرمائیلی دی توپئ لیدل خوب کښے تعبیر ئے شرف او بزرګی او خوب کښے دتوپئ لیدل تعبیر ئے پہ سپږ وجود دی۔ (۱) ولایت (۲) ریاست (۳) بزرګی (۴) عزت او مرتبہ (۵) اندازہ (۶) دَ توپئ جوړونکی مرتبہ پہ خوب کښے دَ عزتمند وخلکو دَ خدمت کوونکی دہ۔

## توپئ دَ اوسپنے۔ (خور)

حضرت ابن سیرین فرمائی، کہ اوګوری چہ پہ سر ئے دَ فولادو توپئ دہ تعبیر ئے مرتبہ او خوځئ دے او قوت بہ ئے زیات شی دَ توپئ دَ پړقا پہ اندازہ۔

او کہ اوګوری چہ دَ دۂ پہ سر توپئ دہ تعبیر ئے دَ بادشاہ نہ بہ قوت حاصل کړی۔ کہ اوګوری چہ دَ اوسپنے توپئ ئے چا نہ ورکړیدہ تعبیر ئے هغہ سړی تہ بہ قوت او رعب وی۔ او کہ اوګوری چہ دَ اوسپنے توپئ ضائع شویدہ، تعبیر ئے دَ دۂ عمر بہ کمیږی۔

حضرت امام جعفر صادق فرمائی، دَ اوسپنے توپئ پہ خوب کښے لیدل پہ پنځو وجوو وی۔ (۱) قوت (۲) مال (۳) خوځئ (۴) پائینت او نیکی (۵) خپل ځان دَ فریب نہ بچ کول۔

## "ج" جرندہ۔ (اسیاب)

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی که سړے او کوری خوب کښے چه غنم ئے جرندے ته راوړی دی او اوړهٔ کړی دی۔ تعبیرئے دَ جرندے مالک ته به ډېره فائده ورسیږی۔ که او کوری چه دَ جرندے پَل (کانړے) مات شوے دے او بے کاره شو، تعبیرئے دَ جرندے مالك به مړشی، که او کوری چه دَ جرندے پَل کښے چوندوو، یا پکښے خلل را پیدا شو، تعبیر ئے دَ جرندے مالک په عیش کښے به خلل راځی۔ که او کوری چه جرندے کانړے چاپټ کړو تعبیرئے دَ جرندے مالک ته به دَ هغهٔ نفع نقصان شی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے دَ جرندے لیدل تعبیر ئے جنګ او خصومت دے۔ که یو سړے خپل ځان په جرندہ کښے او کوری تعبیرئے دَ چاسره به ئے جنګ شی۔ که او کوری چه جرندہ کښے غله نشته مګر ګوری چه شنګه چلیږی، تعبیرئے سفر ته به ځی۔ که او کوری چه دَ جرندے پَل دَ مِسو (تانبے) یا دَ پیتلو یا دَ او سپنے دے، دَدے ټولو تعبیر دَ جنګ دے۔ که او کوری چه دَ جرندے پَل دَ شیشے دے تعبیرئے دَدهٔ به جنګ دَ ښځو سره وی۔ که او کوری چه جرندہ دَ غلے په ځائے او سپنه یا کانړے اوړه کوی، تعبیرئے دَدهٔ به سخته جګړه دَ چاسره راځی، که او کوری چه جرندہ دَ خپل لاس سره کرځوی تعبیرئے دَدهٔ شریکوال به سخت زړهٔ والا وی او دَ هغهٔ په وجه به ئے کار په انتظام سره نهٔ وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښے دَ جرندے لیدل په پنځو وجوو وی (۱) بادشاه (۲) رئیس (۳) مالداری (۴) زړور سړے (۵) دَ بادشاه دَ باورچی خانے (اشپزخانے) مشریه وی۔

دَ جرندے ځائے لیدل دَ بزرګ سړی لیدل دی۔ که او کوری چه جرندہ خوابه کرځی تعبیرئے شے چه جرندے ته نسبت کیږی هغه به خرابیږی۔

## جرندہ ګرے۔ (اسیابان)

په خوب کښے دا هغه سړے دے چه دَ دهٔ په وجه دَ کور خلکو ته روزی رسیږی او روزی کمتی دَدے دَ پاره چه دَ کور خلک پرے وخت تیروی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ جرندہ ګری لیدل خوب کښے دَ داسے سړی لیدل دی چه دَ چا په لاس کښے روزی وی۔ که جرندہ ګرے

ځوان وی تعبیر ئې نیک دے۔ که اوګوری چه جرنده یې خرکړې یا پړ او بش اوړه کوی، تعبیر ئې جرنده کړی نه به دولت او بخت حاصل وی او که اوګوری چه جرنده کرځی او ده ئې اوازدا اوریدو تعبیر ئې دَ دَه کار کښې به قوت راشی۔

## جادو۔ منتر۔ (افسون)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی جادو کول په خوب کښې دَ خلکو سره دهوکه کول دی۔ که داجادو دَ قرآن پاک په آیتونو یَ دَ الله تعالیٰ په نومونو سره وی که داسے اوګوری چه دَ هغې په وجه دَه ته یا نورچا ته شفا او راحت وی تعبیر ئې دَ غم نه به خلاصون اوموهی او دَ زړهٔ مطلب به ئې پوره شی او که دَدے خلاف اوګوری نو تعبیر ئې غم او دَ فکر دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی۔ جادوکول په خوب کښې دَ یو ناروا کار کول دی۔ که دَ جادو په وخت کښې دَ الله ذکر ونکړی که جادو دَ الله تعالیٰ په نومونو او دَ قرآن شریف په آیتونو سره اوکړی تعبیر ئې دا دے چه دا سړے به داسے کار اوکړی چه دَه ته به دَ دواړو جهانو کامیابی ورسیږی۔

## جادوکول۔ (جادوکردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښې جادوکول بے فائدے کار دے که خوب کښې څوک اوګوری چه جادوکوی، تعبیر ئې بیهوده او باطل کار به کوی۔ او بعضے تعبیرکونکی وائی چه دَ چا دَ پاره چه ئې کوی دَ هغهٔ دَ پاره فتنه دَه۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، جادو کول په خوب کښې دَ خلکو سره دَ دروغو وعده دَه چه دَ هغې په وجه خلکو ته فریب ورکوی او خوب کښې جادو فریب ورکوونکے دُښمن دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، جادوکول په خوب کښې په شپږو وجوو وی (۱) فتنه (۲) فریب (۳) مکر (۴) فکر (۵) باطل او دروغ (۶) داسے کار چه بنیاد ئې نهٔ وی۔

## جامے اُودل ـــ (بافتن جامه)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی جامے اوبدل په خوب کښې سفر دے او اُودلو والائې مسافر دے۔ که څوک اوګوری چه جامے اُودی یا نور څهٔ اُودی تعبیر ئې په سفر به ځی۔ داسے وائی چه جامے اُودل په

خوب کښې جنګ اوجګړه ده که خوب کښې څوک اوګوري چه جامې ئې اُودلې اُوې شلولې، تعبیر ئې دا کار به په جنګ جګړو ختمیږي اودې شلول سبب هم دا سفر دے۔ که اوګوري چه رسئ ته ناڅ ورکوي تعبیر ئې سفرته به ځي۔

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه دَریښمو په ځائې رسئ یا السی (دوقسم بوټي) تاروي تعبیر ئې دا کار خراب دے ځکه دا دَخیانت نښه ده۔ که اوګوري چه تولو جامه ئې جوړه کړه او وې شلوله تعبیر ئې په سفر به ځي اوکار به ئې تمام شي۔ که اوګوري چه تولو ئې نه ده اُودلې تعبیر ئې کار به ئې نه تمامیږي۔

حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي، که څوک اوګوري چه دَجولاګانو کار کوي تعبیر ئې دے به په جنګ کښې واقع شي او حال به ئې نیک شي او دَخلکو نه به ورته بد رد او ملامتیا ورسیږي۔

## جُرابے۔ (پائے تابہ)

که جرابے په خوب کښې کیښودے اوګوري تعبیر ئې مال دے اوکه په خپو کړے وي سفر دے که اوګوري چه جرابے اغوستے دي لکه څنګه چه مسافر دَ بیابان اراده کوي او دَده سره ملګري او سفرخرچه نه وي تعبیر ئې دَ دُنیانه به زر سفر وکړي۔ که اوګوري چه خپله جرابه ئې خرڅه کړے یائې چاته بخشش کړے تعبیر ئې مال به دَده ضائع شي۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائیلي دي جُرابے خوب کښې لیدل په دریو وجودي (۱) مال، دولت (۲) سفر (۳) مرګ دَهغه چا دَپاره چه یواځے دَسفر اراده وکړي او ځنګل ته لاړ شي۔

## جرابے۔ (جوراب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي 'دَجرابے لیدل خوب کښې دَخادمے ښځے دَشمار نه ده۔ که اوګوري چه نوے جرابے دَریښمو یا دَ تارو نوئې اغوستے دي، تعبیر ئې دَده خادم به اصیل وي چه دَده نه به فائده اُووینې۔ که اوګوري چه جرابے دَده پښمینے یا نقشه دارے دي تعبیر ئې دادے چه ښائسته وینزه به اخلي او یا به ښائسته ښځه وکړي۔ که اوګوري چه دَده سره زیړ رنګے جرابے دي تعبیر ئې دَده خادم به بیمار شکله ښکاري۔ که اوګوري چه دَده سره سرے جرابے دي تعبیر ئې دَده خادم به بے شرم وي۔ که اوګوري چه دَده سره تورے جرابے

دی تعبیر ئے کہ خوب لیدونکے مصلح وی تعبیر ئے نیک دے. کہ مفسد وی تعبیر ئے بد دے. کہ اوگوری چہ دۂ سرہ زیړے څیونے جرابے دی تعبیر ئے دَدہ پہ خادم بہ تہمت لگیږی. کہ اوگوری چہ دَدۂ جرابے ضائع شوې دی او یا سوزیدلے دی تعبیر ئے دَدۂ دَ خادم مرګ دے. ځنے تعبیر کونکی وائی چہ جرابے لیدل مال او مطلب دے. کہ اوگوری چہ جرابے ئے بوی کوی تعبیر ئے دَ مال زکوٰۃ بہ ورکوی او خلک بہ ژبہ ورپسے راواړوی (خبرے بہ ورپسے کوی)۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، کہ اوگوری چہ جرابے دَدۂ دَپوستکی نہ دی، یا دَاوبښ دَ څرمنے وی تعبیر ئے دَدۂ خادم بہ شمنتی او دَاصل نہ بہ بزرګ وی او کہ دَګهٔ دَپوستکی وی تعبیر ئے دَدۂ خادم بہ بزرګ او دَ سپاهیانو دَ نسل نہ بہ وی او کہ اوگوری چہ دَ ځنګلی څناورو نہ وی تعبیر ئے دَدۂ خادم بہ ځنګلی سړے وی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی کہ اوگوری چہ جرابے ئے پہ خپو کښے دی تعبیر ئے دَ مال خیال بہ ساتی. کہ اوگوری چہ سپینے او صفا جرابے ئے پہ خپو دی، تعبیر ئے دَ مال زکوٰۃ ئے ورکړیدلے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی چہ دَ خپو جرابے سړے دے او دَ زکوٰۃ مال ساتونکے دے۔ کہ اوگوری چہ دَدۂ جرابو تہ ښہ بوی راځی تعبیر ئے پہ مرګ او ژوند کښے بہ ئے خلک صفت خوان وی، او کہ اوگوری چہ بد بوی ورنہ راځی تعبیر ئے خلک بہ ئے ملامتہ کوی، او کہ اوگوری چہ دَدۂ جرابے ضائع شویدی تعبیر ئے زکوٰۃ بہ نۂ ورکوی او مال بہ ئے ضائع شی۔

## جنت۔ (بهشت)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، جنت لیدل پہ خوب کښے دَ اللہ تعالیٰ طرف نہ خوشحالی او هم زیرے دے دَ اللہ تعالیٰ دَ طرفہ۔ دَ اللہ تعالیٰ قول دے (اُدْخُلُوْهَا بِسَلَامٍ اٰمِنِيْنَ) الحجر: جنت تہ پہ امن سرہ داخل شئ۔ کہ اوگوری چہ دَ جنت میوے ورسرہ دی او یا ئے چا ورکړی دی او خوړلی ئے تعبیر ئے پہ کومہ اندازہ بہ علم او پوهہ زدہ کړی او دَ دین پہ ښۂ والی بہ پوهہ شی مګر فائدہ بہ نۂ ورکوی او کہ اوگوری چہ دَ حورو سرہ یو ځائے دے تعبیر ئے، روح بہ ئے پہ اسانہ سرہ ووځی او کہ اوگوری چہ پ

جنت کښې مقیم شو مکر وران وی، تعبیر ئې د فساد او ګناه طرف ته په مائله کیږی - که اوګوری چه جنت د دهٔ په مخ بند شوے دے تعبیر ئې د دهٔ نه به مور او پلار ناراضه وی. که اوګوری چه جنت ته نژدے لاړو او بیا واپس راغے تعبیر ئې د مرګ په بیماری کښې به ګرفتار شی مګر بیا به روغ شی. او که اوګوری چه فرښتو د لاسه اونیولو او جنت ته ئې بوتللو او هغه وخت د طوبیٰ ونې لاندے ناست دے تعبیر ئې د دواړو جهانونو مراد به مومی. د الله تعالیٰ قول دے (طُوبىٰ لَهُمْ وَحُسْنُ مَآبٍ) الرعد [۲۹]: د دوی د پاره خوشحالی او ښهٔ ځائے دے. او که اوګوری چه د شرابو او شودو ځښلو نه منع کړے دے تعبیر ئې د دهٔ د دین د تباهی دلیل دے. د الله تعالیٰ قول دے - (وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ) المائده [۷۲]: څوک چه شرک وکړی د الله تعالیٰ سره په تحقیق سره الله تعالیٰ وربانذے جنت حرام کړیے.

اوکه اوګوری چه چا ورته د جنت میوے ورکړی دی، تعبیر ئې دهٔ به د رنړا علم حاصل شی - که اوګوری چه په جنت کښې اور اچولے شوید ے تعبیر ئې د چا د باغ نه به حرام شے خوری. که اوګوری چه د کوثر د ونې نه ئې اوبهٔ ځښلی دی تعبیر ئې په دښمن به کامیابی اومومی. که اوګوری چه د جنت یو محل ورته چا ورکړے دے تعبیر ئې په زړهٔ پورے معشوقه یا دیانزه به ورته ملاویږی او به نکاح به ئې کړی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه رضوان د دهٔ مخے ته تراوتازه او خوشحاله دے. تعبیر ئې د چا نه به خوشحاله کیږی او نعمت به مومی. دا قول د الله تعالیٰ دے (سَلَامٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوهَا خَالِدِينَ) : سلامتی دے وی په تاسے بانذے د همیشه د پاره په دې کښې داخل شئ.
که اوګوری چه په یو اوچت ځائے کښې دے او دا ځائے د جنت شکل لری او دے پوهیږی چه دا جنت دے، تعبیر ئې د بادشاه یا مالداره یا عالم سره به ملګرتوب کوی - که اوګوری چه د جنت طرف ته ځی. تعبیر ئې په حق لاره به وی.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، د جنت لیدل په خوب کښې په نهو وجو بانذے وی (۱) علم (۲) پرهیزګاری (۳) احسان (۴) خوشحالی (۵) د خوشحالۍ زیرے (۶) امن (۷) خیر او برکت (۸) نعمت (۹) سعادت

او نیک بختی - که اوګوری چه په جنت کښې دے. تعبیرئے د دواړو جهانونو مراد به مومی او په لاس به ئے خیراتونه کیږی - که داخوب مصلح اوویني. نو بیماری او بلا کښې به ګرفتار شي او د جنتیانو ثواب به مومی او عالم بد شي. او خلک به ورنه فائده اومومی.

## جارو - (جاروب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، جارو په خوب کښې لیدل خدمتګار او خادم دے او د شپې جارو خادم دے چه د شیانو تقاضا به کوی - که اوګوری چه په خود کښې په کور کښې جارو وهی تعبیرئے مال به ئے ضائع شي. او که اوګوری چه د بل چا په کور کښې جارو وهی تعبیرئے د چا مال به ده ته رسیږی خاصکر هغه چه په کور کښې جارو وهی او خاوره خپل کورته راوړی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، د جارو لیدل په خوب کښې په دریو وجوو دی (۱) خادم (۲) نفع (۳) د خلکو د شیانو تقاضی چه هغه ته ورسی.

## جنازه

که جنازه څوک په اوږو اوګوری تعبیرئے چه څوموره خلک جنازه پسے روان دی په هغه اندازه په خلکو به حکومت کوی مګر ظلم به ورباندے کوی که اوګوری چه مړ شو او جنازه کښې کینول او وړلو ئے او خلک د ده جنازه پسے تلل تعبیرئے شرف او بزرګی به بیا مومی مګر دین به د ده خراب وی او هغه خلک چه د جنازے نه روسته روان وو د ده تابعان وی. که اوګوری چه د مړی جنازه خپله وړی تعبیرئے د بادشاه خدمت به کوی او د هغه نه به ورته خیر او نیکی ورسیږی.
او که اوګوری چه خلک د ده جنازه پسے روان دی او په هوا کښې دی تعبیر ئے د هغه بشار لوئے سړے به سفر کښې مړ کیږی او که خپله جنازه اوګوری چه په زمکه اوړی تعبیرئے سفر ته به ځی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه د ژوندی جنازه اوړی او څوک ورپسے نشته تعبیرئے د ده د عزت، مرتبے، کار نقصان دے.
که اوګوری چه خلک د ده جنازے پسے وو تعبیرئے د دے اول خلاف دے.
که اوګوری چه جنازه کیدونکے وه تعبیرئے په خلکو به ظلم کوی که اوګوری چه جنازه ئے سپکه وی تعبیرئے په خلکو به رحم کوی او حال به ئے نیک

نه وی۔ او که او گوری چه جنازے نه پریوتے دے یا جنازه او ړونکو غوښ وے دے تعبیر ئے دَ عزت او مرتبے نه به پریوزی او کار به ئے بند شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، جنازه خوب کښے لیدل په دریو وجوده (۱) بزرګی (۲) ولایت (۳) عزت، مرتبه، او چتوالے۔

## جنګ کول۔ (جنګ کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه خوب کښے او ګوری چه دَ خلکو سره جنګ کوی یا څنا ورو سره په جنګ دے او دے پرے غالب شوید ے۔ تعبیر ئے آخر به زورور شی او په دښمن به کامیابی او مومی۔

## جګړه کول۔ (خصومت کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که او ګوری چه دَ چا سره ئے جګړه کړیده او په هغۀ کامیاب شوے دے تعبیر یے آخر به زورور شی او په دښمن به کامیابیږی۔ که او ګوری چه دښمن په دۀ غالب شویدے تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که او ګوری چه دَ خپل ملک والی (حاکم) سره ئے جنګ کړے دے او په هغۀ کامیاب شوے دے۔ تعبیر ئے دَ حاکم نه به خیر او نفع او مومی۔ که دَ دے خلاف او ګوری تعبیر ئے دَ ولی نه به تکلیف ورته ورسیږی۔ که او ګوری چه دَ بادشاه مخے ته په جنګ تللے دے تعبیر ئے دَ دۀ مراد به پوره شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی۔ که او ګوری چه دَ چا سره ئے بے وجه جنګ کړے دے تعبیر ئے خلک به دَ دۀ نه خفه کیږی ځکه چه خلک تنګوی۔

## جولا۔ (جولاها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه جولا په خوب کښے لیدل مسافر سړے یا قاصد دے چه په دُنیا کښے ګرځی۔ که او ګوری چه جولا جامے جوړوی تعبیر ئے دَ چا سره به جنګ کوی ځکه چه دَ جامے جوړول دَ جنګ تعبیر لری

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که څوک او ګوری چه ټوله جامه ئے جوړه کړے تعبیر ئے دا دے چه غم جن به شی۔

## جواهراتو ډبے (حُقه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، د جواهراتو ډبے په خوب کښے تعبیر ئے ښځه یا وینزه ده۔ که اوګوری چه دهٔ سره نوے ډبے دے یا ئے اخستے دے او یا چا ورکړے۔ تعبیر ئے ښځه به کوی او یا به وینزه اخلی۔ که اوګوری چه ډبے مات شویدے او یا ضائع شویدے تعبیر ئے ښځه به ورنه جُدا شی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه لوئے ډبے نقشدار ورسره دے تعبیر ئے مالدارہ ښځه به کوی او دَ هغے نه به نفع اوموی۔ اوکه دَ دے خلاف اوګوری تعبیر ئے بد رنګه او غریبے ښځے سره به نکاح کوی۔

## جال۔ (دام)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، جال په خوب کښے لیدل مکر او حیله ده۔ که اوګوری چه خپله ئے په جال کښے انختے ده، دَ دے تعبیر ئے دَ اول خلاف دے۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه ځناورئے په جال کښے نیولے دے نو هغه چاته چه دَ دے ځناور درته نسبت کیږی (مالک ئے دے) تعبیر ئے هغه به مکر او چل سره قبضه کښے راولی۔

## جهنّم۔ (دوزخ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه په دوزخ کښے دے او بهرته را وته وتلو تعبیر ئے ګناهګار او بد کرداره به وی بایلد چه توبه وکړی۔ که دوزخ اوګوری او دهٔ ته ورنه څه تکلیف نهٔ دے رسیدلے۔ تعبیر ئے غم او فکر کښے به ګرفتار او آخر به ئے سلامتی وی۔ که اوګوری چه دوزخ کښے مقیم شوے دے او ورته نهٔ وی معلوم چه کله راغلے تعبیر ئے همیشه به روزی پسے ګرځی۔ که اوګوری چه دَ دوزخیانو روټئ او څښل خوری او به اُور کښے سوزی تعبیر ئے دُنیا کښے به بد کار وکړی او آخرت کښے به ئے په دهٔ پیټے وی۔ که اوګوری چه دے فرښتو دَ تنډی ویښتو نه نیولے او دوزخ کښے ئے غورځولے دے، تعبیر ئے خوب لیدونکی دَ پاره دَ بد بختی علامه ده۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که خپل ځان په دوزخ کښے اوګوری تعبیر ئے دَ ګناه په کار به زړور وی۔ که اوګوری چه زقوم او جوش شوے اُو به څښی تعبیر ئے باطل علم کښے به مشغول وی۔ که اوګوری چه تورہ

ئې ویستلې دہ او دوزخ ته لاړ دے۔ تعبیر ئې بے حیا او ناکاره خبره به کوي که او ګوري چه دوزخ نه څه خوري تعبیر ئې د یتیم مال او سود به خوري که او ګوري چه دوزخ سره نزدے او ربل کړے تعبیر ئې سخت کار به ئې مخې ته راځي۔

حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي که او ګوري چه دوزخ ته ئې په رانبکلو رانبکلو بوتلے دے۔ تعبیر ئې آخر به کافر شي۔ د الله تعالیٰ کلام دے يَوْمَ يُسْحَبُوْنَ فِي النَّارِ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ ذُوْقُوْا مَسَّ سَقَرَ (القمر ۴۸): په هغه ورځ چه پړمخې رانبکلي دوزخ کښې واچولے شي نو د دوزخ عذاب وڅکي که او ګوري چه دوزخ ته لاړو او بیا بیرون شو ورنه تعبیر ئې کومه ګناه ئې چه کړے د هغې نه به توبه تائب شي که او ګوري چه دوزخ ته ئې بوتللے دے او د فریاد طاقت ئې نشته تعبیر ئې په کفر باندے به وي د الله تعالیٰ کلام دے۔ قَالَ اخْسَـُٔوْا فِيْهَا وَلَا تُكَلِّمُوْنِ (المؤمنون ۱۰۸) ورته به ووائي چه دے دوزخ کښې ننوځئ او خبرے مه کوي۔ که خوب کښې او ګوري چه د دوزخ آواز او ریدلے دے تعبیر ئې د بادشاه هیبت او سیاست به ورته رسیږي۔ که او ګوري چه دا د دوزخ سره نزدے شویدے تعبیر ئې دُنیا به ور باندے تنګه شي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي۔ دوزخ خوب کښې لیدل په شپږ وجوه وي (۱) د الله تعالیٰ غضب (۲) په ګناه مبتلا کیدل (۳) د بادشاه ظلم (۴) د دُنیا تنګي (۵) غم او مصیبت (۶) د دغه دوزخي کیدل

## جوره - (زلو)

دا هغه حیوان دے چه په اوبو کښې اوسیږي او فارسئ کښې ورته دیوچه وائي۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښې جوره لیدل یو طمعه کوونکے دښمن دے۔ که او ګوري چه جوره د ده د اندام نه وینه څښي تعبیر ئې دښمن به په ده کامیابي مومي د هغه وینې په اندازه خو مره چه ئې څښلې ده۔ د ده د مال نقصان دے۔ که او ګوري چه جوره د ده مرۍ کښې ننوتے ده تعبیر ئې دښمن به ئې د ده سره هم د ده په کور کښې کیني۔ که او ګوري چه جوره ئې د خپل اندام نه لرے او وژلے ده۔ تعبیر ئې په دښمن به کامیابیږي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی جوړه هغه اولاد او عیال دے چه پرده مال به خوری. که اوګوری چه ډیرے جوړے را ټولے شوے دی او د ده وینځنی تعبیرئے د ده مال به نقصانی شی د هغه وینے په اندازه.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، که جوړه په خپل اندام اوګوری او وینځنی تعبیرئے د دښمن نه به ورته نقصان رسیږی.

## جولئ - (زمبیل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے جولئ لیدل ښځه یا وینزه ده. که اوګوری چه دے لمن لری تعبیرئے دا ده ته خس متکار حاصل شی ځنے تعبیر کونکی وائی چه جولئ مال او نعمت دے.

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، د جولئ لیدل خوب کښے په اتو وجو دی. (۱) ښځه (۲) خادم (۳) وینزه (۴) د دین مضبوطیا. (۵) د بدن روغولے (۶) د عمر اوږد والے (۷) مال او نعمت (۸) خیر او برکت

## جانماز - (سجاده)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے جانماز لیدل ښه والے دے. که اوګوری چه په مسجد کښے په جانماز ناست دے تعبیرئے د حجاز ملک په سفر به ځی (حج به کوی) د الله تعالی کلام دے (وَاتَّخِذُوا مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهِیْمَ مُصَلًّی)[1] د ابراهیمؑ د ځائے نه د مونځ د پاره اونیسه. خاص چه په مسجد کښے ئے اعتکاف هم کړے دی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه د وړیو یا د سوترو جانماز ورسره دے تعبیرئے د دے خلاف دے. که اوګوری چه جانماز د ده پشمین دے تعبیرئے د ده عبادت به د ریا کارئ د ئے.

## جائیداد - زمکه - (ضیاع)

چه د زمکے خاوند وی که اوګوری چه خپله زمکه کښے تخم کری تعبیرئے حالت به ئے ښه وی، که اوګوری چه زمکه ئے په خپل وخت ټوکیدلے ده تعبیرئے د دین په لاره کښے به نیک وی. که اوګوری چه ټوله زمکه ئے خرڅه کړیده او قیمت ئے د ځان سره کړیدے. تعبیرئے غم او فکر کښے به پریوځی. او که د دے په خلاف ئے اوګوری تعبیر به ئے په خیر او صلاح سره وی او که اوګوری چه ټول جائیداد ئے ښه آباد دے، تعبیرئے

(۱) البقره ۱۲۵

دَ آبادئ مطابق به دَ دُنیا مال حاصل کړی. او که دَ دے په خلاف ئے اوګوری تعبیر ئے دا دۀ چه دَ مال نقصان وی که اوګوری چه سیلاب دَ دۀ زمکه خرابه کړے، تعبیر ئے دا دۀ چه دَ بادشاه نه نقصان ورسیږی.

## جولاګے (غنړه). (عنکبوت)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی جولاګے لیدل خوب کښے کمزورے، ګمراه او ګنهګار سړے لیدل دی. ځنے تعبیر کونکی وائی که اوګوری چه جولاګے تر نه لرے شوید ئے تعبیر ئے دَ جولا نه به لرے او جدا وی.

## جهاد کول. (غزا کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه دَ خدائے په لاره کښے جهاد کوی تعبیر ئے دا دۀ او دۀ دَ اولاد کار به نیک شی او بے نیازه به وی. دَ الله تعالیٰ قول دے. وَمَنْ يُّهَاجِرْ فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَجِدْ فِى الْاَرْضِ مُرٰغَمًا كَثِيْرًا وَّسَعَةً ) النساء : چا چه دَ خدائے په لاره کښے هجرت وکړو نو په زمکه کښے به ډیره نفع او فراختیا او مومی که اوګوری چه دَ غزا نه ئے مخ اړولے دے تعبیر ئے دَ خپلوانو نه به مخ واړوی. دَ الله تعالیٰ فرمان دے، هَلْ عَسَيْتُمْ اِنْ تَوَلَّيْتُمْ اَنْ تُفْسِدُوْا فِى الْاَرْضِ وَتُقَطِّعُوْٓا اَرْحَامَكُمْ) محمد: ۲۲ آیا نزدے دۀ چه تاسو ته حکومت حاصل شی او په زمکه کښے فساد کوئ او قطع صله رحمی کوی

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه غزا ته تللے دے تعبیر ئے دولت، نعمت، بزرګی به بیا مومی. دَ الله تعالیٰ کلام دے (فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ) النساء: بهتری او فضیلت ورکړے الله تعالیٰ مجاهدینو ته په ناستو خلکو باندے لوئے اجر. که اوګوری چه دَ دے ملک خلک جهاد ته وتلی دی تعبیر ئے عزت او مرتبه به بیا مومی، او خلک به مغلوب کړی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ کافرو سره یو لځے جنګ کوی تعبیر ئے په دښمنانو به کامیابی حاصلوی او حلاله روزی به حاصلوی او عمر به ئے زیات وی. دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا بَلْ اَحْيَآءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُوْنَ ) ال عمران: ۱۶۹ په هغه کسانو دَ مړو ګمان مه کوئ کوم خلک چه دَ خدائے په لاره کښے مړۀ شوید ی

بلکه دوی دَخپل رب په نزد ژوندی دی، رزق ورکړے کیږی - ﴿فَرِحِيْنَ بِمَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ﴾ ال عمران: خوشحاله به وی په هغه څه چه الله تعالیٰ ورکړیدی دَخپل فضل نه -

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائیلی دی، جهاد کول په خوب کښے په شپږو وجودی (۱) خیراوبرکت (۲) دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم اودَ صحابؓو سنت اداکول (۳) په دشمنانو کامیابیدل (۴) دَ بیمارئ نه جوړیدل (۵) دَ بادشاه اطاعت (۶) غنیمت موندل.

## جوارش (یو قسم دارو دی) - (گوارش)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے چه جوارش اوګوری اوخوارهٔ وی تعبیرئے نفع، خیراوخوشحالی ده که ترخ اوخراب وی تعبیرئے تکلیف، غم، فکرفساد دے اودَ هرخوږ جوارش تعبیرثنا او صفت دے اودَ هغه چه خراب بوی لری تعبیرئے دَدے خلاف دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، دَخوږ وجوارشوخوړل تعبیرئے غم اوفکر دے اوخوشبویه جوارش داروخوړل تعبیرئے مدح اوصفت دے.

## جامے - (لباس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَګرمئ دَ موسم جامے ئے په یخنئ کښے اچولی دی تعبیرئے مال به ئے زیات شی مګرلویه ویره به ورته ورسیږی. مګرانجام به ئے ښهٔ وی. که ښځه اوګوری چه دَ سړو جامے ئے اچولی دی، تعبیرئے خاوند (میړهٔ) ته به ئے څهٔ ورکول کیږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک دَخپلے بیدارئ په نسبت خرابے جامے په خوب کښے اوګوری تعبیرئے کاربه ئے بدشی اوکه دَ هغے نه ښے جامے اوګوری تعبیرئے کاربه ئے ښهٔ وی - اوکه خپلے جامے دَ بادشاهانو جامو په شان اوګوری تعبیرئے بادشاه به شی - که خپل لباس دَ فاسقانو او وینی تعبیرئے ډیره ګناه به کوی که دَ بادشاهانو په شان جامے اوګوری تعبیرئے دَ بادشاه نه به خیراونفع ورته ورسیږی - که اوګوری چه دَ عالمانو جامے ئے اچولی دی تعبیرئے دَ علم نه به څهٔ حصه زده کړی که اوګوری خوب کښے چه دَ صوفیه کرامو جامے لری تعبیرئے دَ دُنیا نه به لاس واخلی - که اوګوری چه دَ مالدارانو جامے لری تعبیرئے دَ مال په جمع کولو کښے به حریص وی.

که اوګوری چه د یهود یانو یا د عیسایانو جامې لري تعبیر ئې زړه به ئې هغوئ طرف ته مائله وي.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلي دي، د جامو لیدل خوب کښې په اوو وجووي (۱) پاک دین (۲) مالداري (۳) عزت او مرتبه (۴) نفع (۵) ښه ژوند (۶) نیک عمل (۷) انصاف به غوښتل۔

## د خوب جامې

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه د خوب جامې ئې سپینې او پاکې دي، تعبیر ئې عیال به ئې دیندار او حیاناک وي. که اوګوري په خوب کښې چه د خوب جامې ئې تورې دي تعبیر ئې د عیال نه به ورته غم او فکر او رسیږي او ځنې معبرین وائي چه توره جامه په خوب کښې د بادشاه د پاره ښه ده او د رعیت د پاره بده ده او که د خوب جامې اسماني رنګه اوویني تعبیر ئې د عیال په وجه به ورته غم او فکر او مصیبت رسیږي که اوګوري چه د خوب جامې ئې خیرنې اوشلیدلي دي تعبیر ئې ښځه به ئې خیرنه او ګنده او ناموافقه وي او که اوګوري چه د خوب جامې ئې ضائع شوې دي او یا ورنه چا پټې کړې دي. تعبیر ئې ښځې ته به طلاق ورکوي او یا به ورنه جدا کیږي او که اوګوري چه د خوب جامې ئې سوزیدلي دي تعبیر ئې عیال به ئې مړشي۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلي دي، د خوب جامې په خوب کښې په دریو وجووي (۱) نیکه ښځه (۲) اسائتیا (۳) غم او فکر او مصیبت۔

## جامې ګنډل (دوختن جامه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي که په خوب کښې اوګوري چه خپلې جامې ګنډي، تعبیر ئې کار به ئې سرته ورسیږي او حال به ئې درست وي او که د خپلو بچو او عیال کپړې ئې ګنډلي وي نو همدغه تعبیر لري، او که اوګوري چه د بیګانه ښځې جامې ئې ګنډلي دي، تعبیر ئې ده ته به تاوان او نقصان رسیږي او که اوګوري چه د سړي جامې ئې ګنډلي دي، تعبیر ئې خیر او نیکي به بیا مومي، که اوویني چه ستنه ئې ګنډلي دي، تعبیر ئې کوم کار چه د ده په لاس کښې ده او تولې جامې ئې ګنډلي دي، تعبیر ئې کوم کار چه د ده په لاس کښې ده او تول به پوره کړي او که اوګوري چه د ده په کور کښې ده په ورانده دې هغه به تول پوره کړي او که اوګوري چه د ده په کورکښې دیرې ګنډلې شوې جامې دي تعبیر ئې زندګي به ئې فراخه شي او تول به

دَ میراث مال بیا مومی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کۀ اوګوری چه دَ خپل ځان دَ پاره ئې کوم قمیص ګنډلے دے او پوره کړے ئې دے، تعبیر ئې دَ عیال سره به جوړوی او کۀ اوګوری چه پرتوګ ئې ګنډلے دے او دَ هغې بډې ئې نۀ دَه پوره کړے تعبیر ئې دا سے ښځه به کوی چه آخر به ورنه جدا شی، کۀ اوګوری چه څڼه ئې ګنډلے ده، تعبیر ئې په څۀ خدمت کښې به مشغول شی او کۀ اوګوری چه دَ وینځلو جامو دَ پاره تار برابروی، تعبیر ئې اولاد به دَ یو ځائے نه بل ځائے ته وړی، کۀ اوګوری چه دَ خپلو بچودَ پاره ئې ریښمینه کپړه ګنډلے ده، تعبیر ئې غمژن به شی او دَ ګناه په تهمت کښې به غمژن وی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې درزی هغه سړے دے چه خوارۀ وارۀ سامانونه دَ هغۀ په لاس راجمع کیږی او سموی ئې.

## جوشانده۔ (مطبوخ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی کۀ اوګوری چه دَ بیمارئ دَ پاره ئې جوشانده پخ کړیده او هغه جوشاندہ برابره وه تعبیر ئې دَدین اصلاح به لټوی. او کۀ جوشانده برابره نۀ وه تعبیر ئې دَدین اصلاح به نۀ لټوی. کۀ اوګوری چه جوشانده ئې څښلے ده او اثر ئې پرے کړے دے تعبیر ئې اصلاح، تن رستی او خیر دے. او کۀ دَدے خلاف اوګوری نو تعبیر ئې غم او نقصان وی.

## جذام۔ (یو قسم بیماری ده)۔ (واړئ)

داری دَ جذام بیماری ده په خوب کښې دَدے لیدل تعبیر ئې مال دے چه به ورته رسیږی چه په خپل بدن پیپنے پولې اوګوری۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی کۀ اوګوری چه دَدۀ په بدن ډیرزیات جذام دے، تعبیر ئې دۀ ته به خراب کار مخے ته پیښیږی او ځنے تعبیر کونکو بیان کړیدے چه ډیرزیات به مشهورہ شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی چه جذام په خوب کښې لیدل دَ فقیر دپاره دَه مالداره کیدل تعبیر لری او نعمت دے او دَ مالداره دپاره دَګناه نه بچ کیدلو تعبیر لری کۀ اوګوری چه دَدۀ ټولے ګوتے غرځیدلے دی، تعبیر ئې نیک کار به کوی. داهم کیدے شی چه دَدۀ ځوی یا رور دَ دُنیا نه

ستر کے پتے کړی۔

**دَجامے یو قسم تمیص۔ (فرجی)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی۔کہ په خوب کښے اووینی چه دهٔ سره پیلکے فرجی جامے دی تعبیر ئے دَ غم نه به خوشحالی او بزرګی مومی او که تمیص ئے خیرن او زوړ وی تعبیر ئے دَدے خلاف دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه قمیص ئے دَ ریښمو اغوستے دے۔ تعبیر ئے نیک به وی لیکن دَ پرهیزګارهٔ خلکو سره به وی۔که رنګدارهٔ ریښم وی اودَ سوترو او ریښمو قمیص دَ دین دَ زیاتوالی تعبیر لری۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه دهٔ دَ ښځو قمیص اچولے دے، تعبیر ئے دهٔ ته به ملامتیا رسیږی۔اوکه اوګوری چه په دِے قمیص کښے ئے دَچا سره جماع (کوروالے) کړیدے، تعبیر ئے حاجت به ئے پورهٔ کړے شی بل چا سره ئے چه کوروالے کړے وی۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی که اوګوری چه سور قمیص ئے اچولے دے تعبیر ئے په دینداری، امانت داری او پرهیزګاری باندے دے او که اوګوری چه تور قمیص ئے اچولے دے که خوب لیدونکے عالم وی تعبیر ئے په ارام او په نفع دے۔اوکه عالم نهٔ وی تعبیر ئے ښهٔ نهٔ دے او که زیړ ئے اچولے وی یا ئے په ترخ کښے وی تعبیر ئے په غم، مصیبت او په فکر دے۔

**دَجنت دربانچی۔ (رضوان)** رضوان۔دَ جنت دَ دروازے فرښتهٔ دهٔ۔ حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک رضوان په خوب کښے اوګوری تعبیر ئے دَ عذاب نه به بچ پاتے شی۔ اوکه اوګوری چه رضوان په جنت کښے ولاړ دے تعبیر ئے دَ دُنیا نه به څی او ځنے تعبیر کونکو ویلی دی چه رضوان دَبادشاه خزانچی تعبیر لری چه دَ هغهٔ سرهٔ ئے به ملګرتیا وی ځکه چه رضوان دَجنت دربانچی دے۔

که اوګوری چه دهٔ ته رضوان یاقوت، ملغلرے او مرجان ورکړیدی تعبیر ئے دَ دهٔ به عالم او هوښیار ځوئ پیدا کیږی، او نوم به ئے په علمیت سره مشهور شی۔

**جوالی، پنډی۔ (حمال)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښے جوالی لیدل دَ مرتبے خاوند او خطرناک سړے دے که اوګوری چه دَدهٔ

په شا سپک شانته پیټې دے او دَ دهٔ ملکیت دے، تعبیرئے دَ هغه پیټې
په اندازه به دهٔ ته راحت، خیر او نفع رسیږی. او که اوګوری چه دَ هغه
پیټې نه دَ دهٔ شانه تکلیف رسیږی۔ تعبیرئے دے به ګنهګار روی. دَ الله
تعالیٰ قول دے لِيَحْمِلُوٓا اَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ (۲۵ النحل): دَ دے دَ
پاره چه دَ قیامت په ورځ خپل پیټے پوره پورته کړی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی۔ که اوګوری چه دَ خلکو پیټے بغیر دَ مزدوری
نه اوړی، تعبیرئے دَ الله تعالیٰ مخلوق سره به نیکی او احسان کوی که اوګوری
چه جوالیتوب کوی او مزدوری ئے اخلی تعبیرئے غم او فکر دے۔

## جائفل، کھوپرہ۔ (کوزبوبا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے جائفل لیدل تعبیرئے دَ دین صلاح او دَ
شرعی علم زده کول دی، که اوګوری چه جائفل ئے خوړلی دی تعبیرئے دَ
دین دَ اصلاح لاره به غوره کوی او دَ شریعت علم به زده کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه دهٔ سره ډیر جائفل دی پخپله ئے
هم خوری او نورو ته ئے هم ورکوی، تعبیرئے په علم او حکمت کښے به
یواځے شخصیت وی او دَ هغه علم نه به نورو خلکو ته نفع وی، که اوګوری چه
جائفل او هریره ورسره دی او دَ هغے نه ئے چا ته نهٔ دی ورکړی تعبیر
ئے دَ هغه علم نه به دهٔ ته او نهٔ بل چا ته نفع وی او ځنے تعبیرکونکو ویلی دی
چه دَ جائفل خوړل تعبیرئے په علمِ نجوم په زده کولو دے۔

## جامه، کپړے

حضرت دانیالؒ فرمائی، جامه په خوب کښے دَ سړی کار او کسب دے که خپله جامه نیکه
اووینی تعبیرئے کار او کسب به ئے بدوی. که بادشاه خپله جامه توره او دی وینی
تعبیرئے دَ دهٔ حال به ښهٔ وی، او که رعیت خپله جامه توره اووینی تعبیر
ئے غم او فکر دے او زیړه جامه په خوب کښے بیماری ده او شره جامه په
خوب کښے خوشحالی ده او دَ بندګی توفیق دے تعبیر دا هم دے چه دَ
جنتیانو کپړه هم شنه ده۔ دَ الله تعالیٰ قول دے (ثِيَابًا خُضْرًا مِّنْ
سُنْدُسٍ وَّ اِسْتَبْرَقٍ) الکهف ۳۱ په دوئ دَ ریښمو شنے جامے دی۔
او سپینه وینځلے شوے کپړه دَ کار دَ جوړیدو تعبیر لری۔ او اسمانی رنګی
کپړه دَ نقصان تعبیر لری او سوزیدلے جامے دَ بنځو تعبیر لری چه دَ بادشاه

دَ حج نه وی او شلیدلے جامے دَ رازدَ ښکاره کیدو تعبیر لری۔ هره جامه چه خیرنه وی تعبیر ئے غم او فکر دے او کاغذی کپړه لیدل تعبیر ئے بلاتیا او بدی ده او هغه جامے چه دَ څنا وروژدَ پوستکو نه جوړه وی۔ تعبیر ئے خیراو نیکی ده چه به ورته رسیږی۔ او بے درزه دَ کفن په شکل کپړه تعبیر ئے دَ دَ دین کار پوره شوے دے۔ مګر عمر به ئے آخر شوے وی۔ که او ګوری چه دَ خر پوستکے ئے اغوستے دے تعبیر ئے عزت او مرتبه به بیا مومی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک په خوب کښے او وینی چه دَ سردارئ جامے ئے اغوستے دی که دَ هغه جامے اهل او لائق وی تعبیر ئے کار به ئے قوی او مضبوط شی او که او ګوری چه دَ وزیر جامے ئے اچولے دی تعبیر ئے مال به ډیر مومی مګر خلک به وربانده ملامتیاوائی۔ او که او ګوری چه دَ محافظ او دَ دربان کپړے ئے اچولے ده تعبیر ئے دَ مشرانو دَ بخشش نه به محروم وی۔ که او ګوری چه دَ شاهی امدادکپړے اچولے دی تعبیر ئے څوک به دَ ئه په بخشش رسولو کښے مددګار وی او که او ګوری چه دَ جلاد کپړے ئے اغوستے دی تعبیر ئے نفع به مومی۔ او که او ګوری چه دَ نمبردار جامے ئے اغوستے دی تعبیر ئے امانتګرا او زبه وربه وی او دَ خلکو په ضروری کار کولو کښے به مشغول وی۔ او که او ګوری چه دَ صوفیانو کپړے ئے اغوستے دی تعبیر ئے دین به ئے زیات شی۔ او که او ګوری چه دَ سوداګر جامے ئے اچولے دی تعبیر ئے دَ دُنیا کار او کسب به ئے بند شی۔ او که او ګوری چه دَ مصلحینو جامے اچولی دی تعبیر ئے دَ دین کار به ئے نیک وی۔

او که او ګوری چه دَ فسادیانو جامے ئے اچولے وی تعبیر ئے دَ مفسدینو نه به ورته غم او فکر ورسیږی۔ او که او ګوری چه دَ مزدورانو کپړے ئے اچولے دی تعبیر ئے فکرمند او بیمار به شی او که او ګوری چه دَ ډاکټرانو جامے ورسره دی تعبیر ئے کار به ئے نیک شی او په خلقو کښے به مشهور شی او که او ګوری چه دَ یهودیانو جامے ئے اغوستے دی تعبیر ئے څوک به چل فریب سره هلاک کړی او آخر انجام دَ کار به ئے بد شی۔ او که او ګوری چه دَ عیسایانو جامے ئے اچولے دی۔ تعبیر ئے داسے کار به کوی چه دَ هغے په وجه به دَ دوستانو نه په امن کښے نۀ وی او که او ګوری چه دَ پادریانو جامے ئے اغوستے دی تعبیر ئے، دے به بدعتی دی او توجه به ئے دَ کفر

اوګمراهۍ په طرف وی او که اوګوری چه دَ دَه جامې دَ آتش پرستو وی تعبیر ئې دَدَهٔ میلان به دَ بې دینو او جاهلانو طرف ته وی او که اوګوری چه دَدَهٔ جامې دَ سپاهیانو دی تعبیر ئې دَ چا سره به ئې دشمنی وی، او که اوګوری چه دَ مرتدینو جامې ئې اچولې دی تعبیر ئې څوک به ورته تحفه ورکوی او بیا به ئې ورنه اخلی. او که اوګوری چه دَ بُت پرستو جامې ورسره دی تعبیر ئې دَ بادشاه په خدمت کښې به مشغول وی او که اوګوری چه دَ ښځو جامې ئې اغوستې دی تعبیر ئې دَ خپل سردار نه به لرې شی او که اوګوری چه دَ سړو دَ جیلیانو کپړې ئې اچولې دی تعبیر ئې دَ خهٔ کار په وجه به غمژن او محتاجه وی او که اوګوری چه دَ قلی (جوالی) کپړې ئې اچولې دی تعبیر ئې امانت ورکولو والا به وی او بدنام به وی. او که اوګوری چه دَ قبرکندا جامې ئې اچولې دی تعبیر ئې دَ بې وقوفو او بې همته خلکو په خدمت کښې به مشغول وی. او که اوګوری چه دَ کشتیبانو جامې ئې اچولې دی تعبیر ئې دَ مصلحه سړی نه به ورته روزی رسیږی او که اوګوری چه دَ قصاب جامې ئې اچولې دی تعبیر ئې دهٔ ته به تاوان او غم رسیږی او که اوګوری چه دهٔ دَ ماتمی جامې اغوستې دی تعبیر ئې دَ ښځې سره به په راستئ سره صحبت نهٔ کوی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه نوې جامې ورسره دی او دَ دهوبی ونیځلې شوې نهٔ دی، تعبیر ئې نیکی ده او دَ تنګو جامو لیدل دَ نوې جامو دَ دهوبی وینځلو شوو نه بې دی. او دَ زړې بقتو جامې عقلمند له ښځه او هوښیاره وینزه ده او دوتاره کپړه خیر او نفع ده او دَ رسئ نا معلومه کپړه دَ کوړې زخم یا سخت غم دې چه به ورته ورسیږی او مقرر شوې کپړه دَ مال مطلب دې.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی په خوب کښې دَ جامو لیدل دوه قسمه تعبیرونه دی (۱) دَ یو قسم تعلق دَ دین سره دې (۲) او دَ دویم قسم تعلق دُنیا سره دې. سپینه جامه دین دې او دَ پتکی نوې دُنیا ده. که څوک اوګوری چه دهٔ سره نوې سپینه کپړه او پاکیزه ده تعبیر ئې دُنیا او دین به ئې ښهٔ وی. او که غټې او تنګې جامې اووینی تعبیر ئې دین به ئې بد وی او هم دُنیا، او که خیرنه او شلیدلې جامه اوګوری، تعبیر ئې دَ دین او دُنیا فساد دې. او دَ ښځو دَ پاره سره جامه ښهٔ ده او دَ سړو دَ پاره هم ښهٔ ده. او قمیص او پرتوګ او لونګه او لوې څادر او پټکې دَ دې ټولو لیدل سړو دَ پاره غم دې یا جنګ او جګړه، او

زیړه جامه سړو دَ پاره بیماري ده - دَ ځینو تعبیر کونکو دَ وینا مطابق که ښځه اوګوري چه زیړه جامه ئې اغوستې ده، تعبیر ئې خاوند به ئې راځي او که وادهٔ شوې نهٔ وي. نو بیماره به شي. او شنه جامه دَ سړو او ښځو دَ پاره دین دے او که په ژوندۍ ئې اووینې تعبیر ئې دَ دین اصلاح ده او که په مړي ئې اووینې، تعبیر ئې دَ مړي دَ آخرت نجات دے. او که څوک توره غټه کپړه اوګوري چه اغوستې ئې ده - ښه نهٔ ده او دَ تورې جامې لیدل ښهٔ نهٔ دي او دَ ځینو تعبیر کونکو دَ وینا مطابق توره جامه قاضي، خطیب او بادشاه دَ پاره ښهٔ ده مګر دَ رعیت دَ پاره غم او فکر دے او اسماني رنګه جامه دروغ، غم او مصیبت دے. که اوګوري چه دَ ټه سره رنګ اره یعنې شنه او سره او زیړه تعبیر ئې دَ بادشا یا دَ والي (ګورنر) نه به سخته خبره واوري چه خوشحاله به ورباندې نهٔ وي.

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائي، که څوک په خوب کښې اووینې چه دهٔ سره جامې دي دواړه طرف ته بیل بیل رنګ لري تعبیر ئې دَ دین او دَ دُنیا دَ اهل سره به دَ خوارۍ ژوند تیروي که اوګوري چه خپلې جامې ئې خوړلې دي تعبیر ئې دَ خپل مال نه به ډیره نفقه کوي - او که اوګوري چه شلیدلې جامې ئې اچولې دي تعبیر ئې په سفر کښې به پاتې شي او یا به دَ څهٔ کار په وجه زندان (جیل) ته بوځي. که اوګوري چه جامه ئې ضائع شوې او یا ورنه پاتې شو تعبیر ئې عزت او مرتبه به ئې کمه شي چا اخستې ده او دے بربنډ پاتې شو تعبیر ئې عزت او مرتبه به ئې کمه شي او سپک او ذلیل به شي. که اوګوري چه خپلې جامې ئې اغوستې دي تعبیر ئې غمژن به شي او دَ خپلې ښځې سره به جګړه کوي - او که اوګوري چه جامې ئې شلیدلې دي تعبیر ئې دَ هغه سړي نه به جدا شي - که اوګوري چه خپلې جامې یا دَ خپل اهل جامې مومي کوي تعبیر ئې دَ خپلوانو سره به ئې جنګ او جګړه کښې پریوځي یا به دوست سره جنګ کوي. که اوګوري چه دَ دهٔ جامه وچه ده او دے بربنډ پاتې شو تعبیر ئې دَ عزت او مرتبې نه به پریوځي - که اوګوري چه قط کړې جامه ئې پرانستلې، تعبیر ئې په سفر به ځي - که اوګوري چه پرانستلې شوې کپړه ئې پرانستله، تعبیر ئې دَ سفر غائب به ئې راځي - او که اوګوري چه دَ ښځو اونغښتله، تعبیر ئې مال به ئې زیات شي مګر لویه یره به ورته جامې ئې اچولې دي تعبیر ئې غم او فکر به ورته رسیږي او بې عزته رسیږي او دَ ځینو دَ وینا مطابق دَ خلقو کپړې اچولې دي، تعبیر ئې نعمت به شي. او که اوګوري چه

اوخیر یه ورته ورسیږی اودَ جامومونډل په خوب کښې سفر دے. دَ جامې دَ لویوالی او وړوکوالی په اندازه په سفر کښې به پاتې شی. که اوګوری چه جامه ئې پوره کړے تعبیر ئې دَ غم نه به نجات مومی۔

حضرت اصفهانیؒ فرمائی چه خوب کښې ښۀ جامه هغه ده چه دَ سوترو وی او په هغې کښې ریښم نۀ وی او سوتی عنابی یا دَ ریښمو جامې دواړه حرام مال اودَ دین فساد تعبیر لری اودَ ریښمو جامې سړو دپاره بد دے دی اودَ ښځو دَ پاره ښے دی او زړے جامې غم او فکر دے دَ بادشاه دَ طرفه. که څوک اوګوری چه زړے جامې خرڅوی تعبیر ئې ښۀ دے اوکه اوګوری چه زړے جامې اخلی تعبیر ئې بد دے اودَ زړے جامې اغوستل بد دی او زړے جامې ویستل دَ وجود نه ښۀ دی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که اوګوری چه جامې وینځلی دی اودۀ اغوستے دی تعبیر ئې تبه به ئې نیسی۔ اوکه اوګوری چه خیرنے جامې ورسره دی تعبیر ئې فقیر یه شی اوکه رنګداره وی نو دَ ښځې یا سپاهی دَ پاره نیک تعبیر دے اوکه اوګوری چه رنګداره جامې ورسره دی تعبیر ئې بده خبره به ورته مخکښې راشی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی، په خوب کښې جامې لیدل په څلورو وجو وی (۱) ښځه (۲) بادشاه (۳) مال (۴) خیراونفع۔ اوداهم وئیلے شی که څوک اوګوری چه خپلے جامے ئې په قینچی سره پریکړے دی تعبیر څۀ به ورته رسیږی. اوکه اوګوری چه غلو ورنه جامې اوویستې تعبیر ئې دَ دۀ دَ ښځو تر منځه به فساد پیدا کیږی۔

**جُلاب۔ (دَ قبض ماتولو دارو)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه دَ جلاب څښل حلال مال او پاک دین دے اوکه اوګوری چه دۀ له چا جلاب ورکړی دی او دۀ څښلی دی، نو تعبیر ئې دا دے چه دۀ ته به هم هغه هومره مال حاصلیږی. او دَ دۀ دَ پاکے عقیدے اودَ دین دَ درستئ دلیل دے. اوکه اوګوری چه دۀ له چا جلاب ورکړی دی نو تعبیر ئې دا دے چه دے به خیراونفع مومی اوکه اوګوری چه جلاب ئې څښلی نۀ دی بلکه په زمکه ئې توئے کړیدی، نو دَ دے تعبیر دَ اول نه خلاف دے۔

**جهنډه، بیرغ۔ (عَلَم)** په خوب کښې جهنډه هوښیار سړے یا پرهیزګار امام دے یا داسے سړے دے چه خلک دَ

هغهٔ تابعداری کوی که اووینی چه دَدهٔ په لاس کښے جهنډه دهٔ تعبیرئے دذکرشوو اوصافو والاسړی اشنا به وی. او هغه به راحت بیا مومی که اووینی چه جهنډه دَدهٔ دَلاسه پریوتله یاضائع شوه تعبیرئے دَ دے خلاف دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښے جنډه لیدل تعبیرئے سفر دے که اووینی چه دهٔ ته ئے جهنډه ورکړیده یالښکر ورباندے راجمع شوے دے تعبیرئے عزت اومشری به بیا مومی، خاصکرچه سپینه یاشنه جهنډه وی۔

حضرت جابرمغربیؒ فرمائی که اووینی چه سپینه غټه جنډه ورسره ده تعبیرئے دَ دهٔ ملکرتیا به دَکوم مشرسرداړسړی سره وی اودَدهٔ نه به خیراو نفع بیا مومی. که اووینی چه شنه جهنډه ورسره ده تعبیرئے پرهیزګاره او دینداره به شی. که اووینی چه توره جهنډه ورسره ده تعبیرئے قاضی یاخطیب به شی.

حضرت امام جعفرصادقؓ فرمائی په خوب کښے جهنډه لیدل په څلورو وجووی (۱) بادشاه (۲) سفر (۳) مرتبه (۴) ښهٔ حالات

## جوشانده۔ (کشکاب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که اووینی چه دَعناب او دَبنفشه جوشانده ئے چیښی سره ښنبلے ده. تعبیرئے دهٔ ته به یوحلال مال ملاویږی اودَزړهٔ نه به ئے غم او فکرلرے شی. اوکه اووینی چه جوشانده ئے ونهٔ ښنبولے شوه، تعبیر ئے دَ اول خلاف دے۔

## جنګ کول۔ (کارزارکردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے جنګ کول دَطاعون بیماری ده. که څوک په خوب کښے اووینی چه جنګ کوی تعبیرئے دهٔ ته به دَطاعون دَبیمارئ یره وی. اوکه په جنګ کښے په دښمن کامیاب شوے دے تعبیرئے دَ بیمارئ نه به خلاص شی. اوکه اووینی چه په جنګ کښے دښمن په دهٔ غالب شوے دے تعبیرئے دَطاعون په بیمارئ به هلاک شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه په جنګ کښے توره راویستے ده، تعبیرئے دښمنی ده اوکوم چه خلاصے اوموندلو اویادَهغوئ نه خلاص شو تعبیرئے دَکامیابئ تعبیرلری اوکه په نیزه ئے جنګ هغهٔ ته په مقابل باندے کړے وی نو همدغه تعبیرلری اوکه لینده اوغشی سره جنګ کړے وی

تعبیر ئے د دوئ پہ خپل مینځ کښې به د خلے خبرے اترے وی۔

## جنب کیدل (جُنب بودن)

کهٔ خپل ځان جنب اوګوری په خوب کښې تعبیر ئے په حرامو کښې به حیرانه او پریشانه وی او ځنی معبرینو وئیلی دی چه په داسے سفر به ځی چه مراد به نهٔ موهی او کار به ئے تباه شی کهٔ اوګوری چه د جنابت نه ئے غسل کړے دے او جامے ئے اغوستے دی تعبیر ئے په آخر کښې به د کار نه خلاصے بیا موهی او کار به ئے بند وی او کهٔ اوګوری چه د پوره کید لو نه ناست دے تعبیر ئے کار به ئے نهٔ تمامیږی یعنی نهٔ به پوره کیږی۔

حضرت کرمانی فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښې خپل ځان جُنب او بربنړه اووینی تعبیر ئے په خپل کار کښې به حیران او پریشانه وی او کهٔ اووینی چه په حمام کښې ئے غُسل کړے دے او صفا کپړے اچولی دی تعبیر ئے د الله تعالیٰ طرفته به رجوع کوی او توبه به اوباسی۔

## "چ" چوکاټ۔ (آستانه)

حضرت کرمانی فرمائیلی دی، بره چوکاټ خوب کښې لیدل د کور خاوند دے او لاندے چوکاټ د کور خاوندهٔ ده۔ که اوګوری چه بره چوکاټ پریوتے او خراب شوے دے۔ تعبیر ئے د کور خاوند به مړ شی۔ که د کور خاوند اوګوری چه د کور چوکاټ پریوتے یا سوزیدلے دے تعبیر ئے د کور خاوندہ به مړه شی۔

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی که اوګوری خوب کښې چه د کور خاوند لاندِ نے چوکاټ په بره نی چوکاټ بدل کړے دے تعبیر ئے ښځے ته به طلاق ورکوی او بله ښځه به وکړی۔ که اوګوری چه بره چوکاټ ئے غوړنړولے دے تعبیر ئے خپل ځان به په خپله هلاک کړی که اوګوری چه دواړه چوکاټونه رالوئدلی دی او خراب شوی دی۔ تعبیر ئے د کور خاوند او د کور خاوندہ به هلاک شی۔

## چُونه۔ (آهک)

حضرت دانیال فرمائیلی دی که څوک خوب کښې اوګوری چه چونے سرهٔ ئے د بدن ویښتهٔ خرئیلی دی تعبیر ئے که مالدار نهٔ وی په هغے اندازه څومره ویښتهٔ خرئیلی دی مالدار به شی او که خفه وی خوشحاله به شی او که قرضدار وی د قرض نه به خلاص شی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چونه کول مالدار ته دَ مالداری زیاتوالے
دے او غریب ته دَ قرض نه خلاصے او کافرانو ته به دَ اسلام علامه وی
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، چونه په خوب کښے په دریٔو
وجو وی (۱) بد خبر (۲) خسرا بے خبرے (۳) سخت کار ونه۔ او دَ
چونے آبادی جوړول خراب تعبیر دے۔

## چُونه۔ (ج)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے
چونه لیدل جنګ او دشمنی ده۔ که اوګوری چه
چا چونه ورکړے ده تعبیر ئے جنګ او جګړه کښے به پریوځی۔
او که اوګوری چه دَ چاله چونه ورکړیده تعبیر ئے دَ اول خلاف دے۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی چونه خوب کښے لیدل سختی ده او هغه
بنیاد کوم چه په چونه ئے جوړ کړے دے بد دے ځکه چه چونه په
اور پخیږی۔ که اوګوری چه چونه خوری تعبیر ئے دَ ده دَ مرګ یره ده۔

## چیلئ بچے۔ (ب،ه)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی دَ چیلئے
بچے لیدل په خوب کښے که هغه نروی یا ښځه
وی تعبیر ئے ځوئ دے۔ که اوګوری چه دَ چیلئ بچے ئے نیولے دے، او
یا چا ورکړے دے تعبیر ئے ځوئ به ئے اوشی او دَ پلار په شان به
وی۔ که اوګوری چه دَ چیلئ بچے ئے وژلے دے تعبیر ئے ځوئ به ئے مړی۔
که اوګوری چه دَ چیلئ دَ بچی غوښه ئے خوړلے ده۔ تعبیر ئے دَ ځوئ
دَ طرفه به ورته غم او فکر ورسیږی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی۔ دَ چیلئ بچے خوب کښے لیدل تعبیر ئے
دَ خیر او دَ نفع او د نیکئ دے او مال به هم ورته دَ هغے په اندازه
ملاویږی۔ که اوګوری چه دَ چیلئ بچے لری تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به
ورته دَ غنیمت مال ورسیږی۔ که اوګوری چه دَ چیلئ بچے ئے مړ کړے
او خوړلے ئے دے او دَ غوښے دَ پاره ئے نه دے وژلے تعبیر ئے، دَ ځوی په
سبب به ورته غم او فکر ورسیږی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، دَ چیلئ بچے لیدل په خوب
کښے په څلورو وجوو دی (۱) بچے (۲) حلال مال (۳) زندګی (۴) غم او فکر۔

## چربی (وازده) خوړل - (پیه خوردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښې څوک اوګوری چه وازده خوری تعبیرئے دادے چه خیر، نعمت، فراخی به بیا مومی که اوګوری چه د ګڼې وازده لری او وے خوړله تعبیرئے د هغې په اندازه به حلال مال بیا مومی، که اوګوری چه د هغه څناور وازده ئے خوړلے ده چه غوښه د هغوئ حلاله وی تعبیرئے حلال مال دے چه به ئے بیا مومی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی د وازدے لیدل په خوب کښې په دوؤ وجو وی (۱) نعمت او فراخی (۲) مال او نعمت (۳) د بند کارونو خلاصیدل

## چُوغه - (جُبه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، د چوغے لیدل په خوب کښې ښځه ده که اوګوری چه فراخه او پاکه چوغه ورسره ده۔ تعبیرئے د دهٔ ښځه نیک سیرته او نیک (خویه) ده او که د دے خلاف اوګوری تعبیرئے د دهٔ ښځه بد اخلاقه او نا برابره ده. که اوګوری چه چُغه شلیدلے او یا اوسوزیده تعبیرئے د دوی دواړو منځ کښې به جدائی راشی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی د یخنئ موسم کښې چغه په وجود کښې لیدل نیکه او په ګرمو کښې د غلو وجوه دی (۱) ښځه (۲) قوت (۳) واده (۴) نفع او زړه او خیرنه چوغه تعبیرئے غم او فکر دے۔

حضرت جابرؒ فرمائیلی دی که اوګوری په خوب کښې چه نوے چوغه ورسره ده او یا ورته چا ورکړے ده شین رنګے تعبیرئے د پاک دین خاونده ښځه به کوی۔ او که اوګوری چه سپینه نوے چُوغه لری، پرهیزګاره او امانت ګره ښځه به کوی او که زیړه چوغه اوګوری تعبیرئے بیماره ښځه به کوی او که اسمانی رنګے اوګوری تعبیرئے فکرمنده او غمناکه ښځه به کوی. او که اوګوری چه سره چوغه ورسره ده تعبیرئے ښځه به ئے عیاشه وی او دهٔ سره به کمه دوستی کوی.

## چوغه - (قباء)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، د وړئ چوغه لیدل پناه او په سفر کښې قوت دے که اوګوری چه د وړئ فراخه چوغه ئے اغوستے ده تعبیرئے د غمونو نه به خلاصے اومومی او که اوګوری چه د ریښمو چوغه ئے اچولے ده تعبیرئے بد دے مګر که اسلحے سره ئے اچولے وی تعبیرئے د لوئے سړی نه به عزت او مرتبه بیا مومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری خوب کښې چه چوغه ئې اچولې ده او جنګ ته روان دې تعبیر ئې په دښمنانو به کامیابي حاصله کړي. که اوګوري چه شنه چوغه ئې اچولې ده تعبیر ئې ریائي به پیدا کړي. او که اسماني رنګه وي تعبیر ئې مصیبت به پرې راشي او که توره وي تعبیر ئې غم او فکر دې او که کرښې پرې وي تعبیر ئې کار به ئې په انتظام سره وي او که اوګوري چه چوغه ئې زړه او شلیدلې ده تعبیر ئې ښځې ته به طلاق ورکړي.

حضرت مغربيؒ فرمائیلی دي که اوګوري خوب کښې چه عنابي چوغه ورسره ده. که دَ هغې چوغې اهل وي دَ غم او فکر تعبیر لري، که اوګوري چه دَ پوستکي توره پلیته چوغه ئې اچولې ده تعبیر ئې مالداره ښځې سره به واده وکړي، او که اوګوري چه دَ لومبړي پوستکي چوغه ئې اچولې ده تعبیر ئې پرهیزګاره ښځې سره به واده اوکړي. او که اوګوري چه دَ سمور (ځناور دے) دَ پوستکي چوغه ئې ده تعبیر ئې دَ مالداره ښځې سره به نکاح وکړي.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلي دي، چوغه لیدل په خوب کښې په شپږ وجو دي (۱) پناه (۲) قوت (۳) حجت (۴) نفع (۵) حکمت (۶) ریاست

**چوغه - (لباچه)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي چې لباچه په خوب کښې لیدل نیکي او دَ دین مضبوطوالې دے خاصکر چه شنه وي. که اوګوري چه دَ سره د سمور او یا دَ سنجاب مارغه چوغه ده تعبیر ئې دَ ایماندار سړي پناه کښې به وي.

حضرت مغربيؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه شنه چوغه ورسره ده تعبیر ئې دَ امانت دار سړي نه به ورته نفع ورسیږي. که اوګوري چه سپینه چوغه ورسره ده تعبیر دَ صالحه مالدار سړي نه به ورته نفع ورسیږي او که اوګوري چه شره چوغه ده ئې اغوستې ده. تعبیر ئې دَ خپل ملګري شریکوال نه به نفع ورته ورسیږي او که اوګوري چه زیړه چوغه لري تعبیر ئې بیمار به شي که اوګوري چه اسماني رنګه چوغه ئې اچولې ده تعبیر ئې غم او مصیبت به بیامومي. او که توره چوغه ئې اچولې وي که قاضي یا خطیب وي تعبیر ئې خیر او نیکي به بیامومي او که دَ دې خلاف اوګوري تعبیر ئې ضرر او بې عزتي به ورته ورسیږي.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلي دي دَ دینمو چوغه دَ سړو د پاره دَ

دین نقصان دے او دَ ښځو خوشحالی ده او عنابی رنګه چوغه دَ ښځو او سړو دَ پاره ښهٔ ده خاصکر چه سپینه او فراخه وی دَ دے تعبیر خیر او نیکی ده او تنګه چوغه دَ مال نقصان دے.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، دَ تارونو چوغه دَ ښځو او سړو دَ پاره ښهٔ ده او دَ چوغے لیدل په خوب کښے په څلورو وجو دی (۱) ښځے (۲) امانت داری (۳) دَ کارونو اصلاح (۴) خیر او نفع.

## چهترئ - (چتر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که یو سړے خوب کښے اوګوری چه دَ ده دَ سر دَ پاسه چترئ لګوی تعبیر ئے که دَ هغے اهل وی نو بادشاهی به بیا مومی او که دَ هغے اهل نهٔ وی نو بزرګی به بیا مومی. که اوګوری چه دَ بادشاه چترئ ئے په لاس کښے ده تعبیر ئے دَ بادشاه مقرب به جوړ شی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی. دَ چترئ په خوب کښے لیدل په اووه وی (۱) بادشاهی (۲) عزت (۳) مرتبه (۴) ریاست (۵) او چتوالے (۶) ولایت (۷) دَ بزرګانو صحبت.

## چینه - (چشمه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ اوبو چینه په خوب کښے لیدل بادشاهی ده او جوانمردی ده او بخشش کوونکے لکه ښهٔ خوندناکه او ښهٔ یوی لرونکی ده. دَ الله تعالیٰ کلام دے (فِیْهَا عَیْنٌ جَارِیَةٌ) ترجمه: په دے کښے چینه جاری.

که دَ چینے اوبهٔ تورے ګنده او بے مزے وی تعبیر ئے انجام ئے غم، بیماری مصیبت وی. او که اووینی چه په چینه کښے مخ وینځلے دے، تعبیر ئے دَ غم نه به خلاص شی. که اوګوری چه چینه زیاته شوے ده، تعبیر ئے دَ ده به مرتبه او په هغه ملک کښے به سخاوت زیات شی. که اوګوری چه دَ اوبو چینه کمه شوے ده تعبیر ئے دَ دے خلاف دے. که اوګوری چه دَ اوبو چینه اوچه شوے ده تعبیر ئے دَ هغه ملک سخی بادشاه به دَ دُنیا نه سفر کوی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری په خوب کښے چه دَ ده په کور یا په دکان کښے دَ اوبو چینه راوتے ده تعبیر ئے دَ هغه چینے دَ قدر او قیمت په اندازه به ورته غم او فکر ورسیږی که هغه اوبه تورے او بے خوند وی. او ګوری تعبیر ئے سخت غم او فکر به ئے وی که اوګوری چه په چینه کښے مخ او لاسونه وینځلی

دی تعبیر ئے که غلام وی ازاد به شی که غمژن وی دُغم نه به خلاص شی . که بیمار وی نوصحت به بیا مومی که قرضدار وی نو دَ قرضے نه به خلاص شی . که ګناهګار وی توبه به اوباسی اوکه چرته ئے نه وی کړے نوحج به اوکړی .

حضرت جابرؓ فرمائیلی دی، دَ چینے لیدل دَخوب لیدونکی دَ عمرتعبیر دے دَهغه اوبو په اندازه چه په چینه کښے لیدلی وی خاص هغه لاس ئے په کښے دننه کړے وی ولاړے اوبه په خوب کښے کمزورے دی دَ روانو اوبونه او ځینے تعبیرکونکی وائی که اوګوری په خوب کښے چه دَچینے اوبه ولاړے دی تعبیر ئے دَ دین اصلاح اوخیر دے اوکه روانے اُوبه اوګوری دَچینے تعبیر ئے غم اوفکر دے .

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائیلی دی. دَاوبو چینه لیدل په پنځو وجو وی (۱) بادشاهی (۲) غم اوفکر (۳) مصیبت (۴) بیماری (۵) عمراوژوند موندل .

## چقندر ـ (چغندر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چقندر په خوب کښے لیدل، تعبیر ئے غم اوفکر دے.

که اوګوری چه دهٔ چقندر خوړلی دی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به غم اوفکر اوخوری که اوغواړی چه چقندر ئے دَکورنه بهرغورزولی دی تعبیر ئے دَ غم نه به خلاصے بیا مومی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه په خوب کښے لیدل دَچقندر روډ ښځوډ پاره لوه نفع ده. یاځۀ چقندر دَ ښځو نه به نفع بیا مومی .

## چاټئ ـ (سبو)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چاټئ په خوب کښے لیدل یو منافق سړے دے چه دَهغهٔ په لاس به مال ضائع شی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، چاټئ په خوب کښے لیدل خادم یا وینزه ده. که اوګوری چه نوے چاټئ اخستے، تعبیر ئے وینزه به واخلی یا به غلام ورته حاصل شی. که اوګوری چه چاټئ ئے ضائع شوے ده یا ماته شوے ده تعبیر ئے وینزه یا خادم به ئے مړ شی. که اوګوری چه په چاټئ کښے سورے شوے دے، تعبیر ئے وینزه یا خادم به ئے بیمار شی. که اوګوری چه چاټئ دَ صفا اُوبو نه ډکه ده تعبیر ئے دَوینزے یاخادم نه به نفع اومومی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائیلی دی، دَ چاټئ لیدل په خوب کښے په پنځو وجو وی (۱) منافق نوکر (۲) ښځه (۳) خادم (۴) وینزه (۵) دَدین مضبوطوالے

## چاټۍ - (خُم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چاټۍ په خوب کښې لیدل دا سے ښځه ده چه دَ هغه چاټۍ دَ غټوالی په اندازه به کور کښې فائده حاصلیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، دَ شرابو چاټۍ (دا یو قسم چاټۍ وی چه دَ شرابو دپاره استعمالیږی) په خوب کښې لیدل دَ خزانے تعبیر لری او دَ اوبو چاټۍ دَ ښځے تعبیر لری مګر مالداره ښځه به وی. که اوګوری چه په خپل کور کښے ئے چاټۍ دَ اوبو نه ډکه ده او دَ هغه او بو نه څښی، تعبیر ئے ډیر مال به پیدا کړی او دَ خیر په لاره کښے به ئے مصرف کړی، او دَ سرکے چاټۍ په خوب کښے لیدل یو پرهیزګاره سړے دے او دَ کوچو او غوړو چاټۍ دَ مال په زیاتوالی تعبیر لری۔

شوملو چاټۍ لیدل تعبیر ئے بیمار سړے دے او دَ خاورو تیلو چاټۍ لیدل او دَ کینه سړی او خوان تعبیر لری او چاټۍ په خوب کښے لیدل بادشاه او دَ بادشاه دَ ملګرو په ریاست باندے تعبیر لری۔

## چاړهٔ - (ساطور)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے چاړهٔ لیدل زړور او بهادر سړے دے که اوګوری چه چاړهٔ ورسره ده تعبیر ئے دَ دا سے سړی سره به ئے ملګرتیا کیږی او دَ هغهٔ نه به خیر او نفع اومومی. که اوګوری چه چاړهٔ ماته شوے او یا ضائع شوے ده، تعبیر ئے دَ هم هغه شان سړی نه به ئے جدائی راځی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی چاړهٔ لیدل په خوب کښے هغه سړے دے چه دَ هغهٔ په ذریعه مشکل او سخت کارونه اسانه کیږی خاصکر چه غټه چاړهٔ وی۔

## چاړهٔ - (کارد)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چاړهٔ څوئ دے او پوخ ئے ښځه ده. که څوک خوب کښے اوګوری چه چاړهٔ دَ دهٔ په لاس کښے ده او دے پوهیږی چه دا څماده تعبیر ئے دَ دهٔ به څوئ پیدا کیږی. که اوګوری چه دَ چاړے سره نوره وسله هم شته دے تعبیر ئے بزرګی او مرتبه به بیا مومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که خوب اوګوری چه وسله ئے اغوستے ده او چاړهٔ ئے په لاس کښے ده. تعبیر ئے دهٔ ته به دَ چانه ملاتړ او قوت وی۔ او ځنے تعبیر کونکی چه غلام به دَ چاړهٔ جوړولو چل زده کړی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه چاړهٔ ئے دَ پوخه ویستلے

ه تعبیر ئے بنځه به ئے خوئ راوړی. که اوګوری چه چاړهٔ په پوخ کښے ماته
شوے ده تعبیر ئے دَ دهٔ به پلار او یا دَ خپلوانو ځنے څوک مړ کیږی.
که اوګوری چه په چاړه ئے خپل اندام زخمی کړے دے تعبیر ئے دَ هغه
زخم په اندازه به ورته تاوان رسیږی. که اوګوری چه په چاړهٔ څهٔ شے
تراشلے دے تعبیر ئے دَ هغے نه به خیر او نفع بیا مومی. که اوګوری چه
په چاړهٔ کښے سورے شوے دے یا زنګ وهلے او یا بل څهٔ نقصان پکښے راغلے
دے تعبیر ئے دَ دهٔ دَ مال نقصان به وی.

حضرت امام جعفر صادق[رض] فرمائیلی دی دَ چاړے لیدل په خوب کښے
په اوو وجو وی (۱) دلیل او حجت (۲) څوئ (۳) کامیابی (۴) ملاتړ (۵) ورور
(۶) قوت (۷) ولایت.

## چنبیلی ونه. (سوسن)

حضرت ابن سیرین[رح] فرمائیلی دی چنبیلی
لیدل په خپل موسم کښے تعبیر ئے دادے چه
څهٔ به ورته ملاویږی او دَ دهٔ به زور پیدا کیږی او بے موسمه لیدل تعبیر ئے
غم او فکر دے که ښځه اوګوری چه چنبیلی دَ وتے نه اوشوکولو او غلام ته ئے
ورکړو تعبیر ئے غلام به ئے تښتی.

حضرت کرمانی[رح] فرمائیلی دی که اوګوری چه چا ورته دَ چنبیلی ګلدسته
ورکړیده تعبیر دَ دوی تر منځه به خبرے کیږی.

حضرت مغربی[رح] فرمائیلی دی چنبیلی ونه په خوب کښے لیدل تعبیر ئے ویزه ده.

## چاندی (سپین زر). (نقره)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی
ډیر خلک داسے وی چه سپین زر به
خوب کښے اوګوری او بیائے په ویښه پیدا کړی او ډیر خلک داسے دی چه سپین
زر په خوب کښے اوګوری او بیا بیدارئ کښے غمجن وی دا دَ طبیعتونو دَ اختلاف په وجه

حضرت کرمانی[رح] فرمائیلی دی چه صحیح سپین زر دَ رښتیا خبر دے او کوټه
دروغ خبر دے که سپین زر په کڅوړه کښے اوګوری تعبیر ئے څوک به
ورسره امانت بدی.

حضرت دانیال[ع] فرمائیلی دی که څرنه کاسه یا پیاله او یا تهکلے (رکنی)
دَ سپینو زرو اوګوری په خوب کښے او یا اوګوری چه ډیر لوښی ئے دَ سپینو زرو
موندلی دی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به خزانه پیدا کړی. که اوګوری

چه دَ سپینو زرو خزانے نه ئے دَ سپینو زرو ټکره موندلے ده تعبیرئے دَ هغه ملک نه به بنځه کوی او دَ چاندی ټکره دا سے سرے دے چه دَ هغهٔ په حق کښے خرابه خبره کوی۔

## چاندی۔ (نقره)

دَچاندی تعبیر په ازادو ښځو باندے دے۔ حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه دَ خپل کار دَ پاره ئے چاندی اخستی دی تعبیرئے دَ هغه ځائے او ولایت نه به یوه ښځه په نکاح وکړی ځکه چه چاندی دَ ښځو ذات دے اوکه اوګوری چه دَچاندئ په کان کښے ننوتے دے او دَ هغه ځایه ئے چاندی راویستلے دی، تعبیرئے دَ هغے په اندازه به مال حاصل کړی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری په خوب کښے چه ډیره زیاته چاندی لری۔ تعبیرئے څوئ به ئے پیدا کیږی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، دَچاندئ لیدل په څلورو وجووی (۱) ښځه (۲) اولاد (۳) مال (۴) زنن کی

## چونتره۔ (صفه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چونتره په خوب کښے لیدل مور او پلار دی که څوک اوګوری چه دَدهٔ دَکور چونتره نوے او پاکیزه او اوچته ده، دَ مور او پلار دَ عمر اوږد والی او پاک نفسی تعبیر لری۔ اوکه اوګوری چه چونتره لویس لے او خرابه شوید تعبیرئے مور او پلار به ئے هلاک شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه چونترے دَ ښی طرف نقصان کړے دے او سورے ئے کړے دے۔ تعبیرئے پلار به ئے بیمار شی۔ که اوګوری چه دَچپ طرف نه ئے سورے کړے دے تعبیرئے مور به ئے بیماره شی۔ که مور او پلار ئے نهٔ وی نو تعبیرئے غم او فکر به ورته ورسیږی۔

## چینی لوښے۔ (صینی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چینی لوښے نوکره ښځه ده که اوګوری چه دَچینی لوښے صفا او پاکیزه دے تعبیرئے خادمه ښځه به ئے ښائسته وی۔ دَچینی لوښے تور او ویښی تعبیرئے خادمه ښځه به ئے بد شکله وی۔ اوکه که اوګوری چه دهٔ سره دَ چینی لوښے دے او یا دهٔ اخستے دے تعبیرئے خادمه ښځه به کورته راولی یا به ئے ښځه یا وینزه مره کیږی او یا به تښتی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، دَ چینی سامان لیدل په دریو وجو وی (۱) خدمتکاره ښځه (۲) وینزه (۳) دَ ښځو نه نفع۔

## دَ چیرونه۔ (عرعر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښې څوک اوګوری چه دَهٔ سره دَ چیرونه ده تعبیر ئے دَهٔ ملکر تیا به چرته دَ اصیل سړی سره وی۔ دَ چیرونه تعبیر ئے داسے سړے چه کمه نیکی کوی۔

## چینی۔ (بوره) (قند)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه چینی ئے خوړلے ده تعبیر ئے کاربه په تنګ سړی کوی چه بیابه وربانده پښیمانه وی. که اوګوری چه چا ورته دَ قند ټکره په خوله کښے ایښے ده تعبیر ئے دَهٔ ته به بوسه ورکوی۔ او که اوګوری چه چینی ئے خرڅه کړیدۀ تعبیر ئے تاوان به ورته رسیږی او دَ چینی اخستل دَ خرڅولو نه ښهٔ دی۔

## چیر۔ گوند۔ (کتیرا)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی که اوګوری په خوب کښے چه کتیرا ورسره دے او یا چا ورکړیدے یوقسم تعبیر ئے دَ بخیل سړی نه به زیاتی مال حاصل کړی۔ او که اوګوری چه کتیرا خوری تعبیر ئے مال ئے خوری۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، کتیرا لیدل په خوب کښے په دریو وجو وی (۱) دَ خلکو زیاتی مال (۲) کمه نفع (۳) داسے کار چه خوب لیدونکی ته به معمولی نفع ورسیږی۔

## چینجی۔ (کرمان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری په خوب کښے چه دَ دَهٔ خیټه کښے ډیر چینجی شوی دی او دَ دَهٔ په ګیډه کښے طعام خوری تعبیر ئے دَ نورو عیال او دَ هغهٔ مال به غواړی که اوګوری چه او بدهٔ چینجی دَ دَهٔ په وجود کښے دی او دَ دَهٔ په جامو او وجود کښے ډیر چینجی دی تعبیر ئے ډیر مال او اولاد او دولت به ورته حاصل شی. که اوګوری چه دَ وجود نه ئے په زمکه چینجی غورځولی دی تعبیر ئے خپل عیال به دَ خانه جدا کړی او خبر به ئے اخلی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری په خوب کښے چه ځنے اندامونه ئے چینجو خوړلی دی تعبیر ئے دَ دَهٔ دَ مال نه به دَ دَهٔ عیال مال او خوری۔ که اوګوری چه دَ وجود چینجو نه ورته نقصان رسیږی تعبیر ئے دا ته به

دَ دَهٔ عیال نه تکلیف او نقصان رسیږی که اوګوری چه دَ پوزے سوری نه یا دَ غوږ سوری نه یا دَ خولے نه یا دَ کوناټو نه چینجی بیرون راوتلی دی تعبیر ئے یا مال او یا عیال به ئے په هغه اندازه زیات شی۔ که اوګوری چه چینجی ئے دَ وجود نه غورځیدلے دی او مړهٔ کیږی تعبیرے ئے عیال به ئے هلاک شی او یا به ورنه جدا شی۔ که اوګوری چه دَ کور دَ چهت دَ لرګو نه ډیر چینجی غورزیدلی دی تعبیرے ئے دَ هغے په اندازه به مال، دولت او نوکر حاصل کړی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی دَ چینجو لیدل په خوب کښے په دریو وجووی (۱) عیال (۲) نوکران (۳) غوښتونکے مال۔

## چابی۔ (کلید)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، چابی په خوب کښے یو کار خلاصوونکے سړے دے که یو سړے په خوب کښے اوګوری چه په چابی سره ئے تاله (قلف) کهلاؤ کړے او هغه کهلاؤ شوے دے تعبیرے ئے هغه بند کارونه به کهُلاؤ شی او په دښمنانو به کامیابی او غلبه بیا مومی۔ که اوګوری چه په لاس کښے ئے ډیرے چابیانے دی تعبیرے ئے بزرګی او مرتبه به بیا مومی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (لَهٗ مَقَالِیْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ)۔الشوریٰ۔۱۲ دهٔ سره دَ اسمانونو او زمکے چابیانے دی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، چابی په خوب کښے دَ ښو کارونو را کهلاویدل او دَ بدو کارونو نه بندیدل دی۔ او ځنے تعبیر کونکی وائی چه دَ دروازو بندیدلو کنجی نکاح کول دی که اوګوری چه دَ جنت دَ دروازو چابی دَ دهٔ په لاس کښے ده تعبیر ئے په دین کښے به بادشاه دی او دَ کارونو انجام به ئے نیک او دَ صفت لائق به وی۔

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی که اوګوری په خوب کښے چه دَ اوسپنے چابیانے ورسره دی تعبیر ئے دَ دهٔ قوت او نیکی دے۔ که اوګوری چه دَ ښیښے او، یا دَ تانبے چابی ورسره ده تعبیرے ئے دَ دهٔ خبره به جاری وی همدا رنګه وئیلی دی چه خزانه به بیا مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی چه څو مره ډیرے چابیانے وی په هغے اندازه به ئے مال زیات وی۔ همدا رنګه وائی چه چابی دُعا او استغفار او دَ خپل حاجت غوښتل دَ الله تعالیٰ په دربار کښے دی که اوګوری چه چابی ئے په تاله اینښی ده او دروازه کهلاؤ شوے ده۔ تعبیرے ئے حاجت به ئے پوره شی او بند کار به ئے کهُلاؤ شی۔ که اوګوری چه چابی ئے ماته شوے ده، تعبیر

ئې دُعا به ئې صفانهٔ وي- که اوګوري په خوب کښې چه په یوه چابۍ ئې دوه تهالې (تلفونه) کهلاؤ کړي دي او دروازې کُهلاؤ شوې دي- تعبیر ئې ښائسته ښځې سره به نکاح کوي-

حافظ معبرؒ فرمائیلي دي که يو سړې خپل لاس کښې چابۍ اوګوري تعبیر ئې دا سړې به موږ ګذاره وي- اوکه اوګوري چه چابۍ ورنه پرېوتې دي تعبیر ئې په موږ کښې به سُست وي-

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي چابۍ لیدل په خوب کښې په اتو وجو وي- (۱) دَ کارونو کهلاویدل (۲) دَ غم نه فارغیدل (۳) دَ بیمارئ نه جوړیدل (۴) دَ مراد مومندل (۵) دَدین قوت (۶) دَ حج اداکول (۷) دَدُعا قبلیدل (۸) دَعلم زده کول

## چابۍ ځائے - (کلید دان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي، که اوګوري چه دَ چابۍ ځائې زر بغیر دَ تکلیفه کهلاؤ تعبیر ئې دَ دُنیا او آخرت کارونه به ئې کهلاؤ شي- اوکه اوګوري چه په تکلیف سره دَ چابۍ ځائې کهلاؤ شوې دې تعبیر ئې دَ اول خلاف دې که اوګوري چه دَ چابۍ ځائې نهٔ دې کُهلاؤ شوې او دروازه بنده پاتې شوې، کارونه به وریاندې بند شي اودَ نیک حال نه به بد حاله شي-

حضرت مغربيؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه دَچابۍ ځائې زر کهلاؤ شوې دې تعبیر ئې دَ غم نه به زر خلاصې بیا مومي اوکه بیمار وي زر به صحت بیا مومي او که غلام وي نو آزاد به شي اوکه څهٔ حاجت لري حاجت به ئې پوره شي او که دُعا وکړي قبوله به شي اوکارونه به ئې په انتظام سره شي-

## چنړه - (نخود)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښې چنړه لیدل که وچه وي اویالمده وي تعبیر ئې غم اوفکر دې- که څوك اوګوري چه چنړه ئې دَ چانه اخستې اوخوړلې ئې دهٔ تعبیر ئې دَ چا په وجه به ورته غم او فکر رسیږي- که اوګوري چه دهٔ سره دَ چنړو بوجۍ ده تعبیر ئې په غم اوفکر کښې به ګرفتار شي- که اوګوري چه چنړې دَ ښوروا، او یا پخکړې غوښې سره خوري- تعبیر ئې دَ دهٔ به غم او فکر کم وي-

## چج - (وردنه)

چج او دَ دوړي توکرۍ (شکور) په خوب کښې دواړه متفق دي که څوک خوب کښې اوګوري چه چا ورته چج ورکړې دې تعبیر ئې دهٔ ته به شریک حاصل شي-

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه چرګ ورسره دے تعبیرئے
دَ چاسره به ئے محبت شی چه دهٔ ته به حقه لاره ښائی او دَ باطلے لارے نه
به ئے لرے کوی۔ که اوګوری چه چرګ ئے مات شوے دے تعبیرئے دَ داسے سړی
نه به جدا شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی دَ چرګ لیدل په خوب کښے
په دریو وجوو (۱) په کارونو کښے اتفاق کوونکے (۲) دَ ژوند شریک
(۳) سخت کارونه به په دهٔ اسان شی۔

## چرګ۔ (خروس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک په خوب کښے اووینی چه دهٔ سره چرګ دے،
او هم پوهیږی چه دَ دهٔ ملکیت دے تعبیرئے دَ غلام په څوئی به
کامیابی مومی۔ که اووینی چه دَ چرګ سره جنګیږی، تعبیرئے دَ عجمی سړی
سره به جنګ کوی۔ او که اووینی چه دَ چرګ نه ورته تکلیف رسیدلے دے تعبیرئے
دَ عجمی سړی نه به ورته ضرر رسیږی۔ او که اووینی چه دَ چرګ بچے ئے اوموندلو
تعبیرئے غلام یا وینزے نه به ورته څوئی حاصل شی او که اووینی چه دَ
چرګ آواز ئے اوریدلے دے تعبیرئے نیکی او احسان به خوشبوی او که اووینی
چه چرګ وریاندے ټونګه وهلے ده تعبیرئے دَ چا نه به ورته غم رسیږی۔
او په خوب کښے دَ چرګے اګئی غلام دے۔ او که اووینی چه چا ورته دَ چرګ بچے
ورکړے دے تعبیرئے هغه سړے به ورته خپل غلام بخشش کړی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، که په خوب کښے اووینی چه دهٔ سره کورنے چرګ
دے تعبیرئے دَ دهٔ به څوئی پیدا کیږی او دَ دهٔ به مومن سړی سره ملګرتیا وی۔
رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی۔ (اَلدِّیْکُ مُحِبِّیْ وَ هُوَ یَدْعُوْا اِلَی
الصَّلٰوۃِ)۔ ترجمه، چرګ زما دوست دے چه مونځ ته مِ غواړی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، که اووینی چه چرګ ئے په خپل قابو
کښے راوستے دے، تعبیرئے دَ سردار څوئی به خپل قابو کښے راولی که په خوب کښے
اووینی چه دَ چرګ هګئی موندلی دی او ماتے ئے کړه تعبیرئے چرته په لوئے
یا وړوکی به قابو مومی۔

## چرګه۔ (ماکیان)

(۱) یو کورنے مارغهٔ دے۔
حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښے دَ چرګے

لیدل تعبیر ئے خدمتګاره وینزه ده. که اووینی چه چرګه ئے اخستے ده او یا
ورته چا ورکړے ده تعبیر ئے وینزه به اخلی. یا به نوکر په مزدوریٔ نیسیٔ
که اووینی چه بے اندازے چرګے لری تعبیر ئے ریاست او سرداری به مومی.

که اووینی چه دَ چرګے غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ خادمانو
نه مال مومی که اووینی چه چرګے ئے حلالے کړے دی تعبیر ئے پیغله
وینزه به اخلی. که اووینی چه دَ چرګے بچے حلال کړی تعبیر ئے دَ ده خوی
یا غلام یا وینزه به په بلا کښے ګرفتار شی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی که اووینی چه دَ چرګے هګئ (انډے) ئے موندلے
دی تعبیر ئے دَ ده لوریه پیں اکیږی او یا به دَ خادمانو نه مال حاصلوی.

حضرت مغربیؒ فرمائی چرګه په خوب کښے ښائسته ښځه ده او نورے چرګے
دَ زیړے چرګے نه ښے دیٔ که اووینی چه چرګے دَ ده په کور کښے دَ چرګ په
شان بانګ (اذان) اوکړو. تعبیر ئے ناخوښه خبره به خوب لیدونکے واوری.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی په خوب کښے دَ چرګے بچے لیدل په
دریو وجو وی (۱) ښائسته ښځه (۲) وینزه (۳) خدمتګار.

## چمن۔ (مرغزار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے
چمن اووینی او هغه دَ بوټو قسمونه پیژنی تعبیر
ئے دین او اسلام دے. که اووینی چه دَ چمن په منځ کښے دے او هغه چمن دَ
ده ملکیت وو تعبیر ئے دَ هغه چمن په اندازه به عقیدے دَ دین دے او که
هغه چمن دَ ده نۀ وو او ده ئے سیل اوکړو، تعبیر ئے دَ ده ناسته به دَ نیکو
بندګانو سره وی. که اووینی چه په چمن کښے خوشحاله ګرځی. تعبیر ئے
زندګی به ئے فراخه وی او دَ ده کار به په انتظام سره ویٔ او چمن په
خوب کښے نیک سړے دے دَ هغه چمن په اندازه. که هغه چمن شین او
پاکیزه اووینی او پوهیږی چه دَ ده ملکیت دے تعبیر ئے دَ ده ملګرتیا به دَ
کوم لوی سړی سره وی او دَ هغهٔ نه به خیر او نفع بیا مومی. که اووینی چ
دَ سپرلی په موسم کښے په چمن کښے ګرځی تازه او ښهٔ ګلونو غوټے پرانستلے دی
او دَ اوبو نهر پکښے بهیږی تعبیر ئے دَ ده مرګ به په شهادت سره وی
که دَ بهار په موسم کښے مشهور چمن اووینی او په هغے کښے ګل او کښما لو ولاړ
وی تعبیر ئے دَ ده به دَ کوم لوئے سړی سره صحبت او ملګرتیا وی چه دَ خپ و

نوکرانو او خادمانو نه ورک شوے وی او که چمن تازه اووینی چه په هغې کې کلونه او ونے شنے ولاړے دی او اوبه ورته ورځی او د هغه د بیخه اُوویستلو او وران ئے کړلو تعبیر ئے د دے ملک بادشاه ته به اچانک مرګ راځی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که اووینی چه چمن ته ننوتو او هلته پکښے ئے ازمرے ولیدلو، تعبیر ئے د هغه ملک بادشاه به ظالم وی او که په هغه چمن کښے ئے کړیان ولیدل تعبیر ئے د هغه ملک بادشاه ته به ډیر مال حاصل شی۔ او که په هغه چمن کښے ئے غوایه او خره ولیدل تعبیر ئے د بادشاه لښکر به بے وفا وی او په دوئی به یقین نه لری، که اووینی چه په چمن کښے ئے ګل او کشملو راجمع کړل او کور ته ئے راوړل تعبیر ئے د بادشاه نه به ورته خیر او نفع اُورسیږی

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، چه څوک کښے چمن لیدل ښځه ده که اووینی چه په چمن کښے خوشحاله تللے دے او هلته پکښے مقیم شوے دے تعبیر ئے هلته نه به ښائسته او جنګیالئ ښځه کوی. که اووینی چه چمن تازه او ښۀ چمن دے تعبیر ئے د دے خلاف دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښے د چمن لیدل په اوو وجوی (۱) دین (۲) عقیده (۳) د کارونو انتظام (۴) بادشاه (۵) لوئے سړے (۶) خیر او نفع (۷) د مرادونو موندل۔

## چتهنی ـ (لعوق)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اووینی چه د چتهنی خوند خوږ او خوشبوداره وو، تعبیر ئے خیر او نفع دے۔ او که د انارو، چلغوزو، خشخاشو وغیره چتهنی اووینی که ترخه او تروشه او بد بویه وی تعبیر ئے بدی او نقصان دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښے خوږه چتهنی لیدل خیر او نفع ده او د تروش تعبیر د دے خلاف دے۔

## چیندخه (وزغ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښں چیندخه نیک عابد سړے دے که څوک په خوب کښں اوګوری چه چیندخه ئے نیولے ده تعبیر ئے په دے صفت موصوف سړی سره به ملګرے شی که اوګوری چه د چیندخے سره ئے جنګ کړیدے تعبیر ئے د داسے سړی سره به جنګ کوی او که اوګوری چه ډیرے چیندخے په یو ځائے کښں را جمع شوی دی او شور کوی تعبیر ئے دلته به د

الله تعالیٰ عذاب نازلیږی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه چیندخے نے وژلی اوغوښه ئے خوړلے تعبیر ئے پرهیزګاره سړے به مغلوب کوی او دَ هغهٔ مال به اخلی او خزانه به ئے کړی کهٔ اوګوری چه چیندخے ئے خوړلی تعبیر ئے دَ پرهیزګاره سړی نه به ورته تکلیف ورسیږی کهٔ اوګوری چه چیندخے ئے دَ اوبو نه رانیولی دی او به اُوچه ئے اچولے دی تعبیر ئے پرهیزګاره سړے به دَ کاره منع کوی او نقصان به ورته رسوی۔

## ح۔حمل (امیدواره کیدل)۔(آبستنی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک په خوب کښې اوګوری چه دَ دهٔ خیښه دَ امیدواره ښځے په شان غټه شوے ده۔ تعبیر ئے دَ دُنیا مال او نعمت به ورته حاصل شی چه څومره ئے خیښه غټه لیدلی وی دَ هغے په اندازه به ډیر مال بیاموی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که نابالغ ماشوم خپله خیټه امیدواره په شان اوګوری که بچے وی نو پلار ته به ئے مال او نعمت حاصل شی او که جینۍ وی نو مور به ئے دَ دُنیا مال او نعمت حاصل کړی۔

## حج اداکول۔ (حج ګذاردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښې اوګوری چه حج ته تللے دے الله تعالیٰ به دهٔ ته حج کول نصیب کړی۔ او که دا خوب بیمار اوګوری نو صحت به بیاموی۔ او روغ به شی۔ او که قرضدار سړے ئے اوګوری نو دَ قرض نه به خلاص شی۔ او که مسافر سړے ئے اوګوری تعبیر ئے، روغ سلامت به کور ته لاړ شی۔ که څوک خوب کښې اوګوری چه حج ته تللے دے خو حج ورنه فوت شوے دے تعبیر ئے عمر به ئے اوږد شی او کارونه به ئے په انتظام سره شی۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښې اوګوری چه حج ته لاړ دے او حرم کښې لبیک (تلبیه) وائی تعبیر ئے دهٔ ته به خوف او یره وی۔ او که اوګوری په خوب کښې چه حج ور باندے واجب شوے دے مګر په تللو کښې اراده نهٔ ده کړے تعبیر ئے خیانت به کوی۔ او که اوګوری چه دَ عرفے ورځ ده تعبیر ئے دَ چا سره به صلحه کوی۔ او که اوګوری چه په خانه کعبه مبارکه کښې مونځ کسوی، دَ بزرګانو نه به نفع بیاموی او کار به ئے نیک شی۔

نوکرانو او خادمانو نه ورک شوے وی او که چمن تازه او وینی چه په هغې کې
کلونه او ونے شنے ولاړے دی او او به ورته ورځی او ده هغه د بیخه اُو ویستلو
او وران ئې کړلو تعبیر ئې د دے ملک بادشاه ته به اچانک مرګ راځی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که او وینی چه چمن ته ننوتو او هلته پکښې ئې
ازمرے ولیدلو، تعبیر ئې د هغه ملک بادشاه به ظالم وی او که په هغه
چمن کښې ئې کړان ولیدل تعبیر ئې د هغه ملک بادشاه ته به ډیر مال حاصل
شی. او که په هغه چمن کښې ئې غوایه او خرهٔ ولیدل تعبیر ئې د بادشاه لښکر
به بے وفا وی او په دوئ به یقین نهٔ لری، که او وینی چه په چمن کښې ئې ګل او کشمالو
را جمع کړل او کورته ئې راوړل تعبیر ئې د بادشاه نه به ورته خیر او نفع اُورسیږی

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، چه خوب کښې چمن لیدل ښځه ده که او وینی
چه په چمن کښې خوشحاله تللے دے او هلته پکښې مقیم شوے دے تعبیر ئې هلته
نه به ښائسته او چنګیالئ ښځه کوی. که او وینی چه چمن تازه او ښهٔ چمن دے
تعبیر ئې د دے خلاف دے.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې د چمن لیدل په اوو وجوی
(۱) دین (۲) عقیده (۳) د کارونو انتظام (۴) بادشاه (۵) لوئے سړے (۶) خیر
او نفع (۷) د مرادونو موندل.

## چتنی ۔ (لعوق)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که او وینی چه د چتنی
خوند خوږ او خوشبودار وو، تعبیر ئې خیر او نفع
دے. او که د انارو، چلغوزو، خشخاشو وغیره چتنی او وینی که ترخه او تروشه
او بد بویه وی تعبیر ئې بدی او نقصان دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښې خوږه چتنی لیدل خیر او نفع ده
او د تروش تعبیر د دے خلاف دے.

## چینده (وزغ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب
کښې چینده نیک، عابد سړے دے
که څوک په خوب کښې اوګوری چه چینده ئې نیولے ده تعبیر ئې په دے صفت
موصوف سړی سره به ملګرے شی که ئې اوګوری چه د چیندې سره ئې جنګ
کړیدے تعبیر ئې د داسے سړی سره به جنګ کوی او که ئې اوګوری چه ډیرے
چیندې په یو ځائے کښې را جمع شوی دی او شور کوی تعبیر ئې دلته به د

الله تعالیٰ عذاب نازلیږی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه چینډخے نے وژلی اوغوښه ئے خوړلے تعبیرئے پرهیزګاره سړے به مغلوب کوی او دَ هغهٔ مال به اخلی او خزانه به ئے کړی که اوګوری چه چینډخے ئے خوړلی تعبیرئے دَ پرهیزګاره سړی نه به ورته وتکلیف رسیږی که اوګوری چه چینډخے ئے دَ اوبو نه رانیولی دی او بیا اوچه ئے اچولے دی تعبیرئے پرهیزګاره سړے به دَ کاره منع کوی او نقصان به ورته رسوی۔

## ح۔ حمل (امیدواره کیدل)۔ (آبستنی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک په خوب کښے اوګوری چه دَ دهٔ خیښه دَ امیدوارۍ ښځے په شان غټه شوے ده۔ تعبیرئے دَ دُنیا مال او نعمت به ورته حاصل شی چه څومره ئے خیښه غټه لیدلی وی دَ هغے په اندازه به ډیر مال بیا مومی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که نابالغ ماشوم خپله خیښه امیدواره په شان اوګوری که بچے وی نو پلار ته به ئے مال او نعمت حاصل شی او که جینئ وی نو مور به ئے دَ دُنیا مال او نعمت حاصل کړی۔

## حج اداکول۔ (حج ګذاردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه حج ته تللے دے الله تعالیٰ به دهٔ ته حج کول نصیب کړی۔ او که دا خوب بیمار اوګوری نو صحت به بیا مومی۔ او روغ به شی۔ او که قرضدار سړے ئے اوګوری نو دَ قرض نه به خلاص شی۔ او که مسافر سړے ئے اوګوری تعبیرئے، روغ سلامت به کورته لاړ شی۔ که څوک خوب کښے اوګوری چه حج ته تللے دے خو ج درنه فوت شوے دے تعبیرئے عمزیه ئے اوږد شی او کارونه به ئے په انتظام سره شی۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه حج ته لاړ دے او احرام کښے لبیک (تلبیه) وائی تعبیرئے دهٔ ته به خوف اویره وی۔ او که اوګوری په خوب کښے چه حج ور باندے واجب شوے دے مګر په تللو کښے اراده نهٔ ده کړے تعبیرئے خیانت به کوی۔ او که اوګوری چه دَ عرفے ورځ ده تعبیرئے دَ چا سره به صلحه کوی۔ او که اوګوری چه په خانه کعبه مبارکه کښے مونځ کوی، دَ بزرګانو نه به نفع بیا مومی او کار به ئے نیک شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، دَ حج ادا کول په خوب کښې پاو وجو وی (۱) نکاح کول (۲) ویزه اخستل (۳) دَ عادل بادشاه زیارت کول (۴) نیکی (۵) دَ خیر په کار کښې کوشش کول۔ (۶) دَ ثواب اجرت موندل۔ (۷) دَ اهل علم ملګرتیا ته رسیدل۔

## حجر اسود

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښې اوګوری چه په حجر اسود ئې لاس راخکلے دے۔ تعبیر ئې دَ حجاز دَ خلکو نه به ورته نفع ورسیږی۔ که اوګوری چه حجر اسود راوباسی تعبیر ئې بد مذهبه بد اعتقاده او پلیت به وی۔ اوکه اوګوری چه حجر اسود ئې په خپل ځائے کښې ایښے دے تعبیر ئې بیا به په سملاره برابر شی...... اوکه اوګوری چه دَ زمزم اوبه ئې څښلی دی، تعبیر ئې چه څه شے ئې کم شوے دے هغه به بیا پوره شی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه حجر اسود ښکلوی او خ پرے مږی تعبیر ئې دَ دین اصلاح او خیر به ئې زیات شی او دَ علماؤ سره به یو ځائے کیږی۔

## حساب

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که یو سړے په خوب کښې اوګوری چه حساب کوی تعبیر ئې په تکلیف او مشقت کښې به پریوځی

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ قیامت په ورځ ورسره الله تعالیٰ حساب اسان کړے دے تعبیر ئې امید دے چه خلاصے به بیا مومی۔ اوکه دَ دے خلاف اووینی تعبیر ئې په زحمت کښې به پریوځی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، دَ قیامت حساب لیدل په شپږ وجو وی (۱) دَ بادشاه عذاب (۲) مشغول کیدل (۳) تکلیف او زحمت (۴) بد حالی (۵) غم (۶) لنډ عمر

## حقنه۔ (لاندے حصه کښې دارو کیښودل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، حقنه په خوب کښې غصه ده چه دَ غصے سره دَ یو ځائے نه بل ځائے ته تلل دی چه دَ هغے دَ سختی نه به بیهوشه شی او ځنې معبرانو وئیلی دی چه حقنه په خوب کښې داسے کار دے چه خوب لیدونکی ته به واپس راځی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، که څوک اوګوری چه دَه ته ئې

دَ لاندے نه دار واچولی دی او دَ هغے نه ئے تکلیف اولیں لو تعبیرئے دَ بد حالی دے او که دَ دے خلاف اوګوری نو تعبیرئے خیر او نفع به بیا مومی۔

**حکمت** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه خوب کښے دَ حکمت علم لولی تعبیرئے قرآن خوانه به شی او که اوګوری چه دَ حکمت کوم کتاب ئے سوزولے دے تعبیرئے دَ دهٔ دین په تباهی دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری په خوب کښے چه دَ حکمت دَ علم پانړے ئے خوړلے تعبیرئے دَ حکمت علم به ډیر لولی۔ او که اوګوری چه دَ حکمت دَ علم پاڼړے شلوی تعبیرئے دَ خوب لیدونکے به موقع نهٔ کوی. او که اوګوری چه دَ حکمت دَ علم کتاب لولی او دے ئے آوری تعبیرئے دے به علم کوی۔

**حلوا** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، حلوا لیدل په خوب کښے تعبیرئے داسے مال دے چه دَ بادشاه دَ لاس ترینه وسره حرام شوے دے۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، حلوا لیدل په خوب کښے ډیر مال دے او پاک دین دے او دَ حلوا یوه نوړئے په خوب کښے چه خوی تعبیرئے به ئے بسکلوی او دَ میوو حلوا یوه نوړئ بسهٔ ده او هغه حلوا چه هغے کښے دَ بادام مغز یا دَ غوزانو مغز وی داسے نفع ده چه دهٔ ته به رسیږی دَ بخیل سړی نه۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی په خوب کښے حلوا جوړول تعبیرئے دَ هغے په اندازه به حلال مال او حلاله روزی بیا مومی او که اوګوری چه پر حلوا زعفران دی دَ دے تعبیر هم دَ بسهٔ والی دے او په خوب کښے حلوا خرخوونکے سړے خوږ زبانه سړے دے۔

یو قسم **حلوا** ده۔ **(ناطف)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه دهٔ سره دَ ناطف (حلوا) ده او دَ هغے نه خوری تعبیرئے ډیر مال او ډیر نعمت به په لاس ورشی همدا رنګه خیرات او نیکی به کوی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی دَ شانوا و دَ وشابو (ناطف) حلوا دَ ډیر مال او دَ ډیر نعمت تعبیر لری او دَ شانو ناطف په فائده کښے بسه دے۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، ناطف حلوا په خوب کښے په دریو وجوده (۱) خوږه خبره (۲) حلال مال (۳) زندګی

## یوقسم خوشبوداره حلوا

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی خوشبوداره هغه بښهٔ حلوا ده چه زعفران پکښې نهٔ وی. که لږه اوګوری نو ښهٔ ده او که ډیره اوګوری تعبیر ئے مال وی چه په تکلف سره ئے لاس ته راوړی که اوګوری چه چا افروشته حلوا ورکړیده او خوړلے ده تعبیر ئے دَ هغهٔ به ښه خبرے اوری لکه ځنګه چه دَدهٔ دَ طبع برابره وی که اوګوری چه ډیره زیاته افروشته (خوشبوداره حلوا) ورسره ده تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به مال په سختئ سره حاصل کړی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، دَ افروشتے خوړل په خوب کښې په درېو وجو وی (۱) نرمه خبره (۲) مال (۳) دَ زړهٔ مراد مونډل.

## حلوا۔ (عصیده)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی عصیدهٔ دَ حلوا ګانو دَ قسمونو نه یو قسم حلوا ده او هغه ښهٔ ده چه زعفران پکښې نهٔ وی او دَ دے لیدل په خوب کښې مال دے چه په مشقت او تکلیف سره حاصلیږی که اوګوری چه دَ حلوا نوړے ئے په خوله کښې ایښے ده تعبیر ئے مال به په جنګ او جهګړه حاصل کړی.

## حوض کوثر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری په خوب کښې چه قیامت قائم دے. او خلک حوض کوثر ته غوښتلی شی تعبیر ئے دا دے بادشاه به پیدا شی چه دَ خلکو په منځ کښې به عدل او انصاف کوی. که اوګوری چه دَ حوض کوثر نه ئے یو جام اوبه څښلی دے تعبیر ئے مرګ به ئے په اسلام سره وی که اوګوری چه حوض کوثر سره ګرځیدلو او دهٔ اوبهٔ اوغوښتے او ورته ورکړے نشوے، تعبیر ئے دَ حضرت نبی کریمؐ دَ یارانو دښمن به وی۔ که اوګوری چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته دَ حوض کوثر نه اُوبهٔ ورکړی دی او څښلی ئے دی تعبیر ئے دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم په شفاعت کښې به ئے حصه وشی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ دهٔ نوم په حوض کوثر لیکل شوے دے او دهٔ جام اوچت کړے دے او اُوبهٔ ئے وڅښلے تعبیر ئے دَ عالم سره به ئے ملګرتیا وشی او دَ هغهٔ نه به دَ دوا روجهانو نو نفع بیامومی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ حوض کوثر نه اُوبهٔ څښی او اُوبهٔ ګنده وے تعبیر ئے خوب لیدونکے به منافق وی او دهٔ ته به دَ قرآن او دَ علم حدیث نه څهٔ علم نصیب شی. که اوګوری چه حوض کوثر په هغه هیئت

او صفت دے کوم قسم ئے چه په حدیثو کښے بیان شوین ے او دغه ورته اُوبه
و څښلے، تعبیر ئے دا ده چه به دَ الله تعالیٰ په وړاندِ ے لوے مقام او مرتبه وی
او دے به دَ دین دَ بزرګانو نه وی.

## حکم کول (فرمودن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که او ګوری خوب کښے چه چا ورته دَ دیګ پخولو حکم کړے دے
تعبیر ئے چه په کوم کار کښے دے هغے کښے به قائم وی. او که څوک ورته او وائی
په خوب کښے چه دیګ وکړه نو دا تعبیر ئے احتیاط کوه او که او ګوری چه
دَ ته ئے وو ے چه ډوډئ ماته کړه تعبیر ئے رونړه خوشحاله ساته او که
څوک او ګوری چه دَ ته ئے وو ئیل چه غنم خرڅ کړه تعبیر ئے ډوډئ ورکړه
او که او ګوری په خوب کښے ئے ورته وو ے چه ملا وتړه تعبیر ئے دَ کار نه فائده
او چته کړه او که او ګوری چه ورته ئے وو ے او دریږه وقفه وکړه تعبیر ئے په
دښمن به کامیابی حاصله کړی او که او ګوری چه ورته ئے خوب کښے وو ے چه اُور
کښے مهٔ ځه. تعبیر ئے دَ مال حفاظت کوه چه فقیر نهٔ شے. او که دَ ډیوے
بلولو حکم ورته وکړی تعبیر ئے مال خرچ کړه. او که ورته ووائی چه بستره
اُوغوړوه یعنی طلب کوه او که ورته ووائی چه تخم کره تعبیر ئے دَ الله تعالیٰ مخلوق
سره نیکی کوه. او که او ګوری چه چا ورته وو ے چه غسل وکړه تعبیر ئے توبه وکړه
او الله تعالیٰ ته رجوع وکړه. او که او ګوری چه دَ خوړلو امر ئے ورته کړے دے
تعبیر ئے دَ حلالو نوړئ خوره.

## حمام۔ (گرمابه)

حمام په خوب کښے غم او فکر دے او خپل ځان
وینځل دادهٔ او خوشحالی ده او معتدلے کړے اُوبهٔ
ښے دی. او ډیرے کرمے او بهٔ بد ے دی که او ګوری په خوب کښے چه حمام ته
تللے دے او غسل ئے کړے دے او ځان ئے ښهٔ پاک کړو تعبیر ئے دَ غم او
فکر نه خلاصے او نجات او موجی، او که او ګوری چه حمام ته تللے دے او ځان
ئے نهٔ دے وینځلے، تعبیر ئے او فکر به ورته دَ بنځو په سبب ورسیږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که او ګوری په خوب کښے چه حمام ته تللے
دے او ځان ئے په چونه ښهٔ صفا کړو تعبیر ئے کومه یره چه لری ورنه امن
کښے به شی. او که غمجن وی خوشحاله به شی او که بیمار وی روغ به شی او که
قرضدار وی، نو قرض به ئے خلاص شی او که مالدار وی نو دَ بره ذکر شوو

فائده نه به محرومه وی۔ همدا رنګه په مال کښې به ئې نقصان راشي۔ او که او ګوری چه چونه ئې استعمال کړے ده او ځان ئې نه دے وینځلے، تعبیر ئې دا ده به کار ئې پوره کیږی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه حمام ته تللے دے او په هغې کښې ئې مخ، لاسونه، سر او وجود وینځلی دی او را بهر شوے دے تعبیر ئې د غم نه بهر راغلے دے که اوګوری چه په کوټه یا کور کښې ئې حمام دے تعبیر ئې د غلته به بے حیا ښځه ظاهریږی۔ که اوګوری چه حمام ته لاړ او غسل ته نه دے محتاجه تعبیر ئې غمجن او قرضدار به شي۔ که اوګوری چه حمام ته لاړلو او غل د ده جامے یوړے او دے بربنړ پاتے شو تعبیر ئې خوب لیدونکے به د ځهٔ کار په وجه به شرمنده او غمجن شي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، د حمام لیدل په خوب کښې په شپږ وجو وی (۱) ښځه (۲) غم او فکر (۳) دین (۴) نا کار والے (۵) دوست (۶) قرض او د حمام مالک تعبیر ښځه ده۔ او ځنے معبران وائی چه د کور مالک دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که خوب کښې اوګوری چه د حمام د خلکو کار کوی که سړے وی نو مالداره ښځه به کوی او د ښځے په کارونو کښې به مشغول شي۔ او که ښځه داسے خوب اوګوری تعبیر ئې په دے صفت به ئې خاوند ښځه کوی۔

**حاکم** حاکم کاردار او حاکم دے۔ که اوګوری چه حاکم د تخت نه پریوتے دے یا ئے تخت مات شوے دے یا ورنه چا توره اخستے ده یا د ده کور خراب شوے دے یا په جال کښې ګرفتار شوے دے او وږے شویدے او یا خاروے ئے په سر راختلے دے او غوږ ئے پیدا دے او یا هغه چا غوږ وهلے دے تعبیر ئې دا ټول د دے تعبیر دے چه د شرف او سرداری نه به او غورځیږی۔ او د خپل منصب نه به لرے شي۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که یو حاکم (والی) اوګوری چه د ده د ځتے د بل چا په نکی سره یو ځائے شوے دے۔ تعبیر ئې سرداری او نیک عادت به د ده قوی وی او که اوګوری چه د ده په خپو کښې پړے دے تعبیر ئې د ده شرف او بزرګی به زیاته شی

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه والی (حاکم) شوے دے او په خپل کار کښې عادل او دیندار دے لکه خلک ورنه خوشحاله وو نو تعبیر ئې خیر او نیکی به بیا مومی او که د دے خلاف اوګوری تعبیر ئې د ده په شر او فساد دے

خاصکر چه لیدونکے مفسد او بدکاره وی۔

**حکیم، ډاکټر (طبیب)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے او وینی چه حکیم یا ډاکټر دَ بیمار علاج اوکړو او هغه بیمار جوړ شو تعبیر ئے یو سړے به دَ فساد لارے نه دَ اصلاح لارے ته راواړوی۔ که او وینی چه دَ هغهٔ بیماری نوره هم زیاته شوه تعبیر ئے دَ خلاف دے۔ که او وینی چه خلکو ته ئے دارو ورکړی دی او دَ هغوی فائده اوشوه۔ تعبیر ئے علم او نصیحت به ورکوی او خلک به ئے قبلوی او دَدهٔ په ښودنه به کار کوی او که دَدهٔ داروځهٔ فائده او نکړه تعبیر ئے دَدے خلاف دے په خوب کښے حکیمی او ډاکټری کول دَ پرهیزګاره سړی دَ پاره سمه او دَ آخرت لاره ده او فاسدو خلکو دَ پاره دَ بدن صحت کسب او معاش دے۔

**حلوا۔ (قطایف)** دا یو قسم حلوا ده۔
حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک په خوب کښے او وینی چه چا ورته دَ چینی او بادامو حلوا ورکړے ده او دَ هغے نه ئے خوړلے ده۔ تعبیر ئے مال او نعمت به په اسانه په لاس ورشی۔ او که دَ غوزانو مغز او دَ انګورو رَش او چوارو اُوبهٔ وی تعبیر ئے کمتر نفعه ده۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښے دَ قطایف حلوا په څلورو وجو وی۔ (۱) ښهٔ خبره (۲) حلال مال (۳) نفع (۴) په تکلیف سره کتهٔ۔

**خوشبو** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی چه ښهٔ بوی او بد بوی نیک صفت او مدح او بدی نالائقه خبره ده که خوب کښے اوګوری چه خوشبو بویوی، تعبیر ئے دَ هغے تعریف به کوی که اوګوری په خوب کښے چه ډیرے خوشبویانے ئے بوی کړی دی تعبیر ئے مرګ دے ځکه چه دَ مړی دَ پاره خوشبوی او حنوط ضروری دی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه دهٔ خوشبوی کړے ده تعبیر ئے دَدهٔ به صفت او تعریف کوی او که دَدے خلاف اوګوری تعبیر ئے دهٔ ته به په خلکو کښے بدی او مذامت وی او دَ دهٔ بدنامی به خوریږی۔

**خیټه۔ (شکم)** دَدے په تعبیر کښے دَ معبرینو درے وینا ګانے دی۔
(۱) حضرت دانیال فرمائی خیټه په ظاهر او باطن کښے مال ګرځے۔
(۲) حضرت ابن سیرینؒ فرمائی چه خیټه ځوی دے۔

(۳) حضرت کرمانیؒ فرمائی چه دَ خیټې لیدل په خوب کښې په خپلوانو تعبیر لری. که اووینی چه دَده ګیډه غټه شوې ده، تعبیر ئې دَ مال زیاتوالے، دَخوی پیدا کیدل او په خپلوانو تعبیر لری که اووینی چه دَ ده خیټه وړه ده او دَ ده دَ خُرمنې نه خبره راوتی دی تعبیر ئې دَ مال کمولے او دَ خُوی نقصان به ئې کیږی.

او که اووینی چه په خیټه کښې ئې څڅه دی ټول بهر را وتلی دی او ده وینځلی دی او بیائې خپل ځائې کښې ایښے دے. تعبیر ئې حال به ئې ښه وی او مقصد به ئې پوره شی که سړے اووینی چه دَده دَ خیټې نه خُوی را وتلے دے تعبیر ئې دَ ده به داسې خُوی پیدا کیږی چه دَ ده دَ اهل بیت مرتبه او عزت به اوچتوی.

حضرت مغربیؒ فرمائی که څوک خپله ګیډه پړسیدلے اووینی. تعبیر ئې ده ته به ډیر مال ملاویږی. که څوک خپله ګیډه شلیدلے اووینی. تعبیر ئې ده ته به مصیبت پیښیږی. او که په خپله خیټه ویښته ټوکیدلی اووینی تعبیر ئې دَ بال بچ په وجه به قرضداره شی که دَ خپلې خیټې ویښته خرئیلی اووینی تعبیر ئې بې غمه به وی او دَ قرض نه به خلاص شی. که څوک اووینی چه په خیټه کښې ئې سوړے دی تعبیر ئې دَ ده مال به دَ ده عیال خوری.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی په خوب کښې خیټه لیدل په څلور وجووی (۱) دَ علم ځائې (۲) خزانه (۳) دَ ژوند نظام (۴) خُوی.

## خیرے ۔ چټلی

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که هر څوک خوب کښې اوګوری چه جامې ئې خیرنې دی تعبیر ئې کار به ئې خراب وی (فساد به ورکښې وی) که اوګوری چه جامې په خیری یا بل شی کښې ګنده دی تعبیر ئې دَ دین او دُنیا تباهی ده. او که اوګوری چه دَ ده دَ جامې خیرے دَ مړو په وجه دے تعبیر ئې دَ دین فاسد والے او دَ دُنیا جوړښت او برابر والے دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی په خوب کښې په سَر خیرے او بدن خیرے لیدل تعبیر ئې غم او فکر دے او په خوب کښې په بدن خیرے لیدل دَ هیڅ قِسمه خیر او نفعې تعبیر نۀ لری.

## خلیفه (دَ اسلام بادشاه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک په خوب کښې دَ اسلام بادشاه په روښانه تندی اوګوری تعبیر ئې دَ دُنیا او دَ دین خیر به ورته وړ سیږی. او که اوګوری

په خوب کښې چه خلیفه دَ کوم خاص کار ورته امر کړے دے. تعبیر ئے عزت بزرګی، مرتبه به بیا مومی او که اوګوری چه خلیفه ورته دَ کوم وطن حکمرانی ورکړیده که دَ مسلمانانو وطن وی شرف او بزرګی به بیا مومی.
او که اوګوری چه دَ خلیفه ځائے ته تللے دے تعبیر ئے دَ بادشاه مقربانو کښې به راشی. او که اوګوری په خوب کښې چه خلیفه ورته دَ دُنیا څه متاع ورکړے ده. تعبیر ئے دَ دُنیا مرتبه به بیا مومی او دَ بزرګانو په منځ کښې به مشهور په نبه نوم شی.
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی. که اوګوری په خوب کښې چه خلیفه ورسره په هغه کارونو کښې جنګ کړے دے کوم چه شرع پورے تعلق لری. تعبیر ئے حاجتونه به ئے پوره کیږی او په دشمن به کامیابیږی او که اوګوری چه دَ خلیفه په بستره کښې اُوده شوے دے تعبیر ئے خلیفه به ورته وینزه یا ښځه او یا مال ورکړے دے او که اوګوری چه خلیفه پسے په آس ناست دے تعبیر ئے په خلافت کښې به دَ ځان سره شریک کړی که اوګوری چه دَ خلیفه مخے او یا څنګ طرف ته ځی تعبیر ئے دَ بادشاه په کارونو کښې به مختاروی.
او که اوګوری چه بادشاه ورته تنهه تروشه کړیده تعبیر ئے په دین کښې به ئے نقصان وی.
حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری په خوب کښې چه بادشاه شوے دے او دَ هغے اهل نهٔ وی تعبیر ئے، خلیفه به ئے په څه کار پسے لیږی. او که اوګوری چه خلیفه په څهٔ کار پسے لیږلے، تعبیر ئے څهٔ خیر او نفع به بیا مومی.
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی که خلیفه مړے او یا ژوندے او خوشحال اوګوری تعبیر ئے دَ دهٔ مراد به حاصل شی او عزت او دولت به بیا مومی. او که خلیفه غمجن اوګوری تعبیر ئے دَ دے خلاف دے.

## خاورئے - پهتکړی (زاکهاں)

دَ پهتکړی قسمونه دی. حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په تولو پهتکړو کښے شین پهتکړے ښهٔ دے او دَ دے نه نور سپین او زیړ بیماری ده او تور پهتکړے مصیبت دے او دَ پهتکړی خوړل دَ مرګ تعبیر لری. او دَ جامو رنګ کے هم په دے تعبیر کښے دے او په دین کښے دَ پهتکړی لیدل کومه فائدهٔ نشته.
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی دَ پهتکړی لیدل په خوب

کېنې په ځلورو وجو وی (۱) غم او فکر (۲) بیماری (۳) مصیبت (۴) جنګ او جګړه دَ ښځو په سبب۔

## خاورے۔ پھٹکری۔ (شب یمانی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی۔ په پښتو ورته پھٹکری وائی، دَ دے په خوب کښې لیدل غم او فکر وی او خوړل ئے تعبیر ئے هلاکت دَ نمر پشان ځلیدل ئے

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که پھٹکرے په خوب کښے دَ اوکوری تعبیر ئے په خیر او دَ کارونو دا سانتیا دے۔ او که دَ دے خلاف ئے اوکوری تعبیر ئے ضرر او دَ کارونو دَ بندیدو دے۔

## خرمائی (ځنے پښتانه ورته زردالو وائی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که زرد الو په خپل موسم کښے لکه خوارۀ اوکوری چه څومره زردالو ئے خوړلی دی تعبیر ئے په هغه اندازه به ورته دینار ملاویږی او که زردالو تروش وی تعبیر ئے غم او فکر دے او ځنے معبران وائی چه زردالو په خوب کښے لیدل تعبیر ئے وینزه ده۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوکوری چه دَ زردالو زړے ئے مات کړو او تریخ وو تعبیر ئے غم او فکر به ورته رسیږی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی زردالو بے وخته دَ بیماری تعبیر لری او ترش غم او فکر به وی او که خوږ وی تعبیر ئے نفع ده۔

## خبرے

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے خبرے کول او خبرے اوریدل دا په مختلفو ژبو پورے تعبیر لری. که اوکوری چه په عربی ژبه ئے خبرے کړی دی تعبیر ئے دَ بادشاهانو نه به عزت او مرتبه بیا مومی او دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم احادیث شریف به واوری او که اوکوری چه په فارسی ژبه ئے خبرے کړی دی او یائے اوریدلے دی تعبیر ئے دَ مشرانو او بزرګانو مجلس کښے به وی او دَ هغوئ نه به نیکی بیا مومی۔

او که اوکوری چه په عبرانی ژبه ئے خبرے کړے او یائے اوریدلے دی تعبیر ئے میراث به بیا مومی او که اوکوری چه په هندی ژبه ئے خبرے کړے او یا ئے اوریدلے دی تعبیر ئے دَ بے اصله او کمینه سړی سره به ئے کار پیښیږی او که اوکوری چه په ترکی ژبه ئے خبرے کړے او یا ئے اوریدلے دی تعبیر ئے دَ کلی والو خلکو په صحبت کښے به پریوځی۔ او که اوکوری چه په خوارزمی ژبه ئے

خبرے کړے او یائے اوریدلے دی تعبیرئے بدہ خبرہ بہ واوری او کہ اوګوری
چہ پہ سقلانی ژبہ ئے خبرے کړے او یکئے اوریدلے دی تعبیرئے دَ بے دین
سړی سرہ بہ ئے کار پیښیږی۔
او کہ اوګوری چہ پہ یونانی ژبہ ئے خبرے کړے او یائے اوریدلے دی تعبیر
ئے پہ معقولاتو کښے بہ مشغول شی او کہ اوګوری چہ پہ رومی ژبہ ئے خبرے
کړے او یائے اوریدلے دی تعبیرئے دَ بے عقلو نہ بہ ورتہ غم او فکر ورسیږی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی کہ اوګوری چہ پہ ټولو ژبو ئے خبرے کړے
او یائے اوریدلے دی تعبیرئے پہ ټولو کارونو کښے بہ شروع وکړی او ټولو کښے بہ
ورتہ نفع وی۔
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی کہ اوګوری چہ پہ هرہ ژبہ ئے
خبرے کړے او اوریدلے دی کہ دَ خیر خبرے وی تعبیرئے خیر او صلاح دہ،
او کہ دَ شر او دَ فساد خبرے کړے وی تعبیرئے شر او فساد دے او کہ
اوګوری چہ دَ اندامونو نہ ئے دَ یو اندام سرہ خبرے کړے دی تعبیرئے پہ
خپل ځان بہ ریښتونی ګواهی ورکوی۔ دَ اللہ تعالی کلام دے (يَوْمَ تَشْهَدُ
عَلَيْهِمْ أَلْسِنَتُهُمْ وَأَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ)۔ النور ۲۴ - پہ هغہ ورځ
چہ پہ دوئ ګواهی کوی خپلے ژبے دَ دوی او خپل لاسونہ او خپلے خپے کوم عملونہ چہ دوی کول
او دَ هر اندام سرہ چہ خبرے کوی تعبیرئے دَ چہ بے انصافہ او پہ ظلم بہ وی۔

## بښکر - (سرونہا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی پہ خوب کښے
هر قسم ښکر نیک دے اولیدل ئے دَ خوب دَ چا بزرګ
نہ خیر او نفع بیاموی او کہ دَ ښځے غوا ښکر او وینی تعبیرئے پہ دغہ کال کښے بہ
دہ تہ ډیرہ زیاتہ نفع وی کہ ډیرلوئے وی ډیرہ فائدہ بہ بیاموی او کہ اوګوری
چہ ښکر پہ هوا کښے زوړند دے، تعبیرئے دَ هغہ ځائے خلکو تہ بہ خیر
او نفع اورسیږی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی کہ اوګوری پہ خوب کښے چہ پہ خپل ئے دوہ
ښکر دی تعبیرئے دَ چا بزرګ نہ بہ قوت او موی او کہ پہ خپل سر باندے
ډیرے ښکرے اوګوری تعبیرئے غم او فکر دے۔
حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی کہ اوګوری پہ خوب کښے چہ یو ښکر لری۔
تعبیرئے پہ کار کښے بہ ئے بیا اصلاح ظاهریږی او ژوند بہ پہ خوشحالی تیروی۔

اوکه اوګوري چه خلک دے په خکر ووهي تعبیر ئے خلکو ته به بد رسوی.
حضرت امام جعفر صادق فرمائیلي دي، دُ ځنګلي چارپایانو ښکرے تعبیر ئے په خیرا ونفع دے او دَ ښهري چارپایانو ښکرے دُ دے په خلاف وی.

## دَ خوراک بوقسم (سکبا)

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي که سکبائی دَ چیلي غوښه او یا دَ بنو شیانو سره یخ کړے وی. تعبیر ئے عیش او خوشحالي، عزت، مرتبے دی.
اوکه دَ غوا غوښے سره ئے پخکړے وی تعبیر ئے مال او دَ مراد موندل دی
اوکه چرګ غوښے سره ئے پخکړے وی تعبیر ئے عیش او خوشحالي، بزرګی او حکومت کول دی.

## خاوره کلاس (انجوره وسکوره)

کچه آب خورده دَ خټے.
حضرت ابن سیرین فرمائی،
که په خوب کښے اووینی چه دُه ته چا آب خورده ورکړے ده تعبیر ئے پاکیزه خبره به اوری که اووینی چه سکوره ئے مات شوے دے یا ضائع شو تعبیر ئے، باطله خبره به واوری او ځنے معبرینو وئیلي دی چه سکوره په خوب کښے وینزه ده. که اووینی چه نوے سکوره ئے اخستے ده، تعبیر ئے نوے وینزه به اخلی. اوکه اووینی چه کچه آب خورده ماته شوے ده تعبیر ئے دَ دُه وینزه به هلاکیږی
حضرت امام جعفر صادق فرمائی، په خوب کښے آب خورده په نهو وجو ده.
(۱) ښځه (۲) خادم (۳) وینزه (۴) دَ دین سمولے (۵) دَ دین صحت (۶) اوږده عمر (۷) مال (۸) ښائسته خبره (۹) دَ ښځو دَ طرفه وراثت موندل.

## خوشحالی

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي که څوک اوګوري چه په خوب کښے خوشحاله دے تعبیر ئے دُه ته به دَ هغه کس غم او فکر رسیږی. او که مړے خوشحاله په خوب کښے اوګوري تعبیر ئے حال به ئے ښهٔ وی او خاتمه به ئے په نیکبختی سره وی.
حضرت امام جعفر صادق فرمائیلي دي، که اوګوري په خوب کښے چه بغیر دَ څهٔ سبب نه خوشحاله دے. تعبیر ئے دَ دُه مرګ نزدے شوے دے دَ الله تعالیٰ کلام دے (حَتّٰىٓ اِذَا فَرِحُوْا بِمَآ اُوْتُوْٓا اَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً ط) الانعام ۴۴
تردے پورے چه څهٔ وخت هغوئ په ورکړے شوو یا نړے خوشحاله شی نو مونږ هغوئ ناګهانه اونیسو.

## خط، کاغذ

دَ صحیفے درے معنیٰ کانے دی (۱) خط (۲) کاغذ (۳) پردہ حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری په خوب کښے چه په کاغذ ئے څۀ لیکلی دی تعبیرئے میراث به بیاموّمی او که خوک اوګوری چه په کاغذ ئے څۀ ځان دَ پاره لیکلی دی تعبیرئے دینئ او امانتګرسړی نه به څۀ حاصل کړی او که اوګوری چه په کاغذ باندے په شین خط څۀ لیکلی دی. تعبیرئے دَ مصیبت وهلی ته به څۀ بیاموّمی او که اوګوری چه په کاغذ ئے هیڅ نۀ دی لیکلی تعبیرئے میراث به نۀ موّمی۔

## خط۔ (نامه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دۀ سره بند لیکلے شوے کاغذ دے تعبیرئے چرته پټه خبره به واوری او که اوګوری چه کهلاؤ کاغذ (چھٹی) ورسره دۀ تعبیرئے چرته ښکاره خبره به واوری۔ او که اوګوری چه دَ دۀ په کاغذ مهر لګیدلے دے تعبیرئے دَ دۀ مهرنامه به په خیر د ورسیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری په خوب کښے چه چا کاغذ ورکړے دے او دَ هغے سرنامه ئے لوستلے دۀ تعبیرئے دَ چا نه به ورته خیر رسیږی او که ن‌ه نۀ وی لوستلے تعبیرئے غم او فکر دے۔ او که اوګوری چه دَ هغه خط عنوان دَ هغه خط عنوان نۀ وو تعبیرئے غم او فکر دے۔ او که اوګوری چه دَ هغه خط عنوان نۀ وو تعبیر شته دے او مهر ورباندے لګیدلے دے او چا کهلاؤ کړے نۀ دے تعبیر ئے داسے کار به ورته مخے ته راځی چه په ښکاره به ښۀ وی او پټ به غم او فکر وی که اوګوری چه کاغذ ئے کهلاؤ کړے دے او وے لوستلو تعبیرئے عزت او مرتبه به ئے زیاته شی او که خوب لیدونکے لوستونکے وی او خوب کښے اوګوری چه دۀ خط لوستلو تعبیرئے مرتبه به ئے توره هم زیاته شی او ځنے معبران وائی دَ مرګ وخت به ئے نزدے شوے وی. دَ الله تعالیٰ کلام دے (اِقْرَاْ كِتَابَكَ كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيْبًا) (الاسراء: ۱۴) خپل کتاب دے ولوله کافی دے په تا باندے نن ورځ حساب کړے شوے۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دۀ ته دَ بادشاه دَ طرفه خط ملاؤ شوے دے او نۀ ئے پرانستلو او نۀ ئے ولوستلو تعبیرئے غم او فکر دے او که کهلاؤ ئے کړلو او پرانستلو او دَ څۀ زیرے پکښے وو تعبیرئے خوشحالی نفع، ښادی دۀ او که پکښے خرابے خبرے لیکلی وے تعبیرئے تاخوښه ژوند او په هغه باندے دلیل دے او که اوګوری چه خط ئے سره دَ مهره او موتند لوا و بادشا کتے

ته ئے ورکړے دے تعبیر ئے خیر او نفع دہ۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ اسمان نه ورته خط را غلے دے تعبیر ئے په خیر او امید واری دے او کار ونه به ئے پوره کیږی او هر مراد به ئے پوره شی او که اوګوری چه په هغے کښے ناخوښی خبرے لیکلے شوے دی تعبیر ئے کار به ئے نۀ پوره کیږی۔

## خوشبویه دارو۔(صندل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه صندل دَ دارو ورسره دی او یا چا ورکړی دی تعبیر ئے خلک به ئے صفت کوی. که اوګوری چه سپین صندل ورسره دی تعبیر ئے چرته دَ لرے سړی نه به ورکړه بیا موی که هر څومره ډیر صندل ورسره وی دَ هم هغې په اندازه به دَ خوب لیدونکی نفع وی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی دَ صندل لیدل په خوب کښے په څلورو وجوو وی (۱) صفت (۲) خیر او برکت (۳) عزت او مرتبه (۴) نفع او سپین صندل دَ سرو نه ښهٔ دی۔

## خوَله را تلل. (عرق کردن)

که څوک په خوب کښے اوګوری چه دَ وجود نه ئے خولے روانے شوے دی، تعبیر ئے دَ خوَلے په اندازه به تاوان کښے راشی خاصکر چه په زمکه څڅیدلی وی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه دَ خوَلے نه ئے جامے لمدے شوے دی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به په عیال خرچه کوی او که اوګوری چه خپله خوله څښی. تعبیر ئے خپل مال به خوری۔ او که اوګوری چه سپینه خوله ورنه لاړه دہ او ښکلے بوی ئے کولو تعبیر ئے، مال به ئے حلال وی۔ او که دَ دے خلاف اوګوری تعبیر ئے مال به ئے حرام وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، خوَله را تلل تعبیر ئے دَ حاجت پوره کیدل دی، که اوګوری چه وجود ئے خوَله کړے دہ تعبیر ئے حاجت به ئے پوره شی او که بیمار سړے اوګوری چه خوَله ئے کړے دہ تعبیر ئے صحت به ښهٔ شی او بیماری به ئے لرے شی۔

## خوشبویه لرګے۔(عود)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دَ عه لرګے دَ چا لاندے سیزلے

ے تعبیرئے دَ هغهٔ نه به خیرا و نفع او مومی په خوب کښے دَ عود لیدل ښائسته
نرم طبعه سړے دے۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه کچه لرګے دَ عودو ورسره دے
یا ورته چا ورکړے دے تعبیرئے دَ بادشاه نه به انعام او مومی اوهرڅومره
به لرګے ښائسته وی هغه هومره به ئے انعام هم ډیر وی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، عود لیدل په خوب کښے
په څلورو وجو وی (۱) ښائسته خویه سړے (۲) ښه خبره تعریف او شاباسے
(۳) دَ خوشحالئ خبره (۴) مال او نفع

## خکته رانلل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ غرهٔ نه خکته را غلے دے۔ او یا چرته دَ لوړ ځائے نه راکوز شوے دے۔ تعبیرئے عزت او مشری به ئے ختمه شی او مال به ئے نقصان شی۔ او که اوګوری چه دَ اندرپائے دَ دستګی نه راکوز شوے دے تعبیرئے په دین کښے به ئے نقصان اوشی خاصکر چه دَ خپتے اندرپایه وی او که دَ چونے او کانړو وی تعبیرئے، مال به ئے نقصانی شی۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه غرهٔ نه راکوز شوے دے که بادشاه سره وی نو ورته جدا به شی او عزت او مرتبه کښے به ئے نقصان وی۔ او که اوګوری چه دَ غونډئ نه لاندے راکوز شوے دے، تعبیرئے دَ غونډئ دَ اوچتوالی په اندازه به ئے په نعمت کښے نقصان را شی۔

## خرڅول۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی هر شے چه په شریعت او دَ دین په لاره کښے ګران وی دَ هغے خرڅول بد دی، که اوګوری چه دَ قرآن مجید نسخه ئے خرڅه کړے ده۔ تعبیرئے دَ اسلام دین به دَ دهٔ په نزد خوار او ذلیل وی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که په خوب کښے اوګوری چه دهٔ خپل غلام خرڅ کړے دے، تعبیرئے، دَ دهٔ عزت او بزرګی به دَ ښځو دَ طرفه وی. او نوم به ئے بد شی۔
حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه څهٔ شے ئے خرڅ کړے دے تعبیرئے هغه شے به سپک وی۔

## خشکه خنبیره

خشکه خنبیره چه دَ هغے نه تروے اُوبه جوړیږی دَ دے به خوب کښے لیدل تعبیرئے غم او فکر دے

که اوګوري چه خشکه خنبیره خوري، تعبیر ئے ډیوکار په سبب به فکر مند شي . خشکه خنبیره په خوب کښے تعبیر ئے د خپلوانو سره جنګ دے.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، د خشکے خنبیرے په خوب کښے لیدل په پنځو وجو وي. (۱) بیماري (۲) غم او فکر (۳) جنګ او جھګړه (۴) نجات (۵) د عیال سره نه جوړیدل.

## خبر غوښتل (سوال کول)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، که یو سړے خوب کښے اوګوري چه سوال کوي او یا څه شے غواړي. تعبیر ئے دا دے ته به خیر او نفع ډیره ورسیږي. او د هر چا سره به ښه په نرمه ژوند تیروي مګر خلک به ورباندے ملامتي وائي که اوغواړي چه د کورونو نه څه غواړي او چا څه شے ورنکړو. تعبیر ئے، کارونه به ئے بند شي.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلي دي، سوال کول په خوب کښے په څلورو وجو وي (۱) خیرات (۲) نفع (۳) ژوند (۴) عزت او مرتبه.

## خوړل - (خوردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي که څوک اوګوري چه څه شے ئے خوړلے دے تعبیر ئے، د هغه سړي مینه د هغه په زړه کښے ده. که اوګوري چه چا دے په غصه او دښمني سره اوخوړلو تعبیر ئے دا دے ته به د هغے په اندازه نقصان ورسیږي.

حضرت مغربيؒ فرمائیلي دي، که اوګوري په خوب کښے چه خر ئے خوړلے دے تعبیر ئے دا دے ته به د اول په نسبت خطره وي او که اوګوري چه اوښ ئے خوړلے دے، تعبیر ئے دا دے ته به د سفر نه نقصان رسیږي. او که اوګوري چه غوایه ئے خوړلے دے تعبیر ئے په دغه کال به نقصان ورته رسیږي او په خوب کښے د جمله د ږندو کانو تعبیر په څلورو وجو وي (۱) ضرر او نقصان (۲) دښمن (۳) جنګ جھګړه (۴) مرتبه او مال

## خزانه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که یو سړے اوګوري په خوب کښے چه خزانه ئے پیدا کړے ده تعبیر ئے بیمار به شي او یا به ئے زړه ته خفګان رسیږي. او که اوګوري چه خزانه ئے ضائع شوے ده تعبیر ئے د دے خلاف دے.

حضرت مغربيؒ فرمائیلي دي. خزانه موندل ونکے سړے په خوب کښے تعبیر ئے

چرته خراب ځلئے ګنئے بیمار یا به هلاک شي۔ اوکه اوګوری چه ابادځائے ګنئے
ئے خزانه موندلے ده۔ تعبیرئے دَ بیماری نه به شفا اوموهي۔

## خندق (کنده)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی خندق په خوب کښې لیدل تعبیرئے هغه مال دے

چه په مکرا وچل ئے لاس ته راوړی که اوګوری چه په کنده کښې پټ شوے دے چه
دَ هغه ځایه نشي راوتلے تعبیر ئے دَ مکرا وچل سره به څهٔ کار کښې پریوځی
و دَ هغے نه به مشکله اوځي اوهر څومره چه کنده ژوره وی تعبیرئے په هغے
اندازه به ئے کار سخت وی اوکه اوګوری چه دغه کنده دَ تاخانے په شان ده
تعبیرئے غلهٔ به دَ دهٔ نه څهٔ شے اخلي۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه کوهے اویائے کنده ایستلے ده تعبیر
ئے دَ چاد پاره به چل جوړوی۔ اوکه اوګوری چه دَ هغه کنده نه اوبه رادوځی۔
تعبیرئے په مکر اوچل به څهٔ حاصلوی۔ او په هغے به ژوند تیروی۔ اوکه
اوګوری چه کنده دَ بل چاد پاره وه تعبیرئے کوم چه مونږ بیان کړو هغهٔ
ته به رسیږی۔
حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی۔ که اوګوری چه په کنده کښې پریوتے دے
اوبیا نشو راوتلے اولاړوکنده کښې، تعبیرئے چرته پټ کار کښې به ګیرېږی
او دَ هغے نه به خلاصے پیدا نهٔ کړی اوکه دَ دے خلاف ئے اوګوری تعبیرئے
خلاصے به اوموهي۔

## خوب کښې مړکیدل

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی که خوب کښې اوګوری چه مړ شوے دے اوخلک وریاندے
ژاړی او انګولا کوی اوکفن کښې ئے تاؤ کړے دے اویائے ورباندے جنازه
کړے ده اوپه قبر کښې ئے ایښے دے۔ دَ دے ټول تعبیر دَ دهٔ دَ دین فساد دے
مګر دَ هغه چاد پاره دَ فساد نهٔ دے چه دَ قبر نه ئے ویستلے دے دَ دفن
کولو نه روستو اوکه اوګوری چه دے ئے په قبر کښې ایښے دے او قبرئے دَ خاوره
نه ډک کړیدے اوخلک درنه واپس راغلی دی تعبیرئے دَ دهٔ به هیڅکله
دین صحیح نهٔ وی اوځنے ذائی که څوک اوګوری په خوب کښې چه مړ شوے دے
اوخلکو وریاندے نه جنازه اوکړه او نه ئے جنازه اوچته کړے ده او ډیر
خلک ئے جنازے پسے ځی تعبیرئے عزت او مشری به بیاموهي او په خلکو

به حکومت کوی مکرپه دهٔ به ظلم کیږی. اوکه اوګوری چه مړشوے دے
او بیا ژوندے شوے دے تعبیرئے چه کومه ګناهئے کړے وی دَ هغے نه به
توبه او باسی اوځنے وائی چه عمربه ئے اوږدوی اوکه یوسړے اوګوری په
خوب کښے چا ورته ووئیل چه ته به هیڅکله نهٔ مرے تعبیرئے په جهاد کښے
به شهید کیږی. اوکه اوګوری چه مړشوے دے مکروربانده ےچانړی
ژړلی او نهٔ ئے ځوک په جنازے پسے روان دی تعبیرئے هغه څه چه ئے دَ
کوره وران شوی دی هیڅکله به جورنشی اوکه خپل ځان په مړوکښے اوګوری
اودے ته فکرکوی چه دے ډیروخت کیږی چه مړدے تعبیرئے دَ جاهلانو
سره به سفرکوی.

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی که ځوک اوغواړی چه دا معلوم کړی
چه دَ دهٔ حال دَ اهلِ اصلاح په نزد څنګه دے؟ که مړو دَ دهٔ دَ اصلاح
خبرورکړواو نیکے خبرے ئے ورسره کولے او روښانه تندئه وو تعبیرئے دَ دهٔ
حال به دَ الله تعالیٰ په وړاندِ نیک وی اوکه اوګوری چه مړو ورسره ناخوښی
خبرے کړے او مخ ئے ورنه اړولے دے تعبیرئے دَ دهٔ حال به دَ الله تعالیٰ په
وړاندے بد وی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، ناڅاپه مرګ په خوب کښے لیدل تعبیر
ئے دَ مؤمن دَ پاره راحت دے اودَ کافردَ پاره عذاب دے اوکه ناګهانه نهٔ
وی بیا به ئے تعبیردَدین فساد وی اوځومره چه زنکدن سخت اوګوری
په هم هغه اندازه به ئے عذاب سخت وی. که اوګوری چه دے مړدے او
چا ورته غسل ورکړیدے تعبیرئے توبه به اوکړی اوکه اوګوری چه دَ
دَ دهٔ جنازه پسے خلک په هوا روان دی تعبیرئے په دے بساریه کښے به لوئے
مشرسړے مړکیږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری په خوب کښے چه دے مړوی او
کټ ئے ایښے دے اوخلک دَ دهٔ جنازه پسے روان دی. تعبیرئے دَ خپل قدر
مطابق به بزرګی مومی، اوکه اوګوری چه مړے په خلکو دروند دے تعبیرئے
په خلکو به ظلم او زیاتے کوی اوکه اوګوری چه په جنازه کښے سپک دے تعبیرئے
خلکو سره به نیکی کوی؛ اوکه اوګوری چه مړے ئے په لاسونو وچت کړے
اودوړے ئے تعبیرئے حرام به ورته ملاویږی. اوکه اوګوری چه ژوندے

مړ شو او په تختې ئے سملولے او هغه تخته ئے په لاس وتو کښې او چت کړے تعبیر ئے دَ بادشاه په خدمت کښې به ځی او دَ هغې نه به نفع او راحت بیا مومی که او ګوری چه مړ شوے دے او بیا ژوندے شو تعبیر ئے هغه ښار به خراب شی که او ګوری چه بل ځل بیا مړ شوے دے تعبیر ئے دَ بچیانو نه به ئے څوک مړی او که او ګوری چه دَ دهٔ ځامنو کښې څوک مړ شوے دے تعبیر ئے مالداره به شی او همدا رنګه ئے هم وئیلی دی چه دَ دښمن نه به امن کښې شی او که او ګوری چه مور او پلار ئے مړهٔ شوی دی تعبیر ئے دَ دهٔ کار به خراب وی او که ښځه او ګوری چه حامله ده او مړه شوے ده او خلکو ورباندے ژړا کانے کولے، تعبیر ئے دَ دے به خوی کیږی.

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائیلی دی که او ګوری چه مړے په دویم ځل مړ شوے دے او خلک ورباندے په مزه مزه ژاړی تعبیر ئے دَ دهٔ دَ اهل بیتو نه به دَ چا واده وی او خوشحالی به بیا مومی. که او ګوری چه دَ دهٔ په مرګ ښځے او نر ژړا کوی او انګولا کوی تعبیر ئے دَ دهٔ اهل بیتو ته به غم او فکر رسیږی- که ښځه او ګوری چه مړه شوے ده او کټ کښې ایښے ده تعبیر ئے بنهٔ خبره به کوی او که او ګوری چه دفن کړے ئے ده تعبیر ئے بد دے.

## خوشبوداره دارو - (مرزنګوش)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که او ګوری چه مرزنګو دارو ئے بوی کړی دی تعبیر ئے دَ دهٔ به ایمانداره، عالم، هوښیار ځوی پیدا کیږی او که او ګوری چه مرزنګوش ئے دَ خپل ځائے نه ویستلی دی تعبیر ئے ځوی به ئے او که ځوی نهٔ وی نو غم او فکر به ورته ورسیږی او که او ګوری چه دَ دهٔ ملکیت کښې دَ مرزنګوش شوی دی تعبیر ئے دَ دهٔ به ډیر زیات خلک خیرخواه وی — حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی دَ مرزنګوش دارو وُنه هغه یوسړے دے چه دَ دهٔ دَ اهل بیتونه دے ډیر زیات خوښوی او که او ګوری چه زیړه او مړا وے ئے تعبیر ئے دا سړے به بے نصیبه او نسادی وی.

## خلک

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که او ګوری چه خلکو ډیر زیات ئے شنے جامے اچولے دی تعبیر ئے دَ دوی دَ ارام ژوند او پاک دین او خوشحالی دے او که او ګوری چه خلکو خیرنے او تورے جامے اچولے دی تعبیر ئے دَ دے خلاف دے او که او ګوری چه اسمانی رنګه جامے خلکو اچولی

دی تعبیر ئې غم او فکر دے او که اوګوری چه نوے او فراخه جامے ورسره دی تعبیر ئې په زړوندا او په فراخه هست دے۔

## دَخاورو تیل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے خاورو تیل ناکاره ښځه ده که اوګوری چه په خپل ځان ئې دَخاورو تیل مخلی دی تعبیر ئې دَ ناکاره ښځے سره به یو ځائے شی او ځنو معبرانو وئیلی دی چه څه حرام به خوری. که اوګوری چه ښه ډیر دَ خاورو تیل ورسره دی تعبیر ئې، حرام مال به جمع کوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، دَخاورو تیل لیدل تعبیر ئې په درے وجو وی (۱) ناکاره ښځه (۲) چُغل خور سړے (۳) حرام مال

## خوراک۔ (کاچی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که څوک په خوب کښے اووینی چه دهٔ دَ کُنځلو او بادامو یو بیل قسم غوړ و سره کاچی خوړلے ده تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به خیر او نفع مومی که اوګوری چه کاچی ئې دَغوړو او شاتو سره خوړلے ده تعبیر ئې په هغې اندازه به ارام مومی. او که اوګوری چه کاچی دَ غوړو او چکے (ماستهٔ) سره خوړلے ده تعبیر ئې دَ چانه به ورته کمتره نفع ورسیږی. او که اوګوری چه کاچی ئې دَ څه ترش څیز سره خوړلے، تعبیر ئې غم، فکر او اندیښنه ده.

حضرت مغربیؒ فرمائی او که اوګوری چه کاچی ئې دَ کوم خوارهٔ شی سره خوړلے ده تعبیر ئې، مال به ورته په اسانۍ سره لاس ته راشی۔ او که دَ تروش شی سره ئې خوړلے وی تعبیر ئې غم او فکر به وی دَ تروش والی په اندازه۔

## خټه خوړل (گل خوردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه خټه خوری تعبیر ئې په مړو پیسے به بدوائی۔ که اوګوری چه خټه دَ خاورے سره خوری تعبیر ئې خپل مال به په عیال خرچ کوی. که اوګوری چه دَ نبی کریمؐ دَ قبر مبارک خاورے خوری تعبیر ئې حج به کوی۔ او که اوګوری چه دَګور ځنو سره لیوکړے دے، تعبیر ئې غمژن به شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی په خوب کښے سپینه او شنه خټه لیدل حلال مال دے او زیړه خټه بیماری ده او سره خټه لهو لعب دے او توره خټه غم

اوفکر او اندیښنه ده او خیر نے او ګنده ختنے خوړل غم او فکر دے. که او ګوری چه په ختنه کښے ډوب شوے تعبیر ئے په لوئے محنت او تکلیف کښے به پریوځی. او خلاصے به مومی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په ګرم وطن کښے د ختولیدل د یخنی په نسبت زیاته سخته ده.

## څپره د اس، قچر څپو وغیره (نعل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښے د نعل لیدل څه اندازه مال دے چه هغه هر رنګے ده ته به ورسیږی. که او ګوری چه د قچر نعل ورسره دے تعبیر ئے د بادشاه نه به نفع مومی که او ګوری چه د خر نعل ورسره دے تعبیر ئے د هغے په اندازه به د سردارانو نه مال حاصل کړی. که او ګوری چه د خپلو څاروو نعلونه ئے وهلی دی تعبیر ئے، په سفر به ځی. او نعل بند هغه سړے دے چه په خلکو کښے د دوستی لټون کوی.

## خوراک ـ (طعام)

حضرت دانیالؒ فرمائیلی دی، هر خوړل او څښل تعبیر ئے ښه دے مګر یا لوده وغیره ځکه چه د حلوا اصل د غوړو او شاتو دے او دا دے دواړو تعبیر مال دے.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی. هر خوراک چه په سختئ او بے خوندۍ وی تعبیر ئے غم او فکر دے او هر ترش خوراک تعبیر ئے بیماری ده او هر خوږ خوراک تعبیر ئے ښهٔ ژوند دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که او ګوری چه سړو او سپینو زرونه ئے خوراک اخستے دے تعبیر ئے، د مال نقصان دے. که او ګوری چه په کور کښے ئے خوراک دے او ټول ئے خوړلے دے تعبیر ئے ژوند به ئے په عیش کښے تیریږی که او ګوری چه دومره طعام ئے خوړلے دے چه د پاڅیدو طاقت ئے نهٔ وو تعبیر ئے د دهٔ مرګ دے. او که او ګوری چه مړی طعام خوړلے دے تعبیر ئے هغه خوراک به مشکل وی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، که او ګوری چه ملنګ نه ئے طعام ورکړے دے. تعبیر ئے د غم او فکر او ویرے نه به خلاصے او مومی. که او ګوری چه کافر ته ئے طعام ورکړے دے تعبیر ئے، د دښمنانو په کارونو کښے به الله تعالیٰ ددهٔ کومک کوی.

## دَخوراک نرم شے۔ (تتماج)

حضرت ابن سیرین فرمائی، که اوګوری چه تتماج ئے دَکچ چیلی یا دَخوړو ماستوسره خوړلے دے تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ سپاهی نه ورته فائده رسیږی۔ که اوګوری چه دَغوا دَ غوښے یا دَ سوے دَ غوښے یا دَ تروشو مستو سره ئے خوړلی تعبیر ئے فائده به ورته دَ کمینه سړی نه رسیږی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی چه تتماج دَ سوے غوښے سره یا دَ تروشی سره خوړل تعبیر ئے غم دے۔

## خارښت دَوجود۔ (خارش تن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که څوک په خوب کښے اووینی چه دَ دهٔ په وجود ښارښت رابنکاره شوے دے تعبیر ئے خپلوان به غواړی او دَ هغوی دَ پاره به غم خوری۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی دَ بدن خارښت دَ خپلوانو او دَ اهل بیت دَ احوالو لټول او دَ هغوی نه غم او فکر کول دی۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائی، دَ بدن خارښت که تکلیف ورکړی تعبیر ئے دَ خپلوانو نه به ورته تکلیف رسیږی۔

## خاشاک۔ (دَ سوزولو لرګی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی خاشاک په خوب کښے لیدل تعبیر ئے مال او نعمت دے۔ که عام سړے په خوب کښے اووینی چه دَ دوی په کور کښے ډیر لرګی دی او دے دَ لرګو په منځ کښے اوسیږی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به ورته مال او نعمت حاصلیږی۔ که اوګوری چه لرګی بادا اوری یا سوځیدلی دی تعبیر ئے بادشاه به دَ دوی مال اخلی۔ که اوګوری چه لرګی دَ دیګ دَ لاندے یا دَ تنور دَ لاندے سوزیدلی تعبیر ئے خپل مال به جمع کوی۔ که اوګوری چه دَ ځنګل نه لرګی راوړی او کورته ئے ننباسی۔ تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ سفر نه مال حاصلوی۔ که اوګوری چه په کوڅه یا ښار کښے هوا لرګی راوړی تعبیر ئے دَ هغے لرګو په اندازه به دَ دے ښار ئے خلکو ته نفع او خیر و رسیږی۔

## خاوره۔ (خاک)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے خاوره لیدل که لږه وی یا ډیره وی تعبیر ئے روپئ دی۔ که اوګوری چه دَ دهٔ په کور کښے خاوره ده تعبیر ئے دَ هغه خاورے په

اندازه یه درهم موهی او بے تکلیفه به ورته رسیږی. که اووینی چه په خاوره ځی او یائے خوری او یا خاوره راجمع کوی او یائے اوچتوی دَ دے ټولو تعبیر مال دے۔

حضرت امام جعفرصادق رض فرمائی په خوب کښے خاوره په پنځو وجو وی (۱) مال (۲) نفع (۳) شغل (۴) دَ بادشاه دَ طرفه فائده (۵) دَ رئیس دَ طرفه فائده

## خټکے، خربوزه (خربزه)

حضرت ابن سیرین رح فرمائی۔ په خوب کښے خټکے لیدل بیماری ده او شین او خوږ خټکے صحت او نفعه ده چه په خپل موسم کښے وی او وړکی خربوزه دَ لوے نه ښه ده۔

حضرت کرمانی رح فرمائی، شین خټکے په خوب کښے لیدل تعبیرئے دَ غم لرے کیدل دی۔ که اوګوری چه ډیر خټکی ددهٔ په مخ کښے ایښی دی تعبیرئے په غم کښے به ګرفتار شی۔

حضرت مغربی رح فرمائی چه په خپل موسم کښے خټکے لیدل تعبیرئے نفعمند که ښځه ده او ښائسته زندګی ده۔

حضرت امام جعفرصادق رض فرمائی، په خوب کښے خربوزه لیدل په پنځو وجو وی (۱) بیماری (۲) ښځه (۳) غلام (۴) نفع (۵) ښائسته ژوند خاصکر چه خوږ خټکے وی۔

## خر

حضرت دانیال ع فرمائی خر په خوب کښے لیدل تعبیرئے بخت او مشری ده او دَ خر نیکی او بوی په خوب لیدل نکی واقع کیږی. که اوګوری چه خر دَ ددهٔ ملکیت دے یا دَ ددهٔ په قبضه کښے راغلو او خرئے اونیولو او، وے تړلو، تعبیرئے دَ خیر دروازے به په ددهٔ پرانستلے شی۔ او دَ غم نه به خلاصے موهی او که ډیر خره اووینی، تعبیرئے مال او نعمت به زیات شی۔ په ټولو کښے ښه خر هغه دے چه دَ ددهٔ تابعدار وی۔

حضرت ابن سیرین رح فرمائی که اووینی چه په تور خر ناست دے تعبیرئے مشری او سرداری به بیاموهی او په تور خره ناسته دَ عزت او مرتبے زیاتوالی تعبیرلری او که اووینی چه په شین خر ناست دے تعبیرئے عابد او پرهیزګاره به وی او که اووینی چه په سور خره ناست دے تعبیرئے په عیش او عشرت دے۔ او که اووینی چه په زیړه خره ناست دے، تعبیرئے بیمار به شی او که اووینی چه په ښځه حامله خرے ناست دے تعبیرئے

خیر او خوشحالی ده. او که اوګوري چه د خر غوښه خوري تعبیر ئې د تجارت نه به مال لاس ته راوړي. که اوګوري چه خپل خرئې وژلے او د هغې غوښه ئې خوړلے، تعبیر ئې مال به جمع کوي. او که اووینی چه د ده د ناستې د وجې خر مړ شو، تعبیر ئې، دے به زر مړ شي. که اووینی چه د خپل خر نه پریوتے دے، تعبیر ئې فقیرا و تنګس سته به شي. که اووینی چه خر د ده ملکیت نۀ و او دے ورنه پریوتو. تعبیر ئې د چا نه به تاوان اووینی که اووینی چه د خر نه راکوز شو او په بل سور شو تعبیر ئې خپل مال به نفقه کوي. که اووینی چه د ښځې کار په وجه د خر نه راکوز شوے دے. تعبیر ئې چه د ښځې کار او د ښځې حاجت طلب کوي زر به ورته تیار شي.

حضرت کرماني فرمائي که اوګوري چه د خر پښې ئې ښې ښلې تعبیر ئې بیمار به شي او زر به شي. که اوګوري چه خرئې واخستو او قیمت ئې ورنه کړو، تعبیر ئې آرام به بیا مومي د هغه خبرے نه چه کوم بزرګ ته ئې کړینه او که خره ئې د واړه ستر ګے نۀ لرلے تعبیر ئې هغه مال چه لري نول به ضائع شي. او که اوګوري چه خرئې یوه ستر ګه لري او بله کمزوري ده تعبیر ئې په مشکله به روزي طلبوي او که اووینی چه د ده د خره ډیرے خپې او ډیر لاسونه دي او د ده شول تعبیر ئې د ده پیروان به ډیر شي او که اووینی چه خرئې مړ شوے دے او په بل خر ناست دے او یا هغه خرڅه ده وو خرڅ ئې کړو او بل ئې ورباندے واخستو تعبیر ئې د ده د ژوندن حال به بدل شي.
که اووینی چه د ده خر قچر شوے دے تعبیر ئې د ده ژوند به د بادشاه سره وي مګر ظلم به پرے کوي. که اوګوري چه د ده خر نه کې جوړ شوے دے تعبیر ئې حلال مال به بیا مومي او که اووینی چه د ده خر ته مرغۍ جوړه شوه تعبیر ئې د ده روزګار به په داسے کار وي چه دے مرغۍ ته منسوب وي که اووینی چه د ده خر غلو بوتلو، تعبیر ئې د ده ښځه به په فساد سره مشهوره شي، او آخر به د ده نه ښځې نه جدا شي. که اووینی چه د ده خر مضبوط او قوي دے تعبیر ئې د دنیا کار او کسب به ئې اسانه وي. او که د دے خلاف اووینی تعبیر ئې د دنیا ژوندن او کار کسب به ورباندے تنګ شي. او سخت به شي او که اووینی چه په خرئې پیتے اچولے دے او دے د پیتې د پاسه ناست دے تعبیر ئې مالدار به شي او که اوګوري چه د خر سره ئې کورولے کړے دے

تعبیرئے خپل مراد به بیا مومی او که او وینی چه خر ئے پټ کړے دے او دَ
اوبونه ئے ویستلے دے تعبیرئے بخت او بزرګی او دَ اقبال دے او که او وینی
چه خر آواز کړے دے تعبیرئے نیک نۀ دے - دَ الله تعالیٰ قول دے (اِنَّ اَنْکَرَ
الْاَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِیْرِ) ترجمه: بیشکه دَ ټولو آوازونو نه خراب آواز دَ
لقمٰن ۱۹
خر دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که او وینی چه په خر ناست دے او هغه خر دَ دۀ
دَ لاندے آواز کوی تعبیرئے دَ دۀ عیال به بد اخلاقه وی که او وینی چه یو
خر لری او په بل ئے بدل کړے دے او دا دے نه خراب وو تعبیرئے حال به ئے
خراب شی او که دَ دۀ دَ خر نه ښۀ وو تعبیرئے حال به ئے نیک شی او مال
به ئے زیات شی. که او ګوری چه خپل خر ئے په آس یا په قچر بدل کړے دَ
تعبیرئے دَ بادشاه نه به مال او نفع مومی۔ او که او وینی چه په درنده ئے
بدل کړے دے۔ تعبیرئے دَ ظالم بادشاه نه به څۀ ملاویږی. که او وینی
چه خپل خر ئے په مارغۀ سره بدل کړے، تعبیرئے دَ هغه مارغۀ دَ قیمت په
اندازه به څۀ شے ورته ملاویږی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښے خر لیدل په لسو وجوی
(۱) بخت (۲) دولت (۳) حکومت (۴) ریاست (۵) مال (۶) ښځه یا وینځه (۷)
خوشحالی (۸) نصیب (۹) مشرتوب او سرداری (۱۰) مرتبه.
او په خوب کښے دَ خر ساتلو والا لیدل صاحب ولایت او تدبیر دے او دَ کارونو
سمولو والا او معاش تیار ساتلو والا دے۔

## خښته - (خِشت)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے
خښته لیدل هغه راجمع کړے مال دے
چه دَ هرے خښتے په سر زر کونه روپئ مقرر وی. که او وینی چه ښے ډیرے
خښتے ئے راجمع کړے دی. تعبیرئے ډیر مال به راجمع کړی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی که او وینی چه دَ دیوال نه ئے خښتے نړولی
دی تعبیرئے دَ دیوال خاوند مال به وړی. او که او وینی چه خښتے
ئے ټوټه ټوټه کړے او بے کاره او کړے وړے ئے کړے. تعبیرئے خپل
مال به ګډ وډ او هلاک کړی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښے پخه خښته لیدل بد دے که

ځکه چه اُور ورته رسیدلے دے۔ په دے وجه ورته غم او فکر دے۔

**خصي کول (خصي کردن)** حضرت ابن سیرین فرمائی که څوک په خوب کښے اووینی چه خپل ځان ئے خصي کړے دے۔ تعبیر ئے مراد به مومی او حاجت به ئے پوره کړے شي او ځنے معبرین وائی چه څوک به ئے مړشی او یا به دَ الله تعالیٰ بندګی به په زړهٔ کښے خوښه شی او مالدار به شی۔

او که څوک نامعلوم سړے خصي اووینی تعبیر ئے هغه سړے به نیک عمله او غوره وی۔ دا هم کیدے شی چه فرښته وی چه دے به دَ نیکئ لارے طرف ته غواړی او په نیکئ به زیرے ورکوی ځکه چه فرښتو ته شهوت نشته۔ که اووینی چه دَ دهٔ په خبرو کښے علم او پوهه نشته دے نو هغه به فرښته نهٔ وی که هغه سړے چه دهٔ اولیدلو خصي وو او معلوم هم وو هغه نیک او بد لیدل به هغه ته واپس کیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که اووینی چه دَ دهٔ هګئ (انثئ) پریکړے شوے او غورزیدلی تعبیر ئے په دشمن به کامیابی بیا مومی او ځنے تعبیر کونکو وئیلی دی چه په خوب کښے دَ انډور (هګو) پریوتل تعبیر ئے دَ دهٔ به جینکئ نهٔ پیدا کیږی ځکه چه اګئ جینکئ دی۔ او که اووینی چه خپله اګئ پخپله اوویستله او چاته ئے ورکړه تعبیر ئے چه چاته به لور ورکوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که اووینی چه بے سببه خصي شوے دے تعبیر ئے دهٔ ته به تاوان او شرمندګی رسیږی او که آله تناسل ئے دَ وجود نه پریکړے شو۔ همدغه تعبیر لري او دَ خلکو دَ منځ نه به ئے نوم ورک شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښے خصي لیدل په دریو وجو وی (۱) دَ پرهیزګاره خلکو لیدل (۲) فرښته (۳) عبادت

**خطبه لوستل۔ (خطبه خواندن)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که اووینی چه دَ منبر دَ پاسه خطبه وائی او دَ دے لائق او اهل وو۔ تعبیر ئے هغه سړے به عزت او بزرګی بیا مومی او که دَ دے خطبے اهل نهٔ وو (بے علمه وو) تعبیر ئے په سفر به ځی او ډیر وخت به په سفر وی او دهٔ ته به خطره وی دا هم کیدے شی چه که مالدار وی فقیر به شی او که کافر خطبه دوائی تعبیر ئے مسلمان به شی او یا به مړشی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه بادشاه په منبر د پاسه خطبه وائی. که بادشاه نیک عمله وو تعبیر ئې عدل او انصاف به کوی او که فاسد وو. تعبیر ئې توبه به او باسی. که اووینی چه ښځه په منبر خطبه وائی او خلکو ته نصیحت کوی تعبیر ئې دا دے خاوند به رسوا او شرمنده شی.

حضرت مغربیؒ فرمائی که څوک اووینی چه خلکو ته په منځ کښې د نکاح خطبه لولی تعبیر ئې، د هر چا سره به نیکی او احسان کوی خیر او نفع به مومی.

## خندا ۔ (خنده)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې خندا غم او فکر دے. که اووینی چه په زوره ئې خندا لی دی. تعبیر ئې، غم به ئې زیات شی. د الله تعالیٰ قول دے: (فَلْيَضْحَكُوا قَلِيلًا وَّلْيَبْكُوا كَثِيرًا) توبه[۱۲]: یکار ده چه خندا کم کوی او ژاړی ډیر۔

که اووینی چه په مزه ئې خندا لی دی، تعبیر ئې غم به ئې کم وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښې په ارامه (تبسم) خندیدل تعبیر ئې د مراد پوره کیدل او د خوشحالئ زیرے دے. د الله تعالیٰ قول ؎: فَتَبَسَّمَ ضَاحِكًا مِّنْ قَوْلِهَا) النمل[۱۹]: د هغه د وینا نه ئې په قراره او په مزه وخندل۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې په مزه خندیدل تعبیر ئې ځوی به ئې پیدا شی. د الله تعالیٰ قول دے (فَضَحِكَتْ فَبَشَّرْنَاهَا بِإِسْحٰقَ) هود[۷۱]: هغې په مزه او خندل نو مونږ ورته زیرے ورکړو په حضرت اسحٰق سره. او په زوره سره خندیدل تعبیر ئې غم او فکر دے او د الله تعالیٰ د کارونو حیرانتیا کول دی، د الله تعالیٰ فرمان دے (اَفَمِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ تَعْجَبُوْنَ۔ النجم[۵۹]) ترجمه: آیا تاسے د دے خبرے نه تعجب کوئ۔

## خوانچه (خوان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې اووینی چه د هٔ سره خوانچه ده او په دے کښې خوراکه ده او د هغې نه ئې خوړلے، تعبیر ئې د هغې په اندازه به غنیمت مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، چه خوب کښې د که خوانچه تشه ده که بغیر د خوراکه ئې پوره نه کړی تعبیر ئې غم او فکر دے. او ډیر خوراک د لوے غم تعبیر لری۔

که اووینی چه په خوانچه کښې د ۳ رے قسمه طعام دے تعبیر ئې، روزی به ئې فراخه شی۔ د الله تعالیٰ قول دے (رَبَّنَا اَنْزِلْ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ۔ مائده[۱۱۴]) ترجمه: اے زمونږه ربه په مونږ باندے د بره نه خوراک راولیږه۔

او ځنے وائی چه عزت، مرتبه او خوشحالی ده۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښے خوانچه لیدل په پنځو وجوو ی (۱) حاضر غنیمت (۲) شریف سړے (۳) قوت (۴) دَ کار و انتظام (۵) عزت او خوشحالی

## خنزیر (خوګ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے خنزیر لیدل مال او قوی سړے دے مګر بے همته او بے خیره به وی. که او وینی چه خنزیران ئے په یو ځائے کښے راجمع کړی دی او نه ئے پریږدی دَ دے دَ پاره چه ګډ وډ شی تعبیر ئے ډیر مال به راجمع کړی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی په خوب کښے دَ خنزیر حفاظت دُنیا دارو دَ پاره نیک دے او دَ دین دَ پاره بد دے او دَ خنزیر بچے غم او فکر دے. که او وینی چه خنزیر ئے خوړلے دے تعبیر ئے سود به خوری. که او وینی چه خنزیران دَ یو ځائے نه بل ځائے ته وړی تعبیر ئے دَ دهٔ حال به نیک شی او دَ آخرت حالات به ئے بد وی. که او وینی چه دَ خنزیرانو په منځ کښے ګرځی، تعبیر ئے دَ حرامو مال ئے چه جمع کړیدے ور باندے به خوشحاله وی. دا هم وئیلے شوی دی چه دَ خوګ پی خوړل، غم، فکر او مصیبت دے. که او وینی چه دَ خنزیرانو تر منځه ناست دے تعبیر ئے، دښمن به ور باندے کامیابی مومی. که او وینی چه شاته نه ورپسے خوګ روان دے او دَ دهٔ مخے نه بهر تلے دے تعبیر ئے ناپاکه مراد به ئے پوره شی. که او وینی چه دَ خنزیر څرمن ئے موندلے ده او یا ورته چا ورکړے ده. تعبیر ئے حرام مال به مومی که او وینی چه خنزیرانو خروونکی دی په بے دینه او بد عمله ډله به سرداری کوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که او وینی چه دَ ځنګلی خنزیر سره ئے جګړه کړیده تعبیر ئے، دَ بے همته او ظالم دښمن سره به په جګړه کښے پریوځی. که او وینی چه دَ خنزیر ویښته، څرمن یا هډوکی ورسره دی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به حرام مال مومی۔

## خُله (دهن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے خُله لیدل دَ کارونو کُنجی او دَ کارونو خاتمه ده او هر څهٔ چه دَ خولے نه بهر راووځی تعبیر ئے په جوهر او په کلام دے. که هغه نیکے خبرے وی یا بدے، که دُنیاوی وی که په کرکے سره ئے په خُله کښے وی تعبیر ئے مشقت او تکلیف دے په ژوند کښے که او وینی چه خُله ئے مضبوطه تړلے

دہ۔ تعبیر ئے ہلاک بہ شی۔ اوکہ اووینی چہ خُلہ ئے دَ اُوبو، غنمو نہ ډکہ دہ تعبیر ئے مرگ بہ ئے نزدے شوے وی۔ اوکہ اووینی چہ دَ دۀ خلہ فراخہ شوے دہ چہ پہ خوراک پکښے راځی۔ تعبیر ئے دَ هغې پہ اندازہ بہ روزی او نعمت ورتہ رسیږی۔ کہ اووینی چہ دَدۀ خلہ بندہ دہ تعبیر ئے خبرے بہ ئے نیکے وی۔ کہ اووینی چہ غونښہ ئے پریوتے دہ۔ تعبیر ئے دۀ تہ بہ تاوان رسیږی کہ اووینی چہ دَ خُلے نہ ئے وینہ راوتلے دہ تعبیر ئے دَچا سرہ خبرے اترے کوی۔

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائی کہ اووینی چہ دَدۀ دَ خُلے نہ چینجی یا خُناور راوتے دے تعبیر ئے یو بچے بہ ورنہ جدا شی۔ اوکہ اووینی چہ دَخُلے نہ ئے پلیتی راوتے دہ تعبیر ئے چہ کوم بندہ سلوک ئے کړے وی دَ احسان کولو سرہ بہ ئے خرابوی۔ اوکہ اووینی چہ دَخُلے نہ ئے ملغلرے پریوتے دی او خلکو راخستے دی تعبیر ئے خلک بہ دَدۀ دَ علم نہ برخہ مومی۔ کہ اووینی چہ دَخپلے خُلے نہ پہ خپلہ کتنی کی غورزولے دہ او خلک ورتہ تښتیدل تعبیر ئے داسے سړے بہ شاعروی او دَخلکو بدی بہ بیانوی کہ اووینی چہ خلکو دَدۀ خُلہ باندِ چا مهر لګولے دی او مهر لګوونکے نہ پیژنی تعبیر ئے شرمندہ بہ شی۔ دَ اللہ تعالیٰ کلام دے (اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَآ اَيْدِيْهِمْ وَتَشْهَدُ اَرْجُلُهُمْ) ترجمہ: نن بہ زۀ دَدوئ پہ خلو مُهر ولګوم او ما سرہ بہ دَدوئ لاسونہ خبرے کوی او دَدوئ خپے بہ ګواهی ورکوی۔

حضرت حافظ معبر فرمائی، کہ اووینی چہ دَدۀ دَ خُلے نہ څۀ بندہ شے راوتلے دے تعبیر ئے داسے خبرے بہ کوی چہ بندہ معنی بہ لری او کہ دَ دے خلاف اووینی تعبیر ئے هم دَدے خلاف دے۔ کہ اووینی چہ څۀ شے ئے پہ خُلہ کښے ایښے دے او هغہ شے بندہ دے تعبیر ئے څۀ حلال شے بہ خوری۔

حضرت امام جعفر صادق فرمائی پہ خوب کښے دَخُلے لیدل پہ اووۀ وجو وی (۱) منزل (۲) خزانہ (۳) دَ کارونو فراختیا (۴) مال (۵) حاجت (۶) وزیر (۷) دریا

## خ دَ خرخے پھرکی۔ (بادریسہ)

حضرت کرمانی فرمائیلی دی کہ ښځہ اوګوری چہ دے بادریسہ پیدا کړے او، یا چا ورتہ ورکړے دہ، تعبیر ئے دے تہ بہ خادم او یا وینزہ حاصلہ شی۔ او کہ ښځہ اوګوری چہ دَدے دَ خرخے دَ تکلے نہ پھرکی پریوتہ تعبیر ئے دَدے مینہ بہ دَ خاوند نہ واوړی۔

**څادر (وردہ)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کہ په خوب کښې اوګوری چه دَ دښمن په لاس کښې قبضه شوے دے تعبیرئې په دښمن به کامیابیږی۔ او هغه به مغلوب وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه دَ څادرخرخولو کار کوی لکه غلام او وینزه تعبیرئې دۀ ته به خیر او نفع رسیږی۔ که اوګوری چه څادرئې دَ کافرونه اخستی دے او یائې اخلی تعبیرئې بد دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که غلام وو او څادرئې اخستے وی تعبیرئې بد دے او که خرڅ کړےئې وی تعبیرئې نیک دے او که غلام وو خرڅ کړےئې وی او بیائې اخستے وی تعبیرئې په دښمن به کامیابی مومی۔ که اوګوری چه غلامئې او تښتیدلو۔ تعبیرئې نیکی ده او که وینزه او تښتیده تعبیرئې بد دے او څادرخرخوونکے هغه سړے دے چه دَ خلکو اختیارمندی لټوی۔

**څادر (بُرد)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په ټولو کښې ښهٔ جامه څادر دے۔ که اوګوری چه دَدهٔ څادر دَ سوترو دے او دواړه او ښځه دَ غاړے ئې شنے او سپینے دی او یائې دَ سوترو نوے جامه اغوستے ده۔ تعبیرئې دَ نعمت فراخی به بیا مومی۔ او چه څومره ښهٔ جامه وی دَ هغې په اندازه به خیر او نفع ورته ورسیږی۔ او که اوګوری چه جامهئې تنګه تروشه ده او ښځهئې اسمانی رنګه دی۔ دَدے تعبیر به دَدے خلاف وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی څادرخرخوونکے داسے یو سړے دے چه دین ئې په دُنیا غوره کړے وی خاصکر چه څادرئې دَ وړئ نهٔ وی۔ او که اوګوری چه په دے کښې ریښم دی تعبیرئې دے به دَدُنیا او دَ دین دواړو طلبګار وی۔

**څادر** حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی څادر دَ ښځے ستر او پرده ده که اوګوری چه دَ ښځو په شان ئې په خوب کښې لیدل څادر اغوستے دے تعبیرئې په دے کار کښې به ئې کار به بدګټری۔ که څوک اوګوری چه څادرئې شلیدلے دے او یا سوزیدلے دے تعبیرئې هغه وخت به دَدهٔ پرده لرے کیږی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائیلی دی څادر دَ ښځے په خوب کښې لیدل ښځه ده که اوګوری چه دهٔ سره دَ ښځے څادر دے او، یا ورته چا ورکړے دے تعبیرئې نوے ښځه به کوی۔ او که اوګوری چه نوے څادرئې

اخستے دے، تعبیر ئے وینزه به واخلی او دَ هغے نه به ئے بچی پیدا شی.
او که هم دغه خوب ښځه اوګوری تعبیر ئے دا به خاوند کوی. که ښځه اوګوری
چه دَ شپے ئے څادر سوزولے دے. تعبیر ئے یا به ئے خاوند مړ کیږی او
یا به ورته طلاق ورکوی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، څادر په خوب کښے په درے۳
وجو وی (۱) قدر او مرتبه (۲) ښځے ته خاوند (میړهٔ) او سړی ته ښځه (۳) کور
او سرداری.

## دَ شال څادر

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی، دَ شال لیدل تعبیر ئے
بزرګی (مشری) قدر او مرتبه ده. که اوګوری چه نوے او پاکیزه شال دے
تعبیر ئے، مرتبه به ئے زیاته شی. او که دَ دے خلاف (بالعکس) ئے اوګوری
تعبیر ئے، مرتبه به ئے کمه شی. او که اوګوری چه شال ئے شلیدلے او یا
سوزیدلے دے تعبیر ئے څوک خپلوان به ئے مړ کیږی.

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی، دَ شال لیدل په خوب کښے امانت
دیانت او دَ دین قوت دے. که اوګوری چه شال نوے او پاک وو. تعبیر
ئے امانت به ادا کړی. او که شال ئے خیرن وو. تعبیر ئے امانت به
ئے په غاړه کښے پاتے کیږی (ادا به ئے نه کړی.) که اوګوری چه زیړ څادر
ئے اخستے دے تعبیر ئے په سخت غم کښے به ګرفتار کړے شی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی، سپین شال لیدل په خوب کښے دا
یو مصلح ځوی دے او که سور اوګوری تعبیر ئے دَ دهٔ ځوی به عیاش او
سازبه ئے خوښ وی. او که تور څادر اوګوری تعبیر ئے ځوی به ئے عالم یا
قاضی او یا خطیب شی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، شال لیدل په خوب کښے
تعبیر ئے په لسو وجو وی (۱) عزت او مرتبه (۲) ولایت (۳) ځوی (۴) دولت
(۵) سرداری (۶) مال (۷) نفع (۸) علم (۹) دین (۱۰) نور ه

## خیړئ

دا یوه دَ غرهٔ ونه ده. حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی
دَ خیړئ ونه په خوب کښے لیدل تعبیر ئے حلاله روزی ده
چه څومره ئے خوړلے وی که اوګوری په خوب کښے چه دَ دهٔ په کور کښے دَ
خیړئ ډهیرے پروت دے. تعبیر ئے دهٔ ته به په دے کال کښے ډیر نعمتونه

حاصل کړے شي۔ او که اوګوري چه دا څیړۍ ذدهٔ ملکیت دے او دبل
چا په کور کښې ولاړه ده. تعبیر ئے خلک به ذدهٔ سره امانتونه اږدي.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دي، ذ څیړۍ لیدل په خوب
کښې په دریو وجو وي۔ (۱) حلال رزق (۲) نفع (۳) ښځه ژوند

## څرمن

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دي، ذ انسان ذبدن پوستکے
په خوب کښې لیدل ذ اوسیدلو ځائے او ذ خلکو کورودانی ده.
حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دي، ذ انسان څرمن، ستر، مال، برکت دے
که څوک خپله څرمن پورته شوے او، یا پریوتے اوګوري تعبیر ئے ذدهٔ پرده
او راز به ظاهر شي او مال به ئے هلاک شي۔ او که خپله څرمن توره او
یا شنه اوګوري تعبیر ئے غم او فکر به ورته رسیږي۔ او که اوګوري چه
ذ پښو څرمن ئے روښانه ده۔ تعبیر ئے خوب لیدونکی مراد به پوره شي
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دي، ذ ټولو چارپایانو (ځناورو) پوستکے لیدل
په خوب کښې مال دے او ذ اوبښ څرمن لیدل ذ لوئے سړي میراث دے او
ذ ګډ څرمن لیدونکی ذ پاره روزي ده او که ذ ښنے ونے څرمن اوګوري
تعبیر ئے لیدونکے به روژه دار دي۔ او که اوګوري چه ذ ځناورو څرمن
ئے ویستلے ده، تعبیر ئے ذ کوم سړي سره ئے چه نسبت دے ذ هغهٔ نه به مال
او مومي او که اوګوري چه ذ پوستکو ذ پاره ئے کور جوړ کړے دے تعبیر ئے، که
دا سړے قصاب وي ذده په کور کښې به دیوال جوړیږي۔ او که معلم (ټیچر)
وي نو ماشومانو باندے به ظلم کوي۔
حضرت مغربیؒ فرمائیلی دي، که خوب کښې اوګوري څوک چه زوړ پوستکے
کوزوي تعبیر ئے هغه سړے به ذ زړو شیانو په جوړولو کښې۔ وخت
مصرف کوي او ذ بادشاه قاصد به جوړیږي کله چه امیران او ذ بادشاه ذ لښکر
سرداران په ډیرو کارونو کښې بادشاه سره خلاف کوي۔

## څرمن رنګول

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دي، رنګ کول
په خوب کښې ذ شغل پریښودل او ذ فرمان جاري
کول دي۔ که خوب کښې اوګوري چه رنګ سازي ئے کړے ده، تعبیر ئے ذ
څرمنو رنګولو پیشه به اختیار کړي.
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی، رنګ سازي په خوب کښې میراث دے

او پوستکے وراثت دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی چه رنگساز په خوب کښے دا سے سړے دے چه دَ وراثت صلاح کار دهٔ پورے متعلق وی۔

**دَ څرمنے تسمه۔(دوال)** حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی په خوب دوال لیدل دَ خیرا و نفع تعبیر لری په قیمت دَ هغه څنا ور دَ ځانه چه تسمه جوړه شوے ده۔ او که اوګوری چه څرمن ئے ټوټے کړے او یا ضائع شوے ده تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به نقصان ورته رسیږی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری په خوب کښے چه ډیرے تسمے ورسره دی او دا دَ هغه څنا ورو دی چه غوښه ئے حلالے دی تعبیر ئے حلال مال به بیا مومی او که دَ دے خلاف اوګوری تعبیر ئے حرام مال به بیا مومی۔

**څرخه** حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی دَ څرخے لیدل په خوب کښے تعبیر ئے لور ده که سړے اُوګوری چه دهٔ څرخه اخستے ده او په هغے کښے دواړه پهرکی دی، تعبیر ئے جینئ به په نکاح ورکوی که اوګوری چه څرخه ماته شوے ده تعبیر ئے دَ دهٔ لور یا خور به دُنیا نه سفر کوی

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی' دَ څرخے لیدل په خوب کښے مسافر سړے دے۔ او که ښځه اوګوری چه څرخه ئے اخستے ده او' یا چا ورکړے ده تعبیر ئے دَ مسافر سړی سره به نکاح کوی او که اوګوری چه دَ څرخے نه ئے پهرکی غوزنه یدلی دی، تعبیر ئے دَ دهٔ دَ ښځے مینه به دَ خاوند سره کمه شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که خوب کښے اوګوری چه دے څرخه سموی تعبیر ئے غم‌زن به شی او که همدا خوب ښځه اوګوری تعبیر ئے بیغمه به وی' دا هم وائی چه څرخه دلاله ښځه ده۔

**څیر** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی په خوب کښے دَ څیر لیدل کمینه بادشاه دے۔که اوګوری چه دَ څیر لاندے ناست دے تعبیر ئے دَ همدغه شان بادشاه خدمت به کوی او که اوګوری چه څیر ور باندے را پریوتے دے او څهٔ تکلیف ورته نهٔ دے رسیدلے تعبیر ئے بادشاه به په دهٔ غصه کوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که څیر په خوب کښې اوګوری چه دَوړې او یا دَ سوترو دے او سپین یا شین رنګ ئے وو تعبیر ئے دَ ظالم بادشاه خدمت به کوی۔

## څۀ شے سوالی ورکول

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه چا څۀ شے چا ته ورکړو که هغه شے دَدۀ خوښ وی تعبیر ئے دَ دواړو دَ مینې او محبت دے او که هغه شے نۀ خوښوی تعبیر ئے دَدے خلاف دے.

## څټ

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی په خوب کښې دَ څټ لیدل تعبیر ئے امانت او دَدین ځائے دے او که اوګوری چه څټ دَدۀ غټ شوے دے تعبیر ئے دے به دَ امانت ادا کولو کښې قوت او دَ دین حفاظت کښې دیانتدار وی او که اوګوری چه دَدۀ څټ ضعیف او کمزورے شوے دے تعبیر ئے امانت واپس ورکولو کښې به کمزورے وی. او که اوګوری چه مار دَدۀ دَ څټ نه تاؤ شوے دے. تعبیر ئے دَ مال زکوٰة به ئے نۀ وی ورکړے. دَ الله تعالیٰ کلام دے۔ (سَیُطَوَّقُوْنَ مَا بَخِلُوْا بِهٖ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ) آل عمران ۱۸۰:- ژ: دے چه هغه مال چه دوی به ورباندے بخل کولو دَ قیامت په ورځ به ئے په غاړو کښې امیل شی. او که خپل څټ درون اوګوری او حال دا چه دَدۀ په څټ څۀ شے نشته، تعبیر ئے بیمار به شی.
او که اوګوری چه په څټ ئے پیټے دے او دَدے درون والے نۀ محسوسوی تعبیر ئے دَ دین درستوالے او دَ اوږد عمر دے.
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه څټ ئے غټ او قوی شوے دے. تعبیر ئے امانت به په ښۀ شان سره ادا کوی او دَدۀ کار به قوی وی او که خپل څټ اوږد اوګوری تعبیر ئے دَدۀ په ذمه به امانت ډیره موده وی او دَ خپلے ګواهی نه به منع شی. او که خپل څټ لنډ اوګوری، تعبیر ئے خپل امانتونه به ډیر زر ورکړی او که خپل څټ تور اوګوری تعبیر ئے امانت نه به پاتے شی او په دین کښې به ئے نقصان راشی ځکه چه هیڅ امانت دَ دین نه لوئے نۀ دے. او که خپل څټ لنډ اوګوری تعبیر ئے امانت کښې به خیانت کوی. او که په خپل څټ ډیښتان اوګوری تعبیر ئے دَ امانت ادا

کولو سره به قرضدار شي. او که اوګوري چه د خپل غټ نه ئې وینته لرے کړي دي تعبیر ئے د قرض نه به خلاص شي او که د غټ نه غوښه پریکړي اوګوري تعبیر ئے چه د چا مال ورسره وي ضائع به شي. او که خپل غټ لنډ اوګوري تعبیر ئے هغه امانت چه ورسره دے خیانت به پکښے کوي.

حضرت مغربيؒ فرمائیلي دي، که اوګوري چه د خپل غټ غوښه خوري تعبیر ئے د دے برعکس دے. او که اوګوري چه د چا په غټ ناست دے تعبیر ئے په دښمن به کامیابیږي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي د غټ لیدل په خوب کښے په پنځو وجوه وي (۱) امانت (۲) قوت او مضبوطوالے (۳) خیانت (۴) قرض (۵) بیماري

## غټ په خوب کښے لیدل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي. که څوک په خپل غټ وینښته اوګوري. تعبیر ئے قرضدار به شي، او که اوګوري چه د غټ نه ئے وینښته خرئیلي دي تعبیر ئے د قرض نه به خلاص شي او که اوګوري چه په غټ چا ښپیړه وهلے او پرسیدلے دے تعبیر ئے دهٔ نه به د دهٔ د سرو نه فائده وي او که اوګوري چه چا بیګانه سړي ئے په غټ ښپیړه ورکړے ده تعبیر ئے چه دے به د بیګانه سړي نه نفع او مومي.

حضرت ابراهیم کرمانيؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه چا دهٔ په غټ ښپیړه ورکړه چه د هغے نه وینه جاري شوه تعبیر ئے دے به په چا دعوی کوي او نقصان به اوچتوي او که اوګوري چه دهٔ خپل غټ خیرے کړے دے تعبیر ئے، دهٔ سره به د دهٔ عیال خیانت کوي او که اوګوري چه په خپل غټ ئے خکر لګولے دے تعبیر ئے څهٔ شے به اخلي او د هغے به ضمانت نامه لیکي.

حضرت جابر مغربيؒ فرمائیلي دي او که اوګوري چه د دهٔ مخ روستو دے تعبیر ئے چه دے به د خلکو سره منافقت کوي.

## غټ پریکول۔ (ګردن زدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه غټ ئے پریکړے شوے دے او سر ئے د تن نه جدا شوے دے تعبیر ئے که غلام وي...

نو ازاد به شي، او که قرضدار ه وي نو دَ قرض نه به خلاص شي او که یره لري نو امن کښې به شي او که کافر ئے او ګوري نو مسلمان به شي.
او که دَ تخت پریکولو وخت کښې دَ دهٔ سر دَ وجود نه جدا نشو تعبیرئے دَ دے برعکس به وي. او که تخت پریکو ونکے دَ پیژندلو والا سړے وو نو کوم تعبیر چه پورته بیان شو تخت پریکړي ته به حاصل شي. او که تخت پریکو ونکے معصوم او نابالغ سړے وي تعبیرئے که بیمار وي نو مړ به شي.
حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي که تخت پریکو ونکے سړے تندرست ازاد او مالدار وي تعبیرئے دَ نیک بختئ نه به بدحالئ ته راشي. او مال او نعمت به ئے پاتے نشي او غریب به شي او دَ کارونو انجام ئے هلاکت دے خلاصه دا چه دَ فقیرانو او خواري کښو په خوب کښې تخت پریکول نیک دي او دَ مالدار او دَ نعمتونو خاوندانو دَ پاره بد دے.

## دَ خادر خرخول۔ (نخاسی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که او ګوري چه دَ خادر خرخولو کار کوي تعبیرئے نهٔ کیدونکے خبرے به کوي او په دروغه به قسمونه خوري، او خادر خرخول په خوب کښې لیدل هیڅ فائده نهٔ لري.

## خاروي (څناور)۔ (چهار پائے)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي. که څوک په خوب کښې او وینې چه خاروي ئے نیولي دي او هغه خاروي دَ دهٔ تابع وو. تعبیرئے دَ ځنګلي سړي نه به دَ هغه خاروو دَ قیمت په اندازه نفع ورته ورسیږي. که او ګوري چه دَ صحرا او ځنګلي خاروو رمه ورته راغله او دَ دهٔ تابعداره شوه. تعبیرئے هغه ډله چه دَ دوئ خائے په ځنګل کښې وي دَ دهٔ تابعدار به شي.
حضرت کرمانیؒ فرمائي، که او ګوري چه دَ ځنګلي خاروو سره مینه کوي تعبیرئے دَ پوهو خلکو خدمت به کوي.
حضرت مغربیؒ فرمائي که څوک خوب کښې او وینې چه دَ دهٔ نه خاروے جوړ شوے دے تعبیرئے عقل به ورنه لاړ شي. او که او ګوري چه خاروو ورسره خبرے کوي تعبیرئے لوئے سړے به شي. او که او ګوري چه دَ خاروي غوښه خوري، تعبیرئے دَ هغے په اندازه به مال مومي.

## "ځ"۔ دَ ځناورو آوازونه اوریدل

حضرت محمد بن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښې دَ خلکو او ځناورو

اوازونه اوریدل تعبیر ئے، غم او مصیبت دے په هغه ځائے کښې.
اوکه اوګوري چه ډه ته دَ لرے نه څوک اوازکوي که جواب ئے ورکړو تعبیر ئے
دادے چه زړا به مرشي اوکه اوګوري چه جواب ئے ورنکړو نو تعبیر ئے
دادے چه بیمار به شي اوکه اوګوري چه دَ زړا آواز راځي تعبیر ئے
خوشحاله به شي او یا به وي. اوکه اوګوري چه ډه فریاد واورېدل تعبیر
ئې ناخوښه خبره به واوري. اوکه اوګوري چه دَ زارئ اواز ئے واورېد و
تعبیر ئے، حاجت به ئے پوره کړے شي، او په دښمن به کامیاب شي اوکه
دَ کنځلو اوازئے واورېدو تعبیر ئے، بد والے به ورته رسیږي اوزړه به لرے کړے شي
حضرت کرماني فرمائیلي دي که اوګوري په خوب کښې چه دَ اُشپے اوازئے واورېدو
تعبیر ئے، ډه ته به دَ خوشحالۍ زیرے ورسیږي او ځنے معبران وائي، ډه ته به
لږ غوندے ضرر او تکلیف رسیږي ځکه چه ځناور دروغ نه وائي. اوکه دَ
خراواز واوري. دَ الله تعالیٰ کلام دے (اِنَّ اَنْکَرَ الْاَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِیْرِ) (لقمٰن ۱۹)
ترجمه: بیشکه دَ ټولو نه خراب آواز دَ خردے.
اوکه اوګوري چه اوښ اوازکوي، تعبیر ئے ځ ته به لاړشي او یا دا سے تجارت
ته لاړشي چه په هغے کښې به نفع اوګټه ورته رسیږي.
اوکه اوګوري چه ګټ اوازکوي تعبیر ئے دَ کوم لوئے سړي نه ورته نفع او خیر رسیږي.
اوکه اوګوري چه دَ چیلي بچي نه ئے آواز واورېدو تعبیر ئے خوشحالي، ښادي
او نعمت دے اوکه اوګوري چه اوسئ اوازکوي تعبیر ئے ویېره به ورته
حاصله کړے شي. اوکه اوګوري په خوب کښې چه زمرے اوازکوي تعبیر
ئے، دَ بادشاه نه به خوف او ترس موهي. اوکه اوګوري چه دَ شرمخ اوازئے واورېدو
تعبیر ئے په جنګ او جګړه کښې به ګرفتار شي. اوکه اوګوري چه اوسئ تختیدو
کښې آوازونه کوي تعبیر ئے څوک به پرے غصه کیږي او څوک به وریاندے خپل لوي
ښکاره کوي. اوکه اوګوري چه لیوه اوازکوي تعبیر ئے په دښمن به کامیابي
حاصلوي. اوکه اوګوري چه ګیدړ اوازکوي تعبیر ئے غم او اندیښنه دَ
ښځو دَ طرفه. اوکه اوګوري چه لومبړه اوازکوي تعبیر ئے کوم دروغژن سړے
به ورسره چل او دهوکه کوي. اوکه اوګوري چه پیشو اوازکوي تعبیر ئے ډه ته
به دَ غل نه ویره وي. اوکه اوګوري چه شترمرغ اوازکوي تعبیر ئے زړور
خدمتګار به ورته راشي. اوکه دَ چرګ اوازواوري تعبیر ئے، دَ لرے سړي

دَ خبر نه به غمژن شی. اوکه اوګوري چه دَ وړوکی ګونګی اواز واوري تعبیر ئے دَ غم او مصیبت اواز به واوري او که دَ غټ ګونګی اواز واوري تعبیر ئے همدا دے. اوکه دَ ګوګوشتو اواز واوري. تعبیر ئے دَ دروغ خبر به واوري او که دَ زړک اواز واوري تعبیر ئے دَ خاشته ښځے خبر به واوري او که دَ طاوس آواز واوري تعبیر ئے دَ عجمی بادشاه آواز به واوري او که دَ زانړے آواز واوري تعبیر ئے دَ نیکے ښځے خبر به واوري او که دَ پېرزو کانو آواز ونه واوري تعبیر ئے دَ پرده نشینے ښځے خبر به واوري. او که دَ کارغۀ آواز واوري تعبیر ئے دَ حرام خور سړي خبر به واوري او که مرغی آواز واوري تعبیر ئے زیرے به واوري او که دَ بلبل نغمے واوري تعبیر ئے دَ ساز غږوونکی او یا په مړو ژړا کوونکی (نوحه) آواز به واوري. او که دَ اوښنے آواز واوري، تعبیر ئے، دَ ساز غږونکی او، یا دَ نوحه ګر آواز به واوري. او که دَ مرغابی آواز واوري تعبیر ئے دۀ ته به غم او فکر رسیږي او که دَ بطے آواز واوري تعبیر ئے دَ دۀ په اهل کښے به په تکلیف او مصیبت راځی. او که دَ چرګے دَ بچو (چرګوتو) آواز واوري، تعبیر ئے، ماتم او مصیبت به ورته رسیږي.

حضرت امام جعفر صادق[ؒ] فرمائیلی دي، دَ ټولو مرغانو آواز په خوب کښے آوریدل نیک دي مګر دَ هغه مارغۀ چه دَ هغے آواز بد فال ګنړلے شی ځکه چه دَ دۀ آواز غم او مصیبت دے او دَ مار آواز ترس او ویره دۀ دَ دښمن نه مګر دَ مچی او دَ ملخ آواز په ویره او په خوف تعبیر لري. او دَ چمچوړی آواز تعبیر ئے دے به چرته کوزیږي.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دي. که خوب کښے اوګوري چه دَ آسمان یا دَ زمکے او یا دَ هوا نه خوفناک آواز راځی تعبیر ئے په بادشاه دَ خوف یرے او مصیبت راتلل لري او دَ هرڅنګه دَ خیر او دَ شر تعبیر ورکوونکی دي.

**قصه** نقل شوي دي چه یو سړے دَ ابن سیرینؒ په خدمت کښے پیش شو او، وے وئیل چه په خوب کښے م ولیدل چه یو ځناور راغلو او ما سره ئے خبرے وکړے. حضرت ابن سیرینؒ ورته جواب ورکړو چه ستا مرګ قریب شوے دے. دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَابَّةً مِّنَ الْأَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ أَنَّ النَّاسَ) النمل ۸۲:. او که چه په دوئی حکم واقع شي دَ هغوي دَ پاره چار پایه راوباسم چه دَ دوئ سره به خبرے کوي. او چه هغه

هفته پورې شوه هغه سړی دَ دُنیا نه سفر وکړو.

## ځنګل

حضرت دانیال[ع] فرمائیلی دی، ځنګل په خوب کښې دَ خپلې فراختیا په اندازه قسمت او رزق دے. که اوګوری چه په ځنګل کښې یوازې دے تعبیرئې دَ خپلې کټې نه به سامان راجمع کړی. که اوګوری چه دَیوے ځلے سره په ځنګل کښې ګرځی تعبیرئې دَخپل سفرنه به ډیر مال حاصل کړی او روزی به وریاندے راکُهلاوه شی.

حضرت ابن سیرین[رح] فرمائیلی دی که یو سړے اوګوری چه دَځنګل نه راوتے دے تعبیرئې دَغم او فکرنه به خلاصے بیاموهی او که اوګوری چه بیابان ته ورغلے دے تعبیرئې محتاجه او غمژن به وی.

حضرت امام جعفرصادق[رض] فرمائیلی دی په خوب کښې دَځنګل لیدل په څلورو وجووی (۱) رزق او قسمت (۲) افسوس او پریشانی (۳) دښمنی او غم (۴) یره او ډارا و دَهلاکت خطره مکوزه به ورنه خلاصے بیاموهی.

## ځنګل۔ (صحرا)

حضرت ابن سیرین[رح] فرمائی، په خوب کښې ځنګل او بیابان لیدل دَ بادشاهانو دَطرفه نیکی اوخوشحالی ده دَصحرا دَ لویوالی او وړوکوالی په اندازه که چرے بے اندازے ځنګل اوګوری او هغے کښې شینولے اولرګی اوګوری او ځان پکښې په ګرځیدو اوګوری تعبیرئې، دَ ده ملګرتیا به دَ ظالم بادشاه سره وی او دَهغه مقرب به شی۔ او که چرے ځنګل شین اوګوری، تعبیرئې دَ ده ملګرتیا به دَ عالم او بنه سړی سره وی۔ او هغه نه به فائده موهی.

## دَ ونو ځنګل

حضرت ابن سیرین[رح] فرمائیلی دی په خوب کښې دَ ونو ځنګل لیدل ښځه ده. که اوګوری په خوب کښې چه ځنګل ته لاړے او ځنګل دَونو نه ډک دے او میوه دارے ونے پکښې دی او میوه ئې ترے نه اوخوړله تعبیرئې داسے ښځه به کوی چه اصل ئې ځنګلی وی او یا به داسے ویتزه اخلی چه دَ هغے روزنه په ځنګل کښې شوے وی او دَ هغه ښځې نه به خیراو نفع ورته ورسیږی او که ځنګل دَ دے نه خالی اوګوری تعبیر ئې شراو نقصان دے۔ او که اوګوری چه دَهغه ونو په ځلئې دَازغووے دی اودَ ازغونه ورته تکلیف ورسیدو، تعبیرئې دَ ښځو په سبب به ورته غم ورسیږی

حضرت امام جعفرصادق[رض] فرمائیلی دی، دَځنګل لیدل په خوب کښې په

ځلور۴ و وجوه دی (۱) ځنګلي ښځه (۲) ویښنزه (۳) نقع (۴) غم او فکر

## ځیګر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي ځیګر په خوب کښې هغه پټ مال دے، که د سړي ځیګر او وینې تعبیر ئے هغه پټ مال به بیا مومي او خرچ به ئے کړي. که اوګوري چه ډیر پاخهٔ او یا سرهٔ کښې ځیګرونه ورته حاصل شوي دي او یا کچه زړونه ورته حاصل شوي دي تعبیر ئے خزانه به بیا مومي. او د غوا او د ګډ ځیګر په مال او په نعمت تعبیر لري. ځنې معبران وائي چه د ځیګر لیدل تعبیر ئے په اولاد دے لکه څنګه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي (اَوْلَادُنَا اَکْبَادُنَا) ترجمه:- اولاد و نه ځمونږ ځیګرونه ځمونږ دي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي په خوب کښې د ځیګر ویستل او یا ظاهریدل تعبیر ئے پټ مال دے چه پیدا به شي ډیر ځیګرونه پاخهٔ او یا کچه تعبیر ئے د خزانے موندل او د غیب علم دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، د ځیګرونو لیدل په خوب کښې په درې۳ وجوه دي (۱) اولاد او مال (۲) هغه دوست لکه د ځوي په شان دي (۳) علم - که اوګوري چه ځیګر ئے د کور نه بهر ویستلے دے یا ځیګرونه او سوزولي دي۔ تعبیر ئے بادشاه به د دهٔ مال خزانے ته ستون کړي او که دا خوب عالم اوګوري تعبیر ئے ټول علمونه به هیر کړي۔

## ځوان کیدل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، که یو سړے اوګوري په خوب کښې چه ځوان شوے دے او سپین ویښته ئے شوي دي تعبیر ئے کمینه به وي. او که نا معلوم ځوان اوګوري تعبیر ئے د دښمن نه به خوارشي او مراد به ئے نهٔ پوره کیږي۔

او که اوګوري چه ځوان بوډا شوے دے تعبیر ئے عزت به ئے زیات شي. او په داسے خوب کښې ښځے هم د سړو په شان دي۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلي دي که ځوان سړے خوب کښې اوګوري چه سپین ګیرے شوے دے تعبیر ئے علم او ادب به زده کړي او د دے بیان به حرف میم کښې راشي۔

## ځنګلي توت. (خرتوت)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي ځنګلي توت په خوب کښې لیدل داسے سړي ته چه مال به په سختئ سره لاس ته راوړي او خوري به ئے. او که اوګوري چه د دهٔ

ځنګلي توت په لاسونو راجمع کړې دې. تعبیرئې د بخیل سړي نه به د ډېرې په اندازه مال حاصل کړي. او که اوګوري چه خرنوت په اور سوزیدلې دې تعبیرئې، بادشاه به د ده مال ... او... ملکیت لوټ کړي.

## حلوئ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، په خوب کښې حلوئ لیدل بې اندازې کوشش او د ډیر مال او د خوشحالي تعبیر لري او که اوګوري چه د ځ سره حلوئ ده دي تعبیرئې د ډېرې په اندازه به مال حاصل کړي. او که اوګوري چه لړې غوند ې حلوئ ورسره دي او یائې په خُله کښې ایښې دي تعبیرئې د چانه به د خوشحالي خبره واوري.

حضرت مغربيؒ فرمائیلي دي که بې زعفرانو حلوئ ئې خوړلي دي تعبیر ئې په هغه اندازه به مال بیا مومي. او که اوګوري چه د زعفرانو سره ئې خوړلي تعبیرئې، بیمار به وي.

## ځوئ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که یو سړې اوګوري چه جینئ شوې ده. تعبیرئې خیر او راحت به ومومي او د کور خلک به ئې خوشحاله شي. او که اوګوري چه ځوي ئې پیدا شوې دې، تعبیرئې لور به ئې وشي. او که اوګوري چه جینئ شوې ده تعبیرئې ځوی به ئې پیدا شي. او که اوګوري چه لورئې شوې ده تعبیرئې ځوی به ئې پیدا کیږي.

حضرت مغربيؒ فرمائیلي دي که خوب کښې اوګوري چه د ده هلک وو اوچا وتښتولو تعبیرئې، بیمار به شي.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلي دي. که اوګوري په خوب کښې چه ده هلک پیدا کړو او یا ورته ورکړو تعبیرئې د کوم ځاي نه چه ئې امید نه وو، نو د هغې نه به څه ورته ورسیږي.

## ځنګلي غوایهٔ

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي، ځنګلي غوایهٔ په خوب کښې لیدل مالداره سړې دې د ډیر مال سره که اوګوري چه په ښکار کښې ځنګلي غوایهٔ نیولې دې تعبیرئې په هغه اندازه به مال او نعمت بیا مومي. که اوګوري چه دوه غوایان ځنګلي د یو بل سره جنګ کوي تعبیرئې، د وه بدکاره خلک به خپل منځ کښې جنګ کوي. او ځنګلي ښځه غوایه خوب کښې لیدل ښځه ده. که اوګوري چه د ځنګلي ښځې غوا غوښه خوري تعبیرئې د ښځو د طرفه به مال اومومي. او که اوګوري

چه ځنګلي سخه نیولے دے تعبیر ئے څوک به نے پیدا شي۔

حضرت مغربي فرمائیلي دي چه د ځنګلي غویٔ غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے مضبوطوالے او دولت به پیا مومي. او که اوګوري چه د ځنګلي غویٔ ډیرے ښکرے دي تعبیر ئے د هغه ښکرو په اندازه به قوت او دولت بیا مومي۔

## ځانګو، تهال۔ (مهد)

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي که اوګوري چه په ځانګو کښے ناست دے او خوب لیدونکے د دے لائق دے، تعبیر ئے خوشحالي، اساني او عیش عشرت دے او ډیرے او ډار او خطرے نه په امن کښے شي. که اوګوري چه د ځانګو نه پریوتے دے تعبیر ئے د دے خلاف دے۔

حضرت کرماني فرمائیلي دي، که اوګوري چه په ځانګو کښے ناست دے تعبیر ئے مهربانه ښځه به اوکړي او یا به ښکلے وینزه واخلي او ځنومعبرانو وئیلي دي ځانګولیدل په خوب کښے د ارام ځائے، عزت، مرتبه ده ځنه چا د پاره چه هغه د دے لائق وي او هغه څوک چه د دے لائق نه وي تعبیر ئے بیا زندان او جیل دے۔

حضرت امام جعفر صادق فرمائیلي دي، د ځانګولیدل په خوب کښے په اتو وجوو دي (۱) ارام او اساني (۲) عیش او عشرت (۳) عزت (۴) دولت (۵) مرتبه (۶) امن کښے کیدل (۷) وینزه (۸) ښځه او ځانګولیدل په خوب کښے د ښځو د پاره په څلورو وجوده (۱) زندان (۲) تنګ ځائے (۳) غم او فکر (۴) تکلیف او خفګان۔

## ځنګلي څاروي

چه ځنګلي څاروي وي چه څومره نروي د سړو دلیل دے او چه څومره ښځے وي په ښځو دلیل دے۔

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي، که اوګوري چه د ځنګلي څارو ښکار کوي او یا ځنګلي څاروي چا ورته ورکړي دي تعبیر ئے په مال او په نعمت دے او د غوښے او د پوستکي ئے هم دغه تعبیر دے۔

حضرت کرماني فرمائیلي دي که اوګوري، چه ځنګلي څاروي ئے تابعدار شوي دي تعبیر ئے لکه څنګه چه حضرت سلیمان ته شوے دے تعبیر ئے یوه ډله ده چه په مسلمانانو کښے خلل دے د دوئ به تابعدار وي

خاصکر چه خوب لیدونکے پرهیزګاره وی۔

## "د" دُرشل۔ (چوکاټ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که
اوګوری چه دَ کور درشل ئے پورته شوے
ده۔ تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به مال او نعمت بیا مومی۔ همدارنګه شرف
او مشری به هم بیا مومی۔ که اوګوری چه دَ کور درشل ئے غورځیدلے دے،
تعبیر ئے، دَ رُتبے او درجے به پریوزی او دَ خلکو په وړاندے به ذلیل دی۔
که اوګوری چه دَ کور درشل نه ئے دَ باران په شان صفا اوبه راوریدلی دی تعبیر
ئے دَ هغے په اندازه به مال او نعمت دی۔ که اوګوری چه دَ درشلے نه ئے مار
یا لړم پریوتے دے، تعبیر ئے دَ بادشاه یا دَ لوے سړی نه به ورته غم او فکر ورسیږی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دَ کور درشل وربانده راپریوتے
دے او دے ورنه لاندے ګیر شوے دے تعبیر ئے دَدهٔ دَ پارهٔ به دَ هلاکت یره
وی۔ دَ الله تعالیٰ قول دے (فَخَرَّ عَلَيْهِمُ السَّقْفُ) ترجمه:۔ راپریوتو په دوی چت
که اوګوری چه دَ کور درشل ئے په رنګ نقشداره شوے ده۔ تعبیر ئے دَ
دُنیا په اراده او ژوند به مشغول شی۔

## درشل۔ (دهلیز)

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، په کور کښے درشل
خدمتګار دے، که اوګوری چه درشل ئے اباده
او جوړه ده تو بنسه دے تعبیر ئے په تندرستی او دَ خدمتګار په انتظام سره
دے۔ که اوګوری چه درشل ئے خرابه ده تعبیر ئے، دده په خلاف دے۔
حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دَ درشل ئے دیوال دَ ښځو او دَ لړکو
دے، تعبیر ئے که دَ لړکی او دَ ښځو وی، نو دَ خدمتګار په فاسد والی ئے تعبیر
دے۔ (خدمتګار به ئے فاسد او بے دینه وی)۔
په فارسئ کښے دَ سرداغ ته اصلع وئیل کیږی۔

## داغ (چه په سر وی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری
څوک دَ سرداغونو والا چه دَ سر ویښته ئے نکیدلی دی تعبیر ئے دهٔ ته به لږ
مال حاصل کړے شی۔ او که اوګوری چه دَدهٔ په سرداغ لږیدلے دے تعبیر
ئے دَ غم او فکر نه به خلاصے او مومی۔ او که ښځه اوګوری چه دَدے په سر
داغ لږیدلے دے، تعبیر ئے دَدے په ژوند او ښائست کښے به نقصان راشی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے په سرداغ لیدل دَ سود اګرانو

دَ پاره مفید دے اوکسب گرو خلکو دَ پاره کسب اوصنعت دے او بادشاهانو دَ پاره فکر او دَ ښځو دَ پاره دَ خائست کموالے دے.

## دولس برجونه

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی، چه دَ حمل، قوس، اسد لیدل دَ بادشاه لښکر دے او دَ ثور، سنبلے، جدی لیدل دَ بادشاه ځامن او دین دے او جوزا، میزان، دلو قاضی او دَ بادشاه وزیران دی، او دَ سرطان، عقرب، حوت لیدل دَ صاحب شرط او دَ بادشاه شرابدار لیدل دی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی. که څوک په خوب کښے حمل اوګوری تعبیر ئے دَ دهٔ کار به دَ مرتبے والا سړی سره وی او مراد به ئے پوره کړے شی. او که دَ ثور برج اوګوری تعبیر ئے دَ جاهل سړی سره به ئے کار پریوځی او حاجت به ئے پوره کړے شی. او که جوزا اوګوری تعبیر ئے دَ فصیح یا زبان دان سړی سره کار به ئے پیدا شی او حاجت به ئے پوره کړے شی. او که دَ سرطان برج اوګوری تعبیر ئے دَ بے اصله سره به ئے کار پریوځی او مراد به ئے پوره شی مرتبه او سرداری به بیا مومی. او که دَ سنبله برج اوګوری تعبیر ئے کار به ئے بے وفا زمیندار سړی سره پیدا شی او مراد به ئے نهٔ پوره کیږی. او که دَ میزان برج اوګوری دَ دهٔ به دَ قاضی سړی سره کار پیدا شی او هره وعده چه ورسره وکړی نو پوره به ئے کړی. او که عقرب اوګوری، تعبیر ئے دَ دښمن او یا دَ بد کارے ښځے سره به ئے کار پیدا شی او دَ دے نه به زحمت او تکلیف ورته رسیږی او غمژن به شی. او که دَ قوس برج اوګوری دَ دهٔ کار به سردار او لوے سړی سره پیدا شی او مراد به ئے پوره کیږی او خلک به ئے خوښوی.

او که دَ حوت برج اوګوری تعبیر ئے دَ دهٔ کار به ساده زړهٔ خاوند غریب سره او نیک رائے مهربان او کم خبرو والا سره وی او مطلب به ئے پوره کیږی.

## ډُپړی

په فارسئ ژبه کښے ورته طبل وائی، دَ دے لیدل په خوب کښے تعبیر ئے بد خبر او دَ دروغو خبره او ظاهر کار او روښانه دهٔ او دا تولے دَ دے په غړولو تعبیر لری.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه ډُپړی سره کړ هیږی او رقص کوی تعبیر ئے، غم، فکر او مصیبت دے. او که اوګوری چه صرف غږوی ئے تعبیر ئے باطله خبره به کوی او یا به بے فائدے کار کوی، چه دَ هغے په وجه به مشهوره شی. ځنے معبرین وائی چه ډُپړئ لیدل ښه

اواز دے مګر باطل دے۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که څوك اوګوری چه ډیرې وهی تعبیر ئے باطل کارونه به کوی چه دَ هغې هیڅ مقصد نه وی او دَ خلکو سره به داسے وعدے کوی چه ټولے به دروغژنے وی.
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی په خوب کښې ډیرې وهل داسے کار دے چه په بے عقلۍ سره وکړے شی او آخر به ئے ښکاره شی چه دا باطل دے۔ او ډیرې وهل په خوب کښے هغه سړے دے چه خوا بڼه او بنه دروغ وائی۔ او په باطن کښے غیبت کوونکے او خرابے خیر و کولو والا دے۔

## دارو

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی۔ که څوك اوګوری چه دَ بیمارئ دَ پاره ئے دارو خوړلی دی او دَ هغې موافق وی تعبیر ئے دَ نیکی تلاش به کوی۔ که اوګوری چه دارو ئے خوړلی دی او دَ هغې موافق نه وو تعبیر ئے دَ دین نیکی به ئے زائل کیږی۔ او که اوګوری چه دارو ئے دَ جوړیدو دَ پاره خوړلی دی تعبیر ئے، چه څومره موافق وی دَ دُنیا دَ جوړښت طلب به کوی۔ که خوب کښے اوګوری چه دَ خلکو دَ پاره دارو جوړوی تعبیر ئے، دَ الله تعالیٰ جل جلاله په مخلوق به احسان کوی۔ او که اوګوری چه دارو وچ شوی دی تعبیر ئے دَ غم او فکر نه به خلاصے او مومی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دارو ئے ډیر خوړلی دی او دَ پیچش بیماری ئے راغلے دَه۔ تعبیر ئے دَ ده ته به څه نقصان ورسیږی۔ او که دَ دے خلاف اوګوری تعبیر ئے نفع به ورته ورسیږی۔ که اوګوری چه دارو ئے خوړلی دی او عقل او فکر ئے له منځه لاړے تعبیر ئے غم او فکر نه به خلاصے او مومی۔
حضرت امام حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، هر دارو چه زیږ وی تعبیر ئے بیماری او تکلیف دے او هغه دارو چه دَ خوړلو نه ئے کرکه وی تعبیر ئے بیماری دَه

## دارچینی

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دارچینی ئے خوړلے دَه تعبیر ئے غم او فکر به ئے زیات شی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دارچینی ئے دَ څه مرض دَ وجے نه خوړلے دَه او دَه ته ئے څه فائده رسولے دَه تعبیر ئے په خیر او په نفع دے۔

## دجال

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دجال په یو معلوم ځائے کښے لیدل تعبیر ئے په هغه ځائے کښے به فساد را پورته شی او هلته به دروغژنے ښځے جمع شی او هلته به خیر او برکت نه وی.

## دروازه

دروازه په خوب کښے لیدل ښځه ده، که او ګوری چه د معلوم ځائے دروازے ددهٔ په وړاندے پرانستے شوی دی او چه کومے دروازے پرانستے شوی دی د هر لارے طرفته کهلاؤ شوے دی. تعبیر ئے چه کوم مال لری خرچ به ئے کړی. او که او ګوری چه د دهٔ برابر دروازه کهلاؤ شوے ده، د کور تعبیر ئے کوم مال ئے چه د بادشاه نه لاس ته راوړے په عیال به ئے خرچ کړی. او که او ګوری چه په کور کښے ئے دروازه ماته شوے ده. تعبیر ئے غم او مصیبت دے.

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی که او ګوری په خوب کښے چه ئے د کور دروازه ویستلے او ورکے ده او سړے نه پیژنی چه چا یوړله تعبیر ئے د کور د خلکو د پاره غم او مصیبت دے. او که او ګوری چه د دهٔ د کور دروازه بند کړے شوه تعبیر ئے دا د کور د خلکو د پاره مصیبت دے او که او ګوری چه ددهٔ د کور دروازه ئے وړه ده تعبیر ئے د دهٔ بال بچ ته به آفت رسیږی. او که او ګوری چه د دهٔ د کور دروازه دومره فراخه ده چه د ټولو دروازو نه فراخه ده. تعبیر ئے د دهٔ کور ته به نا فرمانه قوم قوت، مصیبت او جهګړے سره رائحی که او ګوری چه د دهٔ د کور دروازے کړے یا زنځیر چا وخوزولو که جواب ورته ملاؤ شو تعبیر ئے دُعا به ئے قبوله کړے شی. دا هم ممکنه ده چه خزانه به بیا مومی. که او ګوری چه د دروازے زنځیر یا کړئ کله او خوزوله او دروازه زر پرانستے شوه. تعبیر ئے البته الله تعالیٰ به د دهٔ دُعا قبوله کړی او په دښمن به کامیابی او مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که چرے او ګوری چه دهٔ نوے دروازه کلکه بنده کړه او تالائے لګولے ده. تعبیر ئے د دهٔ ښځه به مړه کیږی یا به ښځے ته طلاق ورکوی. که او ګوری چه دهٔ ترکاڼ ته د نوے دروازے جوړولو حکم کړے دے چه د دهٔ د کور دروازے زنځیر شته دے، تعبیر ئے کونړه ښځه به کوی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که او ګوری چه د دهٔ په دروازه لیوه راتوب کړے دے او اوازونه ئے کړی دی، تعبیر ئے چه ځوان د دهٔ د عیال قصد کوی. که او ګوری چه د اسمان دروازے پرانستے شوی دی. تعبیر ئے، د هغه ملک

په خلکو به دَخیر ونو دروازے کھلاؤ کړے شي۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، دَدروازے لیدل په خوب کښے په دریؤ وجوده ۔ (۱) دَکور خاوند (۲) ښځه (۳) خل منګار۔

## دروازه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که دَښار دروازه په خوب کښے اوګوري تعبیر ئے دَبادشاه پاسبان او دربان لیدل لوے او بزرک سړے لیدل دي۔

## دربانچي توب کول

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه دربانچي توب کوي تعبیر ئے چه څه حاجت لري نو ډیر زر به پوره کړے شي اودَ لوے سړي نه به عزت او مرتبه بیا مومي. که اوګوري چه دربانچي توب کوي او دروازه نۀ وه تعبیر ئے چه دَچا په سبب وریانۀ ے څۀ تکلیف وو هغه مراد به ئے پوره کړے شي مګرهغه به بیانۀ مومي۔
حضرت مغربيؒ فرمائیلي دي' که اوګوري چه دَبادشاه دربانچي توب کوي تعبیر ئے، دَبادشاه مقرب به جوړ شي

## درهم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي چه دَخلکو طبیعتونه مختلف دي دا سے روایت شوے دے چه څوک درهم په خوب کښے اووینې. تعبیر ئے دَ روپو په حاصلولو دي. او څنے معبرین وائي که څوک درهم په خوب کښے اووینې، تعبیر ئے ښۀ خبره به واوري او یا به دَ الله تعالیٰ ثنا او صفت وائي - که اوګوري چه سپین درهم وو، تعبیر ئے ډیر بنړ دے. اوکه درهم توروي او دَدرهمو په شکل وي تعبیر ئے په جنګ او جګړه دے. اوځنے معبران وائي که اوګوري چه واړهٔ درهم ئے پیدا کړي دي تعبیر ئے په واړهٔ څوي لري. اوځنے معبرین وائي چه که اوګوري چه درهم ضائع شوے دے او یا ورنه چا غلا کړے دے تعبیر ئے دَ واړهٔ څوي نه به دَدهٔ په زړهٔ کښے خفګان راځي. که اوګوري چه واړهٔ درهم ئے ورک کړے او بیائے موندلے دے هغه دَ زړهٔ خفګان به ترے لرے شي اوکه بیائے پیدا نۀ کړل تعبیر ئے څوي به ئے هلاک کړے شي۔
حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي په خوب کښے درهم په لاس کښے په خوب کښے کیښودل ښۀ خبره ده او مات درهم بے فائدے خبره ده او ډیر درهمونه مال دَے۔ که اوګوري چه ډیر درهمونه ئے دَ عیال په لاسونو کښے تقسیم کړي دي تعبیر

ئې دَ دوی په منځ کښې به جهګړه منځ ته راځي. که اوګوري چه دَ دهٔ په کور کښې بې اندازې درهم لري دَ هغې په اندازه به مال بیا مومي. اوکه اوګوري چه بنهٔ ډیر درهم ئې راجمع کړي دي. تعبیر ئې خلک به دَ حق او باطل نه منع کوي. دَ الله تعالیٰ کلام دے (جَمَعَ مَالًا وَّ عَدَّدَهٗ يَحْسَبُ اَنَّ مَالَهٗ اَخْلَدَهٗ) (الهمزة ۳) مال ئې جمع کړو او شمار ئې کړو ګمان کوي چه دهٔ مال به دَ همیشه کړي. که څوک په خپل تلي کښې یو سپین درهم اوګوري تعبیر ئې دَ دهٔ خوی به کیږي. که اوګوري چه هغه درهم ورنه ضائع شوي دي تعبیر ئې خوی به ئې مړکیږي. اوکه په خوب کښې دَ درهم او دینار بټوه اوګوري تعبیر ئې حلال مال به راجمع کړي.

حضرت مغربیؒ فرمائیلي دي که سپین درهم په خوب کښې اوګوري نو درهم به بیا مومي. ډیر خلک په خوب کښې درهم اوګوري او په بیا اړي کښې ئې بیا مومي.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلي دي صفا درهم په خوب کښې لیدل تعبیر ئې دَ دین صفائي ده او مات درهم جنګ او جګړه ده. که اوګوري چه باشاه ورته درهم ورکړي دي تعبیر ئې دَ غم او فکر نه به نجات اومومي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي، درهم لیدل په خوب کښې په یوولسو وجو وي (۱) صحیح خبرے (۲) دَ حاجت پوره کیدل (۳) ولایت (۴) جمع شوے مال (۵) ملګرے (۶) زوی (۷) فساد (۸) فراخه روزي (۹) امن کښې کیدل (۱۰) وینزه (۱۱) دَ پیسو پیدا کول خاصکر چه خوب لیدونکے پرهیزګار وي. اوکه پرهیزګاره نهٔ وي تعبیر ئې نو دَ خدامنو زحمت، غم، فکر دے او دَ ماتو درهمو لیدل په خوب کښې په څلورو وجو وي (۱) بده خبره (۲) جنګ او جګړه (۳) جیلخانه (۴) وینا (خبرے)

## دُښمن

که اوګوري په خوب کښې چه په دښمن کامیاب شوے دے. تعبیر ئې مراد به ئې پوره کیږي. اوکه اوګوري چه دښمن په دهٔ کامیاب شوے دے تعبیر ئې دَ اول خلاف دے. اوکه اوګوري چه دښمن خوړلے دے، تعبیر ئې په بلا او مصیبت کښې به ګیر شي توبه دې اوباسي چه بلا ورنه لرے شي.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلي دي، دَ دښمن لیدل په خوب

کښې په دریځو وجو وی (۱) په کاروڼو کښې قوت والے۔ غم او فکر (۳) د مال تاوان

## دُعا کول

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی د دُعا کول په خوب کښې تعبیرئے د حاجت پوره کیدل دی که اوګوری چه د خان د پاره ئے دُعا کړے ده او بیا ئے قبوله شوه تعبیرئے د حاجت پوره کیدل دی که اوګوری چه د خان د پاره ئے دُعا کړے ده او بښتنه ئے غوښتے ده تعبیرئے خاتمه او کار به ئے په خیر او مراد به ئے پوره شی۔

که اوګوری چه د چا بزرګ سړی د پاره دُعاء کړے ده تعبیرئے د ظلم او فساد طرفته به نه کرځیږی او د نیکۍ کار به په ځائے راوړی۔ که اوګوری چه د خلکو د پاره ئے دُعا کړے ده تعبیرئے د خلکو به خیرخواه وی او حاجت به ئے پوره شی۔ که اوګوری چه خاص دُعائے غوښتے ده تعبیرئے ځوی به ئے پیدا کیږی۔ د الله تعالیٰ کلام دے (اِذْ نَادٰی رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِیًّا) ترجمه: (مریم ۳)
کله چه ئے خپل رب ته په پټه اواز وکړو۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه په نیاره کښې ئے دُعا او غوښتل که مصلح او پرهیزګاره وو، تعبیرئے الله تعالیٰ به ئے او بخښی او مراد به ئے پوره شی او که د خوب لیدونکے بدکاره فاسق وی تعبیرئے توبه به کوی او که کافر وی نو اسلام به راوړی۔

## دلالی کول

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دلالی کول په خوب کښې په څلورو وجو وی (۱) د خلکو په منځ کښې روغه کول (۲) سمه لاره (۳) نیک کردار (۴) د نیکۍ کار په ځائے راوړل۔ که څوک دلال هغه سړے دے چه د خلکو رهبری نیغې لارے ته کوی۔ که څوک اوګوری چه په خوب کښې دلالی کوی تعبیرئے د خیر لاره به بیا مومی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، دلالی کول په خوب کښې په څلورو وجو وی کوم چه بره ئے ذکر وشو۔

## دُکان

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښې اوګوری چه دُکان ئے جوړ کړے دے تعبیرئے ښځه به کوی۔ او که اوګوری چه دُکان ئے خراب کړے دے تعبیرئے ښځے ته به طلاق ورکوی۔ که اوګوری چه دُکان ئے پریوتے دے تعبیرئے ښځه به ئے مړه کیږی۔ که څوک اوګوری چه د دکاندار د اجازے نه بغیر په دکان ناست دے تعبیرئے د چا په عیال به تصرف کوی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی' دکان په خوب کښې لیدل په شپږ وجو وی (۱) بنځه (۲) عیش (۳) عزت او مرتبه (۴) نیکی (۵) اوچتوالے (۶) که نوے دکان وی نو مرتبه به بیا مومی۔

## دوات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چې دوات ترې اویا ورته چا ورکړے دے تعبیر ئے' د خپلو نوځا سره به جنګ کوی۔ که اوګوری چې په دوات ئے لیکل کړی دی تعبیر ئے' دهٔ نه به بدی اخیری حد ته ورسیږی۔ او که اوګوری چې دوات مات شوے دے او' یا ورنه چا غلا کړے دے تعبیر ئے' کونډه بنځه به نفرت سره کوی۔ که اوګوری چې په قلم سره دوات کښې سیاهی اچوی تعبیر ئے دده به ځوی پیدا شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چې دَ سرو زرو دوات ورسره دے تعبیر ئے فکرمند به شی۔ که اوګوری چې دَ سپینو زرو دوات ورسره دے تعبیر ئے' بنځه به کوی یا وینزه به اخلی۔ که اوګوری چې دوات دَ پیتلو دے تعبیر ئے' نفع به بیا مومی۔ او که دَ اوسپنې دوات ورسره وو' تعبیر ئے په کارونو کښې به قوت او مومی۔ او که دوات دَ مِسو وو تعبیر ئے پرکم شے به ورته ورسیږی۔

## دیګ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی' لوے دیګ په خوب کښې بنځه ده او ځنے معبرانو وئیلی دی چې دیګ دَ کور مالک دے که اوګوری چې دیګ ئے اخستے دے او' یا ورته چا ورکړے دے او په اور ئے ایښے دے او خوراک ئے پخولو' تعبیر ئے دَ څه کار په وجه به دَ بادشاه نه ورته نفع ورسیږی۔ که اوګوری چې دَ مِسو او' یا دَ کانړی دیګ دے۔ تعبیر ئے' دَ دیګ دَ قیمت په انداز به فائده ورته ورسیږی' او که دیګ دَ تانبے وی' تعبیر ئے داسے کار به کوی چې دَ کور خاوند نه به څه ورته رسیږی۔ او که اوګوری چې دیګ ئے په اور ایښے دے او څه طعام پکښې نه وو۔ تعبیر ئے چاته به دَ داسے کار رښود نه کوی چې دهٔ ته ورنه نفرت وی۔ دیګ په خوب کښې لیدل دَ کور مالک او مالکه ده۔ که اوګوری چې په دیګ کښې غوښه ده او خوړلے ئے ده تعبیر ئے' دَ وریځو خوراک به ورته ملاویږی۔ که اوګوری چې دیګ ئے مات شوے دے تعبیر ئے دَ کور مالک او مالکه به دواړه مړهٔ کیږی۔

حضرت جعفر صادقؓ فرمائیلی دی' دَ دیګ لیدل په خوب کښې په پنځو

وجو وی (۱) دَ کور مالک (۲) دَ کور مالکه (۳) رئیس (۴) خادم (۵) دَ کار و نو ضا من

## دیوال

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دیوال په خوب کښے لیدل دَ خوب لید ونکی حال دے۔ که اوګوری چه دیوال مضبوط او ښه دے۔ تعبیرئے په دُنیا کښے دَ حال دَ نیکی دے۔ که اوګوری چه دیوال زوړ دے او خراب کړے ئے دے۔ تعبیرئے مال به بیا مومی۔ که اوګوری چه دیوال نوے وو او خراب کړے ئے دے، تعبیرئے غم او فکر دے دَ دیوال دَ خرابی په اندازه۔ که اوګوری چه دیوال سست او تنګ وو تعبیرئے په دُنیا کښے به ئے حال کمزورے شی۔ که اوګوری چه په دیوال ئے ښینه وه تعبیر ئے حال به ئے برابر او سم وی۔ که اوګوری چه دیوال زوړند دے تعبیرئے حالاتو دَ خوریدو او دَ عیش دَ زوال دے۔ که اوګوری چه دیوال پریوتے دے تعبیرئے دَ معیشت او کسب دَ اسبابو نه به پریوزی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ ښار یې یا دَ جامع مسجد پریوتے دے تعبیرئے دَ هغه ښار والی (ګورنر) به هلاک شی۔ که اوګوری چه په خپل لاس ئے دیوال دَ خټو نه جوړ کړے دے دَ امام جعفر صادقؓ په قول تعبیرئے په پاک دین دے او که چونے او خښتو وی تعبیرئے دَ حال په تباهی دے۔ او که دیوال دَ چونے او کانړو وی، په دُنیا عاشق به ئی۔

## دَ دستونو دارو (دیواس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے دیواس دارو دَ خوړلو په دارو ئے غوړ ولی دی تعبیرئے دَ غم نه اندازه غم دے که اوګوری چه دیواس دارو ئے غوړ ولی دی تعبیرئے لږ معمولی په خلاصے بیا مومی۔ که اوګوری چه دیواس لږ خواږه دی تعبیرئے لږ معمولی ضرر به ورته رسیږی۔ الله تعالیٰ ښه پوهیږی۔

## دَ دستونو راوستونکی دارو (شیر خورشت)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، شیر خورشت دارو په خوب کښے حلاله روزی ده که اوګوری په خوب کښے چه شیر خورشت ئے جمع کړی دی او یا ئے جمع کوی۔ که اوګوری چه شیر خوشت ئے تعبیرئے دَ سفر نه به مال حاصل کړی۔ که اوګوری چه شیر خوشت ئے خوړلی دی تعبیرئے په خپل عیال به مال راجمع کوی او عوض به ئے بیا مومی۔ که اوګوری چه شیر خوشت لږی تعبیرئے دَ تجارت نه به مال په لاس راوړی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائیلی دی دَ شیرخورشت لیدل په خوب کښې په دریٔو وجوه وی (۱) حلال مال (۲) دَ ژوند فراخی (۳) دَ زړهٔ مراد موندل

## دَ ریوند دارو

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری په خوب کښې چه دهٔ سره ډیر زیات ریوند دارو دی تعبیر ئے په غم او فکر کښې به ګرفتار کړے شی۔ که اوګوری چه دَ علاج دَ پاره ئے دَ ریوند دارو خوړلی دی او په هغے ئے صحت موندلے دے، تعبیر ئے په صحت مندی خیر او صلاح او مال دے۔ او که دَ دے خلاف اوګوری بیا ئے تعبیر دَ بیماری او غم دے۔ الله تعالیٰ بنهٔ پوهیږی۔

## دَ زفت دارو

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ زفت دارو په خوب کښې لیدل غم او فکر دے۔ که اوګوری چه دَ زفت دارو ورسره دی او، یا ورته چا ورکړی دی۔ تعبیر ئے په غم او فکر کښې به ګرفتار کړے شی۔ که اوګوری چه دَ زفت دارو ئے خوړلی دی تعبیر ئے غم او فکر به ورته دَ عیال په وجه وی۔ که اوګوری چه زفت ئے خرچ کړی دی او یا ئے چا ته ورکړی دی او یا ئے دَ کوره بهر غورځولی دی تعبیر ئے دَ غم او فکر نه به خلاصے بیا مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی۔ که اوګوری چه زفت دارو ئے په زخم کښې ایښی دی او هغه جوړ شوے دے تعبیر ئے دَ چا نه به خیر او برکت ووینی که اوګوری چه په زفت دارو ئے جامه ګنده شوے ده، تعبیر ئے داسے یو کار به کوی چه دَ هغے نه به بدنامه شی۔

## دارو (سرنج)

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، سرنج دارو په خوب کښې غم او فکر دے که اوګوری چه دهٔ سره سرنج دارو شته دے او یا ورته چا ورکړی دی تعبیر ئے، فکرمند او غمژن به شی که اوګوری چه دَ سرنج دارو ئے خوړلی تعبیر ئے، بیمار به شی۔ که اوګوری چه سرنج دارو ئے خرچ کړی او یا ئے چا ته ورکړی دی تعبیر ئے دَ غم نه به خلاص شی۔

## دارو (سقمونیا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، سقمونیا لیدل په خوب کښې تعبیر ئے غم، فکر، او دَ مال نقصان دَے۔ که اوګوری چه دَ مرض په وجه ئے خوړلی دی او دے پرے جوړ شوے دے تعبیر ئے په خیر او نفع دے۔ که اوګوری چه دَ سقمونیا دَ خوړلو په وجه ئے تکلیف مونلے

دے تعبیر ئے، دَ مال نقصان به ئے وی۔

## دارو (شیطرج)

شیطرج یو دارو دی، دَ دے خوړل په خوب په خوب کښې څه نقصان او ضرر نهٔ لری۔

## دارو (قسط)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دَ قسط داروئے ځان لاندِ ے سوزولی دی او دِے لوړے کولو تعبیر ئے، دَ هغه ولایت (صوبه) خلک به دَ دهٔ صفت کوی او هغه ملک کښې به ئے نوم په نیکئ سره مشهور شی. او که یې لوړے ئے کولونو تعبیر ئے، دَ دے خلاف دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ قسط داروئے خوړلی دی، تعبیر ئے غمژن به شی۔

## دهوبی توب کول

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دهوبی توب ئے کولو او حال دا چه دے دهوبی نهٔ وو، تعبیر ئے توبه به او باسی او دَ نیکی توفیق به بیا مومی ځکه چه دَ جامے خیری په غم او اندیښنه تعبیر لری او دهوبی دَ خیری پاکوونکے دے په دے وجه دَ الله تعالیٰ طرف ته رجوع کول دی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه جامه وینځلو کښې او شلیدله تعبیر ئے توبه به ماتوی۔ او که اوګوری چه شلیدلے جامه ئے اوګنډله تعبیر ئے، دَ بیا یه توبه کوی او که اوګوری چه دَ وینځلو سره کپړه سپینه شوه تعبیر ئے، دَ توبے په وجه به خلاصے او مومی۔ که اوګوری چه جامه ئے وینځله خو سپینه نهٔ شوه۔ تعبیر ئے په ګناه کښې به او سیږی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی۔ دهوبی دا سے یو سړے دے چه دَ دهٔ دَ لاس نه خیرات او احسان دواړه دَ ګناهونو دَ کفارے دَ پاره وی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، دهوبی په خوب کښې هغه سړے دے چه دَ خلکو دَ زړونو نه غم او فکر لرے کوی په دے سبب معبران وائی چه څوک اوګوری چه جامه وینځی تعبیر ئے، دَ غم او فکر نه به خلاصے او مومی او دَ ګناهونو نه به توبه او باسی او خاصکر چه کپړه سپینه شوے ده۔

## دَ دُنیا کار کول

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی۔ که څوک خوب کښې اوګوری چه دَ دُنیا کار ئے کولو۔ تعبیر ئے دَ دهٔ دین

په فساد او نقصان دے۔ او که اوګوري چه دَ دین کارتے کولو، تعبیرئے دَ دین په اصلاح دے او دَ هغهٔ په احوالو به جهان نیک وي۔ که اوګوري چه دَده دَ دُنیا کار ورونه بناشته دي، تعبیرئے، مرګ به ئے نزدے شوے وو۔ او که دَدے خلاف ئے اوګوري نو تعبیرئے، عمربه ئے اوږد وي۔ که اوګوري په خوب کښے چه په لاس کښے مشغول وو چه دَه یا بل چاته یکښے څهٔ فائده نشته دے تعبیرئے په داسے کار کښے به مشغول شي چه څهٔ فائده یکښے نهٔ وي۔

حضرت امام جعفر صادق رض فرمائیلي دي که اوګوري چه دَ چا سره دَ څهٔ کار دَ پاره تللے دے او په لاره کښے کیناستلو تعبیرئے دَدین مخالف دے دَ الله تعالیٰ کلام دے (فَرِحَ الْمُخَلَّفُونَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلَافَ رَسُولِ اللَّهِ) التوبه[81]:

خوشحاله شول هغه مخالفان چه په خپلو ځایونو کیناستل دَ رسول الله ﷺ نه۔

## دارو۔(ګاؤزبان)

په بوټو کښے یو قسم دے او پانړے ئے از غی لرونکي دي حضرت ابن سیرین رح فرمائیلي دي په خوب کښے ګاؤ زبان خوړل جنګ او جګړه ده او دَدے په خوړلو او لیدلو کښے څهٔ خیر نشته دے

## دُوړي

حضرت ابن سیرین رح فرمائیلي دي که اوګوري چه دَده کوم شے په ملکیت کښے دے او دوړي ور باندے پریوتے دي، تعبیرئے دَ هغے په اندازه به مال حاصل کړي۔ که اوګوري چه دَ زمکے او اسمان ترمنځ ګرد را جمع شوے دے تعبیرئے دلته به څهٔ کار پیښ کیږي چه دَ هغے نه به څرګه بهرته راځي۔

حضرت کرمانی رح فرمائیلي دي که اوګوري چه په ګرد ئے مخ ککړ شوے دے تعبیرئے دے ته به غم او تکلیف ورسیږي۔ که اوګوري چه ګرد او خاوره یو ځای په هغه زمکه چه دَدهٔ ملکیت کښے ده پریوتے دي تعبیرئے په هغه اندازه مال به مومي۔

حضرت امام جعفر صادق رض فرمائیلي دي دَ دوړي لیدل په خوب کښے په درېو وجودي۔ (۱) مال (۲) بلا او فتنه (۳) دَ الله تعالیٰ عذاب۔

## دارو (کرفس)

حضرت ابن سیرین رح فرمائیلي دي، که اوګوري چه کرفس داروئے په خپل موسم خوړلي دي تعبیرئے غمژن به شي او ځنے معبرانو وئیلي دي چه څهٔ بد شے به اوخوري۔ که څوک اوګوري چه دهٔ سره کرفس دارو دي او خوړلي ئے نهٔ دي تعبیرئے دَ هغے نه به کم

غمژن شی کوم چه مونږ بره وو ئیلو۔
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، دَ کرفس دارو په خوب کښې
په درېئو وجوو (۱) غم او فکر (۲) جګړه په وینا کښې (۳) څه بد شے خوړل۔

## دارو (کاسنی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی دَ کاسنی دارو خوړل
په خوب کښې تعبیر ئے غم او فکر دے۔ که څوک
اوګوری چه چا کاسنی ورکړې دی او خوړلی ئے دی تعبیر ئے غمژن به شی۔
حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی دَ کاسنی دارو خوړل په خوب کښې نقصان
او جګړه ده۔

## دهړیا (کشنیز)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دهنیا خوړل په
خوب کښې په غم او فکر تعبیر لری۔ که اوګوری چه دهٔ سره
دهړیا (دهنیا) ده او خوړلی ئے ده۔ تعبیر ئے دَ خوراک په اندازه غم
او فکر دے۔

## دَ دریاب زګ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ دریاب زګ په
خوب کښې لیدل تعبیر ئے دَ نفع او یا دَ کوم لوی سړی نه
نفع ده چه حاصله به شی ورته۔

## دام (لومه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه
دام ئے اچولے دے او څوک سړے ئے پکښې نیولے دے تعبیر
ئے دَ کوم لوے سړی نه به مدد او غواړی دَ دام په اندازه۔ که اوګوری چه دام ئے
دَ رسئ دے تعبیر ئے، دَ مؤمن سړی نه به مدد او غواړی۔ او که اوګوری چه
دَ خنزیر دَ ویښتو دام دے تعبیر ئے، دَ کوم کافر سړی نه به مدد او غواړی۔ که
اوګوری چه دام ئے اچولے دے او دَ چا ځنې کښې پریوتے دے۔ تعبیر ئے دَ کوم
کمزوری سړی نه به مدد اُو غواړی۔
حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دام دَ دهٔ په لاس کښې پروت دے
تعبیر ئے، دَ مسافر سړی نه مدد او غواړی که اوګوری چه دام ئے اچولے مګر
دشمن ئے پکښې نه دی اچولے تعبیر ئے، هیڅوک به دَ دهٔ مدد ونکړی۔

## دارو۔ (کندر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه
دَ کندر دارو ئے خوړلی دی او یا ئے چوپلی دی تعبیر
ئے دَ چا سره به جګړه کوی او یا به ورته شکایت وی۔

حضرت مغربی فرمائیلی دی که اوګوری چه ډکنډ ردارودی تعبیر ئے غمژن به شی ځکه چه ترخه دی او تعبیر ئے غم دے۔

## ډکنګر بوټے

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه ډکنګر بوټے ئے په خپل موسم کښے خوړلے دی تعبیر ئے غم او فکر به ورته ورسیږی او ډکنګر بوټے خوړل فائده نۀ ده۔

که اوګوری چه ډکنګر بوټے ورسره دے مګر خوړلے ئے نۀ دے تعبیر ئے لږ شان غم او فکر به ورته وی۔

## ډ سنبوبه (ګل)۔ رلفاح الشمامه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دا ګل ئے خوړلے دے تعبیر ئے بیمار به شی او که چا ته ئے ورکړے وی نو هغه کس به بیمار شی که اوګوری چه بوی کړے ئے دے تعبیر ئے ښے خبرے به واوری۔ او که اوګوری چه ډ لفاح ګل ښۀ ډیر ورسره دی تعبیر ئے مال به مومی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، ډ لفاح ګل خوړل په خوب کښے په شپږ وجوه وی (۱) ښۀ خبره (۲) مال (۳) ځوئ (۴) ملګرے (۵) دوست (۶) غلاف (پوښ)

## دیګچے لوئے۔ (لوید)

لوئے دیګچے په خوب کښے ډکور عیسائی خدمتګار دے۔ که اوګوری چه ډ دۀ په لاس کښے لوئے او نوے دیګچے دے تعبیر ئے خدمتګار به ئے امانتګر وی۔

او که دیګچے زوړ، خیرن، ورکوټے دی، تعبیر ئے ډ دے په خلاف وی۔ که اوګوری چه دیګچے پریوتے دے او مات شوے دے تعبیر ئے خدمتګار به ئے مری۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دیګچے سورے شوے دے تعبیر ئے، خدمتګار به ئے بیمار شی که اوګوری چه دیګچے ډ صفا اوبو نه ډک دے تعبیر ئے، خدمتګار نه به ورته نفع ورسیږی. که اوګوری چه دیګچے ډ طعام نه ډک دے تعبیر ئے ډ هغے په اندازه به ورته خیر او نفع ورسیږی۔ که اوګوری چه دیګچے ئے خوړلے دے تعبیر ئے ډ خپل خدمتګار نه به ورته نفع ورسیږی۔

## ډ ستر ګو دارو۔ (مار قشیشا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، ډ مار قشیشا لیدل په خوب کښے تعبیر ئے غم، تکلیف، نقصان او بیماری بانندے دے او ډ دے خوب کښے لیدل څه خیر نۀ دے۔

## دَ سترګو دارو - (ماميرا)

حضرت ابن سيرينؒ فرمائيلي دي، دَ ماميرا ليدل په خوب کښې تعبير ئې دا سې بيمارى ده چه هغهٔ ته به دَ هغې نه خيرا و ثواب حاصليږي.

## دَ داروګانو لوښے

حضرت ابن سيرينؒ فرمائيلي دي، که دَ داروګانو لوښے په خوب کښې اوګورى تعبير ئې پاک دينه او عالِمه ښځه ده که اوګورى چه دَ داروګانو لوښے ورسره دے تعبير ئې، عالِمه ښځه به کوى او دَ هغې نه به خير او نفع اومومى. که اوګورى چه دَ داروګانو لوښے مات شوے دے او يا ضائع شوے دے تعبير ئې، ښځه به ئې مړه کيږي اوکه ښځه نهٔ لرى، دَ خپلوانو نه به ئې څوک مړ کيږي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائيلي دي که اوګورى چه څهٔ ئې وربانده ليکلي دي. که هغه ليکلے شوى دَ قرآن حکيم يا دَ الله تعالىٰ نومونه وو تعبير ئې په خير او نفع دے. او که دَ دے خلاف وي تعبير ئې په شر او فساد سره دے

## دارو (مردارسنګ)

حضرت ابن سيرينؒ فرمائيلي دي، مردار سنګ په خوب کښې ليدل بيمارى ده. که اوګورى چه دَ مردارسنګ دارو ئې خوړلى دى تعبير ئې، بيمار به شي چه دَ مردارسنګ دارو ئې چا ته ښخبلى هلاکت ويره به ترے وى. که اوګورى چه دَ مردارسنګ دارو ئې چا ته ښخبلى اويا ئې خرڅ کړى تعبير ئې، دَ غم او بيمارى نه به امن کښې شي. او زيړ مردارسنګ تعبير ئې بيمارى ده.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائيلي دي، مردارسنګ دارو په دريو وجوهو دى (۱) غم (۲) بيمارى (۳) عذاب او تکليف.

## دارو (مصطکى)

حضرت ابن سيرينؒ فرمائيلي دي که اوګورى چه مصطکى دارو ئې چوپلى دى تعبير ئې دهٔ ته به څهٔ خبرے مخے ته راځى.

حضرت کرمانىؒ فرمائيلي دي که اوګورى چه مصطکى ئې دَ اُوبو سره چوپلى دى، تعبير ئې، دَ هغې دَ خوراک په انداز به دَ چا شکايت کوى. که اوګورى چه مصطکى ئې په اور لوګے کړے دے تعبير ئې دَ بادشاه نه به ورته غم او فکر دے.

## دارو (نوشادر)

حضرت ابن سيرينؒ فرمائيلي دي، نوشادر دارو په خوب کښې ليدل غم او فکر دے. که څوک اوګورى

چه نوشادر و رسره دی تعبیر ئے غمژن به شی۔ که څوک اوګوری چه نوشادر
دارو ئے خوړلی دی تعبیر ئے سخت غم او فکر دے۔

## دَ دارو یو قسم بوټے (درمنه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښے درمنه لیدل تعبیر ئے غم او فکر دے او دَ دے خوړل دَ مال او عیال دَ نقصان تعبیر لری۔

## دروغ وئیل ۔ (دروغ گفتن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښے دروغ وئیل دَ دین په فساد او په تباهی تعبیر لری که اووینی چه په دروغه ئے ګواهی ورکړے تعبیر ئے دَ دهٔ دین به تباه شی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی که اووینی چه بادشاه دروغ وائی تعبیر ئے خلک په دهٔ بدی او خرابی کوی او دَ دهٔ به عزت او حفاظت ختم شی۔

## دریاب (دریا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښے دریاب لیدل بادشاه دے یا څوک لوئے عالم دے۔ که اووینی چه دَ دریاب اُوبه صفا او پاکیزه او خوږے دی تعبیر ئے، بادشاه به پرهیزګار، عادل او انصاف والا وی۔ که اووینی چه دَ دریاب اوبه خیرنے او بے خونده دی" تعبیر ئے بادشاه به فسادی او ظالم وی۔ که اووینی چه دَ دریاب اُوبه ئے څښلی دی تعبیر ئے دَ بادشاه نه نفع ورته ورسیږی که اووینی چه په دریاب کښے کوز شو داسے چه ټول وجود ئے ګنګاه شو۔ تعبیر ئے دهٔ ته به دَ بادشاه نه غم او فکر ورسیږی۔ که اووینی چه خپل ځان ئے دَ ختځ نه وینځلے دے تعبیر ئے غم او فکر به ورنه لرے کړے شی۔ او که اووینی چه دَ دریاب په اوبو کښے لامبو وهی تعبیر ئے بادشاه به ئے قید کړی۔ که اووینی چه په لامبو دَ دریاب نه بهر راوتلے دے تعبیر ئے دَ جیل نه به خلاصے مومی (رها به شی)۔ که اووینی چه په دریاب کښے ډوب شوے دے او مړ شوے دے تعبیر ئے دَ دین په کار کښے به ډوب شی۔ که اووینی چه دَ لرے نه ئے دریاب لیدلے او نزدے ورته نهٔ دے تللے تعبیر ئے دَ هغه څهٔ چه امید لری پوره به شی۔ او که اووینی چه په دریاب تیر شوے دے او څپے ئے نهٔ دی ملے شوے، تعبیر ئے دَ دوزخ دَ اوره به امن کښے دی۔ او دَ دُنیا کاروته به ئے اسان شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه په دریاب کښے دے تعبیر ئے دَ بادشاه

خلامت کښې به تابعدار اوډ فاضلیت خاوند به وي. که اووینی چه ډدریاب په منځ کښې تللے دے تعبیرئے ډډه کار به په خطرے سره وي اوکه اووینی چه ډدریاب نه پهرراوتلے دے تعبیرئے بیغمه به شي. که اووینی چه ډدریاب نه ئې یخ اوبه ئې څښلي اوخوب لیدونکے عالم وو، تعبیرئے پوره نصیب به مومي. اوکه خوب لیدونکے عالم نۀ وو تعبیرئے ډدے خلاف دے. ډالله تعالیٰ قول دے (قُل لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمَاتِ رَبِّي لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ أَن تَنفَدَ كَلِمَاتُ رَبِّي. الکهف ۱۰۹ . ترجمه:- ورته اووایه که چرے دریاب څما دپاره کلمود پاره سیاهي شي نوڅما درب دکلمو دختمید و نه به دریاب ختم شي.

اوکه خوب لیدونکے ډ بادشاهي خلکو نه وي تعبیرئے ډ بادشاه ډمعتمدینو نه به وي. که اووینی چه ډدریاب په اوبو ئے ځان ونیځلے دے. تعبیرئے ډ بادشاه نه به په امن کښې وي. که اووینی چه ډدریاب گرمے اوبه ئے څښلے تعبیرئے څۀ گناه به کوي. ډ الله تعالیٰ قول دے (وَسُقُوا مَاءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ) محمد ترجمه:- اوپه دوئی به جوش شوے اوبه اوڅښولے شي ډدوي کولمے به غوڅے کړي. که اووینی چه ډ دریاب اوبه ئے څښلي خوډدریاب اوبه گندۀ او بے خوندۀ وے تعبیرئے ډډۀ به ډخوفناک دښمن سره مقابله وي ډالله تعالیٰ حکم دے (يَتَجَرَّعُهُ وَلَا يَكَادُ يُسِيغُهُ) (ابراهیم ۱۷) ترجمه، ډدے اوبو به کوټ کوټ څښی خوتیرے به ئے نۀ کړي.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی که اووینی چه ډ ددریاب په اوبو کښې تللے دے تعبیرئے ډ عبادت توفیق به بیا مومي او امانت به ورکړي که اووینی چه ډ دریاب نه تیر شوے دے تعبیرئے په دښمن به کامیابي مومي. که اووینی چه ډدریاب اوبه زیاتے شوے دي تعبیرئے ډ بادشاه لښکربه زیات شي که اووینی چه ډ دریاب اوبه وچے شوے دي تعبیرئے بادشاه اوډهغۀ لښکربه تباه شي. که اووینی چه ډدریاب اوبه نهرونو ته راجمع شوي دي به یوځائ کښې. تعبیرئے ډهغه ملک بادشاه به ډ ملک خزانه یوځائے ته راجمع کوي. که اووینی چه ډ یوځائے نه چپے راپورته کیږي او ډ بل ځائے نه تورے وریځے راپورته کیږي، تعبیرئے ډهغه ځائے خلک به نا فرمانه اوگنهگار وي.
ډ الله تعالیٰ قول دے (مِّن فَوْقِهِ مَوْجٌ مِّن فَوْقِهِ سَحَابٌ) (النور ۴۰) ترجمه:- په هغے باندے ډ اوبو چپے دي اوډ پاسه پرے وریځ ده.

که اووینی چه دَ دریاب نه ښکار نیسی، تعبیر ئے حلاله روزی به بیا مومی او دَ دهٔ به عیال به عیش فراخه شی. دَ الله تعالیٰ قول دے (اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهُ مَتَاعًا لَّكُمْ) (المائده ۹۶) ترجمه :. ستاسو دَ پاره دَ دریاب ښکار حلال دے او دَ دے خوراکه ستاسو دَ پاره سرمایه او سامان دے.

که اووینی چه دَ دریاب اُوبهٔ تروشے دی تعبیر ئے دَ حرامو کټه به کوی که اووینی چه دَ دریاب اُوبهٔ ګنده دی او دَ هغې نه ئے ښکار نیولے دے، تعبیر ئے دَ دهٔ هلاکت دے. دَ الله تعالیٰ قول دے (وَسْئَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ) (الاعراف ۱۶۳) ترجمه :. دَ دوی نه دَ هغه کلی په باره کښے تپوس وکړی چه دریاب ته نزدے حاضر وو.

که اووینی چه دَ دریاب نه ئے یاقوت او مرجان راویستلی دی. تعبیر ئے دَ علم په زده کړه کښے به مشغول شی او اهل علم به دی او صبر به ئے زیات شی. که اووینی چه دَ دریاب نه ئے مګرمچه نیولے دے او وژلے ئے دے تعبیر ئے دَ بادشاه دښمن به دَ دهٔ په لاس هلاک شی.

حضرت امام جعفر صادق رض فرمائی، په خوب کښے دریاب لیدل په شپږ وجو وی. (۱) بادشاه (۲) والی (۳) رئیس (۴) مال (۵) عالم (۶) لوے کار

## دَ دارو تلے (سفوف)

دَ تلی خوړل په خوب کښے غم او فکر دے.

حضرت ابن سیرین رح فرمائی که اووینی چه دَ دارو تلے ئے خوړلے دے او دَ هغې نه ئے فائده هم نه دی. تعبیر ئے په خیر او په نیکی دے.

## دَ دارو یو قسم (سراب)

حضرت ابن سیرین رح فرمائی، چه خوب کښے سراب لیدل جګړه او دښمنی ده.

که په خوب کښے اووینی چه دهٔ سره سراب دی، یا ورته چا ورکړی دی تعبیر ئے دَ چا سره به جګړه کوی. او که اووینی چه دهٔ سراب خوړلی دی نو هم دغه تعبیر لری.

حضرت جابر مغربی رح فرمائی که اووینی چه سراب زیر شوی دی او خوړلی ئے دی، تعبیر ئے بیمار به شی. او که اووینی چه چاته ئے ورکړی دی یا ئے دَ کور نه بهر غورزولی دی، تعبیر ئے دَ جنګ او دَ جګړے نه به خلاص شی' او دا دے لیدل په خوب کښے فائده مند نهٔ دی.

## دُعاء قنوت (قنوت)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک په خوب کښې اووینې چه دعاء قنوت ئې لوستلې ده۔ تعبیرئې، خلک به دَدهٔ تعریف او صفت کوی او حاجت ئې پوره شی۔ اوکه پرهیزګاره سړے ئې په خوب کښې اُولولی تعبیر ئې ول حاجتونه به ئې پوره شی۔ اوکه مفسد سړے ئې په خوب کښې اولولی تعبیر ئې، دَ کوم سردار په ذریعه به دَ دُنیا کارونه دَ دهٔ پوره شی۔

## دَ انتوشو دارو (کندش)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې اووینې چه دهٔ سره دَ انتوشو یرزیات دارو دی۔ تعبیرئې، بیماری به ئې اُوږده شی او آخر به شفا بیا مومی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی، که اووینې چه دَ انتوشو دارو ئې خوړلی دی، تعبیرئې په رنځ او په بلا کښې به ګرفتار شی۔ اوکه پوزه کښې ئې اچولی دی، او انتوش ئې وکړو۔ تعبیرئې مراد او مطلب به په سختی سره پوره کیږی۔

## "ډ" ډیوه

حضرت کرمانیؒ فرمائی۔ ډیوه لیدل په خوب کښې دَ کور خدمتګار دے۔ او ځنې معبران وائی چه دَ کور مالکه ده که خوب کښې اوګوری چه ډیوه ئې په کور کښې یا که بلیږی تعبیر ئې دَ کور مالکه نیک خویه او نیک خصلته ښځه ده. که اوګوری چه ډیوه بلیږی تعبیر ئې دَ کور مالکه او یادَ وینزے خفګان دے. که اوګوری چه ډیوه مړه شویده تعبیرئې، کور به ئې پریوځی یا به دَ کور مالکه مړه کیږی۔

حضرت جابرؓ فرمائیلی دی که اوګوری چه چراغدان کښې چراغ بلیږی تعبیرئې، که ښځه لری نو ځوی به ئې نیک کیږی او که نې ښځه به کوی یا به وینزه واخلی او که سفر کښې ئې څوک وی سلامت به ورته راشی که اوګوری چه ښار کښې ډیرے ډیوے دی تعبیرئې دَ ولایت والی به عادل وی او قاضی منصف دے او دَ ښار خلک به خوشحاله وی۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی که اوګوری ډیرے ډیوے ئې په لاس کښې دی تعبیرئې ځوی به ئې کیږی چه دولت او عزت بیا مومی۔ اوکه دَ خوب لیدونکے فاسق وی تعبیرئې، خدائےؑ ته به رجوع وکړی او توبه به وکړی۔ اوکه مشرک وی، نو ایمان به راوړی اوکه مسلمان وی نو دَ طاعت توفیق به بیا مومی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَسِرَاجًا مُّنِیرًا وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِینَ

بِاَنَّ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ فَضْلًا كَبِيْرًا (الفرقان) : او روښانه ډیوه ده او د ایمان خاوندانو ته زیرے ورکړه چه په دوی د الله تعالیٰ لوئے فضل دے.
که اوګوری چه ډیوه ئے مړه کړے، تعبیرئے خوی به ئے هلاک کیږی. په عزت او دولت کښے به ئے نقصان راځی. که اوګوری چه دواړو لاسونو کښے ډیوے بلیږی تعبیرئے، د دُنیا او د دین مراد به مومی. که اوګوری چه په یولاس کښے ئے ډیوه چه پکښے دوه سوری او دوه باتئ دی. تعبیرئے په یوه کیڼه به ئے دوه نیک حاصل کیږی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، ډیوه لیدل په خوب کښے په خوارلسو وجوه دی (۱) بادشاه (۲) قاضی (۳) خوی (۴) ناوے (۵) ولایت (۶) سرائے (۷) سرداری (۸) واده (۹) علم (۱۰) مالداری (۱۱) ښځه ژوندن (۱۲) ویسټره (۱۳) نفع (۱۴) خنکه چه ئے لیدلی وی تعبیرئے هم هغه شانته کیږی.

## د ډیوے تاخ (چراغ دان)

په خوب کښے د ډیوے تاخ ښځه ده معبران وائی چه د کور خد متګاروی او چراغ دان حکومت دے.
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه چراغدان د اوسپنے دے. تعبیرئے، د هغه د خد متګار اصل به کفر وی او که د خاورے اُوینی نو د هغه خد متګار به مسلمان وی او دیندار او امانتګر دے که اوګوری چه چراغدان ئے د لاسه پریوتے دے او مات شوے دے تعبیرئے، چه د ده ښځه یا خد متګار به مړ کیږی.

## ډیرے لګول

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی د غلے ډیرے لګول د لاسے سړے دے چه په تکلیف او سختئ سره به مال حاصلوی او هغه مال فضول جمع کوی. که اوګوری چه کړلے دے او دیلے ئے دے او ډیرے ئے جمع کړے دے. تعبیرئے مال به په سختئ سره حاصل کړی.
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه د غلے دانے ډیرے ئے اخستے دے او یا چا ورکړے دے تعبیرئے، ښځه به کوی، او ځنے معبران وائی د داسے سړی سره به په صحبت کښے پریوځی چه مال به سختی او تکلیف سره حاصل کړی.

## ډبے

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے د غوړو ډبے یو امانتګر سړے دے که اوګوری چه دده سره د غوړو ډبے دے او یا ورته چا ورکړے دے تعبیرئے، د امین سړی په صحبت کښے به پریوځی او د هغه نه به

خیراونفع ورسیږی دَ غوړو دَ ډیې په اندازه.که د بے زوړ او خیرن وی تعبیر ئےدَ خوب لیدونکی ته به نقصان اوضرر رسیږی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی دَ ډیې لیدل په خوب کښے په نهوو وجوږی
(۱) امین سړے (۲) ښځه (۳) خدمتګار (۴) دَ دین مضبوطولے (۵) دَوجود تندرستی (۶) دَ عمراوږدوالے (۷) مال اونعمت (۸) خیراوبرکت (۹) دَ ښځو دَطرفه میراث۔

## دولچه

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، دول په خوب کښے لیدل داسے سړےګچه نامعلومه مالونه پهرراوباسی .که څوک اوګوری چه دولچه دَ اُوبو نه ډکه ده او، یا په دولچه اوبه راوباسی تعبیر ئےدَ هغےپه انداز به په تکلیف سره مال حاصلوی.که اوګوری چه دَ صفا اوبو نه دولچه ډکه ده او یا ورته چاورکړے ده تعبیر ئےپه اسانه به مال ورته ملاؤشی.که اوګوری چه په دولچه دَ ډنډ نه اوبه راوباسی تعبیر ئے، دَ هغے په اندازه به مال په چل او حیله په لاس راوړی.که اوګوری چه په ذمکه دَ دولچے نه اُوبه تویوی.تعبیرئے،مال به په نیکی سره خرچ کوی (سمه لاره کښے)

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائیلی دی که څوک خوب کښے اوګوری چه لوئے دولچه ورسره ده او،یا ورته چا ورکړے ده تعبیرئےدَ کوم مالداره سړی سره به ئے دوستی وکړی اودَ هغهٔ نه به نفع اومومی.

## ډاکو (راهزن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، ډاکو په خوب کښے لیدل هغه سړےدَچه دَ خلکو سره جنګ اوجګړه کوی.که څوک اوګوری چه ډاکو دَ دهٔ مال یوړلو تعبیرئےدَداسے سړی سره به ملاویږی چه دے به خپلوی اوچه څو مره مال غل وړے دے دَ هغے په اندازه به فائده اومومی.که اوګوری چه ډیر ډاکوان دے تشو کولوچه څهٔ مال ورنه یوسی وربانډے راجمع شوی دی او، دے تعبیرئے،که بیمار دی نوشفا به بیا مومی.

که څوک اوګوری چه ډاکوانو ورنه څهٔ غلا اوکړه تعبیرئے، هغه غل به دهٔ ته څهٔ دروغ وائی.که اوګوری چه ډاکوانو دَدهٔ ټوپۍ غلا کړے ده او ورنه ئے وړیده تعبیرئےپه څهٔ مصیبت به ګرفتارشی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه په خوب کښے ئے غلا کړے ده اودَ چا نه ئے سامان وړے دے تعبیرئے هغه سړے به په دهٔ

غصه شی. او که اوګوری چه په خپله ئے غلا وکړه او د چا سامان ئے یوړلو تعبیرئے هغه سړے به بیمارشی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائیلی دی، غلا کول په خوب کښے په دریو وجو وی (۱) جنګ (۲) جګړه او تل دروغ ویل (۳) دژوند تباهی او بیماری.

## ډهال

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی سپر (ډهال) په لاس کښے لرل دا ده چه د بادشاه د خلکو د طرفه پناه ده. که ډهال سره سلاح هم اوګوری تعبیرئے دا سے سړے دے چه رونړه او دوستان به د بدی د شر نه حفاظت کښے ساتی. که اوګوری چه ډهال ئے په زمکه غورزولے دے تعبیرئے، د بهترین کوم سړی سره به ئے ناسته وی.

حضرت امام جعفرصادقؒ وائی، د ډهال لیدل په خوب کښے په شپږو وجو وی (۱) ورور (۲) دوست (۳) قوت (۴) ځوی (۵) امن (۶) د ډهال د غټوالی په انداز ه پشت پناهی.

## ډوبیدل (غرق شدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک اوګوری چه په دریاب کښے ډوب شوے دے تعبیرئے د بادشاه د طرفه به هلاک کړے شی.

که اوګوری چه اوبو ډوب کړے دے او مړ نه دے تعبیرئے د دُنیا کارنه به لاس واخلی او د دین سمون او د آخرت لاره به تلاش کوی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه څاروے چرته کورکښے یا باغ کښے ډوب شوے دے، تعبیرئے په سخت کار کښے به پریوځی او بیا به آخر خلاص شی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے ډوبیدل په څلورو وجو وی (۱) ډیر مال (۲) بخت (۳) د بیدین خلکو سره ملګرتیا (۴) نفع

## ډانګس

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، ډانګس (چه مالوچ په کومه لینده وهی) بیغور ورکوونکے سړے دے، که اوګوری چه ډانګس ورسره دے تعبیرئے، منافقت به کوی. که اوګوری چه ډانګس ورسره دے او نه پیژنی چه دا د دۀ ملکیت دے. تعبیرئے، بدی به کوی.

## ډینګ

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی، ډینګ په خوب کښے لیدل بنځه ده. که اوګوری چه ډینګ ورسره دے، یا چا

ورته ورکړے دے تعبیر ئے ښځه به کوی. که اوګوری چه ډینګ ئے ډلاسه الوتے یا ضائع شوے تعبیر ئے ښځے ته به طلاق ورکوی. که اوګوری چه دَ ډینګ غوښه خوری تعبیر ئے دَ هغه په اندازه به مال مصرف کوی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی ډینګ په خوب کښے لیدل تعبیر ئے غم او فکر دے.

## دَ ډکو متیازو ځائے

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی. مقعد (دَ ډکو متیازو ځائے) په خوب کښے دَ خوب لیدونکی شغل او کسب دے. که څوک اوګوری چه خپل دَ ډکو متیازو ځائے ئے بهر راوتے ریښا ئے راوتلے) تعبیر ئے کسب او کار به ئے تباه شی. که اوګوری چه دَ ډکو متیازو سورے ئے بند شوے دے، تعبیر ئے دَ ده کار او کسب به ورباندے بند کړے شی.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، دَ ډکو متیازو ځائے په خوب کښے لیدل په درې وجوه دی (۱) کسب او کار (۲) دَ مال نفع (۳) زندګی

## ډنډورچی

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه ډنډورچی تیر شوے دے او دَ ده وینا دَ علم او حکمت برابره ده او په خپله صالح او تقوٰی داره وی تعبیر ئے په نیکی او دَ خوشحالی په زیری دے.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دَ دے دُنیا دَ اصلاح ډنډورچی وه تعبیر ئے خیر او نیکی به بیا مومی، او که دَ دے دُنیا دَ خیر ډنډورچی وه. تعبیر ئے دَ دے دُنیا مراد به بیا مومی، او که دَ شر او دَ فساد ډنډورچی وه تعبیر ئے دَ اول خلاف دے.

## ډیرے ډوډئ

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی؟ په خوب کښے صفا ډوډئ لیدل ښۀ ژوند دے. او که صفا ډوډئ ئے نۀ وی تعبیر ئے ژوند به ئے خراب وی. که اوګوری چه ډوډئ اخستے ده او کور ته ئے وړیده تعبیر ئے خیر او نفع ده. همدا رنګه دَ حلالے فراخه روزئ دلیل دے. که اوګوری چه ډوډئ ئے چا ته ورکړی دی تعبیر ئے هغه سړی ته به راحت او آرام ورسوی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دوه درے ډوډئ ئے پیدا کړے او نۀ شوے خوړلے تعبیر ئے دَ مرګ نیته به ئے نزدے شوے وی که اوګوری چه ډیرے ډوډئ ورسره دی او نۀ ئے دی خوړلے تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به مال حاصل کړی. که اوګوری چه دَ ګرمه ډوډئ

خوړلے دہ تعبیر ئے غم بہ ورتہ رسیږی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، کرمے ډوډئ لیدل پہ خوب کښے تعبیر ئے
دَ ښۂ ژوند او ارام دے او وچہ ډوډئ دَ دے خلاف دی او چا نہ کړے
ډوډئ خوراک تعبیر ئے قحط او تنګسیا دہ او دَ صفا او کړے ډوډئ خوړل
تعبیر ئے دَ بادشاہ پہ عدل او انصاف دے او دَ باجرے ډوډئ تعبیر
ئے پہ تنګسیا ژندګی او پرهیزګاری دے او دَ اوربشو ډوډئ خوړل تعبیر
ئے پہ تقویٰ او پرهیزګاری دے او دَ شولو تعبیر ئے سختی او دَ کاروبار نو لیدل
دی او دَ مسورو او ګرخو ډوډئ تعبیر ئے، غم او فکر دے۔
حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی کہ او ګوری چہ خشکہ ډوډئ خوړلے دہ
تعبیر ئے رزق بہ وربانډے فراخہ شی۔ او ځنو ویئلی دی چہ نرئے ډوډئ
پہ خوب کښے تعبیر ئے دَ عمرلنډ والے دے۔ کہ او ګوری چہ ګول ډوډئ
دَ دہ دَ تندی دَ پاسہ او یږاندہ دہ تعبیر ئے فقیر بہ شی۔
حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی دَ ډوډئ تعبیر پہ امیرانو بزرګانو
او رئیسانو خلکو دے۔ کہ بادشاہ یوہ ډوډئ او ګوری تعبیر ئے بادشاهی بہ
ئے زیاتہ شی۔ او کہ سوداګر ئے او ګوری تعبیر ئے مال بہ ئے زیات شی۔ او
یوہ ډوډئ دَ یو روپے نہ تر زرو روپو پورے دی دَ شخص پہ اندازہ۔ او
کہ دَ رعیت نہ چا کوم سړے ولیدلو تعبیر ئے دَ هغۂ جائداد او عزت بہ زیاتی شی۔
حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی پہ خوب کښے دَ ډوډئ نہ ښۂ شے لیدل
نشتہ دے خکہ چہ ډوډئ پہ خوب کښے داسے حلال مال دے چہ دَ تکلیف
نہ بغیر لاس تہ راځی۔ او دَ ډوډئ پخول پہ خوب کښے تعبیر ئے کار کول دی
دَ ژوند پہ طلب کښے او ډوډئ کښے تندی کول دَ مال او سرداری حاصلول دی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، ډوډئ پہ خوب کښے لیدل پہ
څلورو وجو دی (۱) ښہ ژوند (۲) حلال مال (۳) میاشت (۴) خیر او برکت
پہ دے پوهہ شہ چہ پہ خوب کښے ډوډئ هغہ سړے دے چہ دَ مال طلب
کوی۔ کہ او ګوری چہ دَ ډوډئ پخونکے شوے دے، تعبیر ئے ډیر مال بہ جنګ
سرہ حاصل کړی او ځنو معبرینو بیان کړیدی چہ دَ ډوډئ پخونکے پہ
خوب کښے لیدل عادل او انصاف دارہ بادشاہ دے۔

## تبخے ډوډئ پخولو

دَ ډوډئ پخولو تبخی کښے درے قولہ دی (۱) خادمہ دہ

(۲) دا سے سرے دے چہ بنار ونو نہ پیغام وړی را وړی (۳) ښځه ده که اوګوری
دَ ښیښے تیښځے دَ دهٔ په کور کښے دے تعبیر ئے ښځے ته به طلاق ورکوی۔
حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ ډیوډئ پخولو تیښځے لری یا
دهٔ ته چاورکړے دے تعبیر ئے ښځه نوکره یا وینزه به دهٔ ته دَ تیښځی په اندازه
ورته حاصله کړے شی یا به دَ نوکرے تیښځے په صحبت کښے واقع شی او دَ هغے نه به
خاندان ورته ورسیږی۔ که اوګوری چه دَ دهٔ دَ ډیوډئ پخولو تیښځے ضائع شوے دے
تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

## ډنډ، تالاؤ (حوض)

حضرت ابن سیرین فرمائی، تالاؤ په خوب کښے لیدل دا په حقیقت کښے علم او پوهه
ده۔ که اوګوری چه په تالاؤ کښے ئے صفا او به څښلی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه
به دَ علم نه حصه مومی۔ او که اوګوری چه دَ تالاؤ په اوبو ئے ځان وینځلے وی
تعبیر ئے دَ بندګی توفیق به مومی او دَ ګناه نه به ځان ساتی او که اوګوری
چه دَ ډنډ ټولے اوبه ئے څښلے دی تعبیر ئے عمر به په سلامتی تیر وی او
مال به ئے زیات شی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه خپلے جامے ئے په تالاؤ کښے وینځلی
دی تعبیر ئے، دَ کور خلک به ئے توبه کوی او دَ دین په لاره به ځی۔ که اوګوری
چه په حوض کښے ئے جامے وینځلی دی او پلیتی دَ تالاؤ په لاندې کښے ښکاره شوے
تعبیر ئے په علم به کار نهٔ کوی۔ او که اوګوری چه دَ تالاؤ په غاړه شینکے دے تعبیر
ئے دَ خپل علم نه به نفعه اخلی او خلکو ته به دَ دهٔ دَ علم نه نفع وی خاصکر
چه حوض دَ دهٔ خپل وی او که اوګوری چه دَ تالاؤ اوبه زیاتے شوی دی
تعبیر دَ دے نه چه پلیتے اوبه راغلے وی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به ئے
مال او علم زیات شی۔ که اوګوری چه دَ تالاؤ اوبه تورے او ترخے دی تعبیر
ئے غم او فکر دے۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه دَ تالاؤ اوبه ئے څښلی دی تعبیر
ئے دَ مالدار سړی نه به مال مومی او انجام به ئے ښهٔ وی۔
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی په خوب کښے تالاؤ لیدل په څلورو
وجوو وی (۱) نفعمند سړے (۲) مالداره سړے (۳) دَ مال جمع کول (۴)
هغه عالم چه خلک ئے دَ علم نه فائده اخلی۔

## د ډیوے چوکۍ (په کوم چه ډیوه بزدی) (چراغ پایه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، چراغ پایه په خوب کښے لیدل د کورخدمتګاره ده۔ که اوګوری چه ده سره چراغ پایه ده یا ورته چا ورکړے ده تعبیرئے د ده خادمه په خوش طبعه او مهربانه به وی او که سره زر پے لګیدلی وی تعبیرئے نوکره به ئے متکبره او مغروره وی او دین به ئے کمزورے وی. او که اوګوری چه چراغ پایه دلرګی ده. تعبیرئے خادمه ښځه به ئے بے وقوفه او بد ذاته وی او د هغے په وینا به اعتماد نه کوی۔

## ډهولکے وهل (دهل زدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښے ډهولکے وهل بے فائدے کار او خراب خبر او دروغ او ظاهر کار او روښانه دے او د دے ټولو تعبیر دادے چه ډهولکے وهونکے بد دے۔ که اوګوری چه ډهولکی سره شپیلئ هم غګوی او کړیږی تعبیرئے غم او فکر دے۔ او که اوګوری چه یوازے ډهولکے غګوی تعبیرئے باطلے خبرے دی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی، په خوب کښے ډهولکے غګول قسما قسم خبرونه او بے فائدے خبرے دی۔

## ډیر کانړی (سنګها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښے د کانړو لیدل په دوه وجو وی (۱) مال (۲) بادشاهی۔ او د هر نرم کانړی نفع زیاته ده۔ که اوګوری چه سپین کانړے ئے رانیولے دے تعبیرئے د خوش اخلاقه رئیس سره به ئے ناسته وی او د هغه نه به نفع مومی۔ او که اوګوری چه تور کانړے ئے راخستے وی تعبیرئے د ده به د عرب رئیس سره ناسته وی۔ که اوګوری چه سور کانړے ئے راخستے دے تعبیرئے د مفسد سردار نه به ورته ارام رسیږی۔ که اوګوری چه غره ته تللے دے او د غره لمن نه ئے ډیر کانړی راوړی دی او ده لیدلی دی۔ که تور کانړی وو تعبیرئے د منافقے (منافق بڼه دی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے کانړی لیدل تکلیف دے۔ که اوګوری چه د اوبو لاندے ئے کانړی راجمع کړی دی تعبیرئے په چل به مال راجمع کوی۔ که اوګوری چه د غره نه کانړی را تراشی تعبیرئے د کوم بزرګ نه به مال راجمع کوی. که اوګوری چه د ځنګل نه کانړی راجمع کوی

تعبیرئ دَ سفرنه به مال راجمع کوی. که اوګوری چه په چاړئ کانړي
ایښي دي تعبیرئ دَ خپل مال نه به چاته څه شي په ید والی ورکوی. که اوګوری
چه چاړه په دهٔ کانړي ایښي دي. تعبیرئ دَ هغې په اندازه به مال مومي.
حضرت مغربیؒ فرمائی که څوک اوګوری چه په چاړئ کانړي ایښي دي
تعبیرئ په دهٔ به تهمت لګوی
حضرت امام جعفرصادقؓ فرمائی په خوب کښې کانړي لیدل په
څلورو[۴] وجووی (۱) مال (۲) سرداری (۳) سختئ په کارونو کښې (۴) دَ محنت ګټه
حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی،

## "ذ". ذکر (دَ سړو خاص اندام

دَ عضوتناسل لیدل په خوب کښې

تعبیرئ مبارک او نومَوړے ځوی دے، که اوګوری چه دَ دهٔ دوه عضوتناسل
دی تعبیرئ دَ دهٔ به ځوی پیدا شي او هم به خلکو کښې مشری اومومي - او
که اوګوری چه دَ دهٔ عضوتناسل پریکړے شوے دے تعبیرئ ځوئے به ئے
مری او که اوګوری چه دهٔ عضوتناسل پخپله پریکړے دے تعبیر ئے ځوئے به ئے
نهٔ کیږی. که اوګوری چه دَ دهٔ عضوتناسل سست شوے دے تعبیرئے
ځوی به ئے بیمار شي.
حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ عضوتناسل لوے والے تعبیر
ډیر ځامن او دَ نوم پیدا کیدل دی. او دَ عضوتناسل ورکوتوالے دَ اول
خلاف دے. او که اوګوری چه دَ دهٔ عضوتناسل سره دَ ښاخونو پشان نور لګیدلی
دی، تعبیرئے ډیر ځامن او دَ ټمسو کیدل دی. او که اوګوری چه دَ دهٔ عضوتناسل
نه کب راوتے دے تعبیرئے دَ دهٔ به لور دَ هغه ښځې نه کیږی کومه ئے چه مشرق دریاب
دَ غاړے نه راوستے ده. او که اوګوری چه دَ دهٔ دَ عضوتناسل نه پیشو راوتلے ده
تعبیرئے دَ دهٔ به غل او ډاکو ځوی پیدا کیږی. او که اوګوری چه دَ دهٔ عضو
تناسل نه چرګ بهر راوتے دے تعبیرئے دَ هغه چرګ مطابق دے. او که
اوګوری چه دَ دهٔ عضوتناسل نه مږه راوتے ده تعبیرئے، دَ دهٔ به ناکاره لور پیدا
شي چه هغې کښې به خیرنهٔ وی. او که اوګوری چه دَ دهٔ دَ عضوتناسل نه مار راوتے
دی، تعبیرئے دَ دهٔ به داسے ځوی پیدا شي چه دَ دهٔ به دښمن وی. او که
اوګوری چه دَ عضوتناسل نه ئے لړم راوتے دے، دَ دے هم دغه تعبیر دے
او که اوګوری چه دَ دهٔ دَ عضوتناسل نه لړم او میږے راوتے دے، تعبیرئے دَ دهٔ به کمزورے

ضعیفه، کبینه کم هغه ځوی پیدا شی. او که اوګوری چه دَ دهٔ دَ عضو تناسل نه وِدِئِ راوتے ده تعبیر ئے دَدهٔ عیال به نهر او تنګک سته شی. که اوګوری چه دَ دهٔ دَ عضو تناسل نه کونترلے وتلے دی تعبیر ئے ځوک به په پټه دَدهٔ دَ اولاد سره مینه کوی. که څوک اوګوری چه دَدهٔ دَ عضو تناسل نه پیپ راوتے دے تعبیر ئے دَ دے خلاف دے. که اوګوری چه دَدهٔ دَعضو تناسل نه منی راوتے ده تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به مال ورته ملاویږی. او که اوګوری چه دَدهٔ عضو تناسل نه وینه راوتے ده تعبیر ئے دَ حائضے ښځے سره به کور والے کوی. او که اوګوری چه دَ دهٔ دَ عضو تناسل نه اُور بهر راوتے دے چه نیم اُور مشرق ته او نیم اُور دَ مغرب په طرف روان دے، تعبیر ئے دا دے ځوی به ئے کیږی چه هغه به دَ مشرق او دَ مغرب بادشاهی کوی.

او که اوګوری چه دَ هغهٔ عضو تناسل نه سوځی راوتے دی تعبیر ئے میلان به ئے لواطت طرف ته وی. که اوګوری چه دَدهٔ عضو تناسل وددیدلے او سخت شوے دے تعبیر ئے نصیب او بخت به ئے قوی کیږی. او که اوګوری چه دَ دهٔ عضو تناسل ولاړ او اوږد شوے دے تعبیر ئے دَدهٔ به ډیر ځامن کیږی. او که اوګوری چه دَدهٔ دَ عضو تناسل نه کیرچاپیره وزرے توکیدلے دی. تعبیر ئے دَدهٔ نوم به هغه ملک کښے مشهور شی. عزت او مرتبه به ئے زیاته شی. که اوګوری چه په خپل لاس ئے عضو تناسل وویستلو او بیا ئے په خپل لاس کیښودلو، تعبیر ئے یو ځوی به ئے مړ شی او بل به ئے پیدا شی. او که اوګوری چه عضو تناسل ئے دَ چا په خوله کښے ایښے او هغه ئے رُوی تعبیر ئے دَدهٔ نه به هغه کس ته فائده رسیږی. او که اوګوری چه دَدهٔ په عضو تناسل باندے وینښته توکیدلی دی تعبیر ئے دَ ځوی نه به خوشحاله وی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه اندام مخصوصه ورنه جدا شوے دے تعبیر ئے ځوی به ئے مړ کیږی او یا به ئے مال هلاک کیږی. او دَ عضو تناسل حرکت تعبیر ئے په قوت او دَ نعمت په فراخی دے. که اوګوری چه عضو تناسل ئے شلیدلے دے او وینه ورنه بهیږی تعبیر ئے دَ مال تاوان او دَ ځوی مړکیدل دی او که اوګوری چه عضو تناسل ئے پړسیدلے دے تعبیر ئے، مال به ئے زیات شی که اوګوری چه خلک ئے په عضو تناسل وهی تعبیر ئے دَ زندګی په تباهی دے. که اوګوری چه عضو تناسل په منځ کښے تړلے شوے دے تعبیر ئے دَدهٔ

ګواه به ګواهي نۀ ورکوي. او که اوګوري چه ښځه ئې عضو تناسل لري تعبير ئې که هغه ښځه حامله وي، نو ځوی به ئې پيدا شي مګر مړ به شي او که حامله نۀ وي نو حامله به شي. او که اوګوري چه عضو تناسل ئې نرے دے هم دغه تعبير ئې دے. او که اوګوري چه دَ عضو تناسل ئې څۀ حصه پريکړے شوے ده تعبير ئې ځوی به ئې مړي او مال او مرتبه به ئې کمه شي. او که اوګوري چه دَ دۀ دَ عضو تناسل سوري نه ملغلرے يا جواهرات راوتی دی تعبير ئې دَ دۀ به عالم او پرهيزګاره ځوی پيدا کيږي.

حضرت امام جعفر صادق رح فرمائيلي دي، دَ عضو تناسل ليدل په اوۀ وجوه وي (۱) ځوی (۲) دَ کور خلک (۳) مال (۴) عمر (۵) سرداري (۶) طلب حاجت (۷) مرتبه، عزت او ښۀ والے.

"ر"۔ ريښم

په دے پوهه شه چه دَ ريښم ليدل په خوب کښے دَ ريښمو دَ ليدلو برابر دي چه دَ دے ذکر به اوس اوکړو.

کچه ريښم:۔ حضرت ابن سيرين رح فرمائيلي دي که سپين ريښم او ابريشم اوګوري، تعبير ئې دَ دے دُنيا نعمت به بيا مومي. او که زير ريښم اوګوري تعبير ئې بيماري ده او دَ پخو ريښمو ليدل ښۀ دي دَ خامونه. که اوګوري چه ريښم يا ابريشم ئې سوزولي يا ضائع شوي دي. تعبير ئې دۀ ته به تاوان ورسيږي. که اوګوري چه ريښم لري او دۀ سره دي او دے پوهيږي چه دا دَ دۀ ملکيت دے، تعبير ئې خير او نفع به بيا مومي. او که شنۀ وو نو بيا ښۀ دے که سرۀ وو نو نارينه وو دَ پاره بد دے او که تور وو يا اسماني رنګه تعبير ئې غم او فکر دے که اوګوري چه هر رنګ ريښم دۀ سره دي تعبير ئې هر قسم متاع به بيا مومي او ريښم دَ سړو دَ پاره دين کښے بد دي او دَ ښځو دَ پاره ښۀ دي.

ريښم، ديبا۔ (پرنيان)

ديبا يو قسم کپړه ده، په خوب کښے دَ ديبا ليدل تعبير ئې دَ ريښمو مثال دے، دَ دے تفصيل به دَ حرف دال نه رانقل کړو.

ريښم۔ (ديبا)

حضرت ابن سيرين رح فرمائيلي دي، دَ ريښم ليدل تعبير ئې دَ دے دُنيا خير او صلاح ده او که ښځے ئې اوګوري نو ښۀ دي او که سړي اوګوري چه دَ ريښمو او ديبا قبه ئې اچولے ده او جهاد کوي تعبير ئې په دُنيا او آخرت کښے به عزت او مرتبه بيا مومي.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که ښځه اوګوري چه قمیص ئې د اطلس اغوستے دے' تعبیر ئے هغه ښځه به دینداره او پرهیزګاره دي' اوکه اوګوري چه سپین اطلس ئے اغوستے دے تعبیر ئے د دے پرهیزګاري ده اوکه اطلس اسماني رنګه وي تعبیر ئے په دے به مصیبت راځي. اوکه اوګوري چه اطلس توردے تعبیر ئے غمژنه به شي اود ریښم جوړولو والایو مسافر سړے دے چه د دُنیا صلاح او د دین خرابي کوي- اود بنا پیرو تعبیر د دیبا تعبیر برابر دے.

## رخت خرخوونکے

په خوب کښے رخت خرخوونکے سړے لیدل ډیر خطرناک سړے لیدل دي ځکه چه روپئ قیمت درهم او دنانیر دے چه اخلي او ورکوي او د روپواواشرفو تعبیر مکر او ناپیښنه ده اوپه دے کښے هیڅ خیر نشته اود رخت په اشرفو او روپو باندے چه تورخه شے اخلي تعبیر ئے د هغه شي ښه والي او بد والي پسے ځي.

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي که څوک خوب کښے اوګوري چه مجازي توب کوي اود رخت څه قیمت روپے پیسے نه اخلي تعبیر ئے دا ته به غم او نقصان رسیږي- که اوګوري چه د جامو په عوض ئے جامے اخستے دي تعبیر ئے مراد به ئے حاصل شي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي' رخت خرخوونکے په خوب کښے د دُنیا زینت دے.

## د رسوت بوټے

دا سے ګیاه ده چه د هغے پاڼړے پلنے اولوے وي اود هغے غوټے اوګل زیړ دے اود دے خوب کښے لیدل تعبیر ئے بے اصله کمینه خد متګاره ښځه ده که اوګوري چه دے د رسوتي بوټے لري او' یا چا ورکړے تعبیر ئے' د داسے ښځے سره به ئے صحبت کیږي چه نفع به ورنه ملاویږي.

## رانجه

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي' رانجه په خوب کښے لیدل مال دے که څوک خوب کښے اوګوري چه رانجه ئے په سترګو کښے اچولي دي او مقصد ئے د سترګو رڼا وي تعبیر ئے د دین اصلاح به لټوي اوکه مقصود ئے د دے خلاف وي تعبیر ئے خپله دینداري به په خلکو باندے د منافقؒ

شان بنکاره کوی دَ دے دَ پاره چه خلک ئے صفت کوی۔
حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که ثوک اوګوری چه دهٔ ته چا را نجهٔ ورکړی دی تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به ورته مال حاصلیږی که ثوک اوګوری چه رانجه ئے خوړلی دی تعبیر ئے دے به محتاجه او غمژن دی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، که ثوک اوګوری چه رانجه ئے په ترخ کښے دَ بدبوی لرے کولو دَ پاره ساتلی دی تعبیر ئے دا سے کار به کوی چه دَ هغې په وجه دَ هغې صفت او نیکی بیانیږی۔

## رانجه (سُرمه)

حضرت ابن سیرینؒ فرماسلی دی، رانجه په خوب کښے لیدل مال دے۔که ثوک اوګوری چه رانجهٔ ئے په سترګو کښے اچولی دی تعبیر ئے دَ دین اصلاح به لټوی،اوکه اوګوری چه رانجه چا ورکړی دی تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به مال بیاموهی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی رانجه په خوب کښے لیدل دَ سړو او ښځو دَ پاره عزت او مرتبه ده او بعضے تعبیر کوونکی وائی چه رانجه په خوب کښے لیدل دَ حق دَ لارے موندل او ثواب دے۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، رانجه خرخوونکے په خوب کښے دا سے سړے دے چه دَ دین اصلاح لټونه به کوی ځکه چه سترګه دین دے او رانجهٔ رڼړا ده۔

## رانجهٔ خرخوونکے۔ (کُحال)

په خوب کښے رانجهٔ خرخوونکے دَ ښو کارونو تعبیر دے او دَ هغو کارونو ښودنه چه په هغې کښے ګمراهی دی ورنه اصلاح موندل دی۔
که اووینی چه رانجهٔ خرخوی او دَ دهٔ دارو دَ سترګو دَ پاره فائده مند دی تعبیر ئے خلکو ته به دَ نیکو کارونو ښودنه او دعوت ورکوی او خلکو ته به دَ هغې نه نفع حاصلیږی۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائی که اووینی چه رانجهٔ خرخوی تعبیر ئے ورنه جدا شوی دوستان به راجمع کوی او دَ خلکو به منځ کښے به اصلاح لټوی۔ اوکه دَ دهٔ په دارو کښے فائده نهٔ وه تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

## رنجوکځوره، رنجرومه (سُرمه دانی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی رنجرومه په خوب کښے لیدل هغه

ښځه چه هر وخت دَ الله تعالیٰ طرف ته رجوع کوی او خلک دَ الله تعالیٰ طرف ته رابلی. که اوګوری چه رنجرومه ئے ماته شوے ده تعبیر ئے، ښځه به ئے مړه کیږی

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، رنجرومه په خوب کښے لیدل دیندار ه ښځه ده اوکه اوګوری چه رنجرومه ئے ضائع شوے ده. تعبیر ئے، دَ ښځے دَ صحبت نه به جُدا شی. اوکه اوګوری چه رنجرومه ئے اخستے ده تعبیر ئے دَ ښاره وینځو به اخلی.

## رُوح

محمد بن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے دَ روح لیدل مال یا موافق اولاد دے. که اوګوری چه روح ئے دَ وجود نه وتلے دے تعبیر ئے یا به ئے ځوی مړ کیږی او، یا به ئے مال هلاکیږی یا به خپله مړ کیږی. که چرے روح دَ نیک سړی په شکل اوګوری تعبیر ئے نیک عمله ځوی به ئے پیدا کیږی او نیک حال به ئے شی او، یا به خوش طبعه او ځوانمرده بادشاه خدمت ورته حاصل شی او حال به ئے ښه وی. اوکه خپل روح دَ کوم خراب سړی په صورت کښے اوګوری تعبیر ئے دَدے خلاف دے کوم چه مونږ بیان کړو.

## قِصه

په حدیث شریف کښے راغلی دی چه یو سړے دَ رسول الله صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شو او، وے وئیلے چه اے رسول الله صلے الله علیه وسلم په خوب کښے مِ داسے ولیدل چه روح مِ دَ تنے نه وتلے دے او زه ئے په غیږ کښے نیولے یم او بیا اسمان ته لاړو. رسول الله صلے الله علیه وسلم ورته اُوفرمائیل چه وصیت وکړه، ستا روح خپل ځائے ته ورسید و. بیا هغه سړی په هم هغه ورځ دَ دُنیا نه سفر وکړو.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که یو سړی خپل روح په خپل دَ لاس په ورغوی کښے اوګوری تعبیر ئے څه خطرناک کار کښے به مشغول شی چه دَ ته به په هغے کښے دَ مرګ ویره وی. که اوګوری چه دَ ورغوی نه ئے روح اسمان ته لاړ دے تعبیر ئے په یر زر به مړ شی. که اوګوری چه دَ روح رنګ ئے زیړ دے تعبیر ئے په سخته بیماری کښے به مړ شی اوکه روح سپین او، یا سور اوګوری تعبیر ئے عاقبت او انجام به ئے ښه وی او دَ غم نه به خلاصے اوګوری. اوکه دَ روح رنګ تور اوګوری تعبیر ئے دَ الله تعالیٰ دَ عذاب مستحق به سی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلی دی که څوک اوګوری چه دَ مړی زنګان دے اوخپلوان ئے ورته ژاړی تعبیر ئے، دَ مړی دَ کور خلکو ته به غم رسیږی اوکه اوګوری چه دَ دهٔ خپلوان دروو ژاړی تعبیر ئے، دَ مړی روح به په عذاب کښے وی.

## رنړا

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، رنړا په خوب کښې لیدل دَدین اوهدایت باندے دلیل لری۔ که اوګوری چه رنړائے اخستے ده او یا ورته چا ورکړے ده تعبیرئے چا ته به دَدین زده کړه وکړی او نیغه لاره به ورته ښائی۔او تیارهٔ په خوب کښې لیدل ګمراهی او بې دینی ده۔دَ الله تعالیٰ کلام دے (اَللّٰهُ وَلِیُّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا یُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَی النُّوْرِ) (البقره ۱۵۷) ترجمه :۔ الله تعالیٰ دَ ایماندارو دوست دے دَ تیارے نه ئے دَ رنړا طرف ته راوباسی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه په سینه کښې ئے رنړا راپریوتے دَ تعبیرئے پرهیزګارا او دینداره به وی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (اَفَمَنْ شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ فَهُوَ عَلٰی نُوْرٍ مِّنْ رَّبِّهٖ) (الزمر ۲۳) ترجمه: آیا هغه سړے چه دَ هغهٔ سینه الله تعالیٰ دَ اسلام دَ پاره پرانستے ده هغه دَ خپل رب دَ طرف نه په نور باندے دے۔

که اوګوری چه ګیر چاپیره ئے رنړا ده تعبیرئے دَ خیر او دَ عافیت دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، دَ رنړا لیدل په خوب کښې په څلورو وجو وی (۱) دَدین هدایت (۲) علم (۳) نیغه لاره (۴) پاکه عقیده۔

## یو رنګ ارشے دے۔ (روناس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، روناس لیدل په خوب کښې تعبیرئے دَ دُنیا خاشت دے اوخوړل ئے په ضرر او په تکلیف تعبیر لری۔ که اوګوری چه په روناس ئے جامه سره شوے ده۔ تعبیرئے دَ دُنیا په ژوند به مشغول وی او دَدین لاره به پریږدی

## روپۍ مُهر کول

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی دَ پیسو ورکولو والا سړے داسے سړے دے چه خپلے خبرے ښائسته کوی او په فخر ئے بیانوی۔ که خوب کښې اوګوری چه روپۍ مُهر کوی تعبیرئے څو بے اصله خبرے به ښائسته اوخوږے کوی۔ اوکه اوګوری چه روپۍ جوړوی تعبیرئے سختے او ناخوښه خبرے به کوی چه هغه څوک ئے واوری نو خفه به ترے شی۔

## رکیبۍ۔ (طباق)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، رکیبۍ په خوب کښې خادم دے چه دَ ښادی په وخت دَ مجلس خدمت کوی اوڅوک ئے چه اووینی خوشحالیږی۔ که اوګوری چه لویه رکیبۍ ورسره ده تعبیرئے چه په دے شان خادم به حاصل کړه۔ که اوګوری چه رکیبۍ ماته شوے ده تعبیرئے دَ خوب لیدونکی نوکر به مړ کیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه رکیبۍ په اور کښې پرته او

سوزیدلے دہ تعبیر ئے ویزنہ یا خدمتګار بہ ئے بیمار شی پہ طاعون او پہ سرسام بہ اخته شی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائیلی دی، دَ رکیبئ لیدل پہ خوب کنبے پہ څلورو وجوو دی (۱) دَ مجلس او دَ کورخدمتګار (۲) ویزنہ (۳) فائدہ (۴) هدایت

## ریښمینہ کپړہ (کژاکند)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، کہ خوب کنبے اوګوری چہ ریښمینہ کپړہ ئے اغوستے دہ تعبیر ئے ښځہ بہ کوی او پہ دښمنانو بہ غالبہ وی۔ او کہ دا خوب ښځہ اوګوری تعبیر ئے میړہ بہ کوی او دَ هغۀ نہ بہ خیر او نفع مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی کہ اوګوری چہ نوے ریښمینہ کپړہ ئے اغوستے دہ تعبیر ئے مالدارہ او پرهیزګارہ ښځہ بہ کوی۔ او کہ اوګوری چہ شنہ ریښمینہ کپړہ ئے اغوستے دہ تعبیر ئے هغہ ښځہ بہ چہ دے ئے کوی پرهیزګارہ او صالحہ بہ وی او کہ اوګوری چہ سرہ ریښمینہ کپړہ ئے اغوستے دہ تعبیر ئے دَ عیش پرستہ ښځے سرہ بہ وادۀ کوی۔ او کہ تورہ ریښمینہ کپړہ ئے اغوستے دہ او خوب لیدونکے قاضی او، یا خطیب وی تعبیر ئے دَ نیکی دے۔ او کہ نور وی تعبیر ئے هغہ ښځہ بہ ګنهګارہ وی۔ او کہ ریښمینہ کپړہ زړہ وی تعبیر ئے دا ښځہ بہ پلیتہ او مردارہ وی۔

## ریښمینہ رنګینہ کپړہ۔ (وشم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی ریښمینہ او رنګینہ کپړہ لیدل غم او فکر دے کہ اووینی چہ دۀ سرہ وشہ نیوونکے دے تعبیر ئے دۀ غم او فکر بہ زیات دی۔ او کہ چا تہ ئے ورکړے وی تعبیر ئے دَ غم او فکر نہ بہ خلاص وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کہ اووینی چہ روښی سرہ ئے څۀ څیز غښتلے دے تعبیر ئے پراګندہ کارونہ بہ ئے راجمع شی کہ اووینی چہ دۀ وشہ ژوولے دہ۔ تعبیر ئے دَ خلکو غیبت بہ زیات کوی۔

## رپیدل (لرزیدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، کہ اوګوری چہ غاړہ ئے رپیږی تعبیر ئے پہ امانت کنبے بہ کمزورے۔ کہ اوګوری سر ئے رپیږی تعبیر ئے دَ حاکم نہ بہ تاوان ورتہ رسیږی او کہ اوګوری چہ ښخپ ئے رپیږی تعبیر ئے ښناکست او

آرام به نه لري او که اوګوري چه لاسونه ئے رپیږي تعبیر ئے نیک ژوند
ـے وي او که اوګوري چه سینه ئے رپیږي تعبیر ئے دا سے خبره به واوري
ـه غمژن به شي ورباندے. او که اوګوري چه خیټه ئے رپیږي د چانه ئے
ـه قوت حاصل کړے او پناه ئے ورنه اخستے وي د هغه د طرف نه به
ـه غم او تکلیف ورته رسیږي. او که اوګوري چه ځیګے ئے رپیږي تعبیر ئے
ـه سفر کښے به تکلیف ورته رسیږي. او که اوګوري چه کوم عضو ئے رپیږي
تعبیر ئے هغه مراد چه دے ئے د حاصلولو کوشش کوي د هغے نه به تکلیف او سختي
ـیني ـــــ حضرت دانیال فرمائیلي دي د اندامونو رپیدل په خوب کښے یره
او ډار دے ـــــ حضرت امام جعفر صادق فرمائیلي دي د اندامونو
رپیدل په خوب کښے په څلورو وجوو دي - (۱) کمزورے احوال (۲) یره او ډار (۳) غم
او فکر (۴) ضرر او بیماري.

## رپیدل د شیانو (لرزیدن چیزها)

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي. که څوک خوب کښے
اوګوري چه اسمان رپیږي تعبیر ئے په هغه ملک کښے به فتنه او فساد ډیرشي
او که اوګوري چه نمر او سپوږمۍ رپیږي تعبیر ئے د هغه ملک بادشاه ته به
ضرر او تکلیف رسیږي. او که اوګوري چه ستوري رپیږي، تعبیر ئے د بادشاه
مقربینو کښے به پریشاني ظاهریږي. که اوګوري چه زمکه رپیږي تعبیر ئے
فتنه او آفت دے. که اوګوري چه غر رپیږي تعبیر ئے د هغه ملک
بادشاه ته به ضرر رسیږي.
حضرت مغربي فرمائیلي دي، که اوګوري چه عرش رپیږي تعبیر ئے
د علماء په بد دیانتي او په فساد باندے دے. که اوګوري چه لوح او قلم رپیږي
تعبیر ئے د منشیانو او د علماء په بد حالي دے. او که اوګوري چه اووه واړه
اسمانه رپیږي تعبیر ئے د هغه ملک د خلکو د فساد په وجه د الله پاک عذاب
او غصه وي. که اوګوري چه نمر او سپوږمۍ د ستورو په وجه رپیږي تعبیر
ئے د دے ملک د بادشاه په جنګ او دښمني او قتل او خونریزي دے.
او که اوګوري چه د بادشاه کور یا محل رپیږي تعبیر ئے د هغه ځائے خلکو
ته به خواري او آفت پریوځي. او که اوګوري چه د دهبان رپیږي تعبیر ئے
فساد او مصیبت دے.

## رومال (لوی رومال او پټکی)۔ (مندیل)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی رومال لیدل په خوب کښې خادم دے او هر کله اوزیاتے چه په رومال کښې اوګوری تعبیر ئے خادم ته رجوع کوی که اوګوری چه نوے رومال ورسره دے او، یا چادر کړے دے تعبیر ئے هغه ته به خادم حاصل شی. او که اوګوری چه شین یا سپین رومال دے تعبیر ئے خادم به ئے دیندار وی او که رومال سور وو تعبیر ئے خادم به ئے عیش پسند او سرکشه وی۔ او که زیړ رومال اوګوری تعبیر ئے خادم به ئے بیمار شی۔ او که اسمانی رنګه رومال اوګوری تعبیر ئے خادم به ئے مصیبت زده او غمژن وی۔ او که اوګوری چه د تولیے پشان رومال دے تعبیر ئے د ده خادم به پرهیزګاره وی۔ او که اوګوری چه رومال ئے د وړی او یاد تارونو دے تعبیر ئے خادم ئے دیندار او امین دے او که د کتان په شان اوګوری تعبیر ئے نیک دے او که د ریښمو رومال اوګوری خادم به ئے بے وفا او متکبر وی او که اوګوری چه رومال خیرن یا زوړ یا شلیدلے دے تعبیر ئے د خادم نه به نیکی او مومی۔ او که اوګوری چه رومال ضائع شوے دے تعبیر ئے خادم به ورنه جدا شی۔ او که اوګوری چه رومال سوزیدلے دے۔ تعبیر ئے خادم به ئے مړ شی۔

## رامبیل ګل۔ (نسرین)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که رامبیل ګل په خپل موسم کښې اوګوری تعبیر ئے ده ته به څه ورسیږی، داهم وئیلی شوی چه خوی به ئے پیدا شی۔ او که اوګوری چه رامبیل د ونے نه لرے دے۔ تعبیر ئے غم او فکر دے که اوګوری چه چا د رامبیل ګل ستنه ورکړے ده تعبیر ئے د ده ا و د هغه مینځ کښې به خبرے پیدا شی۔ او که د رامبیل ګل په خپله ونه کښې اوګوری تعبیر ئے خوشحالی به ورته ورسیږی او یا به د چا نه لږ څه شے بیا مومی۔

## رامبیل چنبیلی (یاسمین)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه ملګری د رامبیل چنبیلی ګل ستنه ورکړے ده تعبیر ئے د ده او د هغه په مینځ کښې به خبرے را شی او هم به ورنه جدا شی۔ که ښځه اوګوری چه رامبیل چنبیلی ګل ئے د ونے نه شوکولے او خپل خاوند ته ئے ورکړے دے تعبیر ئے خاوند به ئے طلاق ورکوی۔ او که اوګوری چه غلام ته ئے ورکړے دے، تعبیر ئے د ده غلام به

تختي او دَ را مبیل گُل وته په خوب کښې مالدارہ او بد خصلته ښځه ده
او کینه ګره ده او که هغه را مبیل خوشبویه وو۔ تعبیر ئې هغه ښځه به
سخي او احسان والا وي۔

## ریښم۔ (خز)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي چه په خوب کښې دَ ریښمو چوغه، پټکے او ټوپۍ او نور دَ دې پشان شیان
سړو دَ پاره ښهٔ دي۔ او که دا ټول په یو رنګ وي نو ښهٔ دي او که په یو رنګ نهٔ
وه بیا ئې تعبیر غم او فکر دے او دَ جامے شین رنګ ښهٔ دے
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښې ریښم چه څوک ئې اخلي
په پنځو وجوو وي (۱) مال او نعمت (۲) خیر او برکت (۳) عزت او مرتبه (۴) دَ قیمت
په اندازه مرتبه (۵) ریاست او بزرګي۔
حضرت کرمانيؒ فرمائي، دَ ریښمو کپړے اغوستل په خوب کښې تعبیر ئې
حرام مال دے معبرینو وئیلي چه دَ سړو دَ پاره ریښم لیدل بد دي او دَ
ښځو دَ پاره نیک دي او ریښم خرڅوکے هغه سړے دے چه دُنیا به په دین
خرڅوي۔

## رَس (روشاب)

دَ انګورو یا دَ څه وا دو رَس چه په هغې دَوه شیے تیرے شي،
حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، رس په خوب کښې لیدل لږ مال او نعمت
دے۔ که اوګوري چه رس ئې څښلي دي تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به ورته مال
حاصل کړے شي۔ او که اوګوري چه رَس ئې جوړ کړے دے تعبیر ئې دا سے کار
به کوي چه هغې نه به خیر او نفع مومي۔ او که اوګوري چه رس ئې په خوله کښې
ایښے تعبیر ئې، دَ چانه به ښهٔ خبره وا دري۔
حضرت مغربيؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه سپین او پاکیزه رس ئې څښلے
دے تعبیر ئې، دَ دهٔ به خوبصورته ځوي پیدا کیږي۔

## رسۍ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي رسۍ په خوب کښې لیدل وعده
ده او که پهٔ لاس کښې ئې رسۍ ده او په هوا کښې زوړنه
او لوځ دے۔ که اوګوري چه په اندازه به مرتبه بیا مومي او که اوګوري چه
دَ رسۍ دَ اوچتوالي په اندازه به مرتبه بیا مومي او که اوګوري چه
رسۍ ئې په لاس کښې وه او دے پریوتو تعبیر ئې، دَ خپلې مرتبې او عزت نه به
پریوځي۔
حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه رسۍ دَ اسمان نه زوړنده ده

او دهٔ په لاس کښې نیولے ده تعبیر ئے دَ دهٔ او دَ الله تعالیٰ په منځ کښې خه لوظ او وعدهٔ ده مثلاً که بیماروی او دوالی که خدائے زهٔ روغ کړم زهٔ به دا کار کووم او که اوګوری چه رسئ ئے په خپو کښې ده او ولاړ دے تعبیر ئے هغه وعده ده چه دَ الله تعالیٰ سره ئے کړے ده - او که اوګوری چه رسئ په لاس کښې نیولے ده تعبیر ئے دَ دین نیولے دے دَ الله تعالیٰ وعدهٔ ده - (وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا) ترجمه: منګلے ولګوئ دَ الله تعالیٰ په رسئ (دین) باندے ټول - (آل عمران ۱۰۳)

ځنے معبران وائی چه رسئ لیدل په خوب کښې هغه وعده ده چه دَ الله تعالیٰ سره ده او هم دَ الله تعالیٰ دَ مخلوق سره ده - که اوګوری چه رسئ دَ دهٔ غاړه کښې چا اچولے ده تعبیر ئے دَ چا سره ئے چه کومه وعده کړے ده دَ هغې په پوره کولو کښې تاخیر کوی - او که اوګوری چه مداری توب کوی تعبیر ئے په عقیده کښې به ئے نقصان وی - که اوګوری چه دَ اوچت ځائے نه ئے ځان په رسئ ښکته کړے دے تعبیر ئے خپل حاجت به دَ ویرے نه پریږدی -

حضرت امام جعفر صادق رح فرمائیلی دی دَ رسئ لیدل په خوب کښې په څلور وجوو دی (۱) لوظ او وعدهٔ (۲) دین (۳) امانت (۴) حاجت پوره کیدل -

## رسئ (ریسمان)

رسئ خوب کښې لیدل سفر دے که اوګوری چه دَ وړئ یا ویښتو نه ئے رسئ جوړه کړے ده لکه څنګه چه ئے ښځے جوړوی تعبیر ئے حلال کار به کوی او که تارونه ئے جولاته ورکړل چه دَ هغې نه کپړه جوړه کړی تعبیر ئے دا دے چه دا کار تدبیر به کوی چه دهٔ ته به په هغې کښې ګټه وی حضرت کرمانی رح فرمائیلی دی که چرے او وینی چه ښځه دَ ویښتو نه پشان دَ وړئ یا دَ ویښتو نه رسئ جوړوی تعبیر ئے دَ دهٔ غائب به دَ سفر نه راځی - او که اوګوری چه رسئ دَ جوړولو په وخت اوشلیده تعبیر ئے دَ دهٔ غائب به ډیره موده په سفر کښې وی او که اوګوری چه دهٔ سره ډیرے رسئ دی تعبیر ئے عمر به ئے اوږد وی دَ رسئ په اندازه به خیر او نفع او مومی دَ خپلو نه

حضرت امام جعفر صادق رح فرمائیلی دی رسئ په خوب کښې په پنځو وجو وی (۱) سفر (۲) مزدوری کار (۳) اوږد عمر (۴) ډیره نفع (۵) حاجت او حلال کسب -

## رګ نه وینه ویستل (رګ کشادن)

حضرت ابن سیرین رح فرمائیلی دی که اوګوری چه دهٔ دَ رګ نه وینه ویستلے ده - تعبیر ئے دَ دوست نه به څهٔ خبره واوری او یا به ئے مال

هلاک شی. که اوګوری چه ږګ ئے ځیرے کړے دے او دَ هغے نه وینه راوتلے ده تعبیر ئےدَ بادشاه نه به څهٔ تکلیف ورته رسیږی اوکه لږه وینه وه تعبیر ئے لږ تکلیف به وی دَ وینے په اندازه به تکلیف مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه عالم دَدهٔ ږګ وهلے او ډیره وینه ورنه راوتے ده اوکوم ځائے کښے ئے غورزولی ده تعبیر ئے بیمار به شی او خپل مال به په بیماری کښے خرچ کړی.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ ښی لاس ږګ ئے ځیرے کړے دے، دَ مراد اودَ مال دَ زیاتوالی تعبیر لری. اوکه اوګوری چه دَ چپ لاس ږګ ئے ځیرے کړے دے تعبیر ئے دَ مال او دوستانو زیاتوالے دے. که اوګوری چه چا معلوم سړی دَ دهٔ ږګ ځیرے کړے دے تعبیر ئے که ښځه ئے حامله نهٔ وی نو حامله به شی اوکه حامله وی لور به ئے پیدا شی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه ږګ ئے وهلے دے او دَ وجود نه ئے وینه راوتلے ده تعبیر ئے دَهٔ ته به دَ حق دینا کوی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی دَ ږګ وهل په څلورو وجووی:-

(۱) دَ کارخلاصوالے (۲) سفر (۳) جګړه (۴) دَ مال دَ پاره شریکیدل.

اوکه اوګوری چه ږګ ئے وهلے دے او وینه بهررا ونهٔ وته تعبیر ئے جګړه ده اوکه اوګوری چه وینه ورنه راوتے ده او وجود کښے نهٔ ده پاتے تعبیر ئے جګړه ده اوکه اوګوری چه دَ زخم په وینه ئے ګنده شوین ے تعبیر ئے څهٔ شے به ورته رسیږی معبرانو وئیلی دی چه دَ ږګ وهل په خوب کښے که چرے پرهیزګاره وی نو ښادی اوخوشحالی ده اوکه پرهیزګاره نهٔ وی نو تعبیر ئے شر او دَ فساد دے.

## ږګونه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ وجود ږګونه تعبیر ئے دَ کور په خلکو او په خپلوانو دے. که اوګوری چه دَ وجود ږګ ته ئے څهٔ آفت رسیدلے دے تعبیر ئے خپلوان به ئے غم او فکر خوری او خاص ږګ دَ بنیادمو سره تعلق لری دَ تنن ی ږګونه دَ سردارانو تعبیر لری او دَ مټو اولیچو ږګونه په اولاد تعلق لری او دَ خیټے ږګونه دَ مور دَ طرفه په خپلوانو تعبیر لری او دَ ملا ږګونه د پلار په خپلوانو تعبیر لری او دَ پنتون اوکنا ټو ږګونه په اهل بیت ښځے او په دوستانو تعبیر لری او دپنډ ئ ږګونه په مال او په نفع تعبیر لری. که اوګوری چه دَ دهٔ ږګونه پریکړے شوی دی په پلنو یا اوچ شوی دی تعبیر ئے

دَ دهٔ دَ خپلوانو نه چه کوم سړے دَ کوم رګ سره تعلق لری دَ دُنیا نه لاړشی او ځنو معبرانو بیان کړے دے چه دَ دهٔ خپلوانو ته به دا سے غم رسیږی چه په تکلیف او عذاب کښے به پریوځی او دَ خپلوانو نه به جدا شی۔
او که اوګوری چه چا ورته رګ وهلے دے تعبیر ئے دَ خپلوانو نه به دا سے بده سخته خبره واوری او ځنے وائی چه دَ هغه وینے په اندازه به دَ دهٔ دَ خپلوانو مال تلف کیږی۔

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ قیفال رګ (قیفال دَ یو رګ نوم دے) ئے ځیرے کړے، تعبیر ئے دَ دهٔ کار به بند شی۔ او که اوګوری چه دَ باسلیق (دَ لاس یو رګ دے) رګ ئے ځیرے کړے دے هم دغه تعبیر لری۔ او که سائل ووائی چه زما دَ رګ نه وینه راوتے ده، تعبیر ئے مال به بیا مومی۔ او که ووائی چه زما دَ لاس نه وینه راوتے ده، تعبیر ئے دهٔ ته به نقصان رسیږی او تعبیر ورکوونکی ته پکار دی چه دَ خوب بیانوونکے لفظ په نظر کښے وساتی او دَ هغهٔ دَ الفاظو په لوازمو تعبیر بایدِ ورکړی۔ او که اوګوری چه دَ دهٔ رګ خاکی او شین دے تعبیر ئے دهٔ ته به غم رسیږی۔

## رکاب

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی۔ که اوګوری چه رکاب دَ زین نه جدا شوے دے تعبیر ئے دَ ځوی یا دَ غلام دے۔ او که اوګوری چه رکاب دَ زین سره یوځائے دے۔ تعبیر ئے په ځوی دے چه ځوی کښے به ئے خیانت نهٔ وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه رکاب ئے دَ سرو زرو دے۔ تعبیر ئے دَ دهٔ به متکبره او مغروره ځوی پیدا شی۔ او که اوګوری چه رکاب ئے دَ سپینو زرو دے، تعبیر ئے په دُنیا مینځ ځوی به ئے پیدا شی او که اوګوری چه دَ مِسو یا دَ پیتلو رکاب ئے دے تعبیر ئے دَ کم همته ځوی دے۔ او که دَ اوسپنے رکاب اوګوری تعبیر ئے، دَ هغے په زیبائی او پاکیزګی دَ دُنیا په کار کښے قوت دے۔ او که دَ لرګی رکاب اوګوری تعبیر ئے ځوی به ئے کمینه او بدرائی وی۔ او رکاب دار په خوب کښے نیک سړے دے ځکه چه دے سردارانو ته نزدے دے۔

## رنګونه (رنګها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی سپین رنګ په جامو کښے لیدل او په نورو شیانو کښے لیدل تعبیر ئے دَ دین دَ پاکی دے او سور رنګ سړو دَ پاره بد او غم دے، او دَ ښځو دَ پاره ښهٔ دے۔ او شین رنګ دَ ښځو او سړو دَ پاره نیک دے په دین او په دُنیا کښے او تور رنګ مصیبت

دے مګرچه څوک ئے اغوندی ﺩ ﮬﻐﻮﯼ ﺩ ﭘﺎﺭﻩ ﻧﮥ ﺩﮮ ﺍﻭ ﺁﺳﻤﺎﻧﯽ ﺭﻧﮓ ﺩ ﺑﻨﺤﻮ ﺍﻭ ﺩ
سړو ﺩ ﭘﺎﺭﻩ ﻧﯿﮏ ﻧﮥ ﺩﮮ۔
ﺣﻀﺮﺕ ﺍﻣﺎﻡ ﺟﻌﻔﺮﺻﺎﺩﻕؒ ﻓﺮﻣﺎﺋﯿﻠﯽ ﺩﯼ، ﺷﯿﻦ ﺍﻭ ﺳﭙﯿﻦ ﺭﻧﮓ ﭘﻪ ﺧﯿﺮ
ﺍﻭ ﭘﻪ ﺑﺮﮐﺖ ﺗﻌﺒﯿﺮ ﻟﺮﯼ. ﮬﻤﺪﺍﺭﻧﮕﻪ ﭘﻪ ﭘﺎﮎ ﺩﯾﻦ ﺑﺎﻧﺪﮮ څکه ﭼﻪ ﺩ ﺟﻨﺘﯿﺎﻧﻮ
ﻟﺒﺎﺱ ﺩﮮ۔

## روژه لرل (روزه داشتن)

ﺣﻀﺮﺕ ﺍﺑﻦ ﺳﯿﺮﯾﻦؒ ﻓﺮﻣﺎﺋﯿﻠﯽ ﺩﯼ، ﮐﻪ ﺍﻭګوری ﭼﻪ ﺭﻭﮊﻩ ﺩﺍﺭﺩﮮ ﺍﻭ ﺗﺴﺒﯿﺤﺎﺕ
ﺍﻭ ﺩ ﻗﺮﺁﻥ ﺷﺮﯾﻒ ﺗﻼﻭﺕ ﮐﻮﯼ ﺗﻌﺒﯿﺮ ﺋﮯ ﺩ ګناهونو ﻧﻪ ﺑﻪ ﺗﻮﺑﻪ ﮐﻮﯼ ﺍﻭ ﮐﻪ
ﺍﻭګوری ﭼﻪ ﺭﻭﮊﻩ ﺳﺎﺗﯽ ﺍﻭ ﺩ ﺧﻠﮑﻮ ﻏﯿﺒﺖ ﮐﻮﯼ ﻳﺎ ﺑﮯ ﺣﻴﺎ ﺧﺒﺮﮮ ﮐﻮﻟﮯ ﺗﻌﺒﯿﺮ
ﺋﮯ، ﺩﮮ ﺑﻪ ﺩ ﺭﻳﺎ ﻋﺒﺎﺩﺕ ﮐﻮﯼ ﺍﻭ ﺩ ﺩﯾﻦ ﭘﻪ ﻻﺭﻩ ﮐﯿﻨﮯ ﺭﺷﺘﯿﻨﮯ ﻧﮥ ﺩﮮ۔
ﺣﻀﺮﺕ ﮐﺮﻣﺎﻧﯽؒ ﻓﺮﻣﺎﺋﯿﻠﯽ ﺩﯼ ﮐﻪ ﺍﻭګوری ﭼﻪ ﺩ ﺭﻭﮊﮮ ﻣﯿﺎﺷﺖ ﺩﻩ ﺗﻌﺒﯿﺮ ﺋﮯ
ﺳﺨﺘﯿﺎ ﺍﻭ ﺗﻨګی ﺩﻩ ﺩ ﺭﺯﻕ ﺩﻩ ﺍﻭ څوک ﻭﺍﺋﯽ ﭼﻪ ﺩ ﺩﯾﻦ ﺩ ﺩﺭﺳﺘﯽ ﺍﻭ ﺩ ﻏﻢ ﻧﻪ ﺩ ﺧﻼﺻﯽ
ﺍﻭ ﺩ ﻗﺮﺽ ﻧﻪ ﺩ ﺧﻼﺻﯽ ﺧﺎﺻﮑﺮ ﭼﻪ ﺩﺍ ﺧﻮﺏ ﺋﮯ ﺩ ﺭﻭﮊﮮ ﭘﻪ ﻣﯿﺎﺷﺖ ﮐﯿﻨﮯ ﻟﯿﺪﻟﮯ ﻭﯼ۔
ﺣﻀﺮﺕ ﺍﻣﺎﻡ ﺟﻌﻔﺮﺻﺎﺩﻕؒ ﻓﺮﻣﺎﺋﯿﻠﯽ ﺩﯼ ﭘﻪ ﺧﻮﺏ ﮐﯿﻨﮯ ﺭﻭﮊﻩ ﻧﯿﻮﻝ ﭘﻪ ﻟﺴﻮ ﻭﺟﻮ
ﻭﯼ (۱) ﺑﺰﺭګی (۲) ﺭﻳﺎﺳﺖ (۳) ﺗﻦ ﺭﺳﺘﯽ (۴) ﻣﺮﺗﺒﻪ (۵) ﺗﻮﺑﻪ (۶) ﮐﺎﻣﻴﺎﺑﯽ (۷) ﻧﻌﻤﺖ
(۸) ﺣﺞ (۹) ﺟﮭﺎﺩ ﮐﻮﻝ (۱۰) څوی۔ ﻣګر ﭘﻪ ﺧﻮﺏ ﮐﯿﻨﮯ ﭘﻪ ﮬﯿﺮﻩ ﺳﺮﻩ ﺭﻭﮊﻩ ﺳﺎﺗﻞ
ﺗﻌﺒﯿﺮ ﺋﮯ ﺩ ﺣﻼﻟﮯ ﺭﻭﺯﯼ ﺍﻭ ﺩ ﻧﯿﮏ ﻣﺮﺩﯼ ﺩﮮ۔ ﺍﻭ ﮐﻪ ﺭﻭﮊﻩ ﺋﮯ ﭘﻪ ﻗﺼﺪ ﺳﺮﻩ
ﻣﺎﺗﻪ ﮐړې ﻭﯼ ﺗﻌﺒﯿﺮ ﺋﮯ ﭘﻪ ﺳﻔﺮ ﮐﯿﻨﮯ ﺑﻪ ﺗﮑﻠﯿﻒ ﺑﺮﺩﺍﺷﺖ ﮐﻮﯼ ﺍﻭ، ﻳﺎ ﺑﻪ ﺑﯿﻤﺎﺭﺷﯽ
ﺍﻭ ﮐﻪ ﺍﻭګوری ﭼﻪ ﺩ ﺭﻭﮊﮮ ﭘﻪ ﻣﯿﺎﺷﺖ ﮐﯿﻨﮯ ﺭﻭﮊﻩ ﻧﯿﻮﻟﮯ ﺩﻩ ﺗﻌﺒﯿﺮ ﺋﮯ ﺗﻮﺑﻪ ﺑﻪ
ﻭﮐړی ﺍﻭ ﮐﻪ ﺍﻭګوری ﭼﻪ ﻧﻔﻠﯽ ﺭﻭﮊﻩ ﺋﮯ ﻧﯿﻮﻟﮯ ﺩﻩ ﺗﻌﺒﯿﺮ ﺋﮯ ﺩ ﺑﯿﻤﺎﺭﯼ ﻧﻪ ﺑﻪ ﺍﻣﻦ ﮐﯿﻨﮯ
ﺷﯽ. ﺍﻭ ﮐﻪ ﺍﻭګوری ﭼﻪ ﻳﻮ ﮐﺎﻝ ﺋﮯ ﭘﺮﻟﻪ ﭘﺴﮯ (ﻣﺘﺼﻞ) ﺭﻭﮊﮮ ﺳﺎﺗﻠﮯ ﺩﯼ ﺗﻌﺒﯿﺮ
ﺋﮯ ﺣﺞ ﺑﻪ ﻭﮐړی ﺍﻭ ﮐﻪ ﺍﻭګوری ﭼﻪ ﺩ ﻋﺎﺷﻮﺭﻩ ﺩ ﻭﺭځې ﺭﻭﮊﻩ ﺋﮯ ﺩﻩ ﺗﻌﺒﯿﺮ ﺋﮯ ﺩ ﻏﻢ
ﺍﻭ ﻓﮑﺮ ﻧﻪ ﺑﻪ ﺧﻼﺻﮯ ﺑﻴﺎ ﻣﻮﻣﯽ۔

## "ړ"۔ ړوند (نابینا)

ﺣﻀﺮﺕ ﺍﺑﻦ ﺳﯿﺮﯾﻦؒ ﻓﺮﻣﺎﺋﯿﻠﯽ ﺩﯼ ﮐﻪ ﭘﻪ ﺧﻮﺏ
ﮐﯿﻨﮯ ﻳﻮ ﺳړﮮ ﺍﻭګوری ﭼﻪ ړوند ﺷﻮﮮ ﺩﮮ ﺗﻌﺒﯿﺮ
ﺋﮯ ﺩ ﺍﺳﻼﻡ ﺩ ﻣﺒﺎﺭﮎ ﺩﯾﻦ ﻧﻪ ﺑﻪ ګمراه ﺷﻮﮮ ﻭﯼ. ﺍﻭ ﮐﻪ ﺍﻭګوری ﭼﻪ ﻳﻮﻩ ﺳﺘﺮګه ﺋﮯ
ړنده ﺷﻮﮮ ﺩﻩ. ﺗﻌﺒﯿﺮ ﺋﮯ، ﺩ ﺩﮤ ﻧﻪ ﻧﯿﻢ ﺩﯾﻦ ﺗﻠﻠﮯ ﺩﮮ ﺍﻭ، ﻳﺎ ﻭﺭځنے ﻟﻮﻳﻪ ګناه ﺷﻮﮮ
ﺩﻩ ﺍﻭ ﺩ ﻭﺟﻮﺩ ﻋﻀﻮ ﻧﻪ ﻳﻮﻩ ﻋﻀﻮﮮ ﺗﻪ ﺗﮑﻠﯿﻒ ﻭﺭﺳﯿږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه ډړوند لاس ئې نیولے دے او روان کړے ئې دے. تعبیر ئې ګمراه به وی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه ړوند شوے دے تعبیر ئې بنه کاربه په خپل لاس سره کوی اوکه اوګوری چه ده ډچایوه سترګه ړنده کړے ده تعبیر ئې هغه به ډدین ډلارے نه لرے کړی اوکه اوګوری چه ده ښاروے ړوند کړے دے تعبیر ئې هغه ښاروے چه چاته ئې نسبت کیږی ده ته به ضرر او تکلیف رسیږی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښے ړوند والے په اوو وجوهو دے (۱) فقیری (۲) بد حالی (۳) غم او فکر (۴) ډوجود نقصان (۵) مصیبت (۶) ډمال نقصان (۷) ډدین تباهی. ډالله تعالیٰ قول (صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ) (البقره ۱۸)

ترجمه: کاڼه دی ډحق نه، ګونګیان دی ډحق نه ړانده دی ډحق نه دوی نه کرځیږی ډخپل منافقت نه. اوکه ړوند خوب کښے اوګوری چه ړوند شوے دے. تعبیر ئې ډدنیا کاروبه وربانده راکهلاوشی او ډنا امیدی نه به په امید کښے وی او ډالله تعالیٰ ډرحمت نه به نصیب او مومی. ډالله تعالیٰ قول دے (لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا. الزمر ۵۳) :- ډالله تعالیٰ ډرحمت نه مه نا امیده کیږئ بیشکه الله تعالیٰ ټول ګناهونه بخښی.

## "ږ" - ږیره

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی. ږیره په خوب کښے ډسړی ډپاره ښائست دے او ډهغهٔ کوردارئ ده او په حدیث شریف کښے راغلی دی چه د ډالله تعالیٰ یوه فرښته ده چه ډهغے دا تسبیح دی (سُبْحَانَ مَنْ زَيَّنَ الرِّجَالَ بِاللِّحٰى وَالنِّسَاءَ بِالذَّوَائِبِ) ترجمه:- پاکی ده هغه ذات ته چه سړو ته ئې په ږیره ښائست ورکړے دے او ښځو ته په کمڅیو. که اوګوری چه ږیره ئې اوږده شوے ده تعبیر ئې ډده ډکورکاربه جوړشی. مګرکه ډنوم نه اوږده شی نو تعبیر ئې ډغم او ډفکر دے که اوګوری چه ږیره ئې په نوکونو ښائسته کړے ده تعبیر ئې خپله ښځه به بیماره اوګوری اوکه اوګوری چه خپله ږیره ئې په تکریزو سره کړے ده تعبیر ئې خپل حال به خلکو ته ظاهرکړی او نهٔ به ئې پټوی. اوکه اوګوری چه ږیره په زمکه راکاږی تعبیر ئې ډمرګ نیټه به ئې نزدے شوے وی. اوکه اوګوری چه ږیره ئې پریکړے شوے ده تعبیر ئې ډده مال، مرتبے ته به نقصان رسیږی. اوکه

اوکوری چه بزیره ئے سپینه شوے ده تعبیر ئے دَده حلم او برد باری به زیاته وی مگر غمژن به وی. او که اوکوری چه بزیره ئے غابښونو باندے پرے کړے ده تعبیر ئے دَده اهل بیت ته به نقصان رسیږی. او که اوکوری چه بزیره ئے دَ بیمارئ دَ وجه غورزیدلے ده تعبیر ئے دَه ته به دَ ناڅاپی مرګ یره وی. او دَده مال او عزت به برباد شی. که اوکوری چه بزیره کو منزکوی او ورته خوشبوئی لګوی او ګلاب وربانلدے اچوی، تعبیر ئے دا سے کاد به کوی چه خلک به ئے شکرګزار وی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوکوری چه بزیره ئے ترنامه اوږده شوے ده تعبیر ئے مال به بیا مومی. او که اوکوری چه بزیره باندے لاس راکاږی او څه ئے په لاس کښے پاتے شوے ده او هغه ئے او غورزوله تعبیر ئے مال به ئے دَ لاسه ووځی. که اوکوری چه دَ بزیرے څه حصه ئے په څه شی کښے ایښے ده او محفوظه ئے کړه تعبیر ئے دَ مال خیال به ساتی او که اوکوری چه بزیره ئے لنډه ده. تعبیر ئے قرضداره به وی دَ قرض نه به خلاص شی او که غمژن وی نو دَ غم نه به خلاص شی. که اوکوری چه بزیره ئے په زمکه پریوتے ده تعبیر ئے مړکیږی به. که اوکوری چه بزیره ئے کنډه شوے ده تعبیر ئے عزت به ئے یوځل ختم شی. که اوکوری چه دَ بزیرے نه سپین ویښته او باسی تعبیر ئے دے به دَ رسول الله صلے الله علیه وسلم دَ سنتونه مخالف وی.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی که اوکوری چه دَ حج په موسم کښے ئے دَ سر ویښته په حرم کښے خرئیلی دی. تعبیر ئے که قرضداره وی نو قرض به ئے خلاص شی او دَ غم نه به خلاصے بیا مومی. که اوکوری چه سَر او بزیره ئے دواړه یوځل خرئیلی دی تعبیر ئے عزت او پرده به ئے یوځل ختمه شی. که اوکوری چه لږه لږه ئے بزیره غورزیږی او کمیږی او کمے په کښے ښکاره شو تعبیر ئے دَ غم او تکلیف نه به خلاصے بیا مومی. که اوکوری چه ټوله بزیره ئے سپینه شوے ده. لږ غوندے عزت کښے به ئے کمے راشی که ښځه اوکوری چه بزیره ئے شوے ده تعبیر ئے غمژنه به شی او دا سے کار به کوی چه شرمنده شی که سړی اوکوری چه بزیره ئے وتلے ده تعبیر ئے دَده به هیڅکله ځوی نه کیږی او که ځوی ئے پیدا شی نو دَ دبدبے والا او قوی به وی. او که ورکوټے نابالغ هلک خپله بزیره اوکوری تعبیر ئے په غم او فکر کښے به پریوځی. که اوکوری چه دَ یو سړی بزیره ئے

نیولے دہ او کش کوی ئے تعبیر ئے دغه سړے به د دهٔ میراث اخلی۔

حضرت امام جعفر صادق فرمائیلی دی، ږیره په خوب کښے لیدل په لسو وجوو دی (۱) اخستل خرخول (۲) عزت او مرتبه (۳) اوچته مرتبه (۴) هیبت (۵) مروت (۶) نیکی (۷) نکاح کول (۸) مال (۹) خوی (۱۰) عزت کښے کیدل۔ د الله تعالیٰ کلام دے (وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْٓ اٰدَمَ)[1] ترجمه، موننږ عزت ورکړے دے د آدم علیه السّلام اولاد ته۔ مګر په خوب کښے د حاجیانو او قیدیانو ږیره خریئیل نهٔ دی۔

## "ز"۔ زوړند ول

حضرت دانیال فرمائیلی دی، که اوګوری په خوب کښے چه بادشاه د دهٔ د زوړندولو حکم کړے دے تعبیر ئے د بادشاه نه به دیند به او مرتبه مومی مګر په دین کښے به ئے نقصان پریوځی او که اوګوری چه خلك دے اوېزاندهٔ اووینی، تعبیر ئے په دغه اندازه خلکو به مشری او حکومت کوی۔ که اوګوری چه یوه ډله راجمع شوے او دے ئے زوړند کړے دے تعبیر ئے په هغه خلکو به سرداری او حکومت کوی او که اوګوری چه چا نامعلوم بوړا دے زوړند کړے دے او خلک ئے تماشه کوی۔ تعبیر ئے د دنیا په خلکو به حکومت کوی خاصکر چه خپلوان ئے تماشه کوی۔ که اوګوری چه ځان ئے زوړند کړے دے او خوله ئے تماشه نهٔ کوی بلکه خپل ځان ئے پخپله زوړند او لیدلو تعبیر ئے په خپلو به حکومت کول غواړی مګر د هغهٔ به څوك د حکم منونکی نهٔ وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه د ے خلکو زوړند کړے دے او رسئ او شلیدہ او دے پرے دتو، تعبیر ئے د عزت، مرتبے اوبزرګی نه د پریوتو دے۔

## د زرو ګوته (انګشتری)

حضرت دانیال فرمائیلی دی، که په خوب کښے د ګوتے نقش او صفت اوګوری تعبیر ئے دهٔ ته به د خپل مولا نه خیر او نیکی ورسیږی۔ که اوګوری چه دهٔ ته چا ګوته ورکړے ده د دے د پاره چه مهر ئے کړی، تعبیر ئے چه څهٔ د دهٔ لائق وی ډیر به بیا مومی یعنی که د بادشاهی لائق وی بادشاهی به بیا مومی۔ او که مالداره وی مال به بیا مومی د ګوتے د قیمت او قدر په اندازه که اوګوری چه چا په مسجد یا مونځ یا جهاد کښے ګوته ورکړے ده، تعبیر ئے، دا سړے به عابد او پرهیزګاره وی۔ که سوداګر وی نو په تجارت کښے

[1] بنی اسرائیل (۷۰)

به نفع بیا مومی او دا تول په دے قیاس دی.
که اوګوری چه بادشاه ورته ګوته ورکړے ده تعبیر ئے چه دهٔ ته به له ملك نه بادشاه څهٔ ورکوی یا به دَ بادشاه په ملك کښې به دهٔ ته یا دَ دهٔ خپلوانو ته بډی رسیږی.
حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَ دهٔ ګوته ضائع شوے ده یا غلو وړے ده، تعبیر ئے دَ دهٔ په کارونو کښې به آفت او سختی ظاهرږی.
که اوګوری چه ګوته ماته شوه او غمے پاتے شو تعبیر ئے دَ دهٔ بزرګی به بنه وی او عزت او هیبت به ئے په خپل ځائے وی. که اوګوری چه ګوته ئے چاته بخښلے ده تعبیر ئے چه دَ دهٔ څهٔ مال وی دَ هغهٔ نه به څهٔ بل چاته بخښی. که اوګوری چه ګوته ئے خرڅه کړے ده او دَ هغے قیمت ئے واخستو تعبیر ئے چه څهٔ شے لری هغه به خرڅوی او خوری به ئے. او که قیمت ئے وانهٔ خستو. تعبیر ئے څهٔ حصه به دَ مال خرڅوی.
حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی. که اوګوری چه دَ دهٔ دَ ګوتے جوړښت ښهٔ نهٔ دے تعبیر ئے دَ دهٔ مال ته به څهٔ کیږی او بادشاه به پرے غصه کیږی.
که اوګوری چه دَ دهٔ ګوته دَ سپینو زرو ده. تعبیر ئے هغه څهٔ چه لری حلال به وی. او که اوګوری چه دَ دهٔ ګوته دَ سرو زرو ده تعبیر ئے څهٔ مال چه لری هغه به په حرامه حاصل کړے وی. او که دَ او سپنے ګوته اوګوری تعبیر ئے څه چ لری کم او سپک به وی. که اوګوری چه ګوته ئے دَ او وسیکو یا سپینے قلعی ده تعبیر ئے څهٔ چه دَ او سپنے دی هغه دَ دے هم دی. که اوګوری چه دَ دهٔ ګوته دَ سرو زرو ده تعبیر ئے دَ ټولو نه خراب دے.
حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه ددهٔ ګوته دَ او سپنے ده تعبیر ئے قوت او توانائی به بیا مومی. که اوګوری چه دَ تانبے یا دَ سیکے ده تعبیر ئے دَ بے اصله خلکو نه به نفع بیا مومی. که اوګوری چه دَ بنیښے ده. تعبیر ئے دَ عامو خلکو نه به څهٔ ورته ملاویږی. که اوګوری چه دَ سپینو زرو ده، تعبیر ئے دَ کوم ځائے نه به څهٔ ورته ملاویږی. که اوګوری چه ګوته ئے دَ چاسره دَ امانت په ډول ایښے او، یا ئے چاته بخښلے ده او هغه سړی دهٔ ته ګوته واپس کړے ده تعبیر ئے بنځه به دَ نکاح دَ پاره غواړی او هغه به قبولیت ورسره ونکړی او تهٔ به هغهٔ ته ورکوی. که اوګوری چه خپله ګوته ئے په خپله ماته کړے ده تعبیر ئے

دَ دهٔ او دَ دهٔ دَ عیال په منځ کښې به جدائی راشي. که اوګوري چه دَ دهٔ ډَکوتې دوه غمې دي. یا ورته چا ورکړي او دواړه غمې یو شان وي تعبیر ئې هغه خوب لیدونکې دَ غلام ځوي دے. او که اوګوري چه یو غمے ورته پریوتې دی. تعبیر ئې دوهٔ ژنه به دَ یوے ګناه نه توبه اوباسي. او که اوګوري چه خپل نوم ئې ولیکلو او په ګوته ئې مهرکړو. تعبیر ئې څهٔ شے به ورته رسیږي.

او که اوګوري چه په پرانستی خط ئې خپل مهر لګولے دے تعبیر ئې څهٔ بنکاره شے به ورته ملاویږي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي. دَ سپینو زرو ګوته په خوب کښې لیدل تعبیر ئې په شلور وجووی (۱) مملکت (۲) ښځه (۳) ځوی (۴)، مال او دَ سرو زرو ګوته ښهٔ ده او که ښځه اوګوري چه دَ دے ګوته دَ غمې سره ضائع شوے ده تعبیر ئې دَ دے عزت او مرتبه به ختمیږي یا به ئې بچي مري یا به ئې مال هلاک کیږي. او که حاکم وي دَ خپل منصب نه به لرے شي. او که ښځه داسے خوب اوګوري، تعبیر ئې دَ دے به خاوند یا ځوی مړ شي.

## زړک (تندرو)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي چه زړک په خوب کښې لیدل تعبیر ئې بے وفا سړے او دهوکه ورکوونکے ښځه ده. او څنے معبرین وائي چه زړک حرام مال دے چه په چل ئې لاس ته راوړے وي. او که اوګوري چه دَ زړک سره جنګ کوي. تعبیر ئې دَ بے وفا سړي به جنګ کښې پریوځي که اوګوري چه ښځه زرکه ورته حاصله شوے ده، تعبیر ئې ښائسته ښځه به کوي دَ زړک دَ سپینوالي په اندازه او یا به کور دَ پاره وینزه اخلي.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي که څوک خوب کښې اوګوري چه زړک په کور کښې لري او هغه مړشو تعبیر ئې دَ هغهٔ ښځه به هلاکه شي (مړه شي) او به ورته دَ ښځو په وجه مصیبت پیښیږي.

او که اوګوري چه زړک ئې دَ کور نه والوتلو. تعبیر ئې ښځے ته به طلاق ورکوي

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلي دي دَ زړک لیدل په خوب کښې په شلور وجووی (۱) ښځه (۲) حرام مال (۳) زندګي (۴) دَ زړهٔ مرادونه تلاش کوي.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائیلي دي. زړک په خوب کښې لیدل پرهیزګاره

بناشته او دولتمنده ښځه ده که اوګوري چه زړک ئې نیولے او یا ئې موندلے مے تعبیر ئے، دَ هغه صفت مطابق ښځه به کوي لکه څنګه چه مخ پورته بیان کړو که اوګوري چه زرک دَ ده ځ په غیر کښے پریوتے دے او اُوده شوے دے. تعبیر ئے، دَ ده به دَ عیال سره بحث کیږي او فریب به ورکوي.

## زخم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که اوګوري چه په وجود ئے زخم دے او دَ وینے اثرنه ښکاري تعبیر ئے، په زخم لیدونکي به کامیابي بیا مومي او خیر او نفع به بیا مومي. که اوګوري چه دَ زخم نه ئے وینه روانه ده او اندامونه ئے په وینو ککړه شوي وو. تعبیر ئے حرام به بیا مومي. او که اوګوري چه اندامونه ئے نه دي ککړه شوي. تعبیر ئے، زخم لیدونکے به ده باندے په څه ګناه او یا په څه تور تهمتي کړي (تور به ورباندے ولګوي)

حضرت کرمانيؒ فرمائیلي دي، که خوب کښے اوګوري چه زخمي شوے دے او په وینو ککړه دے تعبیر ئے دَ ده مال کښے به نقصان کیږي.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلي دي، دَ زخم لیدل په خوب کښے په درې وجوهو دي (۱) کامیابي موندل (۲) خیر او نفع (۳) دَ مال نقصان.

## زغره او دَ اوسپنے کرته (جوشن)

حضرت محمد بن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښے زغره اغوستل دَ هغے دَ سپیڅلي او پاکیزګي په اندازه ملا تړ دے. که خوب کښے اوګوري چه زغره لري تعبیر ئے، دے او دَ ده اهل به دَ دښمنانو نه امن کښے شي. که اوګوري چه زغره ئے اغوستے ده. تعبیر ئے، دَ ده وجود به دَ دښمنانو دَ شر نه په امن کښے وي چه په ده به کامیابي نه مومي. که اوګوري چه دَ زغرے سره نوره اسلحه هم ورسره ده تعبیر ئے دَ منافق دَ چل او مکر او دَ عام شر نه به په امن کښے شي. ځنے معبرین وائي چه په خوب کښے زغره لیدونکے دَ دین زیاتي ده. که څوک په خوب کښے زغره اوګوري تعبیر ئے، پټ به دَ الله تعالیٰ په حفاظت کښے وي.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلي دي، زغره په خوب کښے لیدل په شپږو وجوده (۱) مشری (۲) پناه (۳) قوت (۴) مال (۵) ژوندا (۶) ژوندا او دَ دین زیاتوالے. زغره خوب کښے لیدل عجزو منکرے دے.

## زغره (دُرّاعه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، که خوب کښے اوګوري چه شین رنګه نوے او فراخه زغره ئے اغوستے ده. تعبیر

ئې، دَهغې دَغټوالی په اندازه به مرتبه شرف او قوت په دین کښې وی. که اوګوری چه خیرنه او تنګه زغره ئې اغوستې ده تعبیر به ئې دَدې خلاف وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی. که اوګوری چه سپینه زغره ئې اغوستې ده تعبیر ئې مال، نعمت، بزرګی به بیا مومی. او که اوګوری چه سره زغره ئې اغوستې ده. تعبیر ئې مصیبت دے او که توره وی تعبیر ئې غم او فکر دے مګر توره زغره دَ قاضی (جج) او خطیب (امام مسجد جامع) ته نقصان نهٔ لری. که اوګوری په خوب کښې چه زغره ئې دَ وجود نه لرې کړې ده. تعبیر ئې دَ ښځې نه به جُدا شی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، دَ زغرې لیدل په خوب کښې په اُوو وجوو دی (۱) خوشحالی (۲) قوت (۳) محبت (۴) شرف او مرتبه (۵) مرتبه او ولایت (۶) دَ کارونو انتظام (۷) ښځه

## زخمی کول۔ (خسته کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که چرې اوګوری چه دَ دهٔ بدن چا زخمی کړے دے او وینه ورنه راوتلې ده، تعبیر ئې زخمی کوونکے به دهٔ ته رښتونې خبره کوی داسې چه دے به جواب نشی ورکولے. او که اوګوری چه دَ هغهٔ دَ زخم نه وینه نهٔ ده راوتلې تعبیر ئې دهٔ ته به داسې خبره کوی چه دروغجنه وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه په توره ئې وهلے او دوهٔ ټوټې کړے دے تعبیر ئې دَ دهٔ په وړاندې به داسې خبره کوی چه خلک به ورته پیغور ورکوی که یو سړے په خوب کښې په وجود کښې ډیر زیات زخمونه اوګوری تعبیر ئې دَ بادشاه نه به نفع او مومی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی ډیر زخمونه په وجود باندې دَ مال نقصان دے۔ حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی په خوب کښې زخمی کیدل په درې وجوو دی (۱) مال (۲) نفع (۳) ناخوښه خبره.

## زړهٔ۔ (دِل)

دَ وجود دَ ښار بادشاه زړهٔ دے او وجود دَ دهٔ په حکم ولاړ دے او په پټه او ښکاره کښې زړهٔ دَ عقل خزانه دهٔ.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، زړهٔ په خوب کښې دَ رسیدلی مال جمع کول دی. که اوګوری چه زړهٔ ئې دَ وجود نه بهر دے. تعبیر ئې په صلاح او په نیکۍ دَ دَ الله تعالیٰ فرمان دے. (حَتّٰٓى اِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا قَالَ رَبُّكُمْ قَالُوا الْحَقَّ) ترجمه: تر دې پورې چه دَ هغوی زړونه ویریږی، نو هغوی وائی چه

ستار ب خۀ وفرمائیل؟ هغوی وائی چه حق ئے اوفرمائیل)۔
که اوګوری چه زړهٔ ئے تنګ شوے دے تعبیر ئے، کاروته به وربانده سخت شی
که اوګوری چه زړهٔ ئے خوشحاله دے تعبیر ئے، کاروته به وربانده راخلاص شی
اوکه زړهٔ بند اووینی تعبیر ئے دګناه نه به توبه اوباسی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے
(اَفَلَا یَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ اَمْ عَلٰی قُلُوْبٍ اَقْفَالُهَا) مجمد: هغوئ ولے په قرآن
کریم کښے سوچ نهٔ کوی یا دَ دوی په زړونو تلے لګیدلی دی۔
اوکه زړهٔ په لاس کښے اوګوری تعبیر ئے، بیمار به شی۔ اوکه اوګوری چه زړهٔ
ئے په دواړو لاسونو کښے نیولے دے تعبیر ئے، کاروته به ئے پوره شی۔
حضرت کرمانی فرمائیلی دی که اوګوری چه زړهٔ ئے زرد کوی تعبیر ئے
مال به ئے زیات شی۔ اوکه اوګوری چه دَ زړهٔ سترګے ئے پرانستے دی تعبیر ئے
دَ دواړو جهانو کارونو به راغب اوحریص وی۔ که اوګوری چه دَ زړهٔ نه ئے
وینه راوځی۔ تعبیر ئے، دَ تهٔ کوونکی کارنه به توبه اوباسی او الله تعالیٰ ته
به رجوع کوی۔ اوکه اوګوری چه دَ زړهٔ نه ئے صفرا راوتلے ده تعبیر ئے بیمار به شی
که اوګوری چه دَ دهٔ زړهٔ زخمی شوے دے تعبیر ئے، بے غمه به شی۔ که اوګوری چه
دَ زړهٔ نه ئے ملغلره وتلے ده اوهغه ملغلره ئے دَ خولے نه غورزولے ده تعبیر ئے
کافر به شی۔ اوکه اوګوری چه ملغلره ئے دَ زمکے اوچته کړے اوخوړلے ئے ده. تعبیر
ئے، بیا به مسلمان شی۔ اوکه اوګوری چه ملغلره ئے دَ زړهٔ نه اووتله اودَ هغے نه
جواهر چا پیره دو او هغه جواهر په زمکه پریوتهٔ اوملغلره ئے اوخوړله تعبیر
ئے، پنځهٔ مونځونه به پریږدی۔
حضرت مغربی فرمائیلی دی، که اوګوری چه زړهٔ ئے ټوټه ټوټه شوے دے
تعبیر ئے، په ناممکنه هوسونو کښے به مشغول شی۔ اوکه اوګوری چه زړهٔ
کښے ئے رڼا شوے ده۔ تعبیر ئے دَ دین په صلاح ده۔ که اوګوری چه په زړه ئے
تیارهٔ ده۔ تعبیر ئے، دَ دے خلاف دے۔
حضرت امام جعفر صادق فرمائیلی دی، دَ زړهٔ لیدل په خوب کښے په
لسو وجوو (۱) مال (۲) ریاست (۳) ځوی (۴) زړورتیا (۵) ځوانمردی (۶) حرص
(۷) قوت (۸) کومک (۹) شهوت (۱۰) مال پټ ساتل۔

## زنګون (زانو)

حضرت ابن سیرین فرمائیلی دی په خوب کښے
زنګون لیدل تعبیر ئے زندګی ده۔ که اوګوری چه

زنګون ئې قوي او مضبوط دي، تعبیر ئې کار کښې به قوي او زندګۍ به ئې فراخ وي۔ او که اوګوري چه په زنګونو په لاره ځي تعبیر ئې په کار کښې به ضعیف وي او زندګي به ورباندې تنګه وي۔ که اوګوري چه دَ زنګون سترګه ئې ماته یا ضعیفه ده۔ تعبیر ئې کار به ئې تباه شي۔ که اوګوري چه دَ زنګون سترګه ئې پریوتې ده تعبیر ئې چه څۀ سرمایه لري، دَ لاسه به ئې لاړه شي۔

حضرت کرماني فرمائیلي دي په خوب کښې زنګون دَ خلکو کسب او زندګۍ دَه که اوګوري چه دَ زنګون سترګه ئې سخته او قوي شوې، تعبیر ئې دَ دۀ کسب او کار به زیات وي۔ که اوګوري چه دَ زنګون سترګه ئې کمزورې ده، تعبیر ئې دَ دۀ ژوند او کسب به کمزورې شي بالکل به قطع شي۔

حضرت مغربي فرمائي، په خوب کښې زنګون دَ غم اودَ مشقت ځائې دې. اوچه زنګون ئې کښې کمې زیاتې اوګوري تعبیر ئې هغه دې کوم چه مونږ دَ هغې بیان مخکښې کړې دې.

## زبورشریف (دَحضرت داؤدؑ کتاب)

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي، که څوک خوب کښې اوګوري چه زبورشریف وائي، تعبیر ئې دَ الله تعالیٰ طرف ته به رجوع کوي او نیک کار به کوي۔ او که اوګوري چه زبورشریف په ظاهر لولي. تعبیر ئې زهد، تقوی او نیکي به په ریا کارۍ او نفاق سره کوي۔

حضرت مغربي فرمائیلي دي، که اوګوري چه زبورشریف لیکي تعبیر ئې داسې کار کښې به مشغول شي چه دَ هغې نه به نفع او مومي. که اوګوري چه زبورشریف لولي، تعبیر ئې دَ دۀ کاروبار به ښۀ وي۔

## زیړ رنګ (زردیها)

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي، زیړ رنګ په خوب کښې لیدل تعبیر ئې بیماري ده، که میوه وي او که جامه۔

## زعفران

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي، که څوک خوب کښې اوګوري چه زعفران لري تعبیر ئې خلک به دَ دۀ صفت کوي۔ که اوګوري چه په جامو او وجود زعفران دي تعبیر ئې بیمار به شي۔

حضرت کرماني فرمائي، که اوګوري په خوب کښې چه چا ثابت زعفران ورکړې دي تعبیر ئې، مالداره ښځه به کوي. که اوګوري چه دَ زعفرانو ډیر

لری او دَهغې نه خوری تعبیرئې مال او نعمت به دَهٔ ته حاصلیږی۔

**زکوٰة** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه دَمال زکوٰة ئې ورکړے دے، تعبیرئې مال به ئې زیاتیږی۔ که اوګوری چه سرسایه ئې ورکړے ده. تعبیرئې، موخ، روژه، او تسبیحات به زیات کوی او خلاصے به بیا مومی او دَقرض نه به خلاص شی۔ او که بیماروی نو صحت به بیا مومی او که دښمن ئې وی نو ورباندے کامیابی به بیامومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه دَ مال زکوٰة ئې ورکړے دے. تعبیر ئې دَ دهٔ مال به دَ دهٔ په قبضه کښې راځی او بلا به ورنه لرے شی. دَرسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث شریف دے (حَصِّنُوْا اَمْوَالَکُمْ بِالزَّکٰوةِ)

ترجمه: خپل مال په زکوٰة سره محفوظ کړئ۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دَمال زکوٰة ورکوی تعبیرئې دَمال زیاتوالے دے۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَمَآ اٰتَیْتُمْ مِّنْ زَکٰوةٍ تُرِیْدُوْنَ وَجْهَ اللهِ فَاُولٰٓئِکَ هُمُ الْمُضْعِفُوْنَ) ترجمه: اوکوم زکوٰة چه تاسے دَ الله تعالیٰ دَمخ ورکوئ، نو دا هغه کسان دی چه خپل مال دوچنده کوی له جهته دنیکونه۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلی دی، په خوب کښې دَصدقے او زکوٰة ورکول په اتهٔ وجوه وی (۱) دَخوشحالی زیرے (۲) خیر او برکت (۳) دَ سخت کار حل کیدل (۴) دَحاجت پوره کیدل (۵) رنړا (۶) دَغم نه خلاصیدل (۷) زیاتے (۸) په دښمن کامیابی موندل۔

**زنګ۔ (زنګار)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، دَ زنګ لیدل په خوب کښې دَحرام مال لیدل دی که اوګوری چه دَچا نه ئې زنګ اخستے دے، تعبیرئې دَ هغې په اندازه به حرام مال حاصل کړی۔ که اوګوری چه زنګ ئې په اُور ایښے دے او اُور په بنهٔ شان تیز شوے دے۔ تعبیرئې دَ بادشاه سره به معامله کوی، او دَهغې نه به فائده بیامومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، په خوب کښې زنګ لیدل، تعبیرئې مال او مراد دے، که اوګوری چه جامه یا کوم اندام ئې زنګ شوے دے. تعبیر ئې دَ بادشاه نه به ورته ضرر رسیږی۔ او که اوګوری چه زنګ ئې خوړلے دے تعبیرئې حرام مال به تجوری او اخیر کښې به دهٔ ته دَ بادشاه نه

غم او فکر رسیږی۔

## زلزله

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه زمکه حرکت کوی، تعبیرئې دَ هغه ملک خلکو ته به دَ بادشاه نه تکلیف او ملامتیا ورسیږی دَ زمکې دَحرکت په اندازه او معبرین وائی اخځ آفت به خلکو ته رسیږی او په هغه ملک به بیماری پریوځی او که اوګوری چه زمکه اوکرځیده او لاندې باندې شوه تعبیرئې په هغه ملک کښې به بلا او فتنې پریوځی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه زمکه په قراره اُوخوځیده اونیمه لاندې لاړه تعبیرئې په هغه ملک کښې به داسې بادشاه راشی چه هغه خلکو ته به عذاب ورکوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، په خوب کښې زلزله لیدل اودَ زمکې غرقیدل، تعبیرئې دَ بادشاه دَ طرف نه محنت او بلا عظیم لری۔ دَ الله تعالی کلام دے (فَخَسَفْنَا بِهِ وَبِدَارِهِ الْأَرْضَ)[1] او ما هغه او دَ هغهٔ کور په زمکه کښې غرق کړو۔ په هرحال زلزله په خوب کښې لیدل په عذاب او ملامتیا تعبیر لری دَ هغه ملک په خلکو۔

## زمکه (زمین)

حضرت دانیالؒ فرمائی، زمکه په خوب کښې لیدل ښځې ده که اوګوری چه دهٔ سره پاکه، فراخه، صفا زمکه ده تعبیرئې دَدهٔ ښځه به سترمنده او صلاح کاره وی او په خپلوا نو کښې به هغې ته دَ زمکې لویوالی او دَ فراخوالی مطابق عزت او مرتبه حاصلیږی۔ که اوګوری چه په هغه زمکه کښې شینکی او نا معلوم بوټی وو په دَ دهٔ ملکیت دے۔ تعبیرئې هغه سړے به دیندار او مسلمان وی او شینکی په خوب کښې اسلام دے۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه په زمکه شینکی ادبوټی دی او ځائے معلوم دے تعبیرئې دهٔ ته به بهتری او دیانت وی او که اوګوری چه زمکه ئې جوړه کړې ده او ابادی ورباندې جوړه کړی تعبیر ئې دهٔ ته به په دین او دُنیا کښې فضیلت وی، او اخر به دَ آخرت دَنجات لاره بیاموی که اوګوری چه دَ دهٔ دَ لبستی په منځ کښې زمکه ده دَ بیابان په شان او هغه زمکه ئې نهٔ ده پیژندلې تعبیرئې لرے سفر به کوی۔ که اوګوری چه زمکه کری او خوری ئې، دَ هغې خوړلې خاورې په اندازه به مال بیاموی۔ اوکه اوګوری چه

(۱) قصص ۸۱

په زمکه کښې ښخ شوے دے چه هلته نه کنډاو نه کوهے وو او هلته غائب شو تعبیر ئے دادے چه مړ کیږی به. که اوګوری چه زمکه د کوهی یا تاخانے په شان کنی، تعبیر ئے په غم او فکر کښې به پریوځی یا به د مے نه وړاندے د ده مال ضائع شی. که اوګوری چه په فراخه زمکه کښې دے او زمکه تنګه شوه او دے پکښې لاړو تعبیر ئے چه هغه ځائے کښې به نیک نامعلوم کار کښې پریوځی.

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه زمکے ورسره خبرے کړے او د غیراو د صلاح زیرے ئے ورکړے، تعبیر ئے په دُنیا کښې به ډیره نیکی کوی او د مرګ نه روسته به ئے خلک په نیکی یادوی، که اوګوری چه ده ته زمکه لویه او فراخه او غټه شوے ده، تعبیر ئے د عمر په اوږدوالی او د زندګی په فراخ والی دے. او که اوګوری چه د زمکے پیداګش کوی تعبیر ئے په سفر به ځی.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه زمکه کری تعبیر ئے چرته لوے کار کښې به مشغول شی او د ښځے د طرف نه به نفع بیا موهی. که اوګوری چه خپله زمکه اباد وی تعبیر ئے کار به ئے نیک او اباد وی او که زمکه خرابه اوګوری تعبیر ئے د دے خلاف دے، او د چا سره به جګړه کښې پیریوځی. او که خپل ځان په زمکه کښې کرلے اوګوری تعبیر ئے د چا سره به ئے شراکت وی او یا به ښځه کوی. او که اوګوری چه اوبه راغلے او زمکه ئے غرقه کړه او فصل ئے تباه کړے تعبیر ئے د بادشاه نه به ملامتیا موهی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، د زمکے لیدل په خوب کښې په څلورو وجوه وی (۱) ښځه (۲) دنیا (۳) مال (۴) ولایت.

## زنّار

هغه تار چه هندوان او مجوسیان ئے په ملا تړی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه د زنّار تار ئے لاس کښې دے تعبیر ئے، په دین کښې به ضعیفه وی. که اوګوری چه زنّار ئے په ملا تړلے دے. که خوب لیدونکے پرهیزګاره نۀ وی تعبیر ئے کافر کیږی به. او که خوب لیدونکے پرهیزګاره وی تعبیر ئے د دښمن نه به انصاف موهی. که اوګوری چه زنّار ئے پرے کړو او بهر ئے او غورزولو، تعبیر ئے د بدکار نه به توبه وکړی او الله تعالیٰ طرف ته به رجوع وکړی او د اصلاح لاره به غوره کړی.

## زنځیر (زنجیر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښې زنځیر معصیت او ګناه ده - که اوګوري چه زنځیر مات شوے او غوړن ولے ئے دے - تعبیر ئے د ګناه نه به توبه کوي او د الله تعالیٰ طرف ته به رجوع کوي.

حضرت مغربیؒ فرمائیلي دي که اوګوري چه زنځیر ئے په څټ کښې دے تعبیر ئے د خلکو په مال کښې لاس وهنه کوي او د حرامو نه به بچ کیږي. او که اوګوري چه زنځیر لیدل نافرمانه او ګنهګار سړے دے.

## زنه (زنخ)

زنه په خوب کښې لیدل د کور مشر او ډیر عقلمند دے که اوګوري چه د ده زنه لویه شوے ده تعبیر ئے د کور په خلکو به ذلیل او خوار وي.

حضرت مغربیؒ فرمائیلي دي، که اوګوري په خوب کښې څوک د ده په زنه بانن ے زنه وهي، تعبیر ئے د خاندان مشر به د ده سره خبرے کوي او د ده نه به خفه کیږي. او که اوګوري چه د ده د زنے نه وینه وتلے ده. تعبیر ئے د وینے په اندازه به د خاندان د مشرانو نه ورته نقصان ملاویږي او څنے معبران وائي چه د ده په کار او کسب کښې به نقصان پریوځي.

## زهر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښې زهر خوړل حرام مال او په ناحقه او په باطله وینه ده. که اوګوري چه د زهر خوړلو نه ئے بدن پړسیدلے دے تعبیر ئے حرام مال به حاصل کړي.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي، که اوګوري چه د ده بدن په زهرو ډک دے تعبیر ئے په کوم کار کښې چه وي سخت حریص به پکښې وي او څنے معبران وائي چه خبره به کوي چه مخکښې به څي. که اوګوري چه د ده بدن نه د زهرو نه تکلیف رسیدلے یا پړسیدلے دے، تعبیر ئے ده ته به د پړسوب په اندازه غم او تکلیف رسیږي. او که اوګوري چه زهر ئے خوړلي دي تعبیر ئے په چا به غُصه کیږي.

## زیره

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي چه په خوب کښې ډیره زیره او وینې د دین او د دُنیا د فائدے او ګټے تعبیر لري.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي که په خوب کښې لږه زیره او وینې نو د لږے ګټے تعبیر لري.

## زین

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، که زین او ګوري او دُخاروی په شانۀ وي، نو تعبیر ئې ښځه ده، او که دُخاروی په شا وويني تعبیر ئې، دُ هغۀ دَ ښځې او بل حکم په سور باندې دې۔ که او ګوري چه زین ئې اخستې دې او یا ورته ورکړې دې یا به ویټزه واخلي او یا به ښځه کوي. او ډیر به مالدارشي او دا هم کیدې شي چه دُچا میرات به بیا مومي که او ګوري چه زین ئې مات شوې دې تعبیرئې ښځه به ئې مړه شي او یا به بیماره شي۔ که او ګوري چه دَدۀ زین په سرو او سپینوزرو ښائسته دې تعبیرئې دَدۀ ښځه به معذوره او کبرجنه وي۔ که او ګوري چه دَدۀ زین توردې او خۀ ښائست پکښې نشته۔ تعبیرئې ښځه به ئې پرهیزګاره او دینداره وي زین جوړوونکی دلاله ښځه ده چه دُهغې کار دلالي وي او الله تعالیٰ په حقیقت پوهیږي.

## زیاتي

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي که دُخیر او صلاح زیاتي وي تو ښۀ دي او چه کوم شي کښې شر او فساد وي نو دُهغې زیاتې بد دې۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلي دي، زیاتې په بدن کښې لیدل چه خۀ نقصان ئې نشته دې ښۀ دې چه خومره زیاتې او ویني هغومره به مال او نعمت زیات وي او که دُ زیاتي نه دَدۀ بدن ته خۀ نقصان ورسیږي تعبیرئې غم او بیماري ده۔

## زمیندار (کشت ورز)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي په خوب کښې زمینداري په الله تعالیٰ باندې توکل دې او حلاله روزي ده او طلب دُنیکی او نیک او فاضل صورت دې۔ که او ګوري چه تخم کرلو دَ پاره ئې زمکه اړولې ده۔ تعبیرئې نیکي او صدقه ورکوي۔ او دَ دې فن استاذانوؒ فرمائیلي دي که او ګوري چه زمینداري کوي تعبیرئې بیمار به شي۔

حضرت کرمانيؒ فرمائي که او ګوري چه زمکه ئې اړولې ده او تخم ئې کرلې دې دُهغې بیا جمع کړې دې تعبیرئې بزرګي، مرتبه او نعمت به او مومي که او ګوري چه تخم ئې کرلې دې او باران پرې شوې دې تعبیرئې ډیر ښۀ دې کوم چه مونږ بیان کړو۔ که او ګوري چه دُ فصل نه خۀ حاصل نۀ شو

اودا هم نهٔ ده معلومه چه باران څنګه وو تعبیر ئے غم او فکر دے۔ که اوګوری چه غنم ئے کرلی دی، تعبیر ئے، دَ بادشاه نه به ورته خیر او نیکی ورسیږی او که اوګوری چه اوربشے ئے کرلی دی تعبیر ئے ډیر مال به بیا مومی۔

حضرت دانیالؑ فرمائیلی دی که اوګوری چه په خپله زمکه کښے تخم کرے دے تعبیر ئے بخښه به کوی او کار به ئے جوړ وی۔ او که سوداګر او وینی چه خپله زمکه ئے نا کرلے ده۔ تعبیر ئے نقصان به کوی او یا به دَ چا سره جګړه کوی او که اوګوری چه نامعلومه زمکه ئے کرلے او تخم ئے پکښے اچولے دے، تعبیر ئے، دَ جهاد کولو، صدقے ورکولو او دَ نیکی ورکولو راغب به وی۔

او که خپله زمکه کرلے اوګوری تعبیر ئے نعمتونه به ورباندے فراخ وی۔ که اوګوری چه خپله زمکه کښے غنم یا اوربشے او یا ونے کرلے اوګوری تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به ورته عزت مرتبه حاصله شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے زمینداری په پنځهٔ وجوه وی (۱) دَ حلالے روزی طلب (۲) خیر او نفع (۳) بیماری (۴) عزت او مرتبه (۵) زندګی۔

## زانړے (یو مارغهٔ دے)۔ (کلنګ)

زانړے په خوب کښے مسافر سړے دے۔ حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی۔ که اوګوری چه زانړے ئے نیولے ده او یا چا ورکړے ده۔ تعبیر ئے دَ مسافر سړی سره به ملاویږی او نیکی به ورسره کوی۔ که اوګوری چه دَهٔ سره دَ زانړے وزرد ے یا ورسره دَ هغے غوښه ده تعبیر ئے دَ مسافر سړی نه به راحت بیا مومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه زانړے خړوی، تعبیر ئے دَ مسافرو او غریبانانو مشری به کوی او بادشاهی به ورباندے کوی۔ که اوګوری چه دَ زانړے خوی لری تعبیر ئے فقیر به شی۔

## زړه جامه خرقه (ګلیم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، په خوب کښے خرقه رئیس او سردار دے که خوب لیدونکے سردار وی، تعبیر ئے، عزت او بزرګی به ئے نوره هم زیاته شی او ځنے معبرین وائی چه سړے به صالح او نیک وی او فقیرانو کښے به دیندار وی ـــــ حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه خرقه ئے اومونده، تعبیر

ئې دَ مالداره ښځے سره به نکاح کوي۔ او که دا خوب ښځه او ګوري تعبیر ئې
خاوند به کوي او دَ هغهٔ نه خیر او نفع به بیا مومي۔ که او ګوري چه په دره
خرقه ناست دے۔ تعبیر ئې بناٸسته پرهیزګاره او دَ خپل طبیعت موافق
ښځه به کوي۔ او که او ګوري چه شنه خرقه ده۔ تعبیر ئې دَ پرهیزګارو جنګیالئ
ښځے سره به واده کوي، او که او ګوري چه سره خرقه ده۔ تعبیر ئې عیش پسنده
ښځے سره به واده کوي، او که زیړه خرقه وه تعبیر ئې بیماره ښځه به کوي
او که توره خرقه وه، تعبیر ئې دَ پرهیزګارے او نیکے ښځے سره به واده کوي
او که دَ ټبو رنګونو خرقه وه تعبیر ئې په دے ښځه کښې به دا پوره صفتونه
وي۔ که او ګوري چه خرقه ئې اغوستے ده، تعبیر ئې دَ پرهیزګاره سردار
پناه کښې به وي او دَ هغهٔ نه به نفع بیا مومي۔ او که او ګوري چه خرقه ئې دَ ځان
نه لرے اچولے ده او ضائع شوے ده۔ تعبیر ئې دَ دے خلاف دے۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائیلي دي، په خوب کښې دَ خرقے لیدل په
پنځو وجودي (۱) رئیس سړے (۲) پرهیزګاره بزرګ (۳) مالداره ښځه (۴) وینزه
(۵) خیر او نفع۔

## زیړه کُنجکه (کهربا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلي دي، زیړه کُنجکه په خوب کښې لیدل بیماري ده۔ که څوک په خوب کښې
او ګوري چه زیړه کُنجکه ورسره ده۔ تعبیر ئې بیمار به شي او زړ به ښهٔ شي۔ ځنے
معبرین وائي چه دَ دهٔ بیماري به اوږده وي۔

## دَ زمکے حشرات (چینجي)۔ (هوام)

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي
کوم چینجي چه په زمکه ګرځي تعبیر ئې دَ دوی دَ قدر او قیمت او صلاحیت بانده
وي ځکه چه په دوی کښې څهٔ دَ ادنیٰ درجے وي دَ هغے تعبیر دَ علم تعبیر له مخه
کوم مضبوط دښمن بانده وي په نسبت دَ هغه چینجو کوم چه زهرناک وي۔
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائي په خوب کښې دَ زمکے حشرات او یا چینجي
لیدل څهٔ ویره ده چه هغه دَ کنځل مار او حاسد سړي دَ طرف نه وي۔

## زولنے۔ (شکنجه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، زولنے لیدل په
خوب کښې تعبیر ئې ذلت او عاجزي ده. که او ګوري
چه دهٔ ته دَ زولنے نه درد رسیدلے دے بیا ئې هم دغه تعبیر دے. که او ګوري
چه دَ زولنے نه ورته تکلیف نهٔ دے رسیدلے تعبیر ئې دَ دے خلاف دے۔

که اوګوري چه بادشاه زوله کړے دے تعبیر ئے د بادشاه نه به غم ویني۔

## زړه جامه۔ (خرقه)

خرقه، زړه جامه دَ دے اغوستل په خوب کښے غم او فکر دے۔ که اووینی چه زړه جامه ئے دَ ځانه اُوویستله۔ تعبیر ئے غم او فکر به ورنه لرے شي۔ او په خوب کښے هر نوے شے لیدل ښه دي۔ مګر موزه چه دَ دے زړه دَ نوے نه ښه دَه۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که څوک په خوب کښے دَ زړو جامو خرخول وکړي تعبیر ئے بد دے۔ او که نوے جامه خپله خرخوي تعبیر ئے ښه دے او زړے کپړے خرخوونکے هغه سړے دے چه دَ ځانه غم او فکر لرے کوي۔

## ذرے د هوا (صباء)

دَ ګرد هغه ذرے چه دَ نمر په شعلو کښ ښکاري حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، چه په خوب کښ ذرے لیدل باطله خبره او پریشانه کارونه دي چه په هغے کښ خیر او برکت نه وي لکه څنګه چه الله تعالیٰ په خپل کتاب قرآن مجید کښ فرمائی (فَجَعَلْنٰهُ هَبَآءً مَّنْثُوْرًا) ترجمه (او مونږ خورے وړے ذرے کړے)۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، که چرے په هوا کښ سرے ذرے اووینی تعبیر ئے په دے ملک کښ به بیماري وي او که تورے ذرے وي تعبیر ئے مصیبت دے او که سپینے اووینی تعبیر ئے بے غمی دَه۔

## زیتون

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے زیتون لیدل غم او فکر دے۔ که اووینی چه دَه سره زیتون دي یا ورته چا ورکړي دي او دے ئے خوري تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به غم او فکر خوري۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښے دَ زیتون لیدل تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به غم او فکر خوري۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه زیتون تراخهٔ نهٔ دي او دَ دوړئے سره ئے خوري۔ تعبیر ئے دَه ته به دَ محنت سره نفع حاصلیږي۔

## زرک (کبک)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے زرک لیدل ښائسته ښځه او یا ښائسته وینزه ده۔ که اووینی چه زرک ئے نیولے دے تعبیر ئے ښځه به کوي۔ که اُووینی چه زرک ئے دَه ته بخښلے دے تعبیر ئے ښائسته ښځه به کوي۔ که اوګوري چه په ښکار کښے ئے زرک نیولے دے تعبیر ئے ښهٔ وینزه به لاس ته راوړي۔ او که اووینی چه دَ زرک غوښه

هدایت لاره مومی. او شنے سترګے بدعت دے اوکلابی سترګے څوی دے که اوګوری چه روندشوے دے تعبیر ئے، دهدایت لاره به ئے ورکه کړی وی او یا به ئے څوی مړشی که چرے اوګوری چه ددهٔ سترګه پنڅه شوے ده، تعبیر ئے ددهٔ نیم دین ضائع شویائے لویه ګناه کړے ده او یابه ددهٔ په یولاس او په یوه خپه مصیبت راځی او یا به ئے نیم کارخرابیږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه په سترګه کښے ئے رانجهٔ اچولی دی تعبیرئے ددین اصلاح تلاش به کوی. که اوګوری چه د رانجونه ئے مطلب ښائست او ارائش دے. تعبیرئے خپل ځان به د خلکو به وړاندے امانتګر دینداړ ظاهروی، ددے د پاره چه عزت مندشی او که اوګوری چه دهٔ ته چارانجهٔ ورکړی دی ددے د پاره چه په سترګه کښے ئے واچوی تعبیر ئے د دے په اندازه به مال بیامومی. که اوګوری چه د سترګے نظرئے کمزورے شوے دے تعبیرئے، دے ښکاره اوپټ منافق دے. اوکه اوګوری چه د دهٔ وجود کښے سترګے دی او په ټولونظرکوی تعبیرئے ددهٔ ددین اصلاح د او ددین فرائض، سنت به په ښه شان سره سرته رسوی. که څوک اوګوری چه چا ددهٔ سترګه ویستلے ده تعبیر ئے چه په څهٔ ئے سترګه غړولے لکه ښځه څوی، کوم باغ به ددهٔ د نظرنه غائب شی، دا سے چه بیابه ئے ونهٔ وینی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی که اوګوری چه سترګے ئے د او سپنے دی تعبیر ئے پرده به ئے لوے کیږی. که اوګوری چه دوارهٔ سترګے ئے پړسیدلی دی داسے چه سترګے بیانشی پرانستے کیدے، تعبیرئے د مخالف سړی صحبت کښے به کینی. اوکه د سترګو رنړا کمزورے اوګوری تعبیرئے، دهٔ ته به په اطاعت کولوکښے نقصان رسیږی او که خپلے دوارهٔ سترګے وتلے اوګوری تعبیرئے، ددین شریعت نه به بے برخے وی. اوکه اوګوری چه ددهٔ د مخ منځ کښے یوه سترګه ده تعبیرئے په ژبه به ددین باره کښے نالائقه خبرے کوی اوکه اوګوری چه ددهٔ دواره سترګے روښانه دی اوخلکوته هندے ښکاری او یاشب کوری ورته ښکاری تعبیرئے ددهٔ ددین باطن د ظاهرنه ښهٔ دے. اوکه اوګوری چه ددهٔ تورے سترګے شنے شوی دی تعبیرئے بدی او دحال بدلید دے د الله تعالیٰ فرمان دے (وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِينَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا) ترجمه: زهٔ د قیامت په ورځ ګناهګاران شین سترګی راپورته کوم. اوکه اوګوری

چه دواړه سترګې ئې سپینې شوې دی او بیا تورې شوې تعبیر ئې بیمار به شی او یا به دَ چا سره جګړه کوی. او که اوګوری چه سترګه ئې داسې توره شوې ده چه هیڅ تور والے پکښې نشته دے تعبیر ئې متکبره به وی. که اوګوری چه یوې سترګې ته ئې آفت رسیدلے دے، تعبیر ئې دَ دهٔ ځامنو ته به څهٔ آفت رسیږی. که اوګوری چه چا دهٔ ته لاس اوږد کړے دے او یوه سترګه ئې ترې ویستلې ده، تعبیر ئې دَ دهٔ ځوی به دَ لارې نه بوځی. که اوګوری چه چا دَ دهٔ سترګه وترټله یا په لاس کښې واخستله تعبیر ئې دَ دهٔ ځوی یا مال ته به نقصان رسیږی او یا به ګناه کوی. او که اوګوری چه دَ دهٔ دَ سترګې نه وینه روانه ده تعبیر ئې دهٔ ته به دَ ځوی دَ طرف نه غم رسیږی. او یا به ئې دَ مال نقصان وی.

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائی، که څوک اوګوری چه دَ دهٔ سترګه ړوند شو او ړوند سترګه شو، تعبیر ئې داسې ښځه به کوی چه دَ هغې لوردی دواړو سره به جماع (کوروالے) کوی. او که اوګوری چه سترګه ئې دَ لاس په تلی کښې ده تعبیر ئې مال به بیا مومی. او که اوګوری چه دَ دهٔ سترګه کښې سپینوالے دے، تعبیر ئې دهٔ ته به غم او فکر رسیږی. دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَابْيَضَّتْ عَيْنَاهُ مِنَ الْحُزْنِ عَيْنَيْهِ)[1] سترګې ئې دواړه دَ غم دَ لاسه سپینې شوې.

**قیصه:** وائی چه یو سړے دَ حضرت دانیال په خدمت کښې حاضر شو، او وې وئیل چه په خوب کښې مې ولیدل چه زما ښځې سترګه دَ کسې سترګې نه یوسه اخلی، دوی هغه سړی ته اوفرمائیل، چه دَ الله تعالیٰ نه اُووېریږه او توبه وکړه اودَ خپل کاونړی ښځې سره خیانت مهٔ کوه په دې خاطر کښې شے. خوب لیدونکی اووئیل چه توبه مې وکړه او اوس به ښځه وکړم.

چه دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه امن

حضرت امام جعفر صادق فرمائی، دَ سترګې لیدل په خوب کښې په اوو وجهو وی (۱) رڼرا (۲) هدایت (۳) اسلام (۴) ځوی (۵) مال (۶) علم (۷) په مال او دین کښې زیاتے.

## سُرخاب (یو مارغهٔ دے) (چکاوک)

په فارسئ کښې ورته قیره وئیلے کیږی او په خوب کښې تعبیر ئې ځوی یا غلام دے. که اوګوری چه سرخاب مارغهٔ ئې نیولے دے او یا ورته

چاورکړے دے، تعبیرئے دَدهٔ غلام او یا خوی به راځی. که نرمارغهٔ وی تعبیرئے دَ غلام خوی به وی، اوکه ښځه مارغهٔ وی تعبیرئے دَ غلام به جینئ کیږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ سُرخاب مارغهٔ په خوب کښے داسے چه خوږ ژبانه، غریب، کم ازاره خوشامد کردے. که څوک خوب کښے اوګوری چه سُرخاب چاهد یه ورکړے او یائے نیولے دے. تعبیرئے دَ داسے سړی په صحبت کښے به کیر شی.

## سنجاب (دَ ځنا وریو قسم) چه دَ مږ نه لږ لوئے دے

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی په خوب کښے سنجاب لیدل مسافر مال له اره سړے دے اوپردے دے، او پوستکے وینته او هډوکی غوښتوکے مال دے، او دَدے غوښه دَ مسافرسړی مال دے. که اوګوری چه سنجاب ئے مړکړے او هغه ئے خوړلے دے او غوړن ولے ئے دے او پوستکے ئے شلولے دے تعبیرئے دَ مسافرسړے مال به تباه کوی او یا به ئے په ظلم لوټ کوی.

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه سنجاب تنئے په مرئے زور ورکړے او وینه ورنه روانه شوے ده. تعبیرئے دَ پیغلے جینئ سره به جماع کوی.

## سازوهل (چنګ زدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سازوهل په خوب کښے دروغ خبره ده. که اوګوری په خوب کښے چه سازوهی تعبیرئے باطل او دروغ خبره ده او دهٔ ته به دَدے نه غم او فکر او نقصان رسیږی. که اوګوری چه بادشاه ورته ساز ورکړے دے تعبیرئے دَ بادشاه نه به دهٔ ته بخشش او بزرګی رسیږی. اوکه دَدے اهل وی تعبیرئے دَ غم او فکر نه به خوشحالی بیاموی او که اوګوری چه سازئے مات شوے دے او یا غورځیدلے دے تعبیرئے دے روغو او باطل نه به توبه وکړی. که اوګوری چه څوک سازغږوی او دهٔ ئے آوری تعبیرئے دروغ او باطل به اوری او ځنے معبرین وائی چه ساز غږول دَ عمردَ زیاتوالی تعبیرلری.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوک اوګوری چه سازغږوی تعبیرئے په بادشاهانو دَ کښیے چابنځے سره به سازغږوی عزت او مال به بیاموی. آخرد!

چه دَ هغهٔ ښځې سره به نکاح کوی او که اوګوری چه دَساز سره رقص اوکړي
هم ده تعبیرئې دَ غم او مصیبت دے.
حضرت مغربیؒ فرمائی، که څوک په بیماری کښے اوګوری چه ساز وهی
تعبیرئې دَدهٔ دَ مرګ دے.

## سیاهی (حِبر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سیاهی په خوب کښے دَ زندګی غوښتل او دَ مال موندل دی که
څوک اوګوری چه سیاهی ئې اخستے ده او یا چا ورکړے ده، تعبیرئې زندګی
به په دهٔ اسانه شی او مراد به ئې حاصل کړے شی. که اوګوری چه سیاهی
ورنه توی شوے ده او یا ضائع شوے ده، تعبیرئې دَ اول خلاف دے.
حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه سیاهی ئې په جامه توی شوه،
دهٔ ته به نقصان رسیږی. او که منشی وی نو نقصان دَدهٔ دَ پاره نه دے
که اوګوری چه په سیاهی سره څهٔ لیکی، که لیکل شوے شے قرآن مجید یا دَ
الله تعالیٰ نوم نه وی تعبیرئې خیر او صلاح ده او که دَدے خلاف ئې
لیدلی وی تعبیرئې دَ شر او دَ فساد دے.

## سیاهی (مداد)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، دَ سیاهی لیدل په
خوب کښے تعبیرئې دَ زندګی دَ فراختیا دے، که
اوګوری چه دَدهٔ نه سیاهی ضائع شوے ده تعبیرئې دَدے خلاف دے.
حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه سیاهی ئې په جامو پریوتے ده. تعبیر
ئې دهٔ ته به تاوان ورسیږی. که خوب لیدونکے منشی دی تعبیرئې، دے به
سرداری مومی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښے دَ سیاهی لیدل په
څلور وجوهی (۱) سرداری (۲) راحت او آرام (۳) زندګی (۴) وادهٔ

## سزاورکول (حدزدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سزاورکول
په خوب کښے دَ ښځو دَ کار پوره کیدو تعبیر
دے که اوګوری چه دهٔ سزاورکړنیده دَ هغې په اندازه به کار پوره کوی. که
اوګوری چه دهٔ ته چا سزا ورکړے ده. تعبیرئې دَ اول خلاف دے.
حضرت مغربیؒ فرمائی چه په خوب کښے سزاورکول په څهٔ ګناه باندے
که دَ خوب لیدونکے نیک عمله وو، دَ دُنیا په کار به مشغول شی او که خوب لیدونکے

فاسق وی تعبیر ئے غم او فکر وی۔

## سټنک (خائسک)

خائسک. مطرقه۔ سټنک په خوب کښې لیدل سرداری دلاچه په قوم به ئے کوی. که اوګوری چه ډیرے سټکے ورسره دی او یا ورته چا ورکړی دی، تعبیر ئے دُدهٔ ملګرتیا به دَ قوم دَ بادشاه سره وی او دَ هغهٔ نه به نفع مومی۔ که اوګوری چه په سټک ئے ټوک وهلے تعبیر ئے په دهٔ به بادشاه غُصه کیږی۔ که اوګوری چه دُدهٔ سټنک ضائع شوے دے، تعبیر ئے دَ سرداری نه به جدا شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که ټوک په آهنګری نهٔ پوهیږی او دے اوګوری چه په سټک سندان وهی، تعبیر ئے دَ دوهٔ بادشاهانو په مینځ کښې به چغلی کوی او په جنګ او دښمنی به ئے اچوی۔

## سُنتول (ختنه کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که خوب کښې اوګوری چه دهٔ سُنت کړے دے، تعبیر ئے دا، سنت به په ځائے کوی چه دے به دَ ګناه نه پاک کړی او که اوګوری چه دَ سنتولو په وخت ورته وینه روانه شوے ده، تعبیر ئے په سنت به قائم وی او دَ ګناهونو نه به توبه اوباسی۔ که اوګوری چه دَ سنتولو په وخت ئے سنت ته کنل تعبیر ئے دهٔ ته به ډیر غم او فکر رسیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه دَ دهٔ سُنت شوے دے تعبیر ئے دَ ګناهونو نه به پاک وی۔ او که اوګوری چه سنت ئے نهٔ دے شوے۔ تعبیر ئے دَ اسلام او سنتولاره ئے شانه کړے مګر مال به ئے زیات وی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی په خوب کښې سنتول په پنځو وجوه وی (۱) سنت په ځائے راوړل (۲) خوشی (۳) نیکی (۴) راحت (۵) دَ ښځے نه جدائی او هم دَ خوئی نه

## سپین ځنګلی خر (خر ګور)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه سپین ځنګلی خر ناست دے او دَ دهٔ تابعدار دے، تعبیر ئے دے به ګناهګاره وی. که اوګوری چه دَ ځنګلی خر ښکار ئے کړے دے تعبیر ئے په خیر او نفع یاب دے۔ که اوګوری چه دوه ځنګلی خرونه په خپل مینځ کښې جنګ کوی تعبیر ئے دوه بدکاره سړی به دهٔ سره جنګ کوی۔ ــــ او که اوګوری چه ځنګلی خر ئے کور ته راوستے دے۔ تعبیر ئے بدکار سړے به کور ته راولی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښې ځنګلي خر لیدل جاهل، کم عقل سړے لیدل دي چه د ده علم او عقل نۀ وي. د الله تعالیٰ کلام دے ( اُولٰٓئِكَ كَالْاَنْعَامِ بَلْ هُمْ اَضَلُّ ) (الاعراف ۱۷۹) ترجمه: داخلک د چارپایانو په شان دي بلکه د دوی نه هم زیات ګمراه دي۔

که اوګوري چه د ځنګلي خر غوښه ئې خوړلې، تعبیر ئې ډیر مال به بیا موميِ او که اوګوري چه په ځنګلي خر ناست دے او ورنه غورځیدلے دے تعبیر ئے د څه کار طلب به کوي او وبه نشي۔ او که اوګوري چه په ړوند ځنګلي خر ناست دے۔ تعبیر ئې بے اندازے مال به بیا مومي۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښې د ځنګلي خر څرمن او غوښه مال عزت، مال او مرتبه ده۔ که اوګوري چه د ځنګلي خر مازغه ئې موندلي دي۔ تعبیر ئې، زر، درهم به بیا موميِ او یا به د بادشاه په صحبت کښې راشي او د هغه نه به خیر او نفع بیا موميِ۔ او که اوګوري چه د ځنګلي خر سر ئې خوړلے دے تعبیر ئې، ډیر عبادت به کوي او د دین په لاره به ځي۔ او که اوګوري چه ځنګلي خر ورنه تختي، تعبیر ئې، د مسلمانانو نه به د جدائي په تلاش کښې وي۔

## سرۀ زر (زر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سرۀ زر په خوب کښې غم او فکر دے او د ښځو د پاره نیک او غوره دي۔ که اوګوري چه سرۀ زر ئې موندلي دي او یا چا ورنه ورکړي دي، تعبیر ئې، د ده به په هغه اندازه مال ضائع شي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوري چه زر ئې اوبه کړیدي، تعبیر ئې، د خلکو د ژبو پیغورونو کښې به راشي۔ که اوګوري چه سرۀ زر خرڅوي او اخلي تعبیر ئې، غم او فکر به ورنه ورسیږي۔ او که اوګوري چه سرۀ زر ئې بورو کښې ډک کړي او کورته ئې وړي دي، تعبیر ئې دا دے چه مال به بیا موميِ۔ او که اوګوري چه سرۀ زر ئې خوړلي تعبیر ئې، د هغې په اندازه به مال په عیال خرچ کړي۔

حضرت مغربي فرمائی، د سرو زرو شے د سړو د پاره بد دے او که څوک اوګوري چه سرۀ او سپین اُوموميِ، عزت او مرتبه به موميِ۔ او که د سرو زرو کان (خزانه) اوګوري تعبیر ئې، د کوم مالداره سړي سره به نکاح کوي او د اسے

وئیل کیږي چه زړه کرد روغتن سړے دے ۔ او که اوګوري چه زړګر سره ناست دے او هغهٔ سره لین دین کوي تعبیر ئے دَ دروغژن سړي سره به دَدهٔ کاروبار کیږي.

## سُونډ (زنجبیل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، سونډ په خوب کښے لیدل غم او فکر دے او دَ دے خوړل ضرر او نقصان دے او ځنے معبران وائي چه دَ سونډ و تعبیر حکمت او وینادهٔ، او دَ سونډ و خوړل په فائده نهٔ ورکولو باندے تعبیر لري۔

## سورے (سایه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي چه سورے په خوب کښے لیدل سرداري او هیبت دے دَ بادشاه سورے هم په تعبیر کښے بادشاهي ده او دَ دیوال سورے بزرګ سړے دے او دَ بے میوے سورے دَ فساد تعبیر لري۔

حضرت کرمانيؒ فرمائي که اوګوري چه چرته سوري لاندے ناست دے تعبیر ئے مرګ ته نزدے شوے دے۔ دَ الله تعالٰی کلام دے (اَلَمْ تَرَ کَيْفَ مَدَّ الظِّلَّ وَلَوْ شَآءَ لَجَعَلَهٗ سَاكِنًا) الفرقان ۴۵ ترجمه: آیا نهٔ ګوري دَ خپل رب قدرت طرف ته چه دهٔ سورے څومره لوئے کړے دے او که غوښتلے هغه به ایسا رولو۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائي، په خوب کښے دَ سوري لاندے کیناستل په پنځو وجودي (۱) بزرګي (۲) هیبت (۳) پناه (۴) نفع (۵) مرګ

## سترګو بیماري (سبل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي که اوګوري په خوب کښے چه دَدهٔ سترګے دَ سبل بیماري ده داسے چه نظر ئے نهٔ شو کولے تعبیر ئے دَ دے تیاري په اندازه به دَ دین نقصان دے او که اوګوري چه سترګے ئے اسماني رنګے (رشنے) دي او سبل پکښے دے تعبیر ئے دَ بدعت په لاره به وي۔ او که اوګوري چه دَدهٔ سترګو کښے کوږوالے او سبل دے تعبیر ئے ځوی به ئے بیمار شي. او که اوګوري چه دَ سترګو نه ئے سبل ویستے دے تعبیر ئے توبه به وکړي۔

او ځنے معبرین وائي چه ځوی به ئے دَ بیمارئ نه بنهٔ شي او که مسافر وي نو روغ او جوړ به خپل وطن ته واپس ورسیږي.

## سپینے اُوبه (سفید آب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښے سپینے اوبهٔ لیدل تعبیر ئے غم او فکر دے

که اوګوري چه سپینې اوبهٔ لري او یا ورته چا ورکړي دي، تعبیر ئې دَ چا سره به خبرې کوي او تل به غمژن وي. که اوګوري چه دَ دهٔ په مخ سپینې اُوبهٔ دي تعبیر ئې دَ هغه په اندازه به ورته دَ دُنیا سامان حاصل شي.
حضرت کرمانیؒ فرمائي، سپین مخې خدمت ګار دے، او ځنې معبرین وائي چه دَ کور مالک دے او دَ هغه نیکي او بدي دَ کور خاوند ته راګرزي.

## ستوري (ستارګان)

حضرت دانیالؒ فرمائي چه په خوب کښې ستوري لیدل تعبیر په بزرګانو او امیرانو باندے او نمر په بادشاه او سپوږمۍ په وزیر تعبیر لري. که خوب کښې زحل ستورے اوګوري، تعبیر ئې دَ زمینداراتو خلکو سره به ئې کار وي، او دوي نه به ورته مال، نعمت حاصل شي او که مشتري اوګوري تعبیر ئې دَ دهٔ کار به دَ خیرخوا نیک سردار او پرهیزګار سره پیښیږي. او که دَ مریخ ستورے په خوب کښې اوګوري تعبیر ئې دَ دهٔ کار به شائسته، رعب داره شځو او نوکرانو سره وي او دَ دوي نه به خیر او ارام مومي. او که دَ عطارد ستورے اوګوري تعبیر ئې، دَ دهٔ ناسته به دَ هوښیار او خبر لوڅي سړي سره وي او فائده به ورنه او مومي او که اوګوري چه ځنو ستورو ورسره خبرے وکړے، تعبیر ئې بزرګي او مرتبه به بیا مومي.
حضرت ابن سیرینؒ فرمائي چه شلور ستوري لکه عیوق، عقیق، سهیل کلیل چه مشرکانو ئې عبادت کوي. که یو هم په خوب کښې اوګوري، تعبیر ئې، دَ مشرکانو سره به ئې ناسته پاسته وي او که اوګوري چه روښانه ستورے په زمکه پریوتو او ورک شو تعبیر ئې څوک به هغه ملک کښې دَ دُنیا نه سفر کوي، دَ الله تعالیٰ قول دے (وَعَلَامٰتٍ وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُوْنَ) ترجمه: او هغه خلک چه په ستورو لاره مومي او که اوګوري چه ستورے په لاس کښې نیولے دے، تعبیر ئې څوي به ئې کیږي او دَ بادشاه مقرب به شي. او که خپل کور کښې ستوري اوګوري تعبیر ئې دَ دهٔ به ډیر ځامن پیدا کیږي.
حضرت کرمانيؒ فرمائي، که اوګوري چه په آسمان کښې ستوري کم او ډیر شوي دي تعبیر ئې دَ بادشاه او دَ رعیت په منځ کښې به فتنه پیدا شي. او که اوګوري چه دَ سعد ستوري یو ځائے جمع شوي دي، تعبیر ئې دَ دهٔ حالت به ښهٔ وي.
او که اوګوري چه ستوري دَ دهٔ کور ته ورتلي دي تعبیر ئې دَ دهٔ ځامن به دَ بادشاه

مقرب وی۔ او کہ اوګوری چہ ستوری دَدهٔ تابع شوی دی تعبیرئے بادشاهی به بیا مومی۔ او که اوګوری چه ستوری خبرے کوی تعبیرئے دَ وخت بادشاه به منصف وی۔ او که دَدے خلاف اوګوری تعبیرئے دَ وخت بادشاه به ظالم وی۔ او که اوګوری چه ستوری دَیو بل سره جنګ کوی تعبیرئے په هغه ملک کښے به جنګ او جګړه شروع کیږی۔ که اوګوری چه ستوری ئے په خپل لستونړی کښے ایښی دی۔ تعبیرئے ډیر مال به حاصل کړی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که اوګوری چه په ستورو کښے یو ستورے دَدهٔ په وړاندے تلل وکړل او دَدهٔ په خوا کښے پریوتو، تعبیرئے دَدهٔ خوی به عزتمند او دَ مرتبے خاوند وی۔ او که اوګوری چه ستوری دَدهٔ صاحب طالع دی او دے په خپله مرتبه کښے دے، تعبیرئے دَدهٔ نسل به زیات شی۔ که اوګوری چه دَ ستورو عبادت کوی۔ تعبیرئے دَ کوم عالم بزرګ خدمت به کوی۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، په خوب کښے هغه ستورے لیدل چه په هغے ځنګل کښے لاره معلوموی تعبیرئے په خیر او نفع دے او دَ هغه ستورو لیدل په خوب کښے چه خلک ئے عبادت کوی تعبیرئے په شر او په نقصان دے۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی په خوب کښے دَ ستورو لیدل په نهو وجو وی (۱) فقهاء (۲) علماء (۳) قاضیان (۴) خلیفګان (۵) وزیران (۶) وران ځلئے (۷) خزانه (۸) جنګیان خلک (۹) شاګردان

**قیصه**:- وائی چه بغداد کښے یو سړی خوب اُولیدلو چه رنړا کوونکے ستورے په زمکه پریوتے دے۔ معبرانو وویلے، عالم به دَ دُنیا نه ځی، په هم هغه هفته کښے امام اعظم ابوحنیفهؒ دَ دُنیا نه لاړو۔

**ستن (ستون)** | حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، ستن په خوب کښے لیدل خوب لیدونکی دَ پاره دولتمند او نیک بخت سړے دے۔ که خوب کښے اوګوری چه ستن لری او ښۂ قوی ده۔ تعبیرئے دَ مترقی پسنده سړی نه به مال حاصل کړی۔ که اوګوری چه دَ کور ستن ئے پریوتے او یا ماته شوے تعبیرئے دَدهٔ دَ هلاکت دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی ستن په خوب کښے لیدل تعبیرئے اسلام دے۔

که اوګوری چه دَ دهٔ دَ کورستن ماته شوے او، یا پریوتے ده، تعبیرئے، دَکور مالک به مړکیږی. او که اوګوری چه دَ دهٔ کورستن کمزورے ده، تعبیرئے دَ دهٔ دَ دین دَ کمزورتیا دے.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په خوب کښے ستن لیدل په پنځو وجوه ده (۱) دولتمند (۲) مړګ (۳) رعب والا سړے (۴) په کارونو کښے قوت (۵) ولایت

## سجده

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه الله تعالیٰ ته ئے سجده کړے تعبیرئے په لوے سړی به کامیابیږی. او که اوګوری چه بے دَ الله تعالیٰ نه ئے بل چاته سجده کړے ده. تعبیرئے کوم مراد چه ئے په زړهٔ کښے دے، نهٔ به پوره کیږی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، که خوب کښے اوګوری چه بادشاه ته ئے سجده کړے، تعبیرئے دهٔ ته به دَ بادشاه نه نقصان ورسیږی. دَ الله تعالیٰ قول دے (اَفَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا یَنْفَعُكُمْ وَلَا یَضُرُّكُمْ) الانبیاء۶۶: آیا تاسو بغیر دَ الله تعالیٰ نه دَ هغه چا عبادت کوئ چه هغه تاسو ته نهٔ نفع در کولے شی او نهٔ نقصا

## سَر

حضرت دانیال فرمائی په خوب کښے دَ سر لیدل دَ قوم سردار دے که اوګوری چه پریکړے سرئے اخستے دے تعبیرئے ځوک سردار به دوست کوی او دَ هغهٔ نه به خیر او نفع بیاموهی، که اوګوری چه بغیر دَ زخم دَ تورے نه ئے دَ هغهٔ دَ بدن سر جدا کړے دے. که قرضدار وی نو دَ قرضے نه به خلاص شی او دَ غم نه به خوشحالی بیاموهی او که همدغه خوب کوم غلام اوګوری تعبیرئے دا دے چه آزاد به شی او که بیمارئے اوګوری تو صحت به ئے بښ شی او که سردار دا خوب اوګوری تعبیرئے دا دے چه ملک به بیاموهی. او که آزاد سړے ئے اوګوری، تعبیرئے، بنځه به کوی خو چه مالدار وی.

حضرت ابن سیرین فرمائی، که ځوک ډیر پریکړی سرونه اوګوری تعبیرئے، هلته به سرداران راجمع کیږی. که اوګوری چه دے سرونو ته ئے وینښتهٔ یا څرمن یا مازغهٔ ئے ویستلی دی تعبیرئے دا دے چه دَ سردارانو نه به مال حاصل کړی. که اوګوری چه دَ خلکو دَ سرونو پوستکی ئے خوړلی تعبیرئے ځوک سردار مشر به په دهٔ غصه کوی. که اوګوری چه دَ کوم معلومدار سړی سر خوری، تعبیرئے خپله سرمایه به خوری. او که اوګوری چه دَ ځنګلی ځناور سرئے خوړلے دے تعبیرئے مال به بیاموهی. که اوګوری

چه دَنا معلوم سړی سَر ئے خوړلے، تعبیرئے دَ چا سړمایه به خوری۔ که اوګوری چه دَ چرګ سرئے خوړلے، تعبیرئے دَ هغې په انداز به دَ بادشاه مال خوری. که اوګوری چه یو سړی ډیر سرونه دَ دَهٔ په وړاندے راوړی دی تعبیرئے دَ هغه ډلے سردار به وی او دَ هغهٔ نه به خیر او نیکی مومی۔ او که خوب کښے دَ ښځے سر اوګوری، تعبیرئے دَ مالداره ښځے نه به خوشحالی بیا مومی او که اوګوری چه دَ ګډ سرئے خوړلے دے تعبیرئے، عمر به ئے اوږد شی او دَ حلالو مال به بیا مومی۔ او که اوګوری چه دَ غوایه سرئے خوړلے دے تعبیرئے هغه سړے به مال او نعمت مومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که خوب کښے خپل سَر غټ اوګوری تعبیرئے مرتبه او درجه به بیا مومی۔ او که خوب کښے اوګوری چه دَ دَهٔ دوه سرونه دی تعبیرئے کار به ئے قوی او مضبوط وی۔ او که خپل سر بربنډ اوګوری، تعبیرئے چه کوم شغل او کار لری دَ هغے نه به پریوځی او غمژن به شی. او که په خپل سر زخم اوګوری چه دَ هغے نه وینه راځی، تعبیرئے، دَ چا سره به جګړه کښے پریوځی. که اوګوری چه دَ سرنه ئے مازغهٔ راوتلی دی او په زمکه پریوتی دی. تعبیرئے خپله سرمایه چه څهٔ ورسره وی دَ لاسه به ئے لاړه شی۔ او که اوګوری چه مازغهٔ ئے واپس په خپل ځائے کښے ایښی دی تعبیرئے، خپله سرمایه به بیا په لاس راوړی. که اوګوری چه دَ دَهٔ سر غوړ دے، تعبیرئے دا دے چه دَ خیر کارونه به کوی. که اوګوری چه سرئے پریکړے په لاس کښے دے تعبیرئے، ډیر مال به بیا مومی. او خپل ریاست کښے به سردار شی او خلک به ئے تابعدار شی۔ او که اوګوری چه سر ورسره دَ نیکی خبرے کوی تعبیرئے، دا سړے به نیک عمله وی او خپلو کارونو کښے به دَ انصاف خاوند وی۔ او که بدے خبرے ئے ورسره کړے وی تعبیرئے دَ دے خلاف دے۔ که خپل سَر دوه ټکړے اوګوری داسے چه یوه ټکړه ئے په ښی لاس کښے ده او بله په چپ لاس کښے ده۔ تعبیرئے، مور او پلار به ئے مړهٔ کیږی۔ او که اوګوری چه خپل سرئے په خپل لاس کښے دے، تعبیرئے دَ سردارنه به خیر او نفع بیا مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه دَ دَهٔ سَر دَ هاتی دَ سر په شان شوے دے، تعبیرئے، ولایت به بیا مومی۔ او که اوګوری چه دَ دَهٔ سر دَ اُوښ دَ سر په شان شوے دے، تعبیرئے، فساد او حرامو ته به مائله شی۔ او که اوګوری

چه سرئے د اس د سرپشان شوے دے، تعبیرئے دادے چه د بادشاه نه به مال اوموم‌ی۔ اوکه اوګوری چه سرئے دخره د سرپشان شوے دے، تعبیرئے، د خپل بخت نه نصیب اوحصه بیاموم‌ی۔ اوکه اوګوری چه د دهٔ سر د غوایهٔ د سر په شان شوے دے، تعبیرئے د خلکو په وړاندے به خواروی۔ اوکه اوګوری چه د ګېړ پشان د دهٔ سرشوید ے تعبیرئے دادے چه په دهٔ به جهل غالبه کیږی۔ اوکه اوګوری چه د دهٔ سر د زمری د سرپه شان شوے دے تعبیرئے، حکومت به بیاموم‌ی او دښمن به مغلوبه کړی اوکه خپل سر د سپی د سرپه شان اوګوری، تعبیرئے دادے چه ذلت اوخواری به بیاموم‌ی اوکه اوګوری چه د دهٔ سر د خنزیر د سرپشان شوے دے تعبیرئے میلان به ئے د کفر په طرف وی نعوذ بالله منها۔ اوکه اوګوری چه د دهٔ سر د بلور وپشان شوید ے، تعبیرئے د دهٔ په هلاکت دے۔ اوکه اوګوری چه د دهٔ سر د سرو زرو' یا د سپینو زروپشان شوے دے، تعبیرئے، مال به بیاموم‌ی۔ اوکه د اوسپنے یا د کانړوپشان اوګوری تعبیرئے د کمینه سردار خدمت به کوی۔ اوکه اوګوری چه د دهٔ سر د لرګی دے، تعبیرئے، د مرګ نیټه به ئے نزدے شوے وی۔ اوکه اوګوری چه د دهٔ سر د ٹهیکری دے، تعبیرئے چرته د ټوقی سړی خدمت به کوی۔ که اوګوری چه د دهٔ سر د مرغانو د سرپشان شوے دے تعبیرئے دادے چه په سفربه ځی۔ اوکه خپل سر پریکړے شوے اوګوری تعبیرئے دے به په دار زوړند کیږی (پهانسی کیږی)۔ که اوګوری چه د دهٔ سرئے د وجود نه جدا کړے او واپس ئے په خپل ځلئے ایښے دے او برابرشوے دے تعبیرئے د شهیدانو درجه به آخر بیاموم‌ی۔ که اوګوری چه سرورسره دے او ښځه ئے حامله وه، تعبیرئے دادے چه ځوی به ئے کیږی اوکه ښځے خپل سرخرئیلے اولیدلو، تعبیرئے دادے چه خاوند به ئے مړشی۔ که اوګوری چه د سر غوښه ئے سره کړے اوخوړلے تعبیرئے دادے چه مال به بیاموم‌ی۔ که اوګوری چه د سر غوښے ئے سرے کړے اخستے دی اویا چا ورته ورکړی دی او د هغے نه ئے خوړلی دی تعبیرئے دادے چه د بادشاه نه به فائده اوموم‌ی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی چه سورکړے سر په تعبیر کښے رئیس یا سردار دے۔ که اوګوری چه کچه (خام) سرئے خوړلے، تعبیرئے دادے چه د سردار غیبت به کوی او پوخ سر د خام (کچه) نه ښهٔ دے په خوب کښے۔

حضرت حافظ معبر فرمائی په خوب کښے سر لیدل پلار دے اؤیا بادشاه دے او، یا څوی. که څپل سر پریکړے اوګوری، تعبیر ئے داد ے چه د مور او پلار نه به جدا شی. اوکه څپل سر په څپل لاس کښے اوګوری تعبیر ئے دا دے چه د دوی سره به ملاویږی. اوکه اوګوری چه سر ئے په څپل ښټ بیا نکولے دے، تعبیر ئے دادے چه د چانه به مال اخلی او یا به چاته قرض ورکوی. که اوګوری چه ډیر پریکړی سرونه ورسره دی او کلهٔ یږی تعبیر ئے د هغه ملک سردارانو ته به غم او مصیبت رسیږی. اوکه څپله اوږه باندے د بادشاه سر اوګوری تعبیر ئے، لس زره درهمه به بیا مومی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښے د خلکو سرونه لیدل په دولسو وجوی[12] (۱) رئیس (۲) سردار (۳) پلار (۴) مور (۵) امام (۶) مؤذن (بانګی) (۷) عالم (۸) لس زره درهم (۹) څوی (۱۰) غلام (۱۱) بنځه (۱۲) مالداری. که اوګوری په خوب کښے چه د ده سر لوئے او نورے ځاے ئے اغوستے دی، تعبیر ئے دادے چه د بادشاهانو سره به ئے ناسته وی. اوکه خیر نے ځاے ئے اغوستے وی تعبیر ئے د سردارنه به غم او فکر بیا مومی. اوکه اوګوری چه سرونه ئے په تنور کښے اینبی دی تعبیر ئے د ده به د سردارانو او نوکرانو سره کار پیښیږی.

## سرے دانے

سرے دانے په خوب کښے لیدل، تعبیر ئے د مال په زیاتوالی دے. که اوګوری چه د ده په بدن سرے دانے راوتلے دی، تعبیر ئے مال به په سختئ او غم سره حاصلوی. اوکه اوګوری چه د ده د وجود نه سرے دانے لرے شوے دی تعبیر ئے د اول نه خلاف دے.

## سرکه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سرکه په خوب کښے لیدل تعبیر ئے حلال مال دے او برکتناک دے او د خوړلو تعبیر ئے هم نیک دے. همدا سے حضرت رسول کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی (نِعْمَ الْاِدَامُ الْخَلُّ) ترجمه: ښهٔ ترکاری (اینکولے) سرکه ده. او ځنے معبرینو فرمائیلی دی، په خوب کښے ترشه سرکه غم او فکر دے. او سرکه خرڅوونکے سرے په خوب کښے جګړه مار سرے دے.

## سوټے (سرګین)

حضرت ابن سیرین فرمائی، په خوب کښے د اُش او د غوایه سوټے لیدل تعبیر ئے مال او نعمت به ورته حاصل شی. اوکه د انسانانو سوټے اوګوری تعبیر ئے د حرام مال دے. که

اوکوری چه په غُسل خانه کښے سوځے اچولے دی۔ تعبیر ئے خه بد به ورته رسیږی اود مال نقصان به ئے وی۔ اوکه اروری چه د ځه په بستره کښے پلیتی کړے ده، تعبیر ئے د خپل مال څه حصه به بال بچ ته ورکوی۔ که اوکوری چه سوځے ئے په زمکه واچولے او په خاوره کښے ئے خښے کړے، تعبیر ئے مال به په زمکه کښے پټوی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی۔ که اوکوری چه د خلکو سوځے ئے خوړلے تعبیر ئے حرام مال به خوری۔ که اوکوری چه په یو نامعلوم ځائے کښے ئے سوځے غورزولے دی، تعبیر ئے خپل مال به چرته کوم ځائے کښے خرچ کوی۔ او که اوکوری چه وجود ئے په سوځو ګندہ کړے، تعبیر ئے په ګناه کښے به واقع شی که اوکوری په خوب کښے چه د ستونه ئے کړیدی، تعبیر ئے خپل مال به اسراف سره خرچ کوی۔

حضرت دانیالؑ فرمائی، د سړی ګندګی (ډک او دس ماتے) حرام مال دے او د چارپایانو سوځے حلال مال دے او سوځے ورکول هغه مال دے چه په ظلم سره ئے لاس ته راوړی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، هره پلیتی چه د سړی نه جُدا شی تعبیر ئے د مال نقصان دے۔ که اوکوری چه د سوځو په منځ کښے روان دے او پکښے ډوب شوے دے، تعبیر ئے د بادشاه نه به غم او فکر ورته رسیږی۔ که اوکوری چه خپه ئے په سوځه ایښے او پریوتو او جامے او وجود ئے ګنده شو، تعبیر ئے د حاکم نه به نقصان اوکوری۔

حضرت امام جعفر صادقؒ د سوځو لیدل په خوب کښے په څلور وجوه دی۔ (۱) حرام مال (۲) د رزق فراخی (۳) په اولاد خرچ کول (۴) د غم لرے کیدل۔

## سندرے (سرود)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے سندرے وئیل تعبیر ئے باطل خبرے او ګناه ده۔ که اوکوری چه سندرے د نورو لهو ولعب شیانو سره لکه تنبل، رباب او شپیلئ سره وائی تعبیر ئے ډیر غم او مصیبت کښے به شی۔ که اوکوری چه سندرے اوریدلے دی تعبیر ئے، باطل خبرے به اوری۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که په خوب کښے اوکوری چه سندرے ئے وئیلے دی تعبیر ئے، که په بازار کښے وی نو مالداره خلک به رسوا شی او فقیرانو ته به

غم وی. او معبران وائی، سندرے وټیل او آوریدل په خوب کښے په شپږ وجو
وی (۱) باطل خبرے (۲) غم او فکر (۳) مصیبت (۴) رسوائی (۵) جګړه (۶) علم او حکمت

## سریش

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سریش په خوب کښے لیدل تعبیرئے غم او فکر دے او د دے خوړل په خوب کښے تعبیر ئے ضرر او نقصان دے. که اوګوری چه په سریش ئے شے و نخلولو تعبیرئے دا دے چه څهٔ کار به کوی او هغه به په سمه لاره راولی.

## سریښم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که اوګوری یو قِسم سریش چه د ځرمنے وِیلی کولو نه اوځی. (سریشم) چه سریش ورسره دی، یا چاورکړی دی، تعبیرئے د هغے په اندازه به ورته راحت ورسیږی. که اوګوری چه سریش ئے خوړلی، تعبیرئے، د عیال په وجه به څهٔ کار کوی چه محکم او مضبوط به وی.

## سفر کول (سفر کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که خوب کښے اوګوری چه سفرئے کړے دے او هغه ځائے د دے نه ښهٔ دے تعبیرئے، د دهٔ حال به نیک شی، او که ښهٔ نهٔ وو، تعبیر ئے د دے خلاف دے. که اوګوری چه سفرئے کړے دے او نهٔ پوهیږی چه چرته لاړ دے، تعبیرئے، د خپل عیال نه به جُدا شی او یا به بل کورته ځی. او که اوګوری چه د یو قوم په رخصت کولو تللے دے یا کومه د له د دهٔ رخصت کولو د پاره راغلی ده. تعبیرئے حال او کار کښے په ئے تغیر راشی او حال به ئے خپل ځائے ته راشی

حضرت مغربیؒ فرمائی. که اوګوری چه د ساز او سامان سره سفرته لاړ دے تعبیرئے کار به ئے نیک شی. او که د دے خلاف اوګوری تعبیرئے د ا د ل خلاف دے.

## سپے (سگ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سپے په خوب کښے لیدل کمینه او مهربانه دښمن دے، نوتو سپی په خوب کښے لیدل عرب دښمن دے او سپین سپے په خوب کښے لیدل عجم دښمن دے. که اوګوری په خوب کښے چه سپی خوړلے دے، تعبیرئے د دښمن نه به تکلیف اومومی که اوګوری چه د دهٔ جامے د سپی په لاړو ککړه شوی دی، تعبیرئے د دښمن په خبره به ستړے شی. که اوګوری چه د سپی غوښه ئے خوړلے دهٔ، تعبیر ئے، دښمن به دفع کړی. که اوګوری چه سپی ته ئے ډوډئ ورکړے دهٔ تعبیر

ئې، روزي به په دهٔ فراخه شي. که اوګوري چه سپے ورته نزدے شوے دے
تعبیرئې، دښمن به ورته طمعه کوي. که اوګوري چه سپي په دهٔ تکبیر وکړو
تعبیرئې په کمینه دښمن به اعتماد کوي. که اوګوري چه زمرے سپي اوخوړلو
تعبیرئې، ویره اوډاراوخطره به ورته رسیږي.
که اوګوري چه سپے ورنه اوتبنتید لو، تعبیرئې دښمن به ئې خطره کښې وي.
حضرت کرماني" فرمائي که اوګوري چه ښځه سپئ دَ دوي کورته راغلے تعبیرئې دَکم همته
اوکمینه ښځې سره به نکاح کوي.
حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائي، ښکاري سپے ښکاره دښمن دے. که
اوګوري چه ښکاري سپي باندے ښکارکولو تعبیرئې، دادے چه دهٔ ته به
دَ دښمن نه چه دَهوښیارتیا دعوي کوي خیر رسیږي. که اوګوري چه دَ ښکاري
سپي غوښے ئې خوړلے تعبیرئې دادے چه میراث به مومي. که اوګوري چه
ښکاري سپے دَ دهٔ نه لرے شوے دے تعبیرئې دَنفعتد دښمن نه به جُدا شي.
حضرت امام جعفرصادق فرمائي، دَ سپي په خوب کښې لیدل په څلورو وجو
وي (۱) دښمن (۲) طمع لرونکے بادشاه (۳) هوښیار (۴) چغلګرسړے.

## سلام کول (سلام کردن)

حضرت ابن سیرین فرمائي، که اوګوري په خوب کښې چه کوم دوست ورته سلام
کړے دے تعبیرئې هغه دوست به دَ دهٔ نه خوشحالي بیا مومي. که اوګوري
چه دښمن دهٔ ته سلام کړے دے، تعبیرئې هغه دښمن به دَ دهٔ دوست شي
که اوګوري چه کوم نامعلوم سړي ورته سلام کړے دے چه هغه ئې کله نهٔ وو لیدلے
تعبیرئې مسافر سړے به ئې په دوستي او اشنائي سره نیسي. که اوګوري چه
بُوډا سړي ورته سلام کړے دے چه هغه ئې کله نهٔ وو لیدلے، تعبیرئې دَ
الله تعالیٰ دَ عذاب نه به بچ پاتے شي. اوکه اوګوري چه بُوډا اشنائے ورته سلام
کړے دے، تعبیرئې، بناشسته ښځه به کوي.
حضرت کرماني فرمائي، که اوګوري چه کوم دوست ئې سلام کړے دے اوجواب
ئې نهٔ دے ورکړے تعبیرئې دَ دواړو منځ کښې به جدائي راشي.
حضرت مغربي فرمائي، که اوګوري چه ځوانے ښځې ورته سلام کړے دے،
تعبیرئې چه دَ دُنیا بخت به بیا مومي. که اوګوري چه په مونځ کښې وو او چپ
طرف ته ئې سلام کړے، تعبیرئې دادے چه دَ دهٔ کاربه دَ پریشاني وي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې سلام کول په څلورو وجوو دي (۱) امن (۲) بنادي (۳) بخت (۴) دَ مال نفع

## سُم (سنب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سُم په خوب کښې لیدل ښوي دے۔ که اوګوري چه سُم لري او یا چا ورکړے دے، تعبیر ئې ښوي به ئې کیږي۔ که اوګوري چه سُم لري او دَ ده نه ضائع شوے دے، تعبیر ئې ښوي به ئې ورنه غائب شي، یا به مري۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی په خوب کښې دَ خر سُم مال دے۔ که اوګوري چه ډیرے نُوکے ورسره دي یا چا ورکړي دي تعبیر ئې په هغه اندازه به مال حاصل کړي او که اوګوري چه دَ ده په پښه نوکه لږیږي لے ده۔ تعبیر ئې دَ ده عُمر به په خوشحالي او ارام سره تیریږي۔ او که اوګوري چه نوکه پریوتے، تعبیر ئې دَ دے په خلاف دے۔

## سندان

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سندان په خوب کښې لیدل تعبیر ئې دَ لوئے او بزرګ رئیس لیدل دي۔ که اوګوري چه ده سره سندان دے یا چا ورته ورکړے دے او پوهیږي چه دَ ده ملکیت دے تعبیر ئې دَ رئیس نه به خیر او نفع بیا مومي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی چه په خوب کښې دَ سندان لیدل تعبیر ئې دَ کوم سردار سره به ملګرے کیږي او دَ ده نه به ارام بیا مومي۔ که اوګوري چه سندان ئې چا ته ورکړے دے او یا ورنه ضائع شوے دے، تعبیر ئې، دَ کوم لوئے سړي صحبت نه به جُدا شي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې دَ سندان لیدل په پنځو وجووي (۱) سردار (۲) نفع (۳) قوت (۴) ولایت (۵) په کارونو کښې بخت۔

## سورلی کول (سواری کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که خوب کښې اوګوري چه سورلي ئې کړے تعبیر ئې دَ بادشاه نه به آس، اسلحه او نعمت بیا مومي۔ که اوګوري چه په سور لو کرځیدو او دَ ده تابعدار وو، تعبیر ئې په یو ټولي او ډله به حکومت کوي۔ که اوګوري چه نامعلومه سوارو ورته دُنیائي سامان ورکړے دے، تعبیر ئې دَ مسافر سړي نه به ورته نفع ورسیږي، که اوګوري چه معلومو سوارو څه شے ورکړے تعبیر ئې دَ ملګري او اشنا نه به ورته نفع ورسیږي۔ او که سواره په اسماني رنګه جامو او په خوارو اوګند ه اسونو اوګوري تعبیر ئې دَ دے خلاف دے۔

## سره کرړے غوښه (بریان)

حضرت محمد ابن سیرینؒ فرمائی چه سره کړې شیان په خوب کښ لیدل ‌دے خبرے دلیل دے چه خوب لیدونکے به د فراخه روزئ په طلب کښ وی ‌چه غوښه د کچه غوښے نه په تعبیر کښ ښه ده.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که خوب کښ اووینی چه د گډ سره کړے غوښه ‌ئے خوړلے ده تعبیرئے په سختئ او تکلیف سره به مال لاس ته راوړی او که ‌ووینی چه د غوایه سره کړے غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے ډیرے نه به په ‌من کښ شی او که اووینی چه د چیلئے د بچی سره کړے غوښه ئے خوړلے ده ‌تعبیرئے لږ غوندے مال به ورته حاصل شی۔ او یا به ئے زوئ پیدا شی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه سوړ کړے سرئے خوړلے دے ‌تعبیرئے د بادشاه نه به ورته نفع ورسیږی او که اووینی چه سوړ کړے چرګ ئے ‌خوړلے دے تعبیرئے د ښځے نه په چل او دهوکے سره مال حاصلوی او که کب ‌ئے سوړ کړے خوړلے وی تعبیرئے په سفر به لاړشی چه د علم په صحبت د کوم ‌عزتمند سړی صحبت ته به ورسیږی دا هله چه خوب لیدونکے نیک وی او که ‌خوب لیدونکے فاسد وی تعبیرئے د غم او فکر او دښمن وی او تازه سوړ کړے کب ‌ورله نه ښه دے او غټ کب د ورکوټی نه ښه دے او په خوب کښ د سرو کړو ‌تیزونو خرڅوونکے لیدل داسے سړے دے چه د هغه په ذریعه به نور و خلکو ‌ته روزی فراخه وی۔

## ستن (سوزن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه ستن لری او خه شے ئے وریانسے ګنډلے دے ‌تعبیرئے، د ده خواره کارونه به راجمع شی او حاجت به ئے پوره شی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که خوب کښے اوګوری چه سپینے جامے ئے ګنډلی دی ‌تعبیرئے، حال به ئے نیک وی۔ او که اوګوری چه د ده نه ستنه ورکه شوے ‌ده. تعبیرئے، د ده احوال به بد وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه چا ورته ستنه ورکړے ده، تعبیرئے د غه ‌سړے به د ده په حالاتو مهربانه وی۔ او که اوګوری چه ډیرے ستنے ورسره ‌دی، تعبیرئے، د ده کار به په خیرا و صلاح سره وی.

## سمسره (سوسمار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه سمسرے خوړلے دے تعبیر

ئے نقصان به بیا مومی. اوکه اوګوری چه سمسره ئے وژلے، تعبیر ئے په
دښمن به غصه کوی. حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ سمسرے غوښه خوړل په
نفع تعبیرلری چه دهٔ ته به رسیږی. که اوګوری چه سمسرے دَدهٔ په کور
کښے آواز کړے، تعبیر ئے دَ دهٔ کور نه به دَ غم آواز اوځی.

## سُورے (سوراخ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه سورے
دے او هغه سوری کښے د ننه تللے دے تعبیر ئے
دَ بادشاه دَ آوازنه به خبر شی، که اوګوری چه دَ دهٔ په بوانډام کښے سورے
دے او وینه ورنه روانه ده. تعبیر ئے، دهٔ ته به تاوان رسیږی.
حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه دَ دهٔ په کیړه کښے سورے دے. تعبیر
ئے دَ خپل اولاد نه به په امن کښے وی. اوکه اوګوری چه په کانړی کښے سورے
کړے دے، تعبیر ئے په مسلمانیٔ کښے به پائیدار او محکم وی. اوکه اوګوری
چه په ونه کښے ئے سورے کړے دے، تعبیر ئے دَ دے په خلاف دے، او
معبران وائی چه دَ هغه سُوری په اندازه به دَ مال نقصان بیا مومی.

## سیو (سیب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که شته مڼه په
خوب کښے اوګوری، تعبیر ئے په ځوی لری. اوکه
سره وی نو دَ بادشاه نه به نفع لری. اوکه سپین سیب اوګوری نو دَ سوداګر
نه په نفع تعبیر لری. اوکه زیړ او ترش اوګوری تو دَ بیماری تعبیر لری اوکه
اوګوری چه سپین سیب ئے دوه ټکړے کړهٔ، تعبیر ئے چه دَ چا سره شریک
وی دَ هغهٔ نه به جدا شی، که اوګوری چه سره مڼه ئے دَ اُونے نه شوکولے
او خوړلے ده تعبیر ئے دَ دهٔ به لور کیږی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، سیب په خوب کښے لیدل تعبیر ئے په خیر دے. او ترش
سیب تعبیر ئے ناخوښه او خراب خبر اوریدل دی. اوکه اوګوری چه خوږ
سیب دے تعبیر ئے ښهٔ خبر به واوری.
حضرت دانیالؑ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه سیب ورسره دے او خوړلے
ئے تعبیر ئے دا دے چه نفع به بیا مومی. او سیب دَ خوب لیدونکی شُغل او
صفت کښے همت دے، اوکه بادشاه سیب په خوب کښے اوګوری تعبیر ئے، بادشاهی
به بیا مومی. اوکه سوداګر ئے اووینی تعبیر ئے، تجارت به ئے ښهٔ وی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، سیب په خوب کښے په اوو وجو وی. (۱) ځوی

(۲) نفع (۳) بیماری (۴) وینزه (۵) مال (۶) حکومت (۷) دَخوب لیدونکی همت او دَ غائب او حاضر خبر دے۔

## سیلاب (سیل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سیلاب په خوب کښے لوے دښمن دے او یا ظالم بادشاه دے که اوګوری چه سیلاب ئے دَ ځان نه دفع کړے او بل طرف ته تللے دے، تعبیر ئے دادے چه په دښمن به کامیابی مومی او غم او فکر به ئے کم شی. او که اوګوری چه دَ سیلاب نه تښتیدو، تعبیر ئے دَ دښمن نه به تښتی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، سیلاب په خوب کښے دَ یخ سمندر نه غم او خفګان دے او دَ ګرم سمندر نه نفع ده۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، که چرے دُنیا دَ سیلاب نه ډکه اوګوری او نه پوهیږی چه دَ کوم ځائے نه راغلے دے، تعبیر ئے، الله تعالیٰ به په دغه ملک عذاب راولیږی دَ الله تعالیٰ کلام دے۔ (فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ) اعراف: ۱۳۳ او مونږ په هغوی طوفان راولیږه۔) او څنے تعبیر کونکی وائی که اوګوری چه سیلاب ځائے خراب کړے تعبیر ئے، دَ هغه ځائے خلکو ته به دَ بادشاه نه دَ تاوان ویره وی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښے دَ سیلاب لیدل په څلورو وجوی۔
(۱) لوے دښمن (۲) ظالم بادشاه (۳) غائب لښکر (۴) بلا فتنه سختی۔

## سینه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سینه په خوب کښے لیدل شریعت دے۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (أَفَمَن شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ) (الزمر ۲۲)
ترجمه:- آیا دَ چا سینه چه الله تعالیٰ دَ اسلام دَ پاره پرانستلے ده۔
که په خوب کښے اوګوری چه دَ ده سینه پرانستلے شوے ده، تعبیر ئے دَ ده ټول کاروبار به پوره شی او که اوګوری چه دَ ده سینه تنګه شوے ده. تعبیر ئے دَ ده باطن کښے به خلل وی۔ او که اوګوری چه دَ ده په سینه شین خط لیکلے شوے دے، تعبیر ئے الله تعالیٰ به ورته کرامت ورکړی۔ او که اوګوری چه دَ ده په سینه اسمانی رنګه خط لیکلے شوے دے، تعبیر ئے دَ ده په دین کښے به خلل پریوځی۔ او بغیر دَ شهادت کلیمے نه به مړ کیږی۔ او که اوګوری چه دَ ده دَ سینے نه ویښته خړ ټیلی دی، تعبیر ئے دے، دَ قرضے نه به خلاص شی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه دَ ده په سینه کښے ساه تنګه شوے ده. او ساه نه شی اخستلے، تعبیر ئے دین او دُنیا به ورباندے پرانستلے شی۔

اوکه اوګوری چه سینه ئے کرمه ده او تور وجود ئے دے تعبیر ئے دا دهٔ زړهٔ په دَ چا سره تکیدالے وی۔
حضرت دانیال فرمائی، که اوګوری چه دَ دهٔ سینه تنګه ده، تعبیر ئے دے په زړهٔ تنګے وی۔ او که خپله سینه فراخه اوګوری تعبیر ئے خوشحاله به وی او ځنے معبرین وائی، که کافر خپله سینه فراخه اوګوری، تعبیر ئے مسلمان به شی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (فَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ اَنْ يَّهْدِيَهٗ يَشْرَحْ صَدْرَهٗ لِلْاِسْلَامِ الانعام: ۱۲۵) الله تعالیٰ چه چا ته هدایت کول غواړی، دَ هغه سینه دَ اسلام دَپاره پرانزی.
حضرت امام جعفر صادق فرمائی په خوب کښے دَ سینے لیدل په اوو وجو وی (۱) علم او حکمت (۲) سخاوت (۳) ایمان (۴) کفر (۵) امان (۶) رګ (۷) بُخل

## سپیږے (شپش)

حضرت ابن سیرین فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه سپږے ئے مړے کړے، تعبیر ئے دښمن به دَ دهٔ کمزورے وی۔ که اوګوری چه ډیرے سپږے دی او هغه ئے خوری، تعبیر ئے خلک به دهٔ ته پیغورونه ورکوی او، یا به دهٔ ته دَ مال نقصان وی۔ او که اوګوری چه سپږے دَ خلکو ویته ښخبی نو دَ وینے تعبیر مال دے

## سَحر (صبح)

حضرت ابن سیرین فرمائی، که اوګوری چه صبح صادق سره دُنیا روښانه ده۔ تعبیر ئے، دَ هغه ملک خلکو ته به امن حاصل شی۔ که اوګوری چه دَ سحر نه روسته تیارهٔ را پیدا شوه تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه صبح صادق راختلے دے او سور دے دا سے چه زمکه دَ هغے نه سره شوه۔ تعبیر ئے په هغه ملک کښے به قتل او خونریزی وی۔ او که دَ سحر رنګ زیړ اوګوری تعبیر ئے بیماری ده۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښے دَ سحر لیدل، دَ هغه ملک دَ خلکو دَ قوت او دَ دین صلاحیت باندے تعبیر دے۔

## سپوږمئ، میاشت (ماه)

حضرت دانیال فرمائی، سپوږمئ په خوب کښے دَ بادشاه وزیر دے۔ که اوګوری چه دهٔ سپوږمئ دَ اسمان نه رانیولے او یائے خپل ملکیت کښے ولیدله تعبیر ئے دَ بادشاه مقرّب به شی یا به وزیر شی۔ او که اوګوری چه دَ سپوږمئ سره جنګ او جهګړه کوی۔ تعبیر ئے دَ وزیر سره به جهګړه کوی

اوکه اوګوري چه دَ سپوږمئ په ځلځئ مقیم شوے دے، تعبیرئے دَ بادشاه وزیر په شي. اوکه اوګوري چه دهٔ دَ سپوږمئ رڼړا اخستے ده. تعبیرئے وزارت به بیا موحي. اوکه اوګوري چه دَ اسمان سپوږمئ دهٔ نیولے ده او رڼړا او پلوشے نهٔ کوي او توره تیاره هم نشته. تعبیرئے دَ غمونو نه به خلاصے موحي اوکه اوګوري چه سپوږمۍ توره تیاره وه او په خپل ځلځے نهٔ ده، تعبیرئے دَ بادشاه وزیر به دَ څهٔ کار په وجه دَ ده محتاجه وي.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، دَ سپوږمئ لیدل په خوب کښے دَ بادشاه لیدل دي خاصکر چه دَ ځوارلسمے وي. اوکه اوګوري چه سپوږمئ دوه ٹوټے شوے ده. تعبیرئے دَ بادشاه وزیر به هلاک شي. اوکه اوګوري چه سپوږمئ ورسره خبرے کړي دي. تعبیرئے خلک به دهٔ فریاد کوي او خپل حق به غواړي. اوکه اوګوري چه سپوږمئ ورسره خبرے کوي، تعبیرئے ولایت به بیا موحي. اوکه اوګوري چه دوه سپوږمئ خپلو کښے جنګ کوي، تعبیرئے دوه بادشاهان دَ یو بل سره جنګ کوي اوکه اوګوري چه دوه سپوږمیو نه یوه سپوږمئ پریوتے ده یا ټوټه ټوټه شوے ده تعبیرئے دَ هغه دوه بادشاهانو نه به یو بادشاه دَ بادشاهۍ نه پریوځي.

حضرت مغربيؒ فرمائي، که اوګوري چه سپوږمئ په لاس یا په ترخ کښے نیولے ده. تعبیرئے ښځه به کوي. اوکهٔ اوَلو ورځو سپوږمئ اوګوري تعبیرئے هغه ښځه به دَ دهٔ نه په نسب کښے کمه وي. اوکه سپوږمئ نیمه وي، تعبیرئے هغه ښځه په په اصل اوچته او ښهٔ وي. اوکه دَ ځوارلسمے سپوږمئ اوګوري، تعبیرئے هغه ښځه به دَ دهٔ نه په اصل او نسب کښے نه اوچته وي. اوکه دا خوب ښځه اوګوري تعبیرئے په دے صفت به خاوند کوي. اوکه اوګوري چه سپوږمئ صفا او پاکیزه ده او دَ ده په کور کښے کوز شوے ده تعبیرئے په هغه کښے به ښځه کوي او دَ هغے نه به نفع موحي. اوکه چا اولید له چه سپوږمئ څهٔ شي پټه کړے ده تعبیرئے دَ بادشاه وزیر به بدلیږي، اوکه اوګوري چه سپوږمئ توره شوے ده (تندر نیولے ده) تعبیرئے دَ وزیر به حال بد وي او دَ خپل منصب نه به لرے شي.

حضرت کرمانيؒ فرمائي، که دَ ځوارلسمے سپوږمئ ښائسته او روښانه اوګوري په خپل ځائے کښے او دَ هغے رڼړا دَ دهٔ دَ کور مخامخ پرق کیږي. تعبیرئے دَ هغه کور خلک به دَ بادشاه یا دَ هغه وزیر نه خیر او نفع بیا موحي اوکه دَ ځوارلسمے سپوږمئ توره اوګوري تعبیرئے دهٔ ته به تکلیف او کړکه رسیږي.

مئے راختلے دہ لیکن دَ دے رنړا پہ اول کښے
اوکہ اوګوری چہ دَ اولو ورځو سپوږمئے
زیاتہ شوې دہ یا خوارلسمہ شوے دہ۔ تعبیر ئے، دَ دۀ پہ کور کښے بہ ځوی پیدا
کیږی چہ بادشاہ یا وزیر بہ وی۔ اوکہ اوګوری چہ دَ اولے ورځے سپوږمے دَ
خپل ځائے نہ را وتلے، تعبیر ئے دَ دۀ بہ ځوی پیدا کیږی او یا بہ دۀ تہ څۀ
مشکل کار پیښیږی، چہ خلکو تہ بہ دَ دۀ نہ غم او فکر وی۔
او ځنے معبرانو وئیلی دی، کہ څوک سپوږمئے پہ خوب کښے اوګوری تعبیر ئے دَ
هغہ ملک بادشاہ بہ ځوی کیږی۔ اوکہ اوګوری چہ دَ سپوږمئے رنړا لا زیاتہ دہ تعبیر
ئے دَ هغہ هلک ژوند بہ زیات وی۔ اوکہ دَ څوارلسمے سپوږمئے اوګوری تعبیر ئے
درمیانہ عمر بہ ئے وی۔ اوکہ سپوږمئے نقصانی اوګوری تعبیر ئے دَ بادشاہ یا
دَ وزیر پہ خدمت کښے بہ مشغول وی۔
حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، کہ اوګوری چہ سپوږمئے ئے پہ لاس کښے
نیولے دہ او یا دَ دۀ غیږے تہ راغلے دہ تعبیر ئے عالم او هوښیار ځوی بہ ئے
کیږی۔ اوکہ دا خوب څوک دَ بادشاہ مقرب اوګوری تعبیر ئے هغہ بہ بادشاہ
کیږی۔ اوکہ اوګوری چہ نمر او سپوږمئے او ټول ستوری ئے نیولی دی او دا ټول
تور تیارہ دی، تعبیر ئے دَ خوب لیدونکے بہ هلاک شی۔ اوکہ دَ خوب لیدونکے صالح
(نیک عملہ) وی، نو پہ غم او فکر کښے بہ پریوځی یا پہ دَ دے خوب لیدونکے بیمار
شی او آخر بہ ښۀ شی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ سپوږمئے لیدل پہ خوب کښے پہ اولسو وجوو
(۱) بادشاہ (۲) وزیر (۳) ملګرے (۴) رئیس (۵) عزت او مرتبہ (۶) دوست (۷) وینزہ
(۸) غلام (۹) باطل کار (۱۰) والی (۱۱) فسادی عالم (۱۲) عزتمن سردار (۱۳) پلار (۱۴) مور
(۱۵) ښځہ (۱۶) ځوی (۱۷) مشری۔

## سوان (ممبرد)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کہ اوګوری چہ سوان لری
او پہ هغے زنګ لرے کوی تعبیر ئے سخت کار بہ پہ دۀ
اسانیږی خاصکر چہ اوسپنہ دَ دۀ ملکیت وی۔ اوکہ اوګوری چہ پاکیزہ او روښانہ
اوسپنہ دَ څۀ شی سرہ مږی، تعبیر ئے دا سے کار بہ کوی چہ دَ هغے نہ بہ ذلت او نقصان مومی۔
او ځنو معبرانو وئیلی دی چہ سوان نرمہ خیرہ دہ۔ کہ اوګوری چہ سوان مات شوے
دے یا ضائع شوے دے تعبیر ئے څۀ کار بہ کوی او درست بہ نۀ وی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، کہ څوک اوګوری چہ دَ کور دَ تنبے لونبے سوان سرہ

سپینوی تعبیرئے دادے چه دهغهٔ نه به دکورخدٔشے خادم ته ملاویږی یا دَ هغے وجهِ نه به خادم دَ کار نه خلاص شی.

## سندرغاړے (مطرب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه څهٔ سندرے وائی تعبیرئے دادے چه دَحراموشیانو طرف ته به مائله وی.

اوکه دوپړئ او ډولکے اودَدے په شان نورڅهٔ شے غږوی نو دَ غم تعبیرئے او په خوب کښے ډم توب کول تعبیرئے خیراونفع دهٔ تعبیرکوونکی ته چه داسے سړے وی لکه قاضی او مفتی او واعظ څکه چه دا درے واړه قومونه صاحبان دَ ژړا اودَ فریاد دی او په تعبیرکښے دَ فساد تعبیر دے.

## سبزی (ناریا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے دَناریا خوړل که خوږه وی اودَ کم او یا دَچرګ په غوښه کښے پخه شوے وی، تعبیرئے په خیراونفع دے. اوکه دَغوائی یا څهٔ ګنده غوښه کښے پخه شوے وی نودَ غم اودَ فکر تعبیر لری.

## سپیرکئے (نانخواه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے سپیرکئے لیدل دَ غم اودَ فکر تعبیر لری. اوکه اوګوری چه دهٔ چاته سپیرکئے ورکړی دی یائے غوړولی دی تعبیرئے دَغم اودَ فکرنه به خلاص شی او دَ سپیرکو په خوړلو او لیدلو کښے څهٔ نفعه نشته دے بغیردَغم نه نور الله پاک ښهٔ پوهیږی.

## سپُغز (نرهار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه دَدهٔ په سپُغز وینبتهٔ نشته دے تعبیرئے، کاربه ئے بند شی. اوکه اوګوری چه دَدهٔ په سپُغز تکلیف یا درد دے. تعبیرئے دَهغه تکلیف په اندازه به ورته زحمت رسیږی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښے سپُغز لیدل په دوهٔ وجوئی دی (۱) ښځه (۲) مال. هر کله اوزیاتے چه په سپُغز کښے وی، دَهغے تعبیرپه ښځه باندے دے او په مال دے.

## سبزی دَ کوبهی په شان دهٔ. (کلم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که (یوقسمه) اوګوری چه دهٔ سره دَ کلم سبزی ده او دهٔ خوړلے ده تعبیرئے، دَ ښځے نه به نفع مومی. اوکه بے غوښے ئے خوړلے وی تعبیر

ئے کمترہ او لږه فائده به وی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، او که غوبنه او کلم دواړه ګډکړی ئے خوړلی وی تعبیر ئے لږه فائده به وی۔ او که بے وخته ئے خوړلے وی تعبیر ئے غم او اندیښنه وی او که خواږه وی، نو تعبیر ئے ډیره نفع ده۔

## سپیلنی (اسپندان)

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که په خوب کښے سپیلنی او ګوری تعبیر ئے غم او فکر دے۔ او که او ګوری چه سپیلنی ئے خوړلی دی تعبیر ئے، د هغے په اندازه به ورته غم او فکر رسیږی۔ او که او ګوری چه چا ورته سپیلنی ورکړی دی تعبیر ئے، د هغه سړی نه به د ده ذریعه ته غم رسیږی۔ او که او ګوری چه چا ته ئے سپیلنی ورکړی دی تعبیر ئے هغه سړی ته به د ده نه غم رسیږی۔
حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، که او ګوری چه سپیلنی ورسره دی مګر خوړلی ئے نهٔ دی یائے چا ته ورکړی دی یا ئے د کوره بهر غورزولی دی تعبیر ئے ډیره کم اندازه به ورته غم او فکر وی۔

## سړے غورزول (انداختن مردم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے او وینی چه څوک ئے را غورزولے دے، تعبیر ئے، دښمن به ورته خیرے کوی۔ که او ګوری چه په چائے کانړے غورځولے دے تعبیر ئے چا ته به سخته خبره کوی او ځنے معبرینو وئیلی دی تعبیر ئے، زنا کارے ښځے به د زنا تهمت پرے و لګوی۔ که څوک او ګوری چه تیکری اچولی دی د دے تعبیر هم سخته خبره ده چه چا ته به ئے وائی، معبرینو وئیلی دی چه څوک او ګوری چه خواږهٔ یا بادام یا چینی ئے وربانده اچولی دی که غورځ وکے معلوم وی نو تعبیر ئے ز ده چه د هغے په اندازه به بخشش مومی او که معلوم نهٔ دو نو د هغے په اندازه به د چا نه فائده مومی۔ او که دهٔ د خوراک شیان ځاروو ته اچولی وی تعبیر ئے خپل مال به په ناپوهو خلکو خرچ کوی۔

## سبزی خرڅول (بقالی کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی چه په خوب کښے سبزی خرڅول به کاروبونو کښے کوشش او د ژوند د پاره د شیانو حاصلول وی۔ که او ګوری چه سبزی خرڅوی تعبیر ئے د دنیا په کار او کسب کښے به مشغول وی او چه څومره څهٔ لری د هغے

په اندازه به د دُنیا متاع حاصلوی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه سبزی خرڅونکے سامان په روپو او په پیسو خرڅوی تعبیرئے غم او فکردے ځکه چه د روپو او پیسو تعبیرغم او فکردے
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په خوب کښے سبزی خرڅول په دریو وجو وی (۱) کارکسب کول (۲) نفعه (۳) غم او فکر۔ که اوګوری چه سامان خرڅوی په روپو باندے۔

## سپرلے (بہار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی سپرلے تعبیر په خپل موسم کښے بادشاه دے۔ که څوک په خوب کښے اووینی چه د سپرلی فصل دے او هوا غیرمعتدل له ده لکه څنګه چ په یخنی او ګرمی کښے خلکو ته نقصان پیښیږی تعبیرئے د هغه ملک خلکو ته به د خپل بادشاه نه ضرر رسیږی۔ او که اوګوری چه هوا معتدل له ده داسے چه خلک خوشحاله دی او د ګلونو غوټئ توکیدلی دی تعبیرئے چه د دے ملک خلکو ته به د بادشاه نه نفع او خیر رسیږی۔ او که سپرلے په هغه وخت کښے معتدل اوګوری، تعبیرئے عزت او مرتبه به بیا مومی او عامو خلکو ته به د بادشاه نه من د وی او هم بادشاه به عادل او منصف وی۔ داسپرلے فصل تعبیر دے۔

## سوه (خرگوش)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اووینی چه سوه ئے نیولے ده یا ورته چا ورکړے ده، تعبیر ئے خرابه ښځه به کوی یا به بیکاره وینزه اخلی، که اووینی چه د سوے څرمن ئے اغوستے یائے د هغے غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے د ښځے د طرفه به څه ورته ملاویږی۔ که اووینی چه د سوے بچی ورسره دی تعبیرئے مال به ورته حاصل کړے شی چه په هغے کښے به خبرنه وی او ځنے وائی چه د ځوی د طرفه به ورته غم او فکراو بیماری او تکلیف ورسیږی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښے سوه لیدل پرهیزګاره او قراره ښځه ده۔ که اووینی چه د دهٔ سوه مړه شوے ده او دهٔ خپله مړه کړے ده، تعبیرئے د دهٔ د ښځے هلاکت دے یا به د عیال په وجه ورته تکلیف ورسیږی۔ او که اووینی چه د سوے څټ ئے شا طرف ته تاؤ کړو، تعبیرئے خپله ښځے سره د شا طرفه کوروالے کوی

## سرائے (سرا)

حضرت دانیال[4] فرمائی، که څوک په خوب کښے اووینی چه پردئ سرائے کښے دے او هیڅوک نه پیژنی او هلته

ئې مړې ولیدل، تعبیرئې هغه سرائې آخرت دے او دَ خوب لیدونکی مرګ نزدے دے۔ که اووینی چه په سرائې کښې دے او بهر راوتلے دے تعبیرئې بیماری دَه مګر صحت به ئې بیا شي۔ که اووینی چه معلوم سرائې ته تللے دے او دَ هغې بنیاد دَ خښتو دے تعبیرئې حلال روزي به بیا مومي۔

که اووینی چه بنیاد ئې دَ چونے او دَ ګچو جوړ شوے دے تعبیرئې حرام مال به بیا مومي. که اووینی چه هغه سرائې لویه او فراخه وي تعبیرئې روزي به وربانده فراخه شي او که سرائې ورکوټے وه تعبیرئې دَدے خلاف دے۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی. که اووینی چه خپله سرائې کښې تعبیرئې سمه لاره به په ځان بنده کړي او عبادت به نه کوي که اووینی چه زړه سرائې کښې تعبیرئې دَ خیرات دروازے به وربانده پرانستلے شي۔ که اووینی چه سرائې نوے او صفا دَه ۔ تعبیرئې دَ دَه تن رستی او دَ موړاو پلار عمرډیر والی تعبیر لري۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه په نوی او صفا سرائې کښې دے او پوهیږی چه دَ دَهٔ ملکیت دے تعبیرئې روزي به وربانده فراخه شي عزت او مرتبه به بیامومي

حضرت جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښې سرائې لیدل په اُوو وجووی (۱) ښځے ته خاوند او دَ سړی دَپاره ښځه (۲) مالداری (۳) امن (۴) عیش (۵) ولایت (۶) امانت او عزت (۷) ولایت

## سیپۍ (صدف)

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښې سیپۍ لیدل ښځه دَه، که په خوب کښې اووینی چه سیپۍ ورسره دَه تعبیرئې ښځه به کوي یا به وینزه اخلی که اووینی چه سیپۍ ئې ضائع شوے دَه تعبیرئې خدمتګاربه ئې تښتی۔

## دَساز یو قِسم (عنقا)

یو قِسم ساز دے لکه دَ چنګ یا سرنډه وغیره۔ حضرت ابن سیرینؒ فرمائی۔ که اووینی چه دَ عنقا ساز غګوی تعبیرئې په دروغو او بے فائدے خبرو به خوشحالیږی که بیمار اووینی چه عنقا ماته شوه او یائې غوږنه ولے دَه تعبیرئې دَ دروغونه به توبه اوباسی. او که بیمار سړے اووینی چه عنقا غګوی. تعبیرئې دَغه بیمار به زر مړ شي۔

## سُنبه، برمه (مثه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اووینی چه په سنبه باندے په لرګی یا په ونه

کښې سورے کوی تعبیر ئے خۀ شے به په چل او دهوکه سره حاصلوی او ټګئ
معبرینو وئیلی دی چه مقصد او مطلب به ئے حاصل شی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه په سنبله ډچا عضو سورے کوی تعبیر
ئے په چل او دهوکه به څوک په بلا کښې گرفتار ږی۔

## سلاجیت (مومیائی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې اووینی چه دۀ سلاجیت خوړلی دی
تعبیر ئے غم او فکر دے۔ که اووینی چه سلاجیت ئے چاته ورکړی دی او یا ئے
ډکوره بهر غورزولی دی تعبیر ئے دَ غم او فکر نه به خلاصے بیا مومی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه دۀ سلاجیت دَ بدن دَ شکایت دَ وجے
نه خوړلی دی او دے وربانڊے جوړ شو تعبیر ئے دَ اول خلاف دے۔

## سبزی (نبات)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی چه هره سبزی په
خپل موسم کښې اووینی چه دَ هغے تنه نڑوی تعبیر
ئے خیر او نفع ده او دَ کومے تنه او تندے بغیر دَ بناخونو وی تعبیر ئے مال
نعمت، مرتبے زیاتوالی په اندازه دَ تهیتوالی او اوچتوالی او دَ بنلخونو دَ بریکوالی دے
که اووینی چه دَ دۀ په بدن شینکے یا وابنه یا ونه بوټکیں لے ده تعبیر ئے دے به خیر
او نفع مومی او هر څومره چه بوټی ډیر اووینی نو خیر او نفع به ئے زیاته وی
که اووینی چه دَ دۀ پر غوږ یا په خُله باندے بوټے راتوکیدلے دے تعبیر ئے
دَ ده مرتبه به زیاته وی۔
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی په خوب کښې دَ زمکے سبزی دَ هر عام او خاص دَ
پاره نعمت او زرۀ غوښتونکے مال دے که اووینی چه دَ دۀ په زمکه کښې ډیر زیات
بوټی شنۀ شوی دی تعبیر ئے خوب لیدونکے به دیندار مسلمان وی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ بوټو لیدل په څلورو وجودی
(۱) مال (۲) نفع او سرداری (۳) ښۀ ژوند (۴) دَ دولت زیاتوالے۔

## دَ سبزلو لرګی (هیزم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې
ویچ او لامده لرګی جنګ، جګړه او دښمنی
ده۔ که اووینی چه دَ سوزلو لرګی ئے راوړل تعبیر ئے دَ دے لرګو په اندازه به
ورته په دے ښار او په دے کور کښې جنګ او جګړه پیښیږی۔ که اووینی چه دۀ
ته بیګانه سړی لرګی بخښلی دی تعبیر ئے دَ هغے لرګو په اندازه به دَ بیګانه سړی

سره په جنګ او جګړه کښې واقع شي۔
حضرت کرمانیؒ فرمائي، که او وېني چه دَ ځنګل نه ئې هر قسم لرګي دَ سوزېدلو دَ پاره راجمع کړي دي، تعبیر ئې دا سړے به بد کردار، فاسق، چغلخور وي او ډېر زر به ګرفتار شي۔ دَ الله تعالیٰ قول دے (حَمَّالَةَ الْحَطَبِ ۝ فِي جِيدِهَا حَبْلٌ مِّن مَّسَدٍ) لهب۔ ترجمه: په سر اخستي لرګي ګرځيدونکې دَ دے په غاړه کښې رسئ وه له پټ دخرما وُنه۔
که او وېني چه اونو نه لرګي راجمع کوي تعبیر ئې دَ دې بې دَ خلکو او دَ سردارانو ترمنځ به امتحان کوي او بې اصله خبرے به کوي که او وېني چه دَ هغه او نو نه ئې لرګي راجمع کړي چه هغه ونو میوه لرله، تعبیر ئې خوب لیدونکے ډېر همتناک او مشرانو خلکو کښې مے او دَ ډیلا بے مالک دے۔ خلاصه دا ده چه دَ وچوا ولمدو لرګو لیدل ښه نه دي۔

## "ښ"۔ ښار نه ګیر چاپېر دیوال

حضرت ابن سیرین فرمائي دَ ښار، قلعه، دَ کلي دَ دیوال کنګر بادشاه یا والي بانډے تعبیر لري او معبرین فرمائي چه دَ ښار ګیر چاپېره دیوال په بادشاه تعبیر لري او دَ کلي دیوال په خوب لیدونکي تعبیر لري که او کوري چه دَ ښار دیوال اوچت او قوي دے تعبیر ئې دَ بادشاه قوت او نیکي بانډے تعبیر لري که او کوري چه دَ ښار دیوال پرېوتے او خراب شوے دے تعبیر ئې که ټول پرېوتي وي نو دَ بادشاه په هلاکت تعبیر لري۔ او که څه حصه ئې پرېوتے وي نو دَ والي په هلاکت تعبیر لري او که او کوري چه دَ ښار دیوال ئې نوے کړے تعبیر ئې دا دے چه په دے ښار به بل بادشاه راځي او وربانډے به مقیم شي او که او کوري چه دَ ښار دَ دیوال څه حصه ئې نوے کړے تعبیر ئې په دے ښار به بل والي راځي
حضرت کرمانیؒ فرمائي، هغه دیوال چه دروازے سره نزدے وي، دَ هغې لیدل په عیش او امن تعبیر لري او کوم چه دَ ښار شاته دے هغه چه څنګه او وېني دَ هغې نیک او بد اثر به په لیدونکي وي۔

## ښاپیرئ (پرۍ)

دَ معبرینو په دے موضوع کښې اختلاف دے، څنې وائي چه دښمن دي او بعضے وائي چه بخت دے او دَ کار پوره کیدل دي کوم کښې چه دے۔
دَ حضرت ابو هریرهؓ نه روایت شوے دے چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم

وفرمائیل چه په خوب کښې ښاپیرئ لیدل دولت او بزرګی ده او دا دے په
لس کښې لاس ورکول او دے سره خبرے کول دَ خوشحالئ تعبیر لری.
حضرت ابن سیرینؒ فرمائی چه ښاپیرئ خوب کښې لیدل چه ښائسته او خوشحال
وی تعبیرئے زادے چه عزت او دولت به بیا مومی او که ښاپیرئ بد شکله او خفه
وی تعبیرئے غم او فکردے او که ښائسته ښاپیرئ مړه اوګوری نو تعبیرئے
دَ ده کار به بد مزے وی او که اوګوری چه دَ ښاپیرئ سره ئے جنګ کړی تعبیرئے
دَ ده کار به دَ پریشانی وی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی چه څُنګے ښاپیرئ مسلمانے دی په خوب کښے دَ دوی لیدل
تعبیر دَ بخت او دولت ذیداردے او کوم چه کافرانے دی په خوب کښے دَ دوی
لیدل تعبیرئے دَ غم او دَ بدبختی دیداردے.
حضرت دانیالؑ فرمائی، که څوک اوګوری په خوب کښے چه دَ ښاپیرو په منځ کښے
دے تعبیرئے په سفربه او دا سفربه ئې ورته برکتناک وی.
او که اوګوری چه ښاپیرئ دے دَ ځان نه نیولے دے او یوتلے ئے دے، تعبیرئے
عزت، بزرګی، مرتبے دے. او که اوګوری چه ښاپیرئ په څټ راغورزولے
دے. تعبیرئے دَ عزت او بزرګی نه په پریوځی، او که اوګوری چه ښاپیرئ
په مهربانی او نرمی سره خبرے کوی تعبیرئے دَ ده کار به نیک وی. او که
ښاپیرئ په ښائسته جامو کښے اوګوری تعبیرئے، حال به ئے ښه شی. او که
ښاپیرئ په خرابو او بدو جامو کښے اوګوری تعبیرئے حال به ئے بد شی او
که اوګوری چه ښاپیرئ ورته سره، سپین یا دوی پشان نور څه شے ورکړیدے
تعبیرئے، دولت او بخت به ئے زیات وی.
حضرت مغربیؒ فرمائی، که ښاپیرئ بیمار یا مړه اوګوری تعبیرئے دَ ده حال به بد
وی. او که اوګوری چه دَ ښاپیرو بادشاه ورسره ښه کړیدی تعبیرئے دولت
به بیامومی او دَ بادشاه مقرّب به شی. او که اوګوری چه ښاپیرو ورته خیل
ځانئے اوښودو، که ښکاره شی او که پټه شی تعبیرئے ښځه به ورسره خیانت
او مکر کوی. او که اوګوری چه دَ ښاپیرو کره تللے دے او هغوی اوپیژندلو، تعبیر
ئے په سفربه ځی او خوښادونه به او وینی. او که اوګوری چه ښاپیرو دَ ځان سره
وړیدے تعبیرئے چه حاجت به ئے دَ هغه ځایه پوره شی کوم چه دَ ده ګمان
پرے نه وو. حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ ښاپیرو لیدل په خوب

کښې په پنځو وجو وی۔ (۱) ګران دوست (۲) بخت او دولت (۳) کوم کارچه لری په هغ کښې کامیابی موندل (۴) عزت او دبدبه (۵) دروغژنې خبرې او بې هوده کار.

## بښکر غږول (بوق زدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که څوک په خوب کښې اوګوری چه بښکر غږوی او بښکر غږول نۀ ورځی تعبیرئې خلکو ته به خپل را نه بښکاره کوی۔ او که اوګوری چه بښکر غږوی تعبیرئې په سردارانو کښې به دروغ وائی او دهغې رښتنوالی به په قسم سره کوی او آخر کښې به هغه دروغ ثابت شی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، دبښکر غږول دَ سرود پاره تعبیرئې مصیبت او دَ بنځود پاره شرمندګی ده او دَدوی رازونه به ښکاره کیږی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې بښکر غږول په شلورو وجووی (۱) دروغ خبر (۲) بده خبره (۳) دَ راز ښکاره کیدل (۴) ګناه۔

## بوښکاری څناور (چرغ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، چرغ په خوب کښې لیدل بادشاه دے.

او حبشی چرغ تعبیرئې څوی دے چه دَبلوغ او ځوانی حد ته به رسیږی که اوګوری چه چرغ ئې نیولے دے او ښکار ئې ورباندې کړے دے، تعبیرئې بادشاه به ورباندې ظلم او زیاتے کوی۔ او که اوګوری چه چرغ ښکار کوی او دے ئې نیولے دے تعبیرئې نافرمانه څوی به ئې پیدا کیږی۔ او که اوګوری چه دَدۀ دَغوښے چرغ څۀ اوخوړله تعبیرئې دَ څوی نه به غم او تکلیف بیا مومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَچرغ لیدل په خوب کښې تعبیرئې هیبتناک او توی سړے دے۔ که اوګوری چه چرغ دَدۀ په کور کښې یو ځل یا دوه ځل آواز کړے دے تعبیرئې دۀ ته به نقصان رسیږی۔ او که آواز ئې درے ځل کړے نو هیڅ نقصان به ورته ونۀ رسیږی او ځنې معبران وائی چه چرغ په خوب کښې لیدل یو غل سړے دے چه دَ شپې هر قسم کار دوته کوی۔

## بښکر لږول (حجامت کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښې څوک اوګوری چه دۀ نه بښکر چا په ځایه ځائې باندې لګولے دے تعبیرئې امانت به په خپله ذمه واری کښې اخلی۔ که اوګوری چه بښکر لږوونکے دَدۀ دوست وو تعبیرئې امانت به دۀ ته وسپاری او دَ دښمن دَ شرارت نه به په امن کښې وی او دَغم نه به

خلاصے بیا موھی۔ اوکه ځوان سړے داخوب اوګوری همدغه تعبیر لری.
اوکه بوډا داخوب اوګوری نو عزت به بیا مومی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه چا بوډا ته ئے بښکر لګولے دے تعبیر ئے داد ے چه کار به ئے بنهٔ شی. اوکه اوګوری چه بادشاه ته ئے بښکر لګولے دے تعبیر ئے دَ بادشاه مقرّب به جوړ شی. که اوګوری چه ښکر ئے لګولے دے مګر ویته ورنه نۀ ده راوتلے، تعبیر ئے داد ے چه ښځه به ورنه جدا شی یا به طلاق ورکوی یا به ئے ښځه مری۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، چه بوډا ښکرلړ وونکے خپل نصیب لیدونکے وی او ځوان ښکر لړوونکے دَده دښمن وی. که خوب لیدونکے دَدے عالم وی نو تعبیر ئے داد ے چه مستوفی به شی (دَ قضاء په شعبه کښے منصب دَے) یا به دَ بادشاه منتظم جوړ شی او که دَخوب لیدونکے جاهل وی نو په قرض کښے به ډوب شی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښے دَ ښکر لګول په اوۀ وجو وی۔
(۱) امانت اداکول (۲) شرطونه لګول (۳) ولایت موندل (۴) عزت او بزرګی (۵) مرتبه (۶) سُنّت دَ رسول اللهؐ صلی الله علیه وسلم (۷) که کوم عامل وی نو دَ خپل عمل نه به لرے شی۔ او ځنے معبرین وائی، که ښکر لګوونکے ځوان وی، تعبیر ئے دَ خرچے حساب لګوونکے به وی یا به دَ شیا نو اندازه کوونکے او دَ خلکو کارونه به دَده په لاس کښے خلاصیږی۔

## دَ ښځو بیماری (حیض)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، حیض په خوب کښے دَ سړو دَ پاره بقا او پائینت دے په زندګی کښے او دَ ښځو دَ پاره زیاتوالے دے په مال کښے۔
که اوګوری چه حیض ئے راغلے دے تعبیر ئے فساد او حرام دے او معبرینو فرمائیلی دی که په خوب کښے اوګوری چه حیض ئے راغلے دے تعبیر ئے دَحیض دَ ویلو په اندازه حرام به حاصل کړی. که سړے اوګوری چه دَده ښځه حائضه شوے ده تعبیر ئے دَ دُنیا کار به ورباندے بند شی. که اوګوری چه خوب لیدونکے پټ دے تعبیر ئے خوب لیدونکے به په دین کښے حیران وی. که اوګوری چه ښځه ئے دَحیض نه صفا شوه او غسل ئے کړے تعبیر ئے دَ دُنیا کارونه به ورباندے پرانستلے شی، نور الله تعالیٰ ښهٔ پوهیږی۔

## ښځے (زنان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے ځوانه ښځه لیدل خوشحالی ده او بوډۍ ښځه لیدل دُنیا ده او دَدے دُنیا

شغل دے او په خوب کښے ښځے لیدل دَ دوی دَ خوی او ښائست په قدَر دَ غټوالی او کمزوروالی دے. او تیره ښځه په خوب کښے لیدل دا ښے ښځه ده چه نامورہ او مشهورہ وی. او معلومه ښځه دَ روزی فراخی ده او بد شکله ښځه قحط او تنګی ده او بے ښائسته ښځے دَ دے دُنیا مراد دی او بوډۍ ښځه خیر نه ښځه په نامرادی او بدحالی تعبیرلری.

حضرت کرمانیؒ فرمائی که ښځه اوګوری چه دَ دے دَ سر وېښتان عضو تناسل دے دَ تعبیر ئے دَ دے به ځوی پیدا کیږی او هغه ځوی به په قوم او خاندان مشر او سردار وی. او که ځوانه ښځه اوګوری چه بوډۍ شوے تعبیر ئے نو دَ خیر او دَ دین او دُنیا دَ نیکی تعبیر لری. که ښځه اوګوری چه دَ دے عضو تناسل دے او جماع کوی تعبیر ئے دَ دے ښځے به عزت او بزرګی کمه وی. که ښځه اوګوری چه دِ دے دَ سر وجلے اغوستے دی که دا ښځه پرهیزګاره وی نو تعبیر ئے دَ خیر او دَ نیکی دے او که ښځه فسادی وی نو تعبیر ئے دَ شر او دَ فساد دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښے دَ ښځو دوستی دَ اهل او عیال والو دَ پاره دَ مال زیاتولے دے او دَ نیکو ونکو دَ پاره علم دے او دَ غریبے ښځے تعبیر دَ اشنا ښځے نه ښه دے. که ځوک اوګوری چه دَ ده په ښځه ځوک ظلم کوی تعبیر ئے دَ دے ښځے اهل به مالداره شی. او که اوګوری چه دَ ده ښځه دَ فساد دَ پاره پردی سړی ته تللے ده تعبیر ئے زوی به ئے پیدا کیږی خیر او فائده به مومی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښے دَ ښځو لیدل په شپږو وجوو (۱) خوشحالی (۲) دُنیا (۳) دَ دُنیا شغل (۴) دَ نعمت فراخی (۵) قحط (۶) مالداری.

## ښکار کول (شکار کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښے اوګوری چه دَ غرهٔ چیلے یا غوایه ځنګلی خر وغیره ئے ښکار کړے دے او غوښه ئے خوری دا اتول دَ نیکئ تعبیر لری. او که اوګوری چه ښکار ئے غورزولے دے، تعبیر ئے دَ غنیمت مال به بیا مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کوم ښکار چه په جال یا په لومه سره اونیسی تعبیر ئے دَ ده نقصان به وی او ځنے دَ معبرانو فرمائی په خوب کښے ښکاری دَ خپل ژوند او دَ روزی تلاش کوونکے دے.

## ښار (شهر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښے اوګوری چه کوم ښار ته تللے دے، تعبیر ئے دَ ده دین به قوی وی او چه کوم کار په دا زکښے لری پوره به شی. که اوګوری چه دَ ښار نه بهر راوتلے یا چا راویستلے دے تعبیر ئے دا ول خلاف دے او که خپل ځان دَ ښار په مناره دیوال

یا دَ ښار مخې ته اوګوري تعبیر ئې دَ دهٔ دَ هلاکت دَ. که اوګوري چه دَے دَ یو ښار نه بل ښار ته تښتیدلے دے تعبیر ئې دا دے به خپله ښځه طلاقه کوي او هغه به بل خاوند کوي اوکه اوګوري چه په یو ښار کښې استوګنه اختیار کړي تعبیر ئې دَ دهٔ ښځه به دَ دهٔ نه جدا کیږي. که اوګوري چه دَ مسلمانانو دَ ښار نه دَ کافرانو ښار ته منتقل شوے دے تعبیر ئې دَ رښتیني دین نه به دروغژن دین ته مائل شي دا هم کیدے شي چه دَ کافرے ښځے سره به واده کوي اوکه دَ ګرم ملک ښار کښې وي اوره اوېخ اوګوري تعبیر ئې دَ قحط او تنګسیا دے اوکه دَ یخ ملک په ښار کښې دا اوګوري، تعبیر ئې فراخي اودَ نعمت ارزاني دے. اوکه اوګوري چه کوم ښار ته لاړ دے او هغه ښار دَ دهٔ خوښ شوے دے تعبیر ئې عزت اومرتبه به بیا مومي. اوکه اوګوري چه دَ کلي نه ښار ته تللے دے تعبیر ئې خیر اونفع به ورته رسیږي اوکه اوګوري چه دَ ښار نه کلي ته تللے دے، تعبیر ئې دَ دهٔ مراد به نه پوره کیږي. دَ الله تعالیٰ کلام دے (رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا) (النساء: اے الله ځمونږ دَے کلي نه اوباسي چه دَ دے اوسیدونکي ظالمان دي.

اوکه په ښار کښے ورک شوے وي تعبیر ئې دے که اوګوري چه ښځے کوم ښار ته تللے دے. تعبیر ئې په هغه ښار کښے به بلا او فتنه پریوځي. که اوګوري چه ښار ته دَ ولي ښځے راغلي دي تعبیر ئې په هغه ملک کښے به نعمت او فراخي وي. اوکه اوګوري چه ښځے ښار ته نوتے دي تعبیر ئې دَ بادشاه غلامان به هلته ځي اوهغه ځائے په اوسیدونکي به ظلم کوي. اوکه اوګوري چه پټ مخ ښار ته نوتے دے تعبیر ئې په دے ښار کښے به ناخوښه خبرے کیږي اوکه خوب کښے دَ کوم ښار نمرخاته طرف اوګوري دا دَ نمر پریواته طرف نه غوره دے. حضرت مغربي رح فرمائي، که په خوب کښے دَ هندوستان ښار اوګوري تعبیر ئې خراب دے. اوکه خپل ځان دَ ترکستان په ښار کښے اوګوري تعبیر ئې په دیشمن به کامیابي حاصلوي اوکه خپل ځان دَ یلغار او سقلان په ښارونو کښے اوګوري تعبیر ئې دَ دهٔ سره به خیانت اوشي او دَ دهٔ کار به پټ وي اوکه خپل ځان دَ ماوراءالنهر په ښارونو کښے اوګوري تعبیر ئې عزت، مرتبه او امن به بیا مومي. اوکه خپل ځان په خوارزم کښے اوګوري تعبیر ئې دَ دهٔ کار به بندیږي. اوکه خپل ځان دَ عراق په ښارونو کښے اوګوري تعبیر ئې دولت او سرفرازي به بیا مومي. اوکه خپل ځان دَ خراسان په ښارونو کښے اوګوري تعبیر ئې دَ دهٔ کار به په اسانه سره پوره شي. اوکه خپل ځان دَ فارس په ښار کښے اوګوري تعبیر ئې دَ دهٔ ناسته به دَ پرهیزګارانو خلکو سره وي. اوکه ځان دَ کرمان په ښار کښے اوګوري دَ دهٔ اهل اوعیال به ډیروي. اوکه خپل ځان دَ جاربه

ښاریه کښے اوګوری تعبیر ئې حج به کوی. اوکه ځان د یمن په ښار کښے اوګوری تعبیر ئې سلامتیا اوامن کښے به وی. اوکه خپل ځان د مصر په ښارونو کښے اوګوری تعبیر ئې خوشحاله به وی اوکه خپل ځان د آزربائیجان په ښارونو کښے اوګوری تعبیر ئې په کارونو کښے به غم او تکلیف اوچتوی. اوکه خپل ځان د ارمینا په ښارونو کښے اوګوری تعبیر ئې د دهٔ مراد به پوره شی. اوکه ځان د مغرب په ښارونو کښے اوګوری تعبیر ئې په کارونو کښے به ئې نقصان پریوځی. اوکه خپل ځان د فرنګیانو په ښار کښے اوګوری تعبیر ئې د دُنیا کار به ئې نیک شی خو په دین کښے به کمزورے وی اوکه خپل ځان د شیروان په ښارونو کښے اوګوری تعبیر ئې د دهٔ کار به ښهٔ وی.

**ښوروا (شوربا)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښے ښوروا که د غوښے سره وی او خوندئې ښهٔ وی او بوی هم ښهٔ وی تعبیر ئې دا دهٔ چه نه به نفع حاصلیږی او که د دے خلاف اوګوری تعبیر ئې د غم او د فکر دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی، که ښوروا د غوښے سره وی او ښهٔ پخه وی تعبیر ئې ښهٔ دے اوکه د خرابے غوښے سره وی نو د غم او د فکر تعبیر لری.

**ښوروا (قلیه)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کومه ښوروا چه په اُوبو سره پخه کړی وی هغه بغیر د اوبو والا ښوروا نه ښهٔ ده او هر خومره چه ښوروا خوش ذائقه وی د هغې په اندازه به ئې نفع ښهٔ وی. که ښوروائې د غوایهٔ د غوښے نه پخه کړی وی او هغه ئې خوړلی وی تعبیر ئې په دے کال کښے به د خوف او ویرے نه په امن کښے وی. اوکه اوګوری چه د ګډے یا د چیلئے د چې ښوروائې خوړلے ده تعبیر ئې لږ مال به بیا مومی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه ښوروا د اس د غوښے ده او دهٔ خوړلے نه. تعبیر ئې د بادشاه نه به مال په سختئ او تکلیف سره لاس ته راوړی. اوکه د اوښ د غوښے وه تعبیر ئې د یو مشر او بزرګ نه به مال لاس ته راوړی. اوکه د ماهی د غوښے ښوروائې خوړلے وی تعبیر ئې د ښځو نه به چل مال لاس ته راوړی اوکه خوب لیدُنکے فاسد وی تعبیر ئې د غم او فکر دے اوکه اوګوری چه د هغهٔ د ښاروی د غوښے ښوروائې خوړلے ده د کومو چه غوښه حرامه ده تعبیر ئې حرام مال به خوری.

**ښاخ (قضیب)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، قضیب د ونے ښاخ دے چه په خوب کښے لیدلے شی. که څوک په خوب کښے اوګوری چه د ونے تازه او باریک ښاخ د دهٔ لاس کښے دے یا ورکوونکے معلوم وو تعبیر ئې دا دهٔ چه نه به د هغه کس نه د هغې په اندازه خیر او نفع رسیږی.

اوکه اوګوري چه هغه ښاخ وچ او نړے وو۔ تعبیر ئے دا ده چه هیڅ نه رسیږي۔
حضرت مغربیؒ فرمائي، که اوګوري چه د تروش میوے وني نه چا ښاخ ده ته ورکړے دے، تعبیر ئے د دے سړي نه به ورته غم او فکر رسیږي۔ او که د خوږے میوے وني نه ئے ښاخ ورکړے وو، تعبیر ئے خیر او نفع به بیا مومي۔

## ښاریه (شهرستان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که اوګوري چه ښاریے ته دننه تللے دے، تعبیر ئے په دین کښے به برابر مضبوط وي او آخرانجام به ئے ښه وي۔ او که اوګوري چه په ښاریه کښے مقیم (استوګن) شوے دے، تعبیر ئے د بادشاه په خدمت کښے به وي، خیر او نفع به مومي۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښے ښاریه لیدل په اوو وجو وي (۱) بادشاه (۲) رئیس (۳) عام خلق (۴) د دین مضبوطي (۵) امن (۶) کامیابي موندل (۷) د کارونو مضبوطوالے۔

## د ښځے لوپټه

که د ښځے لوپټه اوګوري، تعبیر ئے خوک به په دروغو دعوے ورسره کوي۔ او که د بادشاه چیلیان ئے اوویني تعبیر ئے غم او ظلم به پرے کیږي او که د بادشاه جلاد ئے اوویني تعبیر ئے د ده مراد به ډیر زر حاصل کړے شي، او که د بادشاه منشي ئے اوویني تعبیر ئے هغه څه چه لټوي بیا مومي به ئے۔ او که د بادشاه مشاور ئے اوویني، تعبیر ئے د ښځے نه به نفع مومي او د بادشاه رکاب دار اوویني، تعبیر ئے د روغتیا او بے ځایه خبره به واوري۔ او که د بادشاه د ډوډۍ منتظم ئے اوګوري تعبیر ئے غم او فکر به ورته رسیږي او که وړوکے منتظم ئے اوویني تعبیر ئے کار به ئے نیک شي او که د بادشاه د دوات والا اوویني تعبیر ئے د ښځو نه به څه دولت حاصل کړے شي۔ او که د بادشاه منشي ئے اوویني تعبیر ئے خوشحاله به شي او مال به حاصل کړي۔
حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائي، که اوګوري چه بادشاه ښار ته راغلے دے او هغه ښاریان په ده غلبه شوي دي تعبیر ئے د هغه ښار کار ته به نقصان او آفت رسیږي۔ که اوګوري چه بادشاه په هغه ښار یا د ده کور سره اوده شوے دے تعبیر ئے بادشاه ته به ئے څه حاجت پیدا کیږي او د ده کار به کوي۔

## ښاخ (شلخ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي چه په خوب کښے د ښاخونو لیدل د خوب لیدونکي د ورونړو، خامنو

اودَ خپلوانو تعبیر لري. که اوویني چه دَ ونو ښاخونه ډیر کسنړ دي تعبیر ئې دَ دهٔ خپلوان او اهل بیت به ډیروي اوکه د دے خلاف اوویني تعبیر ئې هم دَ دے خلاف دے که اوویني چه دَ خپلے ونے ښاخ ئې پریکړے دے تعبیر ئې دَ خپلو اهل بیتو نه به څوک جدا کوي که اوویني چه دَ ونے ښاخ ئې وچ شوے دے تعبیر ئې دَ دهٔ دَ خپلوانو نه به څوک هلاک کیږي اوکه اوویني چه ونه دَ بیل چا ملکیت ده، تعبیر ئې هغهٔ ته به رجوع کوي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائي، که اوویني چه دَ خرما دَ ونے ښاخ ئې موندلے دے او یا ورته چا ورکړے دے تعبیر ئې دَ دهٔ به څوي پیدا اشي اوکه اوویني چه دَ ښاخ نه ئې څه خوړلي دي تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به دَ څوي مال خوري۔

## بیُو ښار کتل

حضرت کرمانیؒ فرمائي که خپل ځان په مکة المکرمه ښار کښې اوویني تعبیر ئې عزت، مرتبه او نصرت به بیا مومي اوکه په مدینة المنوره کښې اوویني تعبیر ئې دَ دهٔ به دَ سوداګرو سره صحبت وي او دَ دے نه به نفع مومي اوکه په یمن ښار کښې اوویني تعبیر ئې دَ ډیرے اوخطرے نه به امن کښې وي اوکه طائف کښې اوویني تعبیر ئې لرے سفر به کوي او نیک به وي۔ اوکه ځان بصره کښې اوویني تعبیر ئې دَ عالمانو سره به ناسته کوي۔ اوکه خپل ځان په واسط ښار کښې اوویني تعبیر ئې دیندار او پرهیزګار به شي اوکه په کوفه ښار کښې ځان اوویني تعبیر ئې دَ عامو خلکو نه به نیکي او مومي اوکه ځان په بغداد کښې اوویني تعبیر ئې مال اربه شي او سوداګر به ورته خیر و رسوي، اوکه ځان دَ حلوان په ښار کښې اوویني تعبیر ئې خپل ژوند به بښهٔ تیروي اوکه په اصفهان ښار کښې ځان اوویني تعبیر ئې، دَ کوم بزرګ سره به صحبت کښې پریوځي۔ اوکه ځان په موصل ښار کښې اوویني تعبیر ئې په مراد به ورسیږي اوکه ځان دَ دمشق په ښار کښې اوویني تعبیر ئې روزي به وریانے فراخه شي اوکه ځان په حلب ښار کښې اوویني تعبیر ئې دَ کوم بزرګ نه به نفع مومي۔ اوکه ځان په انطاکیه ښار کښې اوویني تعبیر ئې دَ بادشاه نه به نفع مومي۔ اوکه ځان په بیت المقدس ښار کښې اوویني تعبیر ئې عزت او کامیابي به بیا مومي اوکه ځان په خلاط کښې اوویني تعبیر ئې کار به ګډ وډ اووینی۔ اوکه ځان په قیصر کښې اوویني تعبیر ئې نفع به بیا مومي۔ اوکه ځان په قلعه کښې قید اوویني تعبیر ئې دَ دهٔ کار به بندیږي۔ اوکه ځان په تفلیس کښې اوویني تعبیر ئې دَ کار نقصان به بیا مومي

او که په کنجه کښې ځان اووینی تعبیرئې نعمت به ئې زیات شی او که ځان په خوی اووینی تعبیر ئې د ده مال به کم شی او د مراعه لیدل تعبیرئې امن اوراحت به بیا مومی او که ځان په تبریزښار کښې اووینی تعبیرئې د تکلیف او د غم نه به خلاصے بیا مومی او که ځان په رنګان کښې اووینی تعبیرئې غمژن به شی او که ځان په همدان ښار کښې اووینی تعبیرئې مرتبه او نفع به بیا مومی. او که ځان په قزوین ښار کښې اووینی تعبیرئې د بادشاه سره به ئې صحبت وشی او که ځان په کشی کښې اووینی تعبیرئې په قسم خوړلو کښې به واقع شی. او که په ګرګان کښې ځان اووینی تعبیرئې په جنګ کښې به پریوځی او که په دهستان کښې ځان اووینی تعبیرئې فکرمند به شی او که ځان په بسطام کښې اووینی تعبیرئې خوشحالی به بیا مومی. او که ځان په بساوه ښار کښې اووینی تعبیرئې مال به ئې نقصانی شی او که ځان په مرو کښې اووینی تعبیرئې کوم کارچه دهٔ جوړ کړے هغه به پریږدی. او که ځان په نیشاپور ښار کښې اووینی تعبیرئې د کوم بزرګ سړی سره به ئې صحبت شی. او که ځان په بطوس کښې اووینی تعبیرئې خیراو نفع به بیا مومی او که ځان په بلخ ښار کښې اووینی تعبیرئې په دښمن به کامیابی مومی. او که ځان په سمرقند ښار کښې اووینی تعبیرئې د خلکو په منځ کښې به په ښهٔ سړیتوب مشهور شی او که په غزنی ښار کښې اووینی تعبیرئې د بزرګانو نه به خیراو نفع مومی او که ځان په کاشغر ښار کښې اووینی تعبیرئې غمژن به شی او که ځان په اسکندریه ښار کښې اووینی کوم کارئې چه نیولے ورنه به پښیمانه شی او که ځان په اندلس ښار کښې اووینی تعبیرئې د ده سره به خیانت کیږی.
او که ځان په قلعه کښې اووینی تعبیرئې، د دهٔ کار به بند وی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په خوب کښې د ښارونو لیدل په څلورو وجو وی:
(۱) دین (۲) ظاهریدل (۳) ښهٔ ژوند (۴) ښځه چه نکاح ورسره کوی.

## ش "شیشه (آئینه)"

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، شیشه په خوب کښې لیدل مرتبه او ولایت دے، که اوګوری چه شیشه (آئینه) ورسره ده او یا ورته چا ورکړے ده تعبیرئې د شیشے په اندازه به مرتبه، ولایت او نعمت بیا مومی او که اوګوری چه شیشه ئې چا ته ورکړے ده، تعبیرئې خپل مال اسباب به د چا سره کیږدی او که اوګوری چه د سپینو زرو شیشه کښې ګوری تعبیرئې خپل عزت ته به په بد نظر ګوری ځکه چه معبرین د سپینو زرو شیشه بده ګڼړی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښې د او سپینې شیشه اوګوری تعبیر ئې کهٔ ښځه ئې حامله وی نو زوئ به ئې وشی چه په هر څهٔ کښې به پلار نه وی او کهٔ دا خوب حامله ښځه اووینی تعبیر ئې جینئ به ئې پیدا کیږی او دا به هر څهٔ کښې مور ته تللې وی او کهٔ ښځه حامله نهٔ وی تعبیر ئې خاوند به ورته طلاق ورکوی او خاوند به ئې بله ښځه وکړی او دا ښځه به بل خاوند وکړی او کهٔ دا خوب هلک ماشوم اووینی تعبیر ئې د دهٔ به ورور پیدا کیږی او کهٔ جینئ په خوب کښې په شیشه کښې اوګوری تعبیر ئې د دے به خور پیدا کیږی او کهٔ دا خوب بادشاه یا عالم اووینی تعبیر ئې د خپلے عهدے نه به لرے کړے شی او حکومت به ئې د لاسه لاړ شی او بل څوک به ئې په ځلئے بااندے کیږی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، کهٔ په شیشه کښې ښائسته مخ ورته ښکاره شی نو بادشاه به شی کهٔ پرهیزګاره وی او کهٔ نهٔ وی تعبیر ئې نیک او بد په لیډ لو پورے تعلق لری

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې شیشه لیدل په شپږ وجووی۔

(۱) ښځه (۲) زوئ (۳) رُتبه او فرمان (۴) یار دوست (۵) شریک (۶) ښکاره کار۔

او دائے هم فرمائیلی دی کهٔ چرے یو غریب سړے په خوب کښې آئینه اووینی نو د دے تعبیر دادے چه ښځه او مرتبه به بیا مومی او کهٔ جینئ ئے اووینی نو د دے واده به اوشی او په خاوند به ګرانه وی۔

او کهٔ په خوب کښې اووینی چه دهٔ ته چا نامعلومه کس شیشه (آئینه) ورکړے ده نو د دے تعبیر دادے چه ورک شوے دوست به اووینی او خوشحاله به شی۔

## شیشه (آبګینه)

حضرت دانیال فرمائیلی دی، په خوب کښې شیشه لیدل ښځه ده کهٔ اوګوری چه په شیشه کښې ئې اوبه څښلی دی تعبیر ئې ښځه به کوی او مال به بیا مومی او کهٔ اوګوری چه په شیشه کښې ئې چا شراب ورکړی دی تعبیر ئې د چا نه به ورته ښځه ملاویږی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری څوک چه دهٔ سره سپینه شیشه ده او په هغې د دهٔ نوم لیکلے وو تعبیر ئې د دین او دُنیا دولت به بیا مومی او حاجت به ئې پُوره کیږی او کهٔ اوګوری چه په هغه شیشه د بادشاه نوم لیکلے شوے دے تعبیر ئې مرګ به ئې نژدے شوی وی کهٔ د دے خوب

لیدونکی بادشاه وی اوکهٔ بادشاه نهٔ وی تعبیرئے دَ هغې په اندازه به خیر اوخوشحالی بیامومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه شیشه ورسره ده اوماته شوے په پریوتو تعبیرئے کهٔ ښځه لری نوطلاق به ورته ورکړی اوکهٔ ښځه نهٔ لری نوخپلو انوکښې به دَچا ښځه مړه کیږی اودَ شیشے جوړوونکی په شان دَ مالک اودَ آقا دے اوځنې معبرین وائی چه شیشه جوړوونکے هغه سړے دے چه دَ ښځو (زنانوی) کارکوی اودَ دوئ سره یوځائے اوملګرتیا ورسره کوی۔

## شیطان (ابلیس)

دَ الله تعالیٰ لعنت دِ وربانده دے وی۔

حضرت دانیالؑ فرمائی، په خوب کښې دَ شیطان لیدل، دُښمن، بد دینی، دروغ، فریب، بے شرمی، دَ نیکئ نه نااُمیدی اوخلکو ته بدی رسَول اودَ شر اودَ فساد تعبیرلری کهٔ خوب کښې اووینی چه دَشیطان سره په جنګ کښې دے اودے وربانده غالبه شوے دے تعبیرئے دَدهٔ میلان به دَ خیراواصلاح طرفته وی اوکهٔ اوګوری چه شیطان په دهٔ غالبه شوے دے تعبیرئے دے به دَ شر اودَ فساد لارے طرفته مائیله وی کهٔ اوګوری چه شیطان ورسره خبرے کوی تعبیرئے شیطان به دے دَ لارے نه واړوی اودَ اطاعت نه به ئے منع کړی اوکهٔ اوګوری چه شیطان ورته نصیحت کوی اودَدهٔ خوښ شو تعبیرئے دهٔ ته به دَ مال اودَ وجود نقصان رسیږی اوکهٔ اوګوری چه شیطان دَ لاسه رانیولے دے اوچرته ئے بوځی اودهٔ اووئیل چه لَاحَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ (ترجمه) (نشته دے دَ ګناه نه واپس کیدل اودَ نیکئ طاقت مګرپه الله تعالیٰ دی چه اوچت اوعالی شان دے) تعبیرئے په غټه ګُناه کښې به مُبتلا کیږی اوبیا به دَچا په نصیحت دَ هغه ګُناه نه منع شی، کهٔ اوګوری چه دَ شیطان په غاړه کښې ئے پړے اچولے دے تعبیرئے ښواودیندار اوکهٔ اوګوری چه شیطان کمزورے دے تعبیرئے خلکوته به خوشحالی رسیږی کهٔ اوګوری چه شیطان کمزورے دے تعبیرئے علماء اومصلحو بندګانوته به قوت حاصلیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ خوب کښې څوك اوګوری چه دَ ابلیس تابعدارشوے دے تعبیرئے په نفسی خواهشاتو کښې به مُبتلا کیږی کهٔ څوك اوګوری چه شیطان ورته څهٔ ورکړی دی کهٔ ښهٔ شے ورکړے وی نوحرام مال به بیامومی اوکهٔ بدشے ئے ورکړے وی تعبیرئے دَ دهٔ دَ دین دَ فساد لری کهٔ اوګوری چه شیطان خوشحال

اوراضي دے تعبیرئے دَ خلکو کارونه به په فسا د کښې ښهٔ قوي وي او کهٔ اوګوري
چه شیطان ئے په توره هلاک وُل غواړي خود ے ترے د تښتید و تعبیرئے یو
ملک به په لاس ورځي او عدل او انصاف به کوي کهٔ اوګوري چه شیطان ئے
وژلے دے تعبیرئے په خپل نفس به غالب او نفس به ئے ورته مغلوب وي،
او په نیکه لاره به ځي۔

**شیطان (دېو)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې شیطان لیدل
یو لوئے مکار او دهوکه باز دښمن دے کهٔ اووینې چه
شیطان ورته وسوسه او شک اچولي دي تعبیرئے دے باید دَ نالایقه کارونو نه
توبه او باسي دَ دے دَ پاره چه دُښمن ورباندے کامیاب نشي، دَ الله تعالیٰ قول
دے (اِنَّ الَّذِیْنَ اتَّقَوْا اِذَا مَسَّهُمْ طٰٓئِفٌ مِّنَ الشَّیْطٰنِ تَذَكَّرُوْا فَاِذَا هُمْ مُّبْصِرُوْنَ
ترجمہ (په تحقیق سره هغه کسان چه پرهیزګاره دي کله چه دوئ ته شیطاني تولے
چیرچاپېر کوي نو دوئ نصیحت قبلوي او دوئ هوښیاره وي )۔ کهٔ اوګوري چه
جنګ ئے ورسره کړے دے او مغلوب کړے ئے دے تعبیرئے دَ دهٔ دین به
کمزورے وي۔

حضرت کرمانيؒ فرمائي، کهٔ شیطان په خوب کښې خوشحاله اووینې تعبیرئے
په حرص او په شهوت به خوب لیدونکے مشغول وي او کهٔ شیطان خفه اووینې
تعبیرئے په عبادت او دَ دین په صلاح به مشغول وي کهٔ اووینې چه شیطان
ورنه جامے ایستي دي کهٔ حاکم وي تعبیرئے، دَ حکومت نه به لرے کړے
شي او کهٔ زمیندار وي نو دهٔ ته به ضرره رسیږي۔

حضرت مغربيؒ فرمائي، کهٔ اووینې چه شیطان ورپسے سور دے تعبیرئے
دُښمن به ورباندے کامیابي مومي، کهٔ اوګوري چه دَ شیطان په لاس قیدي
شویدے او دے ئے بوتللے دے تعبیرئے په رسوائي کښې به مشهوره شي۔

کهٔ اوګوري چه دَ شیطان سره ئے ملګرتیا کړے ده تعبیرئے دَ دے چه لویه ګناه به
ورنه صادره شي کهٔ اووینې چه دَ شیطان سره ئے خبرے کړي دي تعبیرئے
دَ دښمن سره به خبرے کوي۔ او الله تعالیٰ به دَ دهٔ مرادونه پوره کړي دَ الله تعالیٰ
قول دے (اِنَّمَا النَّجْوٰى مِنَ الشَّیْطٰنِ لِیَحْزُنَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَلَیْسَ بِضَآرِّهِمْ
شَیْـًٔا اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ) المجادلہ بیشکه پټ مصلحتونه او جرګے دَ شیطان نه دي
دَ دے دَ پاره چه مؤمنان غمژن کړي دَ الله تعالیٰ دَ حکم نه بغیر دوئ ته ضرره

نشی ,, سولے ۔ حضرت اسماعیل اشعثؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ شیطان سره
ئې خوړلی اوخښلی دی تعبیرئې دَ فسق اودَ فساد په لاره به ځی او دَ شیطان
تابعداری به کوی اوکهٔ دَ دے خلاف اووینی تعبیرئې دَ خیرا و صلاح په لاره به
وی او دَ دین په لاره کښ به قانع اوصابره وی کهٔ اووینی چه شیطان ئې نیولے
دے اویا دَ شیطان په ګیډه کښ تلے دے تعبیرئې دَ فساد دَ لارے نه به لرے
وی او توبه به کوی او په عبادت به مشغول وی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ شیطان لیدل په شپږ
وجوه دی (۱) دَ دښمن سره ملاقات (۲) فساد (۳) شهوت او مصیبت او دَ نفس
حرص (۴) اطاعت نه لرے کیدل (۵) دَ خیراوصلاح نه لرے والے لټول (۶)
حرام شیان۔

## شکونړ (خارپشت)

حضرت مغربیؒ فرمائی، شکونړ په خوب کښ دَ بد صورته
دُښمن ملاقات دے کهٔ اووینی چه شکونړئې وژلے
دے تعبیرئې په دُښمن به غصه کوی اوکهٔ اووینی چه دَ شکونړ غوښه ئې خوړلے
ده تعبیرئې دَ هغے په اندازه به دَ دُښمن مال خوری اوکهٔ اووینی چه شکونړ دے
خوړلے دے تعبیرئې دهٔ ته به دَ دُښمن نه نقصان رسیږی خاصکرچه دَ هغهٔ زخم
نه وینه روانه وه۔

## شګه (ریت)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی دَ شګے لیدل په خوب کښ تعبیرئې
صلاح خیراو نفع ده کهٔ اووینی چه په شګه کښ ځی تعبیر
ئې دَ خپل کسب نه به څهٔ کار کښ مشغول شی او دَ شګے دَ کمی اوزیاتی په اندازه
به ئې کوی اوکهٔ اووینی چه شګه ئې خوړلے اویائې جمع کړے تعبیرئې دَ هغے
په اندازه به دَ خلکو نه خیراو نفع بیامومی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، شګه په خوب کښ لیدل په څلورو وجو تعبیر
لری (۱) مشغولیدل (۲) مال (۳) نفع (۴) مرتبه په محنت سره۔

## شینکے (سبزه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، شینکے په خوب کښ لیدل
دین دے خاصکرچه په موسم وی که څوک په خوب
کښ اوګوری چه دهٔ سره زمکه ده او په هغے ډیر شینکے دے یعنې ګیاه ده تعبیر
ئې دَ دهٔ په پاک دین او په نیکئ دے اوکهٔ اوګوری چه په هغے نامعلومه وابښه
(ګیاه) ده او هغه ګیاه ئې ونهٔ پیژندله او دے په حیرانتیا سره ګوری او بوهیږی

چه دا ژمکه دَ دهٔ ملکیت دے تعبیرئے دا هرڅهٔ دَ دهٔ په دین او دیانت باندے دلالت کوی او کهٔ اووینی چه په دے ژمکه کښې یو معلوم وابښهٔ دے تعبیرئے دَ هغهٔ په مال او دَ نعمت په فراخئ دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ شینکے پخپل موسم کښې اوګوری تعبیرئے دَ دهٔ دَ ژهدا او دَ پرهیزګارئ دے۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، شنهٔ ځایونه په خوب کښې نیک دی کهٔ اووینی چه په شین ځائے کښې استوګنه اختیار کړے تعبیرئے دَ دین په لاره کښې برا وسیری او کهٔ اوګوری چه سړی په وانسو کښې استوګنه اختیار کړے تعبیرئے دَ دهٔ په پرهیزګارئ دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ وابښهٔ پاك او ښهٔ اوګورے او پوهیږی چه دَ دهٔ ملکیت دے تعبیرئے دَ دهٔ په پاك دین، پرهیزګارئ او دیانت باندے دے او کهٔ وابښهٔ ژیړا و مړاوے اوګوری تعبیرئے دَ اول خلاف دے او کهٔ اوګوری چه په چمن کښې دے او دا دَ بل چا دے تعبیرئے دَ دهٔ ناسته به دَ پرهیزګارو خلکو او ایمان دارو سره وی او کهٔ دَ دے خلاف اوګوری تعبیرئے دَ دهٔ ناسته به دَ فاسدو او خرابو خلکو سره وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ شینکی لیدل په خوب کښې په څلور وجوو دی (۱) دَ اسلام لاره (۲) دین (۳) پاکه عقیده (۴) پرهیزګاری۔

## شنه سبزی

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری په خوب کښې چه دهٔ سره شنه سبزی ده تعبیرئے نوم به ئے په خیر او نیکئ سره مشهور شی او کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ په ژمکه په خپل وخت شنه سبزی ده تعبیرئے په خیر او په نفع دے او کهٔ دَ دے خلاف اوګوری تعبیرئے په نقصان سره دے۔

## شګلنه ژمکه (سراب)

دَ شګلنے ژمکے لیدل په خوب کښې تعبیرئے بے فائدے علم او دروغژنه خبره ده چه په هغے کښې فائده نشته دے۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری په خوب کښې چه په شګلنه ژمکه کښې مقیم شوے دے تعبیرئے په باطل علم او هغه خبرو کښې چه څهٔ فائده په کښې نهٔ وی مشغول شی او کهٔ اووینی چه دَ شګلنے ژمکے نه خوراك کوی تعبیر

ئے بہ باطل علم سرہ بہ ډوډئ جمع کوی۔

**دَ شکّے کب (سقنقور)** دا هغه کب دے چه دَ شګّے په منځ کښں وی۔ حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ په خوب کښں او وینی چه دَ شګّے کب لری تعبیر ئے نیک کار به ورته حاصل کړے شی او نیک کار به کوی او کار به ئے سرته ورسیږی مګر په دین کښں به کمزورے وی او څنی معبرین وائی چه دَ شګّے کب خوب کښں لیدل ښۀ نۀ دی او بد دی۔

**شپه (شب)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ په خوب کښں اوګوری چه توره او خرابه شپه ده، دَ غم او دَ فکر تعبیر لری او کۀ اوګوری چه شپه روښانه او سپوږمئ لرونکے ده تعبیر ئے زندګی او خوشحاله به وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کۀ اوګوری چه شپه تیارۀ ده او دے په کښں روان دے او لاره نۀ وینی او دَ سمے لارے په نیت روان دے تعبیر ئے دا دے چه دے به دَ دین په لاره کښں استقامت حاصل کړی۔

**شپونکے (شبان)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ په خوب کښں اوګوری چه دَ غوئ یا چیلی یا خر وغیره څرووَنکے اوګوری هر یو شے دَ هغے په اندازه دے دَ اَس څرووُنکی تعبیر ئے ولایت او بزرګی ده او دَ خرڅونکی تعبیر ئے تخت دے او دَ غوایانو څرووُنکی تعبیر ئے سفارت، نعمت او په فراخئ دے۔ او دَ ګډو او دَ چیلی څرووُنکی تعبیر ئے حلال رزق، مال او نعمت دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کۀ په خوب کښں اوګوری چه شپانی کوی او لیوۀ یَو ګډه دَدۀ رمے نہ بوتلے دے تعبیر ئے بادشاہ به دَ هغه ملک خراب او برباد کړی او دَ رعیت حال به تباه شی۔

حضرت دانیالؒ فرمائی، چه دَ ګډو چیلو څرووُل تعبیر لری چه دَ هغے دَ تعداد په اندازه به په یوه ډله سرداروی او کۀ اوګوری چه شپونکی څۀ ورکړی تعبیر ئے دَ کوم سردار نه به څۀ فائده ورته ورسیږی او نفع به بیا مومی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، شپونکے په خوب کښں یو ناصح سړے دے او دَ خلکو دَ مال ساتونکے دی او دَ هر کار ښۀ والے به په خلکو ظاهروی۔

**شربت، شراب** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښں دَ هغه شربتونو چه خوند ئے خوږ وی لکه دَ سیوانو، انارو، سنترے او هم دا رنګه دَ دے په شان دَ نورو شیانو په شپږ وجووی (۱) دین (۲) نفع (۳) فائده مند

علم (۴) ډیر عمر (۵) ښه ژوندګی -(۶) ذ الله تعالیٰ ذکر- او دَ هغه شربتونو چه خوند ئې تروش وی لکه شربتِ اِلباس، لیمبو، نارنج او دَ دے په شان نورشیان دَ دے خوړل په خوب کښې تعبیر ئې غم اوفِکر دے او هغه شربتونه چه ترېخ وی لکه دَ مورو او دَ زروفا شربت دَ دے خوړل په خوب کښې تعبیر ئې دَ دُنیا او دَ دین په فائده دے او هغه شربتونه چه خوند ئې معتدل وی (نه ډیر خوږ نه ډیر ترېخ او نه ډیر تروش وی) او ښه بوی لری لکه دَ عود شربت او دَ بنفشه شربت او دَ ګُل شربت دَ دے تعبیر په خیر او په خوشحالئ لری او صفت به ئې کیږی

حضرت مغربیؒ فرمائی، کوم شربتونه چه په خوب کښې دَ دارو دَ پاره خوړل کیږی تعبیر ئې دَ دین دَ جوړښت دے او هغه شربتونه چه دَ دارو دَ پاره په کار نه راځی دَ دے تعبیر دَ دُنیا په خیر او په صلاح دے۔

## شطرنج

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې دَ شطرنج لوبه کول تهمت او دَروغژنه خبره ده او که اوویني چه دَ شطرنج په لوبو کښې مخالف مغلوب کړے تعبیر ئې چرته په باطلو خبرو به په چا غلبه کوی او په هغهٔ به تهمت لګوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښې شطرنج کول په جنګ او په جګړه تعبیر لری او معبرین فرمائی، دَ شطرنج لوبه کول څهٔ خیرا و نفع نهٔ لری۔

## شطرنج لوبه کول (نردباختن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې دَ شطرنج لوبه کول باطل کارونه او دَ دُنیا فریب او چلوَل دے کهٔ څوک په خوب کښې اوګوری چه دَ شطرنج سره ئې لوبے کړی او په مقابل غالب شوے دے تعبیر ئې دا دے چه بے فائدے کار او فریب سره به په چا غالب کیږی او کهٔ اوګوری چه مقابل ورباندے غالب شوے دے تعبیر ئې دَ اول عکس دے

## شعر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اوګوری چه شعر یا غزل وائی او یا دَ چا صفت او یا دَ چا قبح کوی تعبیر ئې باطل خبرهٔ به کوی دَ الله تعالیٰ کلام (وَالشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوٗنَ[1]) ترجمه (ګمراه خلق دَ شاعرانو تابعداری کوی)، او کهٔ دَ توحید او یا دَ رسُول اللهﷺ صفت او دَ څهٔ عِلم او دپوهے خبرهٔ کوی تعبیر ئې غوره دے او ګناهګار به نهٔ وی۔

## شفتالو

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، شفتالو په خوب کښې لیدل کهٔ زیړ دی تعبیر ئې بیماری ده او کهٔ په خپل موسم کښې وی لږ نقصان

دے او کۀ او گوری چه شفتالو خوړدے او نړ یرنۀ دے تعبیر ئے وینزه ده او کۀ په خپل وخت ئے او گوری تعبیر ئے، مال به ورته ملاویږی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، شفتالو په خوب کښں په پنځو وجو دے: (۱) وینزه (۲) زوئے (۳) بیماری (۴) مال (۵) نفع ده دَ مُسافرسړی دَ پاره کۀ او گوری چه دَ شفتالو نړے ئے مات کړے دے او خوړلے ئے دے او تریخ وو تعبیر ئے غم او فکر دے او کۀ خوږ وو تعبیر ئے دَ بی اصله سړی نه به دَ هغې په اندازه ورته مال او نفع ملاویږی۔

## شکره

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښں دَ شکری تورته پلکیږه خبره ده یا دَ خپل زوئ، رور، خپل بښکلول دی او کۀ ډیره شکره او گوری تعبیر ئے حلاله روزی او ډیر مال دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، ډیره شکره لیدل په خوب کښں بد دی او خرخول ئے ښۀ دی لیکن موندل او اخستل ئے بد دی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ شکرے لیدل په خوب کښں په پنځو وجو دی (۱) ښائسته خبره (۲) ښکلول (۳) نفع (۴) زوئ (۵) مال.

## شکر کول (شکر گزاردن)

حضرت ابن سیرینؒ، کۀ او گوری په خوب کښں چه دَ الله تعالیٰ شکر کوی تعبیر ئے دَ دین مضبوطیا، قوت، مرتبه، مال، سعادت دَ دواړو جهانونو دے دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَلَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ)[1] ترجمه (کۀ تاسے شکر او کړئ نو زۀ به ئے تاسو ته نور یات کړم۔

## شل کیدل (شل شدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ او وینی په خوب کښں چه دَ وجود یو اندام ئے شل شویدے او دَ کور په یو کُټ کښں پریوتے دے او پاڅیدلے نۀ شی تعبیر ئے دَ بدو کارونو نه به توبه او باسی او دَ خلکو نه به خپل شر او بدی بند کړی او کۀ دَ دے خوب لیدونکے فسادی وی نو تعبیر ئے دَ دے اول خلاف دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کۀ او گوری چه دَ وجود په اندامونو کښں ئے یو اندام بیکاره شوے دے تعبیر ئے، دَ خپلوانو نه به ورته څۀ آفت ورسیږی.

## شمار کول (شمار کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ په خوب کښں څوک او گوری چه دَ چا سره شمار کوی تعبیر

ئے پہ محنت کبن گرفتارہ شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، چه ځومره شمیر آسان وی تعبیرئے محنت بہ ئے کم وی دَ یو نه تَـل او نـزو پورے تعبیر په حرفِ عین کبن یا دکړو۔

**شمع** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، دَ شمعے لیدل په خوب کبن دولت، عزت، مرتبه او دَ زندګئ فراخیدل او دَ نعمت دی کهٔ اووینی چه دهٔ سره بَله شوے شمع ده تعبیرئے نعمت او دولت بہ ئے زیاتیږی کهٔ اووینی چه لړولے شوے شمع ئے په کور کبن ایښی ده او ټول کورونه خوشحاله دی تعبیر ئے، په دے کال کبن به وربانده نعمت زیاتیږی او فراخیږی به او تجارت به ئے روان شی او ځنوټیلی دی چه دَ دهٔ ښځه به بنا ښُسته ډولی وی کهٔ اوګوری چه دهٔ ته چالړولے شوے شمع ورکړے تعبیرئے عزت او دولت به بیا مومی او کهٔ اوګوری چه دهٔ سره دَ سپینو زرو په شمعدان کښ شمع ده تعبیرئے داسے ښځه به پیدا کړی چه نیک اصله به وی او کهٔ اووینی چه شمعدان دَ سرو زرو وی تعبیرئے ښځه به دَ بادشاه په کور کبن کوی او کهٔ شمع دان دَ قلعی وو تعبیرئے دَ درمیانه قبیلے نه به ښځه کوی او کهٔ شمع دان دَ تانبے وو تعبیرئے لے اصله ښځه به کوی او کهٔ شمعدان دَ پیتلو وی تعبیرئے دَ مشرانو دَ اصل نه به ښځه کوی، او کهٔ اووینی چه شمعدان دَ اوسپنے دے تعبیرئے دَ قوی او مضبوط اصل نه به ښځه کوی او کهٔ شمعدان دَ خاورے تعبیرئے دَ عام خلکو نه به ښځه کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه بَله کړے شمع دَ دهٔ په لاس کبن ایښی ده او ناڅاپه مړه شوه تعبیرئے ښځه به دَ دهٔ مړه کیږی کهٔ اوګوری چه بله کړے شمع دَ دهٔ په لاس کبن چا مړه کړه تعبیرئے دهٔ سره به څوک حسد کوی او کهٔ اووینی چه دَ شمع رڼا کمه شوے ده، تعبیرئے عزت، مرتبه او دولت به ئے کم شی.

حضرت دانیالؑ فرمائی، کهٔ اوګوری په خوب کبن چه بَله کړے شمع په لاس کبن لری تعبیرئے کهٔ ښځه لری نو زوئ به ئے کیږی او کهٔ یو ښار کبن ډیرے بلے شوے شمع اوګوری تعبیرئے دَ هغه ځائے بادشاه به عادل او دَ انصاف خاوند وی او قاضی به ئے منصف او هوښیار وی او په دے ښار کبن به تقوی داره او پرهیزګاره خلک او خوشحالی به وی او کهٔ په مسجد کبن ډیرے شمعے او دی تعبیرئے دَ هغه ځائے خلک به په اطاعت، عبادت او په زړه کړه مشغول دی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ شمعے لیدل په خوب کبن په څوار لسو

وجووی (۱) بادشاه (۲) قاضی (۳) زوئ (۴) تاوے (۵) حکومت (۶) سرداری (۷) سرائے (۸) وادهٔ (۹) مالداری (۱۰) عِلم (۱۱) ژوندگی (۱۲) ویزه (۱۳) ښځه (۱۴) لیدونکے دَخوب بانده دلیل دے۔

## شات (شهد)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری په خوب کښې چه شات دَموم سره دی تعبیر ئے میراث یا حلال غنیمت دَے کهٔ اوګوری چه شات ورسره دی تعبیر ئے دَکوم ځایه به میراث بیاموی چه حلال به وی۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه شات لری تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به عِلم او عقل زده کړی کهٔ اوګوری چه دَ هغه شاتو نه خلکوته ورکوی اوخوری ئے تعبیر ئے خلک به دَ دهٔ دَ علم نه فائده واخلی اوکهٔ دَ دے خلاف ئے اوګوری تعبیر ئے خلکوته به فائده ورنه ونه رسیږی معبرینو وئیلی دی چه دَ شاتو په تعبیر کښې قرآن مجید دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ شاتو لیدل په پنځو وجو وی (۱) میراث (۲) غنیمت (۳) عِلم (۴) قرآن کریم (۵) فراخه روزی.

## شودهٔ، پئ (شیر)

حضرت دانیالؑ فرمائی، په خوب کښې شودهٔ لیدل چه هر څومره تازه او پاک او خوارهٔ وی تعبیر ئے دَ مال په زیاتوالی دے او کهٔ تروشے وی تعبیر ئے دَ دے په خلاف دے کهٔ اوګوری چه تازه شودهٔ ئے څښلی دی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به حلال مال بیاموی، کهٔ ښځه اوګوری چه دَ دے په سینو کښې پئ (شودهٔ) جمع شوی دی تعبیر ئے دَ دے به زوئ پیدا شی کهٔ سړے اوګوری چه دَ ښځے شودهٔ ئے راځی تعبیر ئے دَ دهٔ به زوئ پیدا کیږی او کهٔ سړے اووینی چه شودهٔ رالوېږی او دَ هغے نه وینه جوړیږی تعبیر ئے حرام مال به بیاموی او کهٔ اووینی چه دَ خپلو سینو نه شودهٔ ځښی تعبیر ئے په خپل کسب او کار کښې به تاوان اوکړی کهٔ سړے اوګوری چه ماشوم شوے دے او شودهٔ خوری تعبیر ئے مراد به ئے نه پوره کیږی کهٔ ښځه اوګوری چه ماشوم ته شوه ورکوی تعبیر ئے دَ بادشاه نه به مال بیاموی، کهٔ ښځه اوګوری چه ماشوم ئے دَ شودو ورکولو نه منع کړے او بیا شودهٔ ورکوی تعبیر ئے تاوان به کوی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په تعبیر کښې دَ ځنګلی ښاروو شودهٔ لږ مال دے کهٔ په خوب کښې اوګوری چه دَ ځنګلی خر شودهٔ څښی تعبیر ئے ښهٔ والے او صلاحیت

دے او کۀ اوګوری چه دَاوبنی پښې خښنی تعبیر ئے دَ سردار نه به مال بیامومی اوکۀ اوویني چه دَ پرانګی شودهٔ خښنی تعبیر ئے په دُښمن به کامیابی بیامومی اوکۀ اوګوری چه دَاوسئ شود ے خښنی تعبیر ئے روزی به دربانند ے فراخه زی، اوکۀ اوګوری چه دَ چیندئ شودهٔ خښنی تعبیر ئے دَ شیخ نه به مال اونعمت بیا مومی، اوکۀ اوګوری چه دَ میښے شودهٔ خښنی تعبیر ئے مال به بیاموِمی اوکۀ اوګوری چه دَ خرے شودهٔ خښنی تعبیر ئے بیمار به شی او بیا به جوړ شی اوکۀ اوګوری چه دَ سوے شودهٔ خښنی تعبیر ئے دَ ښځے نه به نفع بیا مومی اوکۀ اوویني چه دَ خنزیرے شودهٔ خښنی تعبیر ئے بے عقل او بیوقوف به وی اوکۀ اوګوری چه دَ لومبړے شودهٔ خښنی تعبیر ئے دَ چاسره به چل او دوکه کوی اوکۀ اوویني چه دَ لیوے شودهٔ خښنی تعبیر ئے خپل عیال به ورسره خیانت کوی اوکۀ اوویني چه دَ کږے شودهٔ خښنی تعبیر ئے حلال مال به بیا مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښې دَ داسے ځناور شود ے لوشل چه دَ هغے غوښه حلاله وی تعبیر ئے دَ حلال مال دے او دَ هغه حیواناتو چه دَ هغے غوښه حرامه ده تعبیر ئے غم او فکر دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې شود ے لیدل په دریو وجوی، (۱) حلاله رزق (۲) زوئ او اولاد (۳) غم او فکر۔

## شیره (ګوداپهها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې په رسونو کښې دیر زیات دَ کجورو رس ښهٔ دے، دیته پس دَ بادامو او بیا دَ هغے نه روستنه دَ روټئ دے او دَ هغے نه پس دَ خشخاش دے دَ دے فائده کمه ده، کۀ اوګوری چه دَ کجورے شیره خوری تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ خپل سړی نه مال په لاس راوړی اوکۀ اوګوری چه دَ خشخاشو شیره خوری تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به ورته مال حاصل شی مګر کمه فائده به ئے وی کۀ اوګوری چه دَ ډوډئ رس خښنی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ پرهیزګاره سړی نه مال او نعمت په لاس راوړی اوکۀ اوګوری چه دَ دے رسونو کوم چه دوئیل شول چه دَ ځان سره لری او دَ دے نه ئے څهٔ خوړلی دی تعبیر ئے دَ بیان شوی شیانو نه به ورته حاصل شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، هغه شیرے او رسونه چه خوږهٔ دی تعبیر ئے نیکی ده او هغه چه تراخهٔ او بے مزے دی تعبیر ئے بدی ده۔

## شیره، دَ میوو جوس (شیره)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې دَ انګورو جوس دَ دُنیا خیراو نفع ده، دَ الله تعالیٰ کلام دے (یُغَاثُ النَّاسُ وَفِیۡهِ یَعۡصِرُوۡنَ ۝۴۹) یوسف۔ په هغے کښے به بارانِ وکړے شی په خلقو باندے او په هغے کښے به نچوړ کړی دوی شراب۔
که اوګوری چه دَ انګورو شیره نچوړوی تعبیرئے دَ کوم بادشاه مقرّب به وی او که اووینی چه دَ انګورو تازه شیره خوری تعبیرئے دَ هغے په اندازه به حلاله روزی بیاموهی، او که اوګوری چه دَ شیرے خوند تروش دی تعبیرئے په تکلیف به روزی موهی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه شیره ورسره ده، تعبیرئے خیر او نفع به بیاموهی او که اووینی چه دَ انګورو نه شیره نچوړوی او غور زوی ئے تعبیرئے، ډیر مال به بیاموهی۔ او چه هر څومره خوږه او تازه شیره وی دَ هغے په اندازه به ډیره نفع وی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ شیرے لیدل په خوب کښې په څلورو وجو وی (۱) حلال مال (۲) ډیر نعمت (۳) علم او پوهه (۴) بے تکلیفه نفع۔

## شکل (تصویر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې څوك اوګوری چه دَ ده مخ (چهره) په بل شکل ګرځیدلے دے تعبیرئے چه څه حالت ئے لیدلے دَ ده حالت به په هغه حالت بدلیږی او که اوګوری چه په ښکلے صورت بیا ګرځیدلے تعبیرئے الله تعالیٰ ته به رجوع کوی او که په خوب کښې ښکلے صورت په هغه شان اوګوری تعبیرئے هر څوك به دَ ده دَ مخ نه مخ وارونی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه دَ بل سړی یا دَ ځناورو په صورت شوے دے تعبیرئے بے دینه او دروغژن به وی۔
حضرت امام جعفرؒ فرمائی، په خوب کښې دَ ځان شکل لیدل تعبیرئے هغه سړے په الله تعالیٰ باندے دَ دروغو جوړولو والا لیدل دی۔

## شرمګاه (عورت)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که اووینی چه ټوله شرمګاه ئے ښکاره شوه داسے چه ټولو خلکو ورته کتل تعبیرئے، خلکو ته به ئے راز ښکاره شی که اووینی چه خپله شرمګاه ئے زر پټه کړه تعبیرئے دَ ده راز به فوراً پټ شی۔
معبرینو ویلی دی که اووینی چه دَ ده دَ شرمګاه څنی حصه بربنډه ده او زر

ئے پټه کړه او چا ونه لیده تعبیر ئے بیمار به وي او صحت به ئے ښه شي او که قرضدار وي نو د قرض نه به خلاص شي او د ده که څه یره وي نو په امن کښ به شي.
حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائي، که اووینې چه د ده شرمګاه ښکاره شوه او دے ورباندے شرمنده شو تعبیر ئے، بد حالي نه به ښه حال ته راشي.
که اووینې چه ده قصدًا اخپله شرمګاه بربنډه کړه تعبیر ئے، داسے کار به کوي چه د هغے نه به د سزا حقدار او لائق وي او یا به ورته څه آفت رسیږي چه د خلکو د عبرت سبب به وي.

## شرمګاه (فرج)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که سړے په خوب کښ اووینې چه د ده د ښځے په شان شرمګاه ده تعبیر ئے خوار او فقیر به شي که اوګوري چه چادرسره کور والے کړیدے تعبیر ئے د ده نه به ئے حاجت پوره کیږي او که د دوه ښځے اووینې چه د دوئ یو شرمګاه وه تعبیر ئے دادواړه ښځے به د یو سړي شي.
حضرت کرمانیؒ فرمائي، که ښځه اوګوري چه د دے شرمګاه د او سپینے یا د تانبے دا تعبیر ئے د مرادونو پوره کیدو نه به نا امیده وي که سړے اوګوري چه د ده د ښځے فرج د ړ وستو طرف نه وو تعبیر ئے، هغه ښځه به داسے شے خوښوي چه په هغے به الله تعالیٰ ناراضه کیږي او که ښځه اوګوري چه د دے شرمګاه ووتلے دے تعبیر ئے په دښمن به کامیابي مومي که ښځه اوګوري چه د دے د فرج نه کب راوتلے دے تعبیر ئے د دے به لور پیدا کیږي او که ښځه اووینې چه د دے د شرمګاه نه پیشو ړ اوتلے ده تعبیر ئے، د دے به غل او ډاکو زوئ پیدا کیږي، که ښځه اوګوري چه د دے د شرمګاه نه ماړ وتلے دے تعبیر ئے، د ده به زوئ پیدا کیږي چه د دے به دښمن وي او که اوګوري چه د فرج نه ئے لړم ړ اوتلے دے تعبیر ئے هم دغه دے که اوګوري چه د دے فرج نه چینجي یا میږے ړ اوتلے دے تعبیر ئے کم همته زوئ به د ده پیدا کیږي او که اوګوري چه د فرج نه ئے ړوړئ ړ اوتلے ده تعبیر ئے مفلس او تنګ ستړ به وي او که اوګوري چه د دے د شرمګاه نه د کونزلو تیل وتلي دي تعبیر ئے، د خاوند به ورسره ډیره مینه وي او که اوګوري چه د دے د شرمګاه نه وینه وتلے ده تعبیر ئے خاوند به ورسره د حیض (جامو) وخت کښ کور والے کوي او که اوګوري چه د دے د شرمګاه نه نو وتلے دے تعبیر ئے د دے به صالح او پرهیزګاره زوئ پیدا کیږي او که اوګوري چه د دے د شرمګاه

نه توري وتلي دے تعبیر ئے دَ اول خلاف دے او که اوګوري چه دَ دے شرمګاه
نه اورو تلي دے تعبیر ئے دَ دے زوئ به بادشاه وي او که اوګوري چه چاورته
شرمګاه شلولے ده تعبیر ئے دَ دے سړي نه به نفع بیا مومي.

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائي، که اوګوري چه دَ دے په شرمګاه ویښته
دي تعبیر ئے دَ زوئ دَ وجے نه به ډیر غمژن وي او که اوګوري چه په هغے ویښته
نشته تعبیر ئے دا دے چه خوشحاله به وي او که اوګوري چه په دے پرسوب
دے تعبیر ئے مال به بیا مومي که ښځه اوګوري چه دَ شرمګاه په ځائے ئے دسړي
په شان عضوِ تناسل دے تعبیر ئے که حامله وي نو زوئ به ئے پیدا شي او که
حامله نه وي تعبیر ئے نر وئ به ئے مړ شي، که ښځه اوګوري چه دَ شرمګاه نه
ئے ملغلرے او یاقوت راوتلي دي تعبیر ئے عالم او پرهیزګار زوئ به دَ دے
پیدا شي.

## شرعي حاکم (قاضي)

حضرت ابن سیرین فرمائي، که څوك په خوب کښ اوګوري چه قاضي شوے او دَ خلکو په منځ
کښ دَ فیصلے خبرے کوي او حال دا چه دے دَ قضا اهل نه وو تعبیر ئے دا دے
چه په غم او تکلیف کښ به ګرفتار شي او مال به ئے دَ لاس نه لاړ شي او که په سفر
چرته لاړ وي نو په لاره کښ به ئے غله قتل کړي او مال به ئے هلاك شي او که
عالم وي نو تعبیر ئے دا دے چه قاضي به شي او که خوب لیدونکے څوان
عالم وو تعبیر ئے دَ سفر نه به سلامت را شي.

حضرت کرماني فرمائي، که څوك معلوم دار قاضي په خوب کښ اوګوري تعبیر
ئے دَ عالما نو، بزرګانو مرتبے ته به ورسیږي او که نامعلومه قاضي اوګوري چه
ناست دے او دے دَ چا سره جګړه لري او دَ دوئ په منځکښے ئے فیصله وکړه
نو هر حکم چه ئے کړے دے هغه به کیږي (وَاللّٰهُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهٖ ۝) الرعد (الله
تعالیٰ به دَ دوئ ترمنځه حکم وکړي او دَ ده حکم څوك نشي ماتولے، او په بل ځائے
کښ فرمائي (يَقُصُّ الْحَقَّ وَهُوَ خَيْرُ الْفٰصِلِيْنَ ۝) الانعام (او هغه حق خبره
کوي او هغه دَ ټولو فیصله کونکو نه بهتر دے).

حضرت مغربي فرمائي، که اوګوري چه قاضي په ده حکم کړے دے تعبیر ئے
دا دے چه هغه به کیږي کوم څه چه ده لیدلي دي او که اوګوري چه دَ قاضي
په لاس کښ تله ده تعبیر ئے دَ خلکو په منځکښے به په عدل حکم کوي که اوګوري

ئې ښځې ته به طلاق ورکوي او یا به ئې ښځه مړکوي او که دواړه شونډې پړسیدلې اوګوري تعبیر ئې دَ مور پلار له طرفه به ورته مصیبت او غم ورسیږي.
او دا هم وائي چه دے به چُغل خوروي او که دواړه شونډې درد منده اوګوري تعبیر ئې غمژن به شي او که اوګوري چه دواړه شونډې ئې یو بل پورې اِنښتي دي لکه بیا ئې نۀ شوے پرانستې تعبیر ئې، کار به ئې بند یږي او که ښځه په خپله شونډو تور داغ اوګوري تعبیر ئې دَ دے عزت به زیات شي
حضرت مغربیؒ فرمائي، که اوګوري چه خپلې شونډې ئې په غاښونو کښې نیولي او زخمي کړې ئې دي تعبیر ئې دے به جنګ کوي چه په دے کښې به دَ هلاکت ویره وي او که اوګوري چه دَ دۀ شونډې پړسیدلې دي تعبیر ئې دا دے چه دَ دۀ به مال زیاتیږي او که اوګوري چه شونډې ئې سرې شوي دي تعبیر ئې دا دے چه حاکم به شي که اوګوري چه شونډې ئې شنې یا سپینې شوي دي تعبیر ئې دَ دوستانو نه به غم ورته رسیږي که اوګوري چه شونډې ئې کمزورې شوې وې تعبیر ئې حال به ئې بد وي۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، پورتنۍ شونډې په خوب کښې لیدل تعبیر دَ هلکانو او لاندینۍ شونډې تعبیر دَ جینکو دے۔

## شاتو مچۍ (مگس انگبین)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې دَ شاتو مچۍ لیدل فراخه روزي دَ سړي او ګټه وړه ښځه ده که اوګوري چه دَ شاتو مچۍ ئې نیولې ده او یا ورته چا ورکړې ده تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به مال او غنیمت حاصل کړي۔
حضرت مغربیؒ فرمائي، که اوګوري چه دَ شاتو مچۍ ورباندې راجمع شوي دي او دے چیچي تعبیر ئې په تکلیف به مال او نعمت حاصل کړي او که اوګوري چه دَ شاتو مچۍ ئې خوړلې دي تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به نقصان او ضرر ورته رسیږي او که اوګوري چه دَ مچونه ئې شات اخستي دي تعبیر ئې دَ خیر او دَ نفع خبره به واوري او دَ هغې نه به فائده اومومي۔

## شاتو مچۍ (کندو)

که څوک په خوب کښې اووینې چه دَ شاتو مچۍ ئې نیولې ده او یا ورته چا ورکړې ده، تعبیر ئې څوک قاصد به ورته راځي او دے به خوشحالوي او عزت به مومي او دَ خلقو ورځونه پس به دَ ښځونه مقصود مومي خاصکر چه دا خوب دَ ورځې اووینې۔

## شپیلی (ناقوس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، شپیلی په خوب کښې منافق او د وغژن سړے دے او دے کښې هیڅ خیر نشته دے که اوګوری چه شپیلی ئې وهلی ده. تعبیرئې د منافق سړی سره به کینی او د منافقت سره به دروغ وائی او خوشحاله به وی او که شپیلئ ئې ماته کړی وی تعبیرئې د دے خلاف دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، د شپیلئ لیدل په خوب کښې په دریو وجووی (۱) دروغ ویُل (۲) منافقت (۳) په زړهٔ کښې د کافرانو سره محبت ساتل.

## شپیلی وهل (نلئے زدن)

حضرت امام ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې د شپیلی وهل تعبیرئې غم او فکر او مصیبت دے او د دے آواز اوریدل د غم او فکر تعبیر لری که اووینی چه شپیلئ ئې وهلی ده. تعبیرئې په غم او فکر کښې به ګرفتار شی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، د شپیلئ غږ ولو والا هغه سړے دے چه خلکو ته خیر رسوی او شپیلئ وهلو کښې څهٔ خیر نشته دے۔

## شترمرغ (شترمرغ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، شترمرغ په خوب کښې لیدل بیابانی او ځنګلی سړے دے که اوګوری چه شترمرغ مادهٔ (ښځه) ئې نیولے ده او یا ورته چاورکړے ده تعبیرئې په د مذکوره صفت ښځه به کوی او یا به وینزه اخلی که اوګوری چه په شترمرغ ناست دے تعبیرئې د ځنګل یا بیابان په سفر به ځی او ځنی معبرینو وئیلی دی چه په ځنګلی او سیدونکی سړی به غالب او کامیاب وی او لوئے کار ته به ورسیږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه شترمرغ ئې نیولے دے تعبیرئې په ځنګلی سړی به کامیابی حاصلوی او دے به مغلوب کړی، که اوګوری چه دهٔ سره د شترمرغ وزرے، هډوکی، اګئ دی ( )، تعبیرئې د ځنګلی سړی نه به ورته مال حاصل شی، که اوګوری چه د شترمرغ بچی ورسره دی تعبیرئې د ځنګلی سړی زوئ به ورته ملاویږی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه په شترمرغ ناست دے او دهٔ تابع دار دے او دے ئې په هوا الوزوے او بیا د هوانه زمکے ته راغلے دے تعبیرئې، د ځنګلی او بیابانی سړی سره به لرے سفرته ځی او بیا به راځی او نفع به بیا مومی، او که د دے خلاف اووینی تعبیرئې بد دے۔

## شیراز - یو قسم خوراک دے چه دَ ماستو نه جوړیږی

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ شیراز لیدل غم او فکر دے او چه خومره زیات تروش وی غم به سخت وی که اوګوری چه شیراز ئے خرڅ کړیے اویا ئے چا ته ورکړیدے او ورنه ئے نه دے خوړلے تعبیر ئے خوشحالی به بیا مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، شیراز په خوب کښ بده خبره ده چه دَ هغے نه به غمژن وی -

## شرائی - یو قسم لوښے دے

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه شرائی لوښے ئے اخستے دے تعبیر ئے وینزه به اخلی او تعبیر کونکو ویلی دی چه شرائی دَ کور خدمتګار دے که اوګوری چه شرائی وښے مات شوے او یا ضائع شوے دے تعبیر ئے دَ دهٔ وینزه یا خدمتګاره به وی -

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ شرائی لوښی لیدل په خوب کښ په نهو وجو وی (۱) ښځه (۲) خدمتګاره (۳) وینزه (۴) دَ دین مضبوطیا (۵) دَ دُنیا سمون (۶) اوږد عمر (۷) مال او نعمت (۸) خیر او برکت (۹) دَ ښځو د طرفه مال

## شیشے صفا کانړے (بلور)

بلور په اصل کښ بے اصله ښځه ده که اووینی چه دهٔ سره دَ شیشے صفا کانړے دے اویا ورته چا ورکړے دے تعبیر ئے چرته بی اصله ښځه به واده کوی که اووینی چه بلور ورسره دے او یا ضائع شوے دے تعبیر ئے ښځے ته به طلاق ورکوی اویا به ورنه غائب شی که اوګوری چه دهٔ سره ډیر دَ شیشے کانړی دی تعبیر ئے دهٔ ته به دَ ښځو دَ طرفه مال حاصل کیږی -

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه دَ شیشے کانړی خرخوی تعبیر ئے دَ بے اصله ښځو دلالی به کوی که اوګوری چه څنی دَ شیشے کانړی چه خرخوی په هغے کښ سُوری نشته او په څنو کښ سُوری شته تعبیر ئے دَ بے اصله پیغلو جینکو او دَ بے اصله کونډو دلالی به کوی -

## شهتوت (توت)

په خوب کښ توت خوړل چه خوږ وی روزی ده، او اوږده ده، تروش خوړل غم او فکر دے.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خپل موسم کښ خوږ توت خوړل تعبیر ئے دَ

خپل کسب نه به روزی مومی کۀ دا خوب دَ توتانو په خپل موسم کښې اووینی دَ بے موسمه نه ډیر بنه دے اوکۀ بے موسمه وی تعبیرئے غم او فِکر دے۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی، کۀ څوک اووینی چه خوارۀ توتانئے خوړلی دی تعبیرئے دَ څوانمرده سړی نه به ورته انعام او مزدوری ملاویږی کۀ اووینی چه اوربدۀ، تور، تروش توتانئے خوړلی دی تعبیرئے غمژن او فکرمند به وی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ توتانو لیدل په درې څیزو وی (۱) مال (۲) نفع (۳) دَ خپل کسب نه نفع (۴) دَ ښځے دَ پاره جګړه.

## شیره (ربّها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې خوندناکه او خوشبویه شیره لیدل تعبیرئے خیر او برکت دے اوکۀ دَ دے خلاف اووینی تعبیرئے ضرر، خفګان او غم دے او په خوب کښې خوږه شیره څخول تعبیرئے په نفع او په خیر دے اوکۀ تروشه وی تعبیرئے دَ دے خلاف یعنی اُلټه دے

## دَ شپے لوبے کول (شب بازی کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې دَ شپے لوبے کول لهو ولعب دی مګر دروغ او نۀ کیدونکی به وی، کۀ اووینی چه دَ شپے لوبےئے دَ تنګ ټکور سره کړی دی تعبیرئے غم او فِکر دے۔

## شرم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، شرم دَ ایمان نه دے، لکه څنګه چه رسُول الله صلی الله علیه وسلّم فرمائیلی (الحَیَاءُ مِنَ الاِیمَانِ) ترجمه (حیا دَ ایمان نه ده)۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کۀ په خوب کښې اووینی چه په څۀ کار کښې شرم کوی تعبیرئے، په هغه کار کښې بهٔ ئے خیر او صلاح وی او دَ ایمان زیاتوالے به وی او په هغه کار کښې چه په کوم کښې خیر او نیکی وی تعبیرئے دَ ایمان نقصان دے۔

## شمیر (عدد)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ اووینی چه چا ورته درهم، دنانیر یا جامے یا بل څۀ شے یو ورته چا ورکړے وی تعبیرئے خیر او نیکی به بیا مومی، دَ الله تعالیٰ قول دے (مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا)(۱) ترجمه (چا چه یوه نیکی وکړه هغهٔ دَ پاره یو په لس چندۀ ثواب دے څکه اهلِ تعبیروائی چه دَ لسو اصل دَ یو نه دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ یو شمیر بنهٔ دے او دَ دوۀ عدد دَ غم او فکر دے مګر

پهٔ دښمن به کامیابي بیا موي، دا الله ج قول دے (ثَانِيَ اثۡنَيۡنِ اِذۡ هُمَا فِي الۡغَارِ) ترجمه (دَ دوؤ نه دویم چه کله په غار کښې وو) کهٔ څوک درے[۳] شمیرعدد اوویني نو به دے اود هغه کار نه به فائده نهٔ اوچتوی، دَ الله تعالیٰ کلام دے (اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ)[۲] ترجمه (دَ خلکو سره تر درے ورځو پورے خبرے نهٔ شی کولے او دَ درے[۳] لفظ دَ جُدائیٔ تعبیر لری ځکه چه درے[۳] طاق عدد دے او کهٔ دَ څلور[۴] عدد اوویني نو بهٔ دَ چه بل څوک شے ورسره نهٔ وی، دا الله ج قول دے (مَا يَكُوۡنُ مِنۡ نَّجۡوٰى ثَلٰثَةٍ اِلَّا هُوَ رَابِعُهُمۡ)[۱] ترجمه نهٔ وی پټے خبرے د درے[۳] کسانو مګر دے خلورم دهغوی وی او کهٔ پنځم[۵] عدد اوویني نو بهٔ دے کل چه پنځه[۵] واره عدد دونه اداکوی او کهٔ دَ شپږ[۶] عدد اوویني نو بهٔ دے دَ الله تعالیٰ قول دے (خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ فِيۡ سِتَّةِ اَيَّامٍ)[۲] ترجمه (الله تعالیٰ زمکے او آسمانونه په شپږ[۶] ورځو کښې پیدا کړل او کهٔ دا اوو عدد اوویني تعبیر ئے بهٔ دے دَ الله تعالیٰ قول دے سَبۡعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا)[۳] ترجمه (اووهٔ آسمانونه طبقے په طبقے) اواووهٔ او اتهٔ نور هم به دی دَ الله تعالیٰ قول دے (سَبۡعَ لَيَالٍ وَّثَمٰنِيَةَ اَيَّامٍ حُسُوۡمًا)[۴] ترجمه (اووهٔ شپے او اتهٔ ورځے سختے) او کهٔ دَ نهو عدد اوویني نو به دے دَ الله تعالیٰ قول دے (تِسۡعَةُ رَهۡطٍ يُّفۡسِدُوۡنَ)[۵] ترجمه (نهه[۹] تولی فساد کوونکی وو) او کهٔ دَ لسو[۱۰] عدد اوویني نو نه دے او دَ دُنیا مراد به ئے حاصل شی دَ الله تعالیٰ قول دے (تِلۡكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ)[۶] ترجمه: هغه پوره لس[۱۰] ورځے دی. او کهٔ دَ یوولسو[۱۱] عدد اوویني تعبیرئے دَ دهٔ کار به ښکاره شی او دَ دولسو[۱۲] شمیره ښهٔ ده دَ الله تعالیٰ قول دے (اِنَّ عِدَّةَ الشُّهُوۡرِ عِنۡدَ اللّٰهِ اثۡنَا عَشَرَ شَهۡرًا)[۷] ترجمه (دَ میاشتو شمیر دَ الله تعالیٰ په نزد دولس[۱۲] دے او کهٔ دَ دیارلسو[۱۳] عدد اوویني تعبیرئے بد دے او دَ کار اخیر به ئے بد وی او کهٔ دَ خوارلسو[۱۴] عدد اوویني نو بهٔ دے او کهٔ دَ پنځلسو[۱۵] عدد اوویني تعبیرئے خوارهٔ وارهٔ کارونه به ئے په لاس ورشی او کهٔ دَ شپاړلسو[۱۶] عدد اوویني تعبیرئے دَ دهٔ مراد به ډیر وخت وروسته پُوره کیږی او کهٔ دَ اولسو[۱۷] عدد اوویني تعبیرئے اُمید به ئے پهٔ لاس ورځی او کهٔ دَ اتلسو[۱۸] عدد اوویني نو بد دے او کهٔ دَ نولسو[۱۹] عدد اوویني نو دَ خلکو سره به ئے کارونه وی دَ الله تعالیٰ قول دے (لَوَّاحَةٌ لِّلۡبَشَرِ عَلَيۡهَا تِسۡعَةَ عَشَرَ)[۸] ترجمه (نو په دوئی باندے ملائکو نولس[۱۹] دی) او کهٔ دَ شلو[۲۰] عدد اوویني تعبیرئے ښهٔ دے او په دُښمنانو به کامیابي مومي دَ الله تعالیٰ قول دے (عِشۡرُوۡنَ صٰبِرُوۡنَ) ترجمه (شل[۲۰] سړی صبرکوونکی ډیره وونکی او کهٔ دَ ډیرشو شمیرا اوویني. تعبیرئے دَ دهٔ تعلّق به دَ کوم حاکم سره وی دَ الله تعـ

(۱) آل عمران ۴۱

(۱) المجادله ۷ (۲) الاعراف ۵۴ (۳) الملک ۳ (۴) الحاقه ۷ (۵) النمل ۴۸ (۶) البقره ۱۹۶ (۷) التوبه

قول دے (وَاِذْ وٰعَدْنَا مُوْسٰى ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً وَّاَتْمَمْنٰهَا بِعَشْرٍ)[9] (موږ د حضرت موسیٰ سره د دیرشو شپو وعده کړے وه او هغه مو په لسو پوره کړه) او که د څلویښتو عدد ۴۰ نو ... ۳۰ ...

او که د پنځوسو عدد ۵۰ ویني تعبیر ئے سختي او تکلیف دے د الله تعالیٰ قول دے (اَلْفَ سَنَةٍ اِلَّا خَمْسِيْنَ عَامًا فَاَخَذَهُمُ الطُّوْفَانُ) ترجمه (پنځوس کم زر کاله چه هغوئ طوفان نیولی وو) او که د شپیته ۶۰ عدد او ویني ... ئے بند شي او ویني تعبیر ئے، کار به ئے

تعبیر ئے د دۀ په ذمه به قسم وي باید چه دے دوه میاشتے متصل روژے ونیسو یا شپیتو مسکینانو ته ډوډئ ورکړي د الله تعالیٰ قول دے (شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَاِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا ذٰلِكَ لِتُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ)[1] ترجمه (یو بل سره کولو نه اول پرله پسے دوه میاشتے روژے وساتي او که څوك دا نشي کولے بیا دے شپیتو ۶۰ مسکینانو ته ډوډئ ورکوي دا د دے د پاره چه تاسو په الله تعالیٰ او د هغۀ په رسول ۴ باندے ایمان ولرئ). او که د اویا عدد او ویني تعبیر ئے، د دۀ کار به روسته کیږي او که د اتیا عدد او ویني تعبیر ئے په دۀ به تهمت اولګوي او په لرګو به ئے اووهي، د الله تعالیٰ قول دے (فَاجْلِدُوْهُمْ ثَمٰنِيْنَ جَلْدَةً)[2] ترجمه (وے وهئ اتیا دُرے) او که د نوي ۹۰ عدد او ویني نو تعبیر ئے، د خوغتو ښځو نه به د خوسرۀ نکاح کوي د الله تعالیٰ قول دے (لَهٗ تِسْعٌ وَّتِسْعُوْنَ نَعْجَةً وَّلِيَ نَعْجَةٌ وَّاحِدَةٌ)[3] ترجمه (د دۀ یو کم سل ګډے دي او زما یوه ده) که بادشاه او ویني چه سل سواره ورسره دي تعبیر ئے په دُښمنانو به کامیابي مومي که او ویني چادر ته سل درهمه ورکړي دي تعبیر ئے، د زنا تهمت به پرے ولګو شي او دے به سل درے اووهي د الله تعالیٰ قول دے (فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ) ترجمه (هر یو د دوئ نه سل دورے اووهي) که او ویني چه چا ورته سل دانے غنم یا وریشے یا بل څۀ شے ورکړے دے تعبیر ئے، خیر او برکت دے او روزي به ئے فراخه وي د الله تعالیٰ قول دے (فِيْ كُلِّ سُنْۢبُلَةٍ مِّائَةُ حَبَّةٍ وَّاللّٰهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ)[4] ترجمه (په هر یو وږی کښې سل دانے وي الله تعالیٰ ئے د دے نه نور هم زیاتوي.) او که د دوه سوو ۲۰۰ عدد او ویني تعبیر ئے دُښمنان به ورباندے کامیابي مومي او که د درے سوه ۳۰۰ عدد او ویني تعبیر ئے په کسب به ئے مراد حاصل شي، د الله تعالیٰ قول دے (وَلَبِثُوْا فِيْ كَهْفِهِمْ ثَلٰثَ مِائَةٍ سِنِيْنَ وَازْدَادُوْا تِسْعًا)[5] ترجمه (دوئ په غار کښې نهه د پاسه درے سوه ۳۰۹ کاله تیر کړل او که د څلورسوو ۴۰۰ عدد او ویني تعبیر ئے په دُښمن به کامیابي مومي لکه رسول مقبول ﷺ

فرمائیلی دی (خَیْرُ الْجُیُوْشِ اَرْبَعَةُ اَلْفٍ وَخَیْرُ الْمَنَامِ اَرْبَعَةُ مِائَةٍ) الحدیث ترجمه (بنه د لښکرو نه څلور زره دے او ښهٔ د خوب څلور سوه دے)

او کهٔ د پنځه سوو عدداووینی تعبیرئے د دهٔ کار به بند وی او کهٔ د شپږ سوو عدداووینی تعبیرئے خوشحاله به شی او خپل مراد ته به ورسیږی او کهٔ د اووه سوو عدداووینی تعبیرئے د دهٔ کار به سخت شی او آخر به پوره شی او کهٔ د اته سوه عدداووینی تعبیرئے په دښمن به کامیابی موهی او کهٔ د نهه سوه عدداووینی تعبیرئے دښمن به په دهٔ کامیابی موهی او کهٔ د زرو عدداووینی تعبیرئے بزرگی به بیا موهی او په دښمن به غلبه موهی ـ د الله تعالیٰ قول دے (وَاِنْ یَّکُنْ مِّنْکُمْ اَلْفٌ یَّغْلِبُوْٓا اَلْفَیْنِ بِاِذْنِ اللّٰهِ) ترجمه (که چرے تاسو یو زروی نو د الله تعالیٰ په حکم به په دوهٔ زرو غالب شئ)۔ او کهٔ د دوهٔ زرو عدداووینی تعبیرئے بد دے او کهٔ د درے زرو عدداووینی تعبیرئے کامیابی ده، د الله تعالیٰ قول دے (بِثَلٰثَةِ اٰلَافٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِکَةِ مُنْزَلِیْنَ) ترجمه (د درے زره فرښتے راکوزے شوے) او کهٔ د څلور زرو عدداووینی تعبیرئے د دهٔ قوت او نصرت دے او کهٔ د پنځه زره عدداووینی تعبیرئے خوشحاله او مبارك به وی او کهٔ د شپږ زرو عدداووینی نو هم دغه تعبیر لری او کهٔ د اووه زرو عدداووینی تعبیرئے کارونه به ئے پرا نستلے شی او کهٔ د اته زرو عدداووینی تعبیرئے کارونه به ئے په نظم شی او کهٔ د نهو زرو عدداووینی تعبیرئے بد دے او کهٔ د لس زرو عدداووینی تعبیرئے کومک او کامیابی به بیا موهی او کهٔ د شلو زرو عدداووینی نو هم دغه تعبیر لری او کهٔ د دیرش زرو عدداووینی تعبیرئے کومک او کامیابی او برے به بیا موهی او کهٔ د څلویښت زره عدداووینی تعبیرئے کومک او کامیابی به بیا موهی او کهٔ پنځوس زره عدداووینی تعبیرئے په غم او تکلیف کښ به عاجزه وی د الله تعالیٰ قول دے (مِقْدَارُهٗ خَمْسِیْنَ اَلْفَ سَنَةٍ) ترجمه (د هغے ورځے اندازه پنځوس زره کاله ده) او کهٔ د شپیتو زرو عدداووینی تعبیرئے خوشحاله به وی او کهٔ اویا زره عدداووینی تعبیرئے دښمن به وربانده کامیابی موهی او کهٔ د اتیا زره عدداووینی تعبیرئے کارونه به ئے پټ وی او کهٔ د نوی زره عدداووینی تعبیرئے دښمن به وربانده کامیابی حاصلوی او کهٔ د سل زره عدداووینی تعبیرئے په دښمن به کامیابی موهی د الله تعالیٰ قول دے (وَاَرْسَلْنٰهُ اِلٰی مِائَةِ اَلْفٍ اَوْ یَزِیْدُوْنَ)[2] ترجمه (مونږ دے یو لاکھ بلکه زیا تو طرفته ولیږلو.

(۱) الانفال ۶۶ (۲) الصّٰفّٰت ۱۴۷

## دَ شرابو مجلس (مجلسِ شراب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اووینې چه دَ شرابو په مجلس کښې دی او څکلی ئے نهٔ دی تعبیر ئے په حرامو او په فسا د کښې به مشغول نهٔ وی مګرو ربانډے خوشحاله به وی کهٔ اووینې چه دَ شرابو په مجلس کښې مجلسیانِ رباب، ډیرئ وهی دهٔ ته به غم او فکر وی او یا به دَ چا سرهٔ جګړه کوی.

## شراب (نبیذ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې شراب لیدل دَ حرامو مال دے چه په جنګ او په جګړه لاس ته راځی کهٔ اووینې چه په شرابو کښې ډوب دے تعبیر ئے په لویه فِتنه کښې به پریوځی، کهٔ اووینې چه دَ دهٔ په کور کښې ډیر شراب دی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به ورته دَ حرامو میراث او نفع ورسیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اووینې چه شراب ئے څکلی دی او دے نشه شوے تعبیر ئے ویره او خطره به ورته ورسیږی کهٔ اووینې چه په نورو ئے شراب څکلی دی تعبیر ئے چه څومره ئے څکلی وی دَ هغے په اندازه به جنګ او جګړه کوی کهٔ اووینې چه په نهریا په دریاب کښې بهیږی او دے په کښې لامبو وهی تعبیر ئے په فتنه کښې به پریوځی کهٔ اووینې چه دَ شرابو پیاله ئے په لاس کښې ده او دَ دهٔ ملګری اَخستے ده، تعبیر ئے دَ دُنیا دَ ژوند په وجه به جنګ او دُښمنی کوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینې چه شراب په اوبو کښې ګډ وی او څکی ئے، تعبیر ئے داسے مال به ئے په لاس کښې راشی چه څَنی به حلال او څَنی به حرام وی کهٔ اووینې چه شراب خرڅوی تعبیر ئے خپل مال به بربادوی او کهٔ والی اووینې چه شراب څکی تعبیر ئے دَ خپل عهدے نه به لرے شی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې شراب لیدل په دریو وجو وی (۱) پټه نکاح (۲) حرام مال (۳) دَ دے جهان نعمت کهٔ اووینې چه شراب په انګورو کښې ملاویږی تعبیر ئے بادشاه او رئیس ته به نزدے شی او دَ دوئ نه به مال مومی.

## ص "صلح کول (آشتی کردن)"

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، چه په خوب کښې اوګوری چه صُلح کوی تعبیر ئے عمر به ئے اوږد وی کهٔ اوګوری چه په صلح کښې چا ته دَ دین دَ فساد دعوت ورکوی تعبیر ئے هغهٔ ته به دَ دین ډ لارے او صلاح او خیر دعوت ورکوی کهٔ اوګوری چه په غصے سرهٔ چا ته دَ دین دَ صلاح دعوت ورکوی تعبیر ئے داسے

چه دهٔ ته به دَ شر اودَ فساد صلاح ورکوی .
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په خوب کښې صلح کول په درې۳ وجودی (۱) دَعمراوږدوالے (۲) قوت (۳) ښکلے عقیده او ښهٔ خوئ .

## صلیبی نښان (چلیپا ، خاج)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه صلیبی نښان ئے اخستے دے او یا ورته چاورکړے دے تعبیرئے دَ دهٔ په دین کښې به نقصان دی اومیلان به ئے دَ کافرانو طرفته وی کهٔ اوګوری چه صلیبی نښان ئے په غاړه کښې لری تعبیر ئے عقیده به ئے خرابه وی اوکهٔ اوګوری چه صلیبی پرستی کوی تعبیرئے دَ الله تعالیٰ ذات سره به شرك کوی .
اوکهٔ اووینی چه صلیب نښان چاورکړیدے اودهٔ مات کړو یا دَ کورنه ئے بهرو غورزو تعبیرئے دَ اسلام مُبارك دین به ئے په زړهٔ کښې مضبوط او محکم وی او دَ کفارو به دښمن وی کهٔ اوګوری چه صلیبی نښان ئے ښکل کړے او عزت سره ئے ساتلے دے تعبیرئے دَ اول خلاف دے .

## صابون

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښې اوګوری چه دَ صابون سره ئے جامے وینځلی دی تعبیرئے دَ بدو کارونو نه به منع شی اوکهٔ اوګوری چه دَ چا جامے دَ صابون سره وینځی تعبیرئے بل سړے به دَ بدو کارونو نه منع کړی . اوکهٔ اوګوری چه صابون ئے خوړلے تعبیرئے حرام مال به خوری اوکهٔ اوګوری چه صابون ئے چاته دَ خوراك دَ پاره ورکړے دے تعبیرئے خپل مال به چاته دَ خوراك دَ پاره ورکوی .
حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه ډیر صابون ورسره دے او خپلے جامے ئے وریاندے وینځلی دی تعبیرئے دَ خلکو نه به جُدا وی .
حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښې دَ صابون اخستل دَ خرخولو نه ښهٔ دی او کهٔ صابون سپین وی او په اورباندے خوشبوکوی نو ډیر ښهٔ تعبیر دے او په خوب کښې صابون جوړونکے سردار دے .

## صرافی کول (صرافی کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې صراف عالم دے کهٔ څوك په خوب کښې اووینی چه صرافی کوی تعبیر بیانونکے دے خیال اوکړی چه دَ سوال کوونکی څهٔ مراد اومطلب دے کهٔ خوب لیدونکے دیندار او پرهیزګاره وی تعبیرئے چه څهٔ دَ

دین موافق دی هغه به خوب خوښوی اوکهٔ سائیل څهٔ لیکل نهٔ پیژنی تعبیر ئے دا دے چه دے به حیران دی او فضولیاتو کښې به مشغول وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اوګوری چه صرافی ئے کړے ده تعبیر ئے په خیانت او دَ خلکو په غیبت کښې به مشغول وی او بیان کوی چه په خوب کښې صراف فضول بکواس والا سړے دے چه هر هغه څهٔ به کوی چه تاوان لری.

## صحیفے (صحف)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اوګوری چه دَ ابراهیمؑ صحیفے وائی تعبیر ئے دا دے چه دهٔ ته به څوک بنهٔ لاره بنائی او دَ بدئ نه به ئے منع کوی خاصکر کهٔ دَ کتاب نه ئے هم دا لوستلے وی او کهٔ اوګوری چه صحیفے ئے سرسری لوستلے دی تعبیر ئے دَ دهٔ ملګریا به دَ منافق او ریا کار سړی سره وی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ مُسلمان اوګوری چه دهٔ صحیفے پرانستے دی او دَ ابراهیمؑ صحیفه لولی تعبیر ئے دَ دهٔ عقیده به په دین دَ اسلام باندے دی او یهود او نصاریٰ به نهٔ خوښوی او دَ هغوئ سره به ئے مینه نهٔ وی.

## صدقه ورکول (صدقه دادن)

په دے کښې دَ معبرینو اختلاف دے. حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک اوګوری چه عالم صدقه ورکوی تعبیر ئے دَ دهٔ دَ عِلم به خلکو ته فائده رسیږی او کهٔ اوګوری چه بادشاه صدقه ورکوی تعبیر ئے دهٔ ته به یوه فائده وی کهٔ اوګوری چه څوک کسب ګر صدقه ورکوی تعبیر ئے شاګردانو ته به کار زده کوی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښې صدقه ورکول امن او دَ غم او دَ سختئ نه خلاصے دے کهٔ قرضدار سړے اوګوری چه صدقه ورکوی تعبیر ئے دَ قرض نه به خلاص شی او کهٔ غلام اوګوری چه صدقه ورکوی تعبیر ئے آزاد به شی او کهٔ قیدی اوګوری چه صدقه ورکوی تعبیر ئے دَ جیل او قید نه به خلاص شی او کهٔ ملحد او دهری اوګوری چه صدقه ورکوی تعبیر ئے مُسلمان به شی خلاصه دا ده چه صدقه ورکول په خوب کښې دَ دواړو جهانونو نیک بختی ده.

## صندوق

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې صندوق ښځه ده او ځنی معبرینو وئیلی دی چه عزت او مرتبه ده کهٔ اوګوری په خوب کښې چه نوے صندوق ئے اخستے دے او یا ورته چا ورکړے دے تعبیر

ئ دَ هغې په اندازه به عزت او مرتبه بيا مومي. که او وینی چه صندوق ضائع شوے دے او یا مات شوے دے تعبیر ئے مرتبه به ئے کمه شي.

حضرت مغربيؒ فرمائی، کۀ اوګوری چه پاکیزه صندوق ورسره دے تعبیر ئے دَ دۀ ښځه به ښا ئسته او پاکیزه وی او کۀ نا وړه صندوق اوګوری دَ دے تعبیر دَ اول خلاف دے.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ صندوق لیدل په دریو وجوی (۱) عزت او مرتبه (۲) دَ قدر او مرتبے او چتوالے (۳) ښځه.

## "ض" ضعیف، کمزورے

حضرت ابن سيرينؒ فرمائی، کمزورتیا په خوب کښې دَ مرتبے نقصان دے کۀ اوګوری چه دَ دۀ سر کمزورے شوے دے تعبیر ئے عزت او مرتبه به ئے کمه شي او کۀ اوګوری چه دَ دۀ سترګے کمزورے شوے دی تعبیر ئے په دین کښې به کمزورے شوے وی او کۀ اوګوری چه دَ دۀ غوږونه کمزورے شوے دَه تعبیر ئے ښځه یا خدمتګاره به ئے بیماره شي. او کۀ اوګوری چه پوزه ئے کمزورے شوے دَه تعبیر ئے مرتبه او عزت به ئے کمزورے شي او کۀ او وینی چه دَ دۀ دین کمزورے شوے دے تعبیر ئے بے فائدے خبرے به کوی او کۀ اوګوری چه دَ دۀ خټ کمزورے شوے دے تعبیر ئے امانت به نۀ اداکوی او کۀ اوګوری چه دَ دۀ اوږے کمزورے شوی دی تعبیر ئے دَ خلکو غیبت به کوی او کۀ اوګوری چه دَ دۀ لاس کمزورے شوے دے تعبیر ئے مور یا زوئ به ئے بیمار شی او کۀ او وینی چه دَ دۀ متے او مړوند کمزوری شوی دی تعبیر ئے دَ دۀ رائے او تدبیر به بیکاره وی او کۀ او وینی چه دَ دۀ سینه کمزورے شوے دَه تعبیر ئے هم دغه دے او کۀ اوګوری چه دَ دۀ ګوتے کمزورے شوے دی تعبیر ئے دَ دۀ لور به بیماره شی. او کۀ اوګوری چه دَ دۀ کمزورے شوے دَه تعبیر ئے دَ دۀ دَ ملا ترسرے به کمزورے شی او کۀ خیټه کمزورے شوے دَه تعبیر ئے دَ دۀ دَ خپلوانو نه به دَ چا اوګوری چه دَ دۀ دَ ملا پے کمزورے شوی دی تعبیر ئے دَ دۀ دَ خپلوانو نه به دَ چا مشرسړی حال خراب وی او کۀ اوګوری چه دَ دۀ پتون کمزورے شوے دے تعبیر ئے دَ دۀ دَ خپلوانو نه به څوک بیمار شي او کۀ اوګوری چه دَ دۀ زنګون کمزورے شوے دے تعبیر ئے په مال کښې به ئے نقصان وی او کۀ اوګوری چه دَ دۀ بدن کمزورے شوے دے تعبیر ئے غمژن به وی.

## "ط" طبیب۔ دوافروش (پیله ور)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی دوائی خرخوونکے دَ طبیب یا دَ دهٔ په شان دے ځکه چه طبیب خلکو ته علاجونه کوی او فقیه خلکو ته دَ دین لارے ښائی کهٔ اوګوری چه طبیب دارو ګان خرڅ کړی دی او خلکو ته خیر او خوشحالی رسوی دا درے واړه دَ خیر او سعادت تعبیر لری۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ څوک اوګوری چه دوائی خرڅوی یا علاج کوی تعبیرئے دَ دے نه بهٔ هر یو کس نه خیر او نفع رسی او دَ دهٔ به ښهٔ نوم په ملک کښں مشهور شی۔

## طاءوس

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، چه نرطاءوس په خوب کښں دَ عجمو بادشاه دے کهٔ اوګوری چه نرطاءوس ورسره دے تعبیرئے دَ بادشاه نه به مرتبه او مال حاصل کړی کهٔ اوګوری چه ښځه طاءوس ورسره ده او پوهیږی چه دَ دهٔ ملکیت دے تعبیرئے عجمی مالداره او ښائسته ښځه به کوی او دَ هغے نه به مال او زوئ حاصل کړی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه طاءوس دَ کور نه ترے سره یو ځائے شوے دے تعبیرئے خپله ښځه به دَ بد کارئ دَ پاره په پیسو ورکوی۔

حضرت دانیالؑ فرمائی، طاءوس په خوب کښں فسادی ښځه ده کهٔ اوګوری چه نرطاءوس ورسره خبرے کړی تعبیرئے ولایت به بیامومی او کهٔ طاءوس ورته رک یو ځائے اوګوری تعبیرئے څوک پردے به دَ دهٔ عیال سره فساد کوی۔

کهٔ اوګوری چه طاءوس دَ دهٔ دَ کور نه الوتے دے تعبیرئے ښځے ته به طلاق ورکوی کهٔ اووینی چه طاءوس ئے وژلے دے دَ پیغلے جینئ سره به واده کوی کهٔ اوګوری چه دَ طاءوس مارغهٔ دَ دهٔ په لاس کښں دے تعبیرئے مال او نعمت به بیامومی کهٔ اوګوری چه دَ طاءوس مارغهٔ بچی ئے نیولی دی تعبیرئے دَ دهٔ به لور کیږی کهٔ اوګوری چه نرطاءوس دَ دهٔ دَ لاسه الوتے دے تعبیرئے بادشاه نه به جُدا شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ طاءوس مارغهٔ په خوب کښں په دَوه وجوه وی (۱) دَ عجمو بادشاه (۲) مال او خزانه۔

## طلاق

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ خوب کښں اوګوری چه ښځے ته ئے طلاق ورکړیدے او دَ دهٔ یوه ښځه وه تعبیرئے دَ دهٔ به عزت او مرتبه

کښې به څۀ کمی راځي.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، کهٔ اوګوري چه ښځې ته ئې ورکړيدے
تعبیر ئې دا دے کار به کوي چه دَ هغې نه به پښيمانه وي او په خوب کښې دَ ښځې سره
خلع کول (دَ ښځې نه مال واخلي او طلاق ورکړي) تعبیر ئې مالداري ده (دَ
الله تعالیٰ کلام دے (وَإِنْ يَتَفَرَّقَا يُغْنِ اللَّهُ كُلًّا مِنْ سَعَتِهِ) ترجمه (او دا دواړه
ښځه او سړے دَ يو بل نه جُدا شي نو الله تعالیٰ به هر يو دَ خپل فراختيا نه بے نيازه کړي

## طوطي

حضرت ابن سيرينؒ فرمائي، په خوب کښې طوطي زوئ يا غلام دے کهٔ
اوګوري چه طوطي ئې دَ لاسه الوتے دے تعبير ئې زوئ يا غلام به
ئې په سفر ځي کهٔ اوګوري چه طوطي ورسره خبرے کړي تعبير ئې دا دے کار يا
خبرے به کوي چه خلک به پرے تعجّب کوي او ښځه طوطي پيغله جينۍ ده او نر
طوطي پاک ديني سړے دے او پرهيزګاره غلام کهٔ اوګوري چه ښځه طوطي ئې
نړلے ده تعبير ئې دَ پيغلے جينۍ پيغلتوب به ختموي کهٔ اوګوري چه طوطي دَ دهٔ
خولے او يا لاندے غټ او دس ماتي لارے نه وتلے دے تعبير ئې دَ دهٔ به
داسے زوئ وشي چه دَ دهٔ په شان کښې به خلک خرابے خبرے کوي.
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائي، په خوب کښې دَ طوطي ليدل په درې
وجوه دي (۱) زوئ او غلام (۲) پيغله جينۍ (۳) پرهيزګاره شاګرد.

## طاقتور

حضرت ابن سيرينؒ فرمائي، کهٔ په خوب کښې اوګوري چه دَ ويښے
په نسبت په خوب کښې ډير طاقتور شوے دے او په دُنيا او آخرت
کښې دَ دهٔ دَ احوالو دَ ښهٔ کيدو تعبير لري په دے شرط چه خوب ليدونکے
صالح او نيک عمله وي او کهٔ دَ فساد ګرو دَ ډلے نه وي نو دَ دے تعبير برعکس

## ظ "ظلم کول (ظلم کردن)

حضرت ابن سيرينؒ فرمائي، کهٔ اوګوري
چه په دهٔ ظلم شوے دے تعبير ئې دَ
ظالم په مقابل کښې به دَ دهٔ سره کومک وکړے شي او کهٔ اوګوري چه په دهٔ چا
ظلم کړيدے تعبير ئې هغه سړے به په دهٔ کاميابي مومي او کهٔ اوګوري چه
بادشاه ورسره ظلم کړے دے تعبير ئې بادشاه به ورته محتاجه وي او کهٔ اوګوري
چه دهٔ دَ بادشاه سره ظلم کړيدے تعبير ئې دَ بادشاه نه به نقصان بيا مومي.
حضرت اسمٰعيل اشعثؒ فرمائي، کهٔ سردار اوګوري چه دَ قوم غريب
سړي ئې ظلم کړے دے تعبير ئې، دغه غريب او عاجزه به دهٔ ته خبرے کوي

او که مالک او وینی چه دهٔ په غلام ظلم کړے دے تعبیر ئے دَ غلام نه به مصیبت، غم، بلا ورته نه سیرږی۔

## "ع" عیسائی (ترسائی)

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که مُسلمان اوګوری په خوب کښ چه عیسائی شوے دے تعبیر ئے دے به دَ بدعت او دَ ګُمراهئ په لاره چلیږی او دَ اسلام په دین به عقیده نه لری۔

حضرت جابرؒ فرمائی، که څوك دُښمن لری نو په هغهٔ به کامیابی مومی ځکه نصرانیت اخستل شوے دَ نصرت نه او که عیسائی اوګوری چه مُسلمان شوے دے تعبیر ئے یا به مُسلمان شی او یا به مړ کیږی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، که څوك اوګوری چه دَ عیسایانو سره ئے ناسته کړے تعبیر ئے، دَ دهٔ دوست به داسے وی چه دَ اسلام په دین به ئے عقیده ضعیفه او سُسته وی۔

## دَ عنبرو په شان میوه (زباد)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه زباد میوه ده ورسره او یا ورته چا ورکړے ده، تعبیر ئے دَ ادب خاوند او عقلمند به وی او خلک به دَ دهٔ صفت او ستایش کوی که اوګوری چه دَ هغه زبادو نه بشکلے بوئی راځی تعبیر ئے خلک به ئے ښهٔ یادوی او که اوګوری چه دَ زبادو نه څهٔ بوئی نهٔ راتلو تعبیر ئے دَ داسے سړی سره به نیکی کوی چه دَ هغهٔ نه به شکرګزاری نهٔ وینی او که اوګوری چه زباد ئے خوړلی تعبیر ئے زامن به ئے ادب ناك او عقلمند وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ زباد دلیل په څلورو وجو وی (۱) ادب (۲) عقلمندی (۳) نیک نام (۴) ښهٔ کار۔

## عاشِق

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښ اوګوری چه عاشق او حریص دے تعبیر ئے فساد او بدی ده او که شے حلال او ښهٔ وی نو تعبیر ئے دَ نیکئ دے که اوګوری چه په کوم ښائسته سړی عاشق شوے دے او نیت ئے دَ حرامو وی نو تعبیر ئے دَ فساد دے او که په هغه عِشق کښ نیت دَ حلالو وی تعبیر ئے خیر او صلاح ده۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، که اوګوری چه دَ معشوقے نه ئے دَ زړهٔ مراد او موندلو تعبیر ئے دَ خیر او دَ نفع دے۔

## عالِم

که جاهل سړے اوګوری چه عالِم یا فِقیه شوے دے تعبیر ئے، خلک به پیغور ورکوی او خندا کانے به ورپسے هم کوی او که عالِم یا

بقیه دا خوب اووینی تعبیرئے علم به ئے نور هم زیات شی که چرے اووینی چه قاضی یا حاکم یا خطیب یا عالم ژوندے یا مړ دَ هغه ځایه تیرشوے دے چه هلته ویره وه تعبیرئے دَ هغه ځائے خلک به دَ ویرے او خطرے نه په امن شی او عادل بادشاه به دَ دوئ وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه خلکو ته علم ښائی او حالانکه عالم نه دے تعبیرئے دَ هغه ځایه به تښتی او که عالم وو تعبیرئے عزت او مرتبه به بیا مومی او که اوګوری چه څه ئے واخستل او علم ئے ښودلو تعبیرئے رشوت به اخلی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ عالم په څلورو وجو وی۔

(۱) دولت (۲) قاضی (۳) حکیم (۴) خطیب۔

## عالم دین

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که اوګوری چه عالم شوے دے او دَ ده خبرے دَ خلکو په نزد قابل قبول شوی دی تعبیرئے نیکی او سرداری به مومی او په هغه ملک کښے په خلکو کښے به نیک مشهور شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائیلی دی که ناخوانده او امی سړے خوب کښے خپل ځان عالم اوګوری تعبیرئے، سخت نیوونکے سپاهی به شی او که خپل ځان عالم اوګوری تعبیرئے، قاضی به جوړ کړے شی۔

یو سړے په نهٔ لو معنیٰ کانو عالم اوګوری تعبیرئے، قاضی به جوړ کړے شی۔

## عبادت

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه دَ الله تعالیٰ عبادت کوی تعبیرئے دَ دے خلاف دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه په مسجد یا اذان خانه کښ ئے عبادت کړیدے تعبیرئے دَ دے دُنیا خیر به بیا مومی او که اوګوری چه په مکروه ځائے کښ ئے عبادت کړے دے تعبیرئے، دَ اوّل خلاف دے۔

## عطر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه دهٔ سره عطر (خوشبوئی) ده او دے عالم وو تعبیرئے دَ دهٔ دَ علم نه به خلکو ته فائده وی او که مالداره وی تعبیرئے دَ دهٔ دَ مال نه به خلکو ته فائده رسیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که خوب کښ اوګوری چه دهٔ سره عطر دی تعبیرئے خلک به دَ دهٔ تعریف کوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ دَ عطر ولیدل په نهٔ وجو وی (۱) ښهٔ صفت او تعریف (۲) ښهٔ خبره (۳) نافع علم (۴) ښهٔ طبیعت (۵) دَ علم

مجلس (۶) ښهٔ سړے (۷) عقلمند سړے (۸) پاك دين (۹) ښهٔ خبره۔

## عطرخرخوونکے (عطار)

کهٔ په خوب کښې اوګوري چه عطرخرڅوي تعبیرئے خلک به دَ هغهٔ شکریه اداکوي او کهٔ اوګوري چه په خلکو خوشبو خرڅوي تعبیرئے دا سے وعده به کوي چه دَ هغې خلاف به کوي۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائي، کهٔ خوب کښې اوګوري چه دَدهٔ دَ عطر خرڅوونکي سړي سرهٔ دوستي ده تعبیرئے خلک به دَ دهٔ صفت کوي اومشهور به شي۔

## عقل

حضرت ابن سیرینؒ وائي، کهٔ خپل عقل دَ سړي په شکل کښې اووینې لکه څنګه چه دے دوا دورته وائي چه زهٔ ستاعقل یم او پوهیږي چه دَ دهٔ عقل دے کهٔ خوب لیدونکے دَ دے اهل وي تعبیرئے دَ دهٔ به دَ بادشاه دَ زوئ سرهٔ ناسته پاسته وي او هغه به ئے خوښوي او دَ دهٔ نه به خیر مومي۔

حضرت کرمانيؒ فرمائي، کهٔ څوك عقل په خپل شکل اوګوري تعبیرئے دا دے چه نصیب به ئے دَ دهٔ طرفته رُخ کوي عزت او مرتبه او دولت به بیا مومي۔

حضرت دانیالؑ فرمائي، په خوب کښې عقل او روح مور او پلار دے کهٔ دوئ مړهٔ وي یا ژوندي وي تعبیرئے دَ دوئ دیدار به کوي او کهٔ مړهٔ وي تعبیرئے صدقه او دُعا به دَ دهٔ طرفته هغوئ ته رسیږي۔

په حدیث شریف کښې راغلي دي چه یو سړے دَ حضرت نبي کریمﷺ په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئے وکړو چه په خوب کښې م وليدل چه زما مال او زما روح نه زما نه جُدا شو او دواړه دَ سړي په شکل کښې دي او دواړه زما کور ته راغلل او مونږ درے واړه کیناستو او شربت مونږ څښلو، رسول اللهﷺ ورته په تعبیر کښې اوفرمائیل چه عقل دَ دے جهان قسمت دے او دَ روح دَ هغه جهان قسمت دے او ستا کار به مراد ته رسیږي او کهٔ اوګوري چه عقل او روح دواړه جنګ او شور کوي تعبیرئے خوب لیدونکے به دَ بادشاه سرهٔ جنګ کوي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښې دَ عقل او روح لیدل په څلورو وجوو دي (۱) بخت او دولت (۲) مور او پلار (۳) دَ بادشاه زوئ (۴) مال او نعمت

## عقیق کانړے

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، کهٔ اوګوري چه دَ عقیق کانړے ورسرهٔ دے او ورته چا ورکړے دے تعبیرئے

کوم لوئے سړی سره به ملګرتیا کوی او دَ هغهٔ نه به خیر مومی اوکهٔ اووینی
چه کا نړے ورنه ضائع شوے دے تعبیر ئے دَ دے خلاف دے اوکهٔ اووینی
چه دَعقیق ډیرے ورسره دے او دَ هغے نه ئے څهٔ خوړلی دی تعبیر ئے دا دے
زوئے به ئے پیدا کیږی چه شرف، بزرګی او مرتبه به بیا مومی۔

## عمارت، آبادی

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک اوګوری چه دهٔ په وران ځائے کښ مسجد، مدرسه، خانقاه آبادی جوړه کړه تعبیر ئے دَ دین جوړښت او دَ آخرت دَ ثواب دے اوکهٔ اووینی چه وران ځائے ته لاړ او هلته ئے ځانته ابادی جوړه کړه لکه سرائے یا دوکان تعبیر ئے دَ دے دُنیا فائده به بیا مومی اوکهٔ اوګوری چه معلوم ځائے وران شوے دے تعبیر ئے په تکلیف او مصیبت کښ به ګیر شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه په معلوم او مشغول ځائے کښ مقیم شوے دے، تعبیر ئے دَ هغه آبادئ په اندازه به خیر او نیکی او نفع ورته حاصلیږی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ دَ آبادئ لیدل په څلورو وجوو دی (۱) دَ دُنیا سمون (۲) خیر او نفع (۳) کامیابی (۴) دَ بندهٔ کاروبار انستل او برکت۔

## عنبر، خوشبوئی ده

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښ اوګوری چه عنبر لری تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به نفع بیا مومی اوکهٔ اووینی چه ډیر عنبر ئے راجمع کړی او نور ئے هم مونډلی دی تعبیر ئے دَ خپل همت په اندازه به ملک او مال بیا مومی اوکهٔ اوګوری چه عنبر ئے چا ته ورکړی تعبیر ئے، دَ هغه کس نه به نفع بیا مومی اوکهٔ اووینی چه عنبر ورنه ضائع شوی دی تعبیر ئے، دَ دهٔ دَ مال نقصان به وی اوکهٔ اووینی چه دَ چا په مخ ئے عنبر مږلی دی تعبیر ئے، دَ چا سره به نیکی کوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ عنبر ولیدل په څلورو وجوو دی (۱) نفع (۲) ولایت (۳) کامیابی (۴) نیک تعریف۔

## دَعلم مجلس (مجلسِ علم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دَ علم په مجلس کښ ناست دے، او عالِم چا ته قرآن لولی او دَ قرآن تفسیر او حدیث شریف او توحید بیانوی تعبیر ئے ګټه به مضبوط عمارت جوړوی چه دَ شریعت خلاف به وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائي، که اوګوري چه دَ علم په مجلس کښې ژاړي تعبیر ئے دَ دُنیا په کار کښې به مشغول شي او په هغې کښې به خوشحاله وي او که دَ دے خلاف اووینې نو دَ خفکان تعبیر لري او که اوګوري چه دَ علم په مجلس کښې بیهوشه شوے دے دا سے چه عقل ورنه لاړو تعبیر ئے دا دَه نه به څه کار په مخکښې وي چه په هغې کښې به سرګردانه وي مګرا نجام به ئے ښه وي.

## عقاب مارغهٔ (اُلّو)

دا دَ مارغانو بادشاه او ښکاري دے.

حضرت دانیال ؑ فرمائي، عقاب مارغهٔ لیدل په خوب کښې یو هیبت ناك او ظالم بادشاه دے چه هر څوك ورنه یریږي که اوګوري چه دهٔ دَ عقاب مارغهٔ نیولے دے او یا ورته چا ورکړے دے او دَ دهٔ تابعداره دے تعبیر ئے دَ بادشاه په وړاندے به خاص مقرب شي، که اووینې چه دهٔ دَ عقاب مارغهٔ موندلے دے او په هوائے کړو تعبیر ئے دَ بادشاه په حُکم به په سفر ځي او په هغه سفر به بزرګي او څوریزتوب مومي.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که اوګوري چه عقاب مارغهٔ دَ دهٔ کوټې ته راغلے دے تعبیر ئے بادشاه به دغه کوټې ته راځي، که اوګوري چه دَ دغه کوټې خلکو عقاب مارغهٔ وژلے دے تعبیر ئے هغه بادشاه به دَ خپلے عهدے نه لرے کړے شي او یا به هلاك شي، که اوګوري چه دهٔ دَ عقاب مارغهٔ نیولے دے تعبیر ئے دے به دَ بادشاه په پناه کښې وي او که اوګوري چه عقاب مارغهٔ دَ ځلے نه څه شے اوویستو او دهٔ ته ئے ورکړو تعبیر ئے دَ هغه شي په اندازه به دَ بادشاه هدیه مومي که اوګوري چه دَ دهٔ دَ لاسه اَلوتے دے تار یا بل څه شے دَ دهٔ په لاس کښې پاتے شو تعبیر ئے بادشاه به په دهٔ غصه کوي او دَ ځان به ئے لرے کوي او دَ دهٔ څهٔ اندازه مال به اَخلي.

حضرت کرمانيؒ فرمائي، که اوګوري چه دَ عقاب مارغهٔ سره ښکار کوي تعبیر ئے دَ بادشاه خزانه به دَ دهٔ تصرّف لاندے راځي که اوګوري چه دَ عقاب مارغهٔ په مښوکه یا په پنجو وهلے دے تعبیر ئے دَ بادشاه نه به ورته تکلیف او زحمت رسیږي او دَ دهٔ مال به ستنوي.

که اوګوري چه دَ عقاب سره جګړه کوي تعبیر ئے دَ دهٔ جنګ او جګړه به دَ بادشاه سره وي. که اوګوري چه دَ عقاب مارغهٔ ئے اوخوړلو یا ئے ورنه وزرے اوویستلے، تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به دَ بادشاه نه مال او نعمت مومي که اوګوري

چه دَ دهٔ دَ سرهٔ پاسه ناست دی تعبیر ئے اَدَ دهٔ به زوئ پیدا کیږی او هغه به بادشاه دی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ عقاب مارغهٔ لیدل په دوه وجوه دی (۱) ظالم خونخوار بادشاه (۲) بے دینه مکار عالم۔ او څوک وائی چه کهٔ په خوب کښې اووینی چه دَ عقاب مارغهٔ ورسره دے تعبیر ئے عمر به ئے اوږد دی۔

## عطر (مشک)

حضرت دانیالؑ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اووینی چه دهٔ سره مشک عطر دی، تعبیر ئے اَد بناک او هوښیار به دی او تول خلک به ئے صفت کوی، کهٔ اووینی چه دَ دهٔ نه دَ عطرو خوشبو راځی تعبیر ئے دَ دهٔ عقیده او یقین به صفا وی او په لاره به ځی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه مشک میده کوی تعبیر ئے دَ چاسره به نیکی کوی کهٔ اووینی چه دهٔ دَ مشکو کڅوړه شلولی ده او دَ هغې نه خراب بوئ راغلو تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ مشکو لیدل په شپږ وجو وی (۱) بنځه (۲) دوست (۳) بنهٔ ژوند (۴) وینزه (۵) ډیر مال (۶) بنائسته خبره۔

## غیږ کښې نیول (آغوش گرفتن)

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښې اوګوری چه څوک مشهور سړے ئے په غیږ کښې اخستے دے تعبیر ئے کهٔ دا سړے نیک او صالح وی نو دَ دین خیر به بیا مومی او کهٔ اوګوری چه ماشوم ئے په غیږ کښې نیولے دے تعبیر ئے اَدَ بنهٔ زوئ خواهشمند دے کهٔ اوګوری چه ازمرے ئے په غیږ کښې نیولے دے تعبیر ئے اَدَ دُښمن سره به صلحه وکړی۔

## غټ مار (اژدها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، دَ غټ مار (اژدها) په خوب کښې لیدل دَ غټ دُښمن تعبیر لری چه قوی دُښمنی ورسره کوی کهٔ اوګوری چه اژدها ورسره ده تعبیر ئے دَ بزرګانو سره به یو ځائے شی کهٔ اوګوری چه دَ اژدها سره ئے جنګ کړے او ورباندے کامیاب شوید ے تعبیر ئے دَ دښمنانو سره به جنګیږی او آخر به ورباندے کامیابیږی کهٔ اوګوری چه اژدها ئے وژلے ده او دَ هغې غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے په دُښمن به کامیابیږی، او دَ هغهٔ مال به اخلی او خرچه به ئے کړی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، او که اژدها او خوړلو تعبیر ئې دَ دُښمن نه به ورته ویره وی او دُښمن به ئې هلاک کړی او که اوګوری چه دَ اژدها په شا ناست دے او اژدها دَ دهٔ تابع ده تعبیر ئې غټ دُښمن به دَ دهٔ تابع شی او ټول کاروبه به ئې په انتظام وی۔

## غونډۍ (پښت)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک خوب کښې اووینی چه هغه دَ ځنګل په غونډۍ یا دَ غر په ډهیرۍ ناست دے تعبیر ئې دَ داسے سړی نه به عزت او شرف بیا مومی چه دَ هغهٔ شرف او مرتبه به دَ دے مزکے وی چه دَ دهٔ نه ګیرچاپیره ده او که اوګوری چه دَ هغې غونډۍ دَ پاسه ولاړ دے تعبیر ئې داسے بزرګ سړی ته به نزدے کیږی چې دَ هغهٔ نه به مال او عزت مومی که اوګوری چه دا غونډۍ دَ دهٔ ځائے دے او دَ دهٔ ملک دے تعبیر ئې څوک لوئے سړے به دے مغلوب کړی او دَ دهٔ مال او نعمت به واخلی او په دے ځائے به مقیم شی او که اوګوری چه څنی غونډۍ دَ دهٔ ملکیت دے تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به نعمت او بزرګی بیا مومی او که اوګوری چه دَ غونډۍ نه لاندے پریوتے دے او یا چاغورزولے دے تعبیر ئې دے به دَ کوم بزرګ سړی نه رټلے کیږی او نقصان به ورته ورسی او که اوګوری چه په هغه غونډۍ پر سختئ سره ختلے تعبیر ئې غم او فکر به ورته ورسیږی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ غونډۍ لیدل په څلور وجوه وی (۱) اوچتوالے (۲) مال (۳) قوت (۴) طاقت۔

## غټه کپړه (پلاس)

په خوب کښې دَ پلاس لیدل مصلح، پرهیزګاره او دیندار دَ اعمالو او دَ اقوالو امانت ګر سړے دے که اوګوری چه دهٔ دَ غټے کپړے جامے اغوستے دی تعبیر ئې دَ دهٔ به دَ پرهیزګاره سړی سره ملګرتیا جوړیږی او دَ هغهٔ نه به خیرا و نفع دَ آخرت بیا مومی او که اوګوری چه ډیرے غټے جامے ورسره دی تعبیر ئې دهٔ ته به دَ هغې په اندازه به مال او نعمت حاصلیږی او معبرانو وئیلی دی چه غټه کپړه حلال مال دے که اوګوری چه نوے دَ غټے کپړے جامے ئې پیدا کړی تعبیر ئې مال الله او پرهیزګاره بنځه به کوی، او دَ هغې نه به خیرا و نفع بیا مومی او که سړے اوګوری چه نوے غټے جامے ئې اخستی دی تعبیر ئې پرهیزګاره وینزه به اخلی او دَ هغې نه به خیرا و نفع مومی۔

## دَ غوږ پوسکی (بناګوش)

دَ غوږ پوسکی لیدل بنائسته مخ او بنائسته مبارك زوئ دے او دوه پوسکی لیدل دوه هلکان دی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښ دَ غوږ پوسکی لیدل تعبیرئے دَ قدر او مرتبے دے او دَ دے کمے او زیاتے دَ خوب لیدونکی دَ قدر او دَ مرتبے تعبیر لری۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائی، دَ غوږ پوسکی لیدل په خوب کښ په څلور وجووی (۱) بنائسته زوئ (۲) قدر او مرتبه (۳) درست دین (۴) نفع دَ زوئ په سبب۔

## غُلام

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوك نابالغه غلام اوګوری چه دے بالغ شوے دے تعبیرئے دا دے به آزاد شی او که څوك اوګوری چه خپل غلام ئے آزاد کړیدے تعبیرئے ډیر زر به دَ دُنیا نه ځی او که غلام اوګوری چه خپل مالك خرڅ کړے تعبیرئے محتاجه او غمژن به وی او که مالك اوګوری چه غلام ئے اخستے دے تعبیرئے دا دے چه دے به خوشحاله وی۔

## غُلام

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښ اوګوری چه غلام شوے دے تعبیرئے په سخت کار کښ به پریوځی او په هغے کښ به غمژن وی که اوګوری چه غلام ئے نیولے او یا اخستے دے تعبیرئے په هغه کار کښ به ئے بهتری وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښ غلام واده دے دَ الله تعالیٰ قول دے۔ (وَبَشَّرْنٰهُ بِغُلٰمٍ حَلِيْمٍ)(۱) ترجمه (مونږ هغهٔ ته دَ صبرناك زوئ زیرے ورکړو) او په بل ځائے کښ فرمائی (يٰبُشْرٰى هٰذَا غُلٰمٌ)(۲) ترجمه: اے زیریه دا دے هلك

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، که اوګوری چه غلام یا وینزه ئے خرڅ کړے تعبیرئے دَ بنه والی دے او که اخستے ئے وی نو تعبیرئے بد دے۔

او که دَ غلام او دَ وینزے په خرخولو سره سپین زر واخلی تعبیرئے بد دے او که سامان واخلی نو بهتر دے۔

## غِشی (تیر)

حضرت دانیالؑ فرمائی، په خوب کښ غشے لیدل رښتینے سړے دے چه دَ هغهٔ نه خلکو ته فائده رسیږی دَ ځنی معبرینو په قول غیبت کوی که اوګوری چه چا دَ دهٔ دَ طرفنه غشے ګذار کړو تعبیر ئے دهٔ ته به پیغام راسیږی خاصکر چه په څهٔ وجه ئے ګذار کړی وی او که او وینی

چه دَ دهٔ دَ زخمی کولو دَ پارهٔ غښے دَ دهٔ طرفته ویښتے دے تعبیر ئے دهٔ ته بدَ هغهٔ خط راځی۔

## (غالیه) خوشبودار پوډر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی غالیه په خوب کښے هوښیار او مشهور سړے دے۔ او که اوګوری چه غالیه ئے چا ته ورکړے ده تعبیر ئے هغه سړے به دَ دهٔ نه ادب او هوښیارتیا زده کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائیلی دی، غالیه په خوب کښے دَ ج علامه ده او معبرینو دا هم وئیلی دی چه دا دَ مال علامه ده چه دَ بادشاه نه به ملاویږی که اوګوری چه غالیه ئے موندلی ده تعبیر ئے دَ سوداګر سړی او یا دَ ښځے نه به نفع اوموهی۔ او که څوک اوګوری چه یو سړے غالیه دَ دهٔ سترګو پورے مرږلے ده تعبیر ئے دَ هغهٔ په ځائے به حقه وینا کوی او خلک به ورته دُعا کوی او که اوګوری چه دَ غوږ نه لاندے ئے غالیه مږلی ده۔ تعبیر ئے دَ دروغو تهمت به په دهٔ لګیږی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی دَ غالیے لیدل په خوب کښے په پنځهٔ وجو وی (۱) ادب او هوښیارتیا (۲) تعریف او شاباسے (۳) دَ اسلام ج (۴) مال او مراد (۵) خیر او نفع۔

## غونډسکے وهل (چوګان زدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک په خوب کښں اوګوری چه غونډسکے په لاس کښں دی او وهی ئے تعبیر ئے څهٔ شے چه تلاش کوی هغه به بیا موهی او خپله مرتبه او کور به بیا موهی مګر په دین او عبادت کښں به کمزوره دی۔

## غُصّه کیدل (خشم گرفتن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه په چائے غصه دَ دُنیا دَ پاره کړے ده تعبیر ئے دَ دین کار به خوار او ذلیل ګنړی، او په دُنیا به مغروره وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه په دهٔ مور او پلار غصه کړیدهٔ تعبیر ئے دا او چت ځائے نه به پریوځی دَ الله تعالیٰ کلام دے (وَمَنۡ یَّحۡلِلۡ عَلَیۡهِ غَضَبِیۡ فَقَدۡ هَوٰی) ترجمه (چه پرے زما غصه نازله شی، هغه پریوځی)۔

## غلا کول (دُزدی کردن)

کهٔ په خوب کښں اوګوری چه دَ چا مال ئے غلا کړے دے او څهٔ ئے خرچه کړے دے۔

تعبیر ئے چه دَ چا مال ئے پټ کړے هغه به وژنی اوکهٔ اوګوری چه دَ غلا نیت ئے وو مګر غلائے ونکړه تعبیر ئے چا ته به بد رسوی او ځنی وائی چه بیمار به شی مګر صحت به بیا مومی اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ دَ کوره ئے څهٔ پټ کړی دی، تعبیر ئے دهٔ ته به تکلیف او آفت رسیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دے دَ غل لاس کښی قیدی شوے دے تعبیر ئے حال به ئے بد شی او په تکلیف او غم کښی به ګرفتار شی۔ اوکهٔ اوګوری چه غلو ور باندے ډاکه ماړه او غور ځوله تعبیر ئے غم او فکر به بیا مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه غلو دَ چا سامان یوړو تعبیر ئے دَ خوب لیدونکی زندګی به تباه شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښی غلا کول بیماری ده، او معبرینو وئیلی دی چه چرته غلا اوکړی نو دَ زومګی تعبیر دے او یا به ئے زوئ پیدا شی اوکهٔ دَ خوب لیدونکی شوك مُسافر لری نو سالم به واپس راشی۔

حضرت دانیالؑ فرمائی، په خوب کښی دَ غل لیدل خیانت او حیله ده۔

## غاښ (دندان)

حضرت دانیالؑ فرمائی، غاښ په خوب کښی دَ کوړ دَ خلکو لیدل دی، بره غاښونه په نارینه وو تعبیر لری اولاندینی غاښونه په ښځینه تعبیر لری۔ مخکښنی غاښونه په زامنو، ورونو او په خویندو یا په مور او پلار تعبیر لری او دَ اړخ غاښونه په ترهٔ او دَ ترهٔ په زامنو تعبیر لری او روستنی غاښونه په خپلوانو تعبیر لری او سپینوالے او پاکیزګی دَ غاښونو دَ کوړ دَ خلکو په قوت او مرتبه باندے تعبیر لری او ځنی معبرینو فرمائیلی دی مخکینی غاښونه په ښی طرف کښی دَ هغهٔ په پلار او خپلوانو باندے تعبیر لری کهٔ اوګوری چه دَ هغهٔ مخکینی غاښونه خوږیږی تعبیر ئے کوم کسان چه پورته په کوم صفت بیان شول یو به بیمار شی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ مخکینی غاښونه په لاس یا په غیږ یا په زمکه پریوتے دی او په خاورو ګنده شول تعبیر ئے دَ دهٔ به زوئ پیدا کیږی او یا خور یا ورور پیدا کیږی کهٔ اوګوری چه غاښ ئے په خاوره و پریوتے دے یا ضائع شوے دے تعبیر ئے یو دَ هغه نه چه مونږ وو ئیل یو کس به مړ کیږی کهٔ اوګوری چه غاښونه ئے مات شوی دی یا ماړ ژیړ لی دی

تعبیرئے دادے کسانو کښې کوم چه موږ و وټیل یو کس ته به آفت رسیږي
کهٔ اوګوري چه ځکیني غابښونه ئے ټکول شوي دي تعبیرئے دَ دهٔ به دَ دے
کسانو سره دښمني وي کهٔ اوګوري چه دَ غابښونو نه ئے یو او ویستلو تعبیر
ئے هغه کسان به دهٔ ته بد رد وائي او دَ دهٔ نه به دَ جُدائي تلاش کوي او
کهٔ اوګوري چه دَ دهٔ ځکیني غابښونه زیات شوي دي تعبیرئے دَ خپلوانو
نه یو کس به په خوشحالئ او راحت کښې وي کهٔ اوګوري چه دَ غابښونو په ځوا
کښې بل غابښ راټوکیدلے دے کهٔ لاندیني وي تعبیرئے جینئ به ئے
پیدا کیږي او کهٔ بره وي نو هلک به ئے پیدا کیږي - او کهٔ اوګوري چه ځکیني
غابښونه ئے پخپله ویستلي دي تعبیرئے دَ پورته ذِکرشوو خپلوانو نه به
تاوان اخلي کهٔ اوګوري چه ټول غابښونه ئے پریوتي دي او حال ئے معلوم
شو تعبیرئے دَ دهٔ دَ خاندان دَ هلاکت دے کهٔ اوګوري چه دَ دهٔ غابښونه دَ دهٔ
په لاس ورغوي یا په غیږ کښې پریوتے دے تعبیرئے دَ دهٔ خاندان به زیات وي
کهٔ اوګوري چه دَ دهٔ ټول غابښونه لاندے طرفته دي کهٔ خوب لیدونکے داهلِ
اصلاح نه وي نو تعبیرئے په خیر او په نیکئ دے او کهٔ دَ اهلِ شر نه وي نو
تعبیرئے په شر او په فساد دے کهٔ اوګوري چه دَ دهٔ غابښونه دَ سپینو زرو دي
یا دَ ښیښے یا دَ ټیکري تعبیرئے دَ دهٔ دَ هلاکت دے او معبرینو ویلي دي
چه دَ غابښونو غورزیدل دَ قرض ادا کول دي او ځنو دا هم ویلي دي چه په
جنګ او په جګړه تعبیر لري .

حضرت کرمانیؒ فرمائي، برني غابښونه چه دَ سترګو په برابر دي په نر اولاد
تعبیر لري او لاندیني غابښونه جینکئ دي او کهٔ اوګوري چه ټول غابښونه
ئے په غیږ کښې پریوتي دي او دا ټول ئے په لاس کښې اخستي دي تعبیرئے
خپلوان به راجمع کوي او دوئ به نهٔ جُدا کوي او کهٔ اوګوري چه دَ غابښونو نه
ئے خوشبو راځي تعبیرئے، خپلوان به ئے صفت کوي او کهٔ دَ دے خلاف او نه بني
تعبیرئے، دَ دهٔ غیبت به کوي او کهٔ اوګوري چه غابښونه ئے درد کوي تعبیرئے
غم او فکر دے او کهٔ اوګوري چه غابښونه ئے زیړ دي تعبیرئے چه خوک
دَ دهٔ طرفته منسوب وي بیمار به وي کهٔ اوګوري چه دَ دهٔ غابښونه تور
شوي دي تعبیرئے، دهٔ ته به غم او فکر رسیږي کهٔ اوګوري چه غابښونه ئے
غورځیدلي دي او بنهٔ مضبوط ئے تړلي دي تعبیرئے، دَ دهٔ عمر به اوږد وي

او دَدهٔ خپلوان به دَدهٔ په وړاندے قبرته ځی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَدهٔ غاښونه درد کوی او په خپل لاس ئے اوویستل او په دواړو لاسونو کښ ئے نیولی دی تعبیر ئے ډیر مال به بیا مومی او کهٔ اوګوری چه دَ چا دَخولے نه په ویښتو ګنده غاښ په لاس کښ نیولے دے تعبیر ئے چه دَ چا غاښ ئے نیولے دے هغهٔ ته به نفع وی مګر دهٔ ته به مصیبت رسیږی او کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ غاښونه ظاهرشوی دی تعبیر ئے دَ دهٔ ځنې خپلوان به په سفر ځی او سالم به واپس راځی او کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ غاښونه ټول دَ ژبے ترمنځه راجمع شوی دی او بیا هم غاښ خپل ځائے ته لاړ دے تعبیر ئے دَ خپلوانو نه به شکی وی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ غاښونه لیدل په شپږ وجو وی (۱) دَ کورخلک (۲) مال (۳) نفع (۴) غم او فکر (۵) جُدائی (۶) ضرر او نقصان.

## غوړی او تیل (روغن)

حضرت دانیالؑ فرمائی، غوړی په خوب کښ مال او نعمت دے او ځنې وائی چه میراث دے، کهٔ اوګوری چه دَ غواګانو غوړی ورسره دی او خهٔ ئے ورنه خوړلی دی تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به مال او نعمت بیا مومی او دَ خپلو په وړاندے به عزت مند شی او کهٔ دَ ګډو غوړی اوګوری هم دغه تعبیر لری مګر دَ غوا غوړی دَ ګډو دَ غوړو نه ښهٔ دی او روغنِ بادام او روغنِ کنجد مال او نعمت دے او نور قیمتی غوړی لکه بلسان، روغنِ بنفشه، روغنِ زیتون دَ دے تولو تعبیر دَ کلی وال سړی نه نفع ده او دَ زیتون غوړی دَعرب سړی نه نفع ده.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی کهٔ اوګوری چه ټول وجود ئے په غوړو ګنده شوے دے تعبیر ئے بیمار به شی او کهٔ اوګوری چه په سر ئے مږلی دی تعبیر ئے په بنا ئست دے او کهٔ اوګوری چه دَ غوړو نه خوشبوئی نو تعبیر ئے په بنا ئست دے او کهٔ اوګوری چه دَ غوړو نه خوشبوئی نو تعبیر ئے په ښهٔ والی دے او بد بوئی په خرابئی تعبیر لری.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښ دَ زیتون تیل مال او نعمت دَے کهٔ خوب کښ څوک اوګوری چه یو سړی دَ بل سړی تیل په سر مږلی دی تعبیر ئے هغهٔ ته به چل او فریب جوړوی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښ په خپل ځان تیل مږل دَ بنا ئست

تعبیرلری مګرغم اوفکرهم ورسره دے اوکهٔ اوګوری چه دَ تیلوسره سینه صفاکوی تعبیرئے په دروغو به قسم خوری۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، ټول تیل اوغوړی په خوب کښ ښه دی مګر دَ زیتون تیل چه دَ خوراك تعبیرئے مال اومړه ئے غم او فکر دے اوکهٔ اوګوری چه جامه ئے په تیلوګنده شوے ده، تعبیرئے غمژن به شی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، ښهٔ تیل په خوب کښ په شپږ وجووی (۱) ښائسته ښځه (۲) وینزه (۳) ښهٔ تعریف (۴) نفع (۵) ښے خبرے (۶) ښهٔ طبیعتونه۔ اوګنده تیل په دریو وجووی (۱) بے کاره ښځه (۲) فسق او ناروا (۳) بدے خبرے۔

## غار، کنده

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه غار ته ننوتے دے او هلته کښ مقیم شوے دے تعبیرئے په سخت کار کښ به ګرفتار شی اوکهٔ اوګوری چه غار ته ننوتونوزر بیرته راووتو تعبیرئے په سخت کار کښ به ګرفتار شی اوزر به ورنه خلاصے بیا مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، اوکهٔ اوګوری چه غار ته ننوتو او هلته کښ زنا وه تعبیرئے جیل ته به ځی اوځنی معبرین وائی چه په سخت کار کښ به ګرفتار شی کهٔ اوګوری چه دَ غار نه بهر راوتلے دے تعبیرئے بیمار به شی اوصحت به زر بیا مومی۔

## غائب

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ سفرغائب دهٔ ته نزدے راغلے دے تعبیرئے دَ هغے غائب خط یا خبربه ورته راشی اوکهٔ خپل کورنه غائب وی تعبیرئے دَ دهٔ خط به دَ دهٔ خپلوانو ته راشی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ سفرغائب ئے واپس راغلے دے، تعبیرئے بند کار به دَ دهٔ پرانستلے شی اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ غائب ترش تندے او فکرمند دے تعبیرئے دَ دے خلاف دے اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ غائب سور دَ سفرنه راغے تعبیرئے دَ دهٔ غائب به زر دَ سفرنه سره دَ مال اونعمت سره واپس راشی اوکهٔ خپل غائب پیدل ضعیف اوبربنډ اوګوری تعبیرئے دَ دهٔ غائب به په لاره کښ داړه ماروشوکوی اوغریب به واپس راشی۔

## غلبیل (غربال)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، غلبیل په خوب کښ لوښئے نوکردے کهٔ څوك په خوب کښ اوګوری

چه غلبیل لری تعبیرئے دا ده ته به خادم حاصل شی۔
اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ غلبیل مات شوے دے تعبیرئے دَ دهٔ خادم به تښتی اویا به مری۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه غله په غلبیل پاکوی تعبیرئے داسے کار به کوی چه په هغے کښې به خلکو ته نفع وی او دهٔ ته به نقصان رسیږی۔
اوکهٔ اوګوری چه څهٔ پاکوی دَ خپل ځان دَ پاره تعبیرئے نفع به بیاموهی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې غلبیل لیدل په درې وجو وی (۱) خادم (۲) دوست (۳) هوښیار شاګرد۔

**غم** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې غم، ښادی او خوشحالی ده کهٔ اوګوری چه غمژن شوے دے تعبیرئے خوشحالی به بیاموهی او مراد ته به ورسیږی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه غمژن شوے دے تعبیرئے دَ هغے په اندازه به مال بیاموهی او کهٔ اووینی چه دَ غم نه خلاص شو تعبیرئے دَ دے خلاف دے۔

**غنیمت** (دَ کافرو نه دَ جنګ په نتیجه کښې اخستے شوے مال) حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې دَ غنیمت لاس ته راوړل کهٔ دَ کافرو مال وی تعبیرئے نرخونه به اوچت شی کهٔ اوګوری چه مُسلمانانو دَ کافرانو نه غنیمت لاس ته راوړے دے تعبیرئے چه کوم ملک ته ئے غنیمت راوړے دے ورته نعمت به وی او ارزانی به راشی کهٔ اوګوری چه کافرانو دَ مُسلمانانو دَ ملک نه غنیمت راوړے دے تعبیرئے دَ هغے په اندازه به دهٔ ته نعمت حاصلیږی۔

**غوا، غوئے (ګاؤ)** حضرت دانیالؑ فرمائی، کهٔ اوګوری چه په غوئی ناست دے او دَ دهٔ خپل غوئے دے تعبیرئے دَ بادشاه نه به ورته کار حاصلیږی او دَ هغه نه به ډیره نفع اوموهی خاصکر چه تور غوئے وی اوکهٔ زیړ غوئے اوګوری تعبیرئے، دے به بیمار وی اوکهٔ اوګوری چه غوئے دَ دهٔ دَ کوره وتلے دے تعبیرئے الله تعالیٰ به ورباندے دَ خیر دروازے پرانزی مګر غم به دے نهٔ پریږدی۔
اوکهٔ اوګوری چه دهٔ سره ډیر تران غوایان دی تعبیرئے دَ دهٔ به ډیر

نوکران وی او دَ دهٔ په کار کښې به کوشش کوی کهٔ اوګوری چه غوټی په ښکرو هلے دے او دے ئے دَ کوره بهر کړے دے تعبیر ئے دهٔ ته به دَ غلامانو نه نقصان رسیږی او هغوی به خپل ځانونه دَ کار لرے کړی او کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ دَ غوټی درے سرونه دی او په هر یو سر یو ښکر دے تعبیر ئے دَ هر یو ښکر په عوض کښې به دَ دهٔ غلام یو کال کار کوی او کهٔ دَ دهٔ په الله مونږ کښې یو اندام زیات اوګوری تعبیر ئے دَ دهٔ کار به زیاتیږی او کهٔ کم اوګوری تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښې غوئے لیدل کار دے او دَ دهٔ خرمن دَ کار کوونکی میراث دے او دَ غوټی لکئ او اخستل او خرخول هم کار کوونکے دے کهٔ اوګوری چه دَ غوټی لکئ دَ دهٔ په کور کښې راغلے ده تعبیر ئے پریمال به بیامومی او روزی به ئے فراخه شی او کهٔ په خپله کوټه کښې ډیر غوایان اوګوری تعبیر ئے سردار به شی او دَ دهٔ په کار کښې به خیر او برکت ښکاره شی او کهٔ اوګوری چه غوټی په ښکرو هلے دے او غورزولے ئے دے کهٔ خوب لیدونکے عامل وی (نوکر) وی نو معزول به شی او کهٔ سوداګر وی نو تاوان به وکړی او کهٔ بادشاه وی نو دَ بادشاهئ نه به پریوځی او کهٔ اوګوری چه غوټی په ښکرو هلے دے او غورزیدلے نهٔ دے تعبیر ئے خوك به په دهٔ شرف او بزرګی بیا مومی او دَ دهٔ دَ لرے کیدو کوشش به کوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه په غوایانو کښې یو غوئے ذبح کړو او تقسیم ئے کړو او غوئے کار کوونکے وو تعبیر ئے دَ دهٔ په کوټه کښې به لوئے سرے مړ کیږی او کهٔ اوګوری چه غوئے حلال کړی او غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے دَ غوټی مالك به هلاك کړی او مال به ئے یوسی او کهٔ اوګوری چه پردے غوئے ئے وژلے دے تعبیر ئے په هغه ځائے کښې به خوك لوئے سړے مړ کیږی او کهٔ ډیر غوایان نر او ښځے ګډ اوګوری او په هغه ځائے کښې تلل راتلل کوی تعبیر ئے دَ هغه ځائے خلك به په دغه کال کښې ډیرے بیمارئ برداشت کوی کهٔ خوار وی۔ او کهٔ غوایان ښاربهٔ وی تعبیر ئے ارزانی او نرخونه ده او کهٔ اوګوری چه غوایان نر مکه قلبه کوی تعبیر ئے بے اندازے مال به ئے په لاس راشی۔

حضرت اسمعیل اشعثؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ غوایانو سره ئے جنګ

کړے دے تعبیرئے دے بہ دَ بادشاہ سرہ جنگ کښې پریوځي۔
حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، غوئے پہ خوب کښې کال دے او کہ ښځه یعنی غوا اوګوری نو په دغه کال کښې بہ فراخي او نعمت وي او کۂ کمزورے وخوار اوګوری تعبیرئے دَ دے خلاف دے او دَ غوا غوښه پہ هغه کال کښې فراخي ده او خرمن ئے ذخیره ده او کهٔ اوګوری چه ښځه یعنی غوائے لوشلے ده او هغه پئي ئے څکلي دي تعبیرئے مال بہ ئے زیات شي او کهٔ دا خوب غلام اوګوری نو تعبیرئے دا دے چه آزاد بہ شي او کهٔ فقیروي نو مالداره بہ شي او کهٔ آزاد سړے اوګوری نو دَ چا بہ محتاج نۀ وي او کهٔ ذلیل وي نو عزت مند بہ شي او کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ غوا حامله ده، تعبیرئے پہ اُمید واري دے۔
حضرت حافظؒ فرمائي، کهٔ اووینی چه دَ ښاریهٔ غوائي غوښه ئے اخستے ده تعبیرئے پہ دغه کال کښې بہ مالداره ښځه کوي او کهٔ اوګوری چه دَ غوا نہ ئے پئي لوشلي دي او هغه پئي ئے څکلي دي تعبیرئے ډیر مال بہ جمع کړي او دَ هغه مال نہ بہ څهٔ نۀ خوری او کهٔ اوګوری چه غوا ورسرہ خبرے کړي دي تعبیرئے زندګی بہ ئے فراخه شي او کهٔ اووینی چه غوائے مخے تہ راغلے ده تعبیرئے کال بہ پہ دهٔ برکت ناك وي او کهٔ اوګوری چه غوا ورنه مخ اړولے دے تعبیرئے دغه کال بہ پہ دهٔ بد وي او کهٔ اوګوری چه پہ غوا ناست دے او ورنه غورځیدلے دے تعبیرئے حال بہ ئے متغیره شي او کهٔ اوګوری چه دَ غوا سرہ ئے جنګ کړے دے تعبیرئے پہ هغه ملک کښې بہ دَ ښځې سرہ جنګ کوي او کهٔ اوګوری چه پہ هغه ځمکه کښې غواګانے لوټ کیدلے تعبیرئے پہ هغه کال کښې بہ مال او نعمت بہ بیا مومي او کهٔ اووینی چه غوا خوړلے دے تعبیرئے خپل عیال بہ ورسرہ خیانت کوي او کهٔ اووینی چه ناڅاپہ غوا دَ دهٔ کور تہ راغله تعبیرئے ناڅاپہ بہ مال بیا مومي۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، پہ خوب کښې دَ غوا لیدل پہ شپږو وجوهو دي (۱) حکومت (۲) مال (۳) سرداري (۴) ریاست (۵) بنسهٔ والے (۶) بنسهٔ کار۔

## دَ غوا بچے (سخے) (ګوساله)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، کهٔ اوګوری چه نر سخے ئے نیولے دے او یا ورته چا ورکړے

دَ تعبیر ئے دَادهٔ به زوئ پیدا اکیږی اوکهٔ اوګورئ چه سخئ (ماده) ده تعبیر ئے ځینئ به ئے کیږی اوکهٔ اوګوری چه سخے ئے کورته بوتلے دے اولاس ئے پرے وَهلے دے تعبیر ئے غمژن به شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه سخے ئے مړشوے دے تعبیر ئے زوئ به ئے مړکیږی اوکهٔ اوګوری چه ځنګلی سخے ئے نیولے دے تعبیر ئے دَدهٔ زوئ به پیدا اکیږی اوکهٔ اوګوری چه په سخی سورشوے دے تعبیر ئے دَ عجمی بادشاه سره به یوځائے شی اوبزرګی به ورته بیا مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه سخے ئے مړشوے دے تعبیر ئے زوئ به ئے مړکیږی اوکهٔ اوګوری چه سخے ئے ضائع شوے دے تعبیر ئے زامن به ورنه جُدائی تلاش کوی اوکهٔ اوګوری چه سخے لری او دَ هغهٔ غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے دَ زوئ میراث به خوری۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه سپین سخے دے تعبیر ئے دَدهٔ زوئ به مبارک، پرهیزګاره اومالداره وی اوکهٔ برګ سخے اوګوری تعبیر ئے متوسط حاله به وی اوکهٔ چاقه اوقوی سخے اوګوری تعبیر ئے زوئ به ئے صحت مند اونیک حاله به وی اوکهٔ خوار اوکمزورے اوګوری تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

## غوټه اچول (ګره افګندن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه رسئ ته ئے غوټه ورکړے ده تعبیر ئے دَ کوم کار نه چه لرے وی په هغے به یقین کوی اوکهٔ اووینی چه داسے غوټه ئے پرا نستلے ده تعبیر ئے په هغه کار به اعتماد نهٔ کوی۔

کهٔ اوګوری چه څهٔ شے ئے په خوب کښ مضبوط تړلے دے اوغوټه ئے ورته اچولے ده تعبیر ئے ترڅهٔ وخته پورے به هغه کار کښ ایسار وی داسے چه نه ربه ئے نشی پرا نستلے اګرکهٔ هغه شے چه په دین یا په دُنیا پورے تعلق لری۔ حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښ غوټه اچول دَ کار رونو دَ بندیدو تعبیر لری چه هرڅومره سخته غوټه ئے اچولی وی دَ هغے په اندازه به دَ کار سختوالے وی اوکهٔ اوګوری چه غوټه ئے نشوه پرا نستے تعبیر ئے، کار به ئے بند وی۔

## غرئیز کارغهٔ (کلاغ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ غرئیز کارغهٔ (کلاغ) لیدل یو فاسق اوبے

ناسرے دے۔ کۀ څوک په خوب کښې اوګوري چه کلاغ ئے نیولے دے
تعبیرے ئے دَ چا نه به په دردغه او چل سرهٔ غنیمت حاصلوي او کۀ اوګوري
چه کلاغ دَ ونې دَ ښاخ دَ پاسه ناست دے او آواز کوي تعبیرے ئے دَ دهٔ په
مال دے او کۀ دوه اوګوري تعبیرے ئے تکلیف او مشقت دے او دَ کلاغ په
غوښه لوکښې خیر نشته دے۔

**غنم (گندم)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې غنم لیدل حلال
مال دے چه په تکلیف سرهٔ حاصلیږي، کۀ اوګوري چه
غنم خوري تعبیرے ئے دا دے چه صالح او نیک عمله به وي او کۀ پاخه کړي ئے
خوړلي تعبیرے ئے غمژن به شي، او کۀ اوګوري چه دَ دهٔ خیټه تر غُلے پورے
دوچوغنمونه ډکه ده تعبیرے ئے دَ دهٔ عمر به ختم شوے وي۔
حضرت کرمانيؒ فرمائي، کۀ اوګوري چه دَ غنمو اوږے خوري تعبیرے ئے په
هغه ملک کښې به قحط او سختي را ښکاره شي دَ الله تعالیٰ قول دے (سَبْعَ سُنْبُلٰتٍ
خُضْرٍ وَّاُخَرَ یٰبِسٰتٍ) ترجمه (اووه وږي شنه او نور اووه وچ دي)
کۀ اوګوري چه غنم کري تعبیرے ئے دا دے چه الله تعالیٰ به هغه ملک
کښې غله ارزانه کړي۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښې غنم لیدل په دریو وجو
دي (۱) دَ ولایت نه لرے کیدل (۲) کومک (۳) مُسافري۔
حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائي، کۀ اوګوري په خوب کښې چه وریت
کړي غنم خوري تعبیرے ئے، څهٔ نفع به نۀ مومي او کۀ اوګوري په خوب کښې
چه غنم ئے په خپل وخت کرلي دي تعبیرے ئے، ډیر مال به په سختئي سره
حاصل کړي او دَ غنمو خرخوونکے داسے سړے دے چه دَ دین په عوض کښې
دُنیا غوره کوي۔

**دَ غریو بوټے دے (کنگر)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، کۀ اوګوري چه
کنګرے ئے په خپل موسم کښې خوړلي دي
تعبیرے ئے غم او فکر به ورته رسیږي او دَ کنګر خوړل په خوب کښې څهٔ فائده نشته
او کۀ اوګوري چه کنګرلري او خوړلي ئے نۀ دي تعبیرے ئے غم او فکر به ئے کم وي۔

**غوږ (گوش)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، کۀ څوک په خوب کښې اوګوري
چه غوږ ئے پر یوتے دے او یا پریکړے شوے دے تعبیر

ئے بنځه ته به طلاق ورکوی او یا به ئے لوړ مره کیږی او یا به د خپلوانو نه جُدا او ځنی وائی چه مرګ به ئے نزدے شوے وی او که کونړ شوے وی دا سے چه څهٔ ئے نۀ شوه او ریدلے تعبیرئے دَ دهٔ دَ دین او دُنیا فساد دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښں دَ غوږ لیدل په اتۀ وجوی (۱) بنځه (۲) خیر (۳) ملګری (۴) تلل (۵) زوئ (۶) غلام (۷) مال (۸) مال او مراد۔

## غر (کوه)

حضرت دانیالؑ فرمائی، کهٔ خپل ځان په اوچت غرهٔ اوګوری او پوهیږی چه دا غر دَ دهٔ ملکیت دے تعبیرئے څوک سردار سړے به ئے خپل پناه کښں اخلی او کهٔ اوګوری چه غرئے دَ خپل ځائے نه رابنکلے دے تعبیرئے څوک لوئے سړے به مغلوب کړی او کهٔ اوګوری چه دهٔ پرے ځائے نیولے دے تعبیرئے دَ لوئے سړی نه عزت او مرتبه بیا موی او ځنو معبرینو بیان کړی دی کهٔ اوګوری چه په تکلیف او سختئ سره په غرهٔ ختلے دے تعبیرئے غم او فکر په ورته رسیږی او کهٔ اوګوری چه دَ غرهٔ نه راکوز شوے دے تعبیرئے دا دے چه دَ دهٔ به عزت او مرتبه کښں به نقصان راشی او کهٔ اوګوری چه دَ غرهٔ دَ پاسه ئے ځائے جوړ کړے تعبیرئے دَ بادشاه نه به عزت بیا موی او خاص سړے به ئے وی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ غرهٔ دَ پاسه ئے مونځ کړے دے او یا ئے ودرېدلے دے دَ ماښځه دَ پاره اذان کړے دے تعبیرئے دَ دهٔ کار به نیک شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښں غر ته یا محل ته پورته ختل تعبیرئے چه څهٔ مقصد لری پوره به شی او کهٔ لاندے راغلے وی تعبیرئے دَ دے خلاف دے او کهٔ اوګوری چه دَ غرهٔ په لمن کښں پریوتے دے تعبیرئے غمژن به شی۔ او کهٔ اوګوری چه دَ غرهٔ په لمن کښں ئے مونځ کړے دے تعبیرئے دا سے کار به کوی چه دَ دین موافق به وی کهٔ اوګوری چه په غرهٔ کښں دهٔ سره دَ بادشا ملګرے دے تعبیرئے دَ بادشاه نه به عزت بیا موی، کهٔ اوګوری چه غر او خوځید لو تعبیرئے دلته به څوک سړے بیمار شی او صحتمند به شی او کهٔ اوګوری چه غرئے په آسانئ سره اوکنستلو تعبیرئے زر به ورکړه بیا موی کهٔ اوګوری چه دَ خاورو غر دے تعبیرئے دَ بخیل سردار نه به طمع کوی او کهٔ اوګوری چه کوهِ قاف باندے ناست دے تعبیرئے مرګ به ئے نزدے شوے

دی او کهٔ اوګوری چه په کوږ طور ناست دے تعبیرئے دَ بادشاه به په دهٔ اعتماد دی او مراد به ئے پوره شی او کهٔ اوګوری چه دَ عرفات په غر ناست دے تعبیر ئے توبه به او باسی او په ګناه به پښیمانه وی او کهٔ اوګوری چه دَ غرهٔ دَ پاسه دَ لبنان دے تعبیرئے دَ عالمانو او نیکانو سره به ناسته لری او کهٔ اوګوری چه په تیارهٔ غر کښ دے تعبیرئے دَ مرګ یره به ورته وی۔

او کهٔ اوګوری چه په غرهٔ کښ بے لارے شوے دے، تعبیرئے مرګ به ئے نزدے شوے وی او یا به قید خانے ته ځی او کهٔ اوګوری چه په روښانه غرهٔ دے تعبیرئے مال به مومی۔

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائی، کهٔ اوګوری چه په خراب غرهٔ ناست دے او کانړی ئے وران وران دی او دے په کښتهٔ سخته ځی او غشی ولی تعبیرئے دهٔ ته به دَ ظالم بادشاه نه ویره وی او کهٔ اوګوری چه دَ دوه غرونو مینځ کښ تللو او غشی ولی تعبیرئے دَ دوه سرو په مینځ کښ به وسیله وی او کهٔ اوګوری چه په سوی غرهٔ کښ دے او هغه سوری کښ دننه تللے دے تعبیرئے دَ بادشاه دَ رازه به خبر شی او کهٔ اوګوری چه دَ هغه سوری نه ئے څهٔ شے ځان سره راوړے دے تعبیرئے دَ هغه بادشاه نه به بخشش بیا مومی۔

حضرت حافظ فرمائی، کهٔ اوګوری چه په غر ختلے دے تعبیرئے لَوئے سړی په خدمت کښ به مشغول شی او کهٔ اوګوری چه دَ غرونو نه ئے کانړی راخستی دی او هر کانړے ئے په خپل ځائے کیښودلو او دَ هغه ځائے نه به ئے اخستلو او په غرباندے به ئے کیښودلو تعبیرئے په غصه سره به مال را جمع کوی او کهٔ اوګوری چه په غرهٔ کښ ئے ځائے اخستے دے تعبیرئے خوب لیدونکے به دَ لوئے سړی خدمت کوی او دَ هغهٔ نه به نفع بیا مومی او کهٔ اوګوری چه دَ غرهٔ نه لاندے پریوتے دے تعبیرئے مراد به ئے په لاس ورشی او کهٔ اوګوری چه په غرهٔ دَ چونے او دَ مخو خښتو پوړے جوړے شوی دی او په دے پوړی دَ غرهٔ دَ پاسه ختلے دے تعبیرئے مراد به ئے زر حاصلیږی او کهٔ اوګوری چه پوړئ دَ خامو (کچه) خښتو او دَ ختو دی، تعبیرئے بنهٔ دے۔ او کهٔ دَ تانبے وی نو بد دے او کهٔ دَ بهرت (دیګچون) پوړئ وی تعبیرئے مراد به ئے نهٔ پوره کیږی او کهٔ او وینی چه دَ او چت غرهٔ په سر ولاړ دے تعبیرئے دَ بادشاه خاص سړے به شی او ډیر مال به بیا مومی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې د غرهٔ لیدل په پنځو وجووی.
(۱) بادشاهی (۲) منښتې توب (۳) کامیابی (۴) اوچتوالی (۵) سرداری مونډل.

## غمے، کنجکه (مهره)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه غمے ئې پیدا کړے دے یائې اخستې دے او یا ورته چا ورکړے دے تعبیر ئې د هغې د قیمت په اندازه به مال ورته ورسیږی او یا به ورته خدمتګار حاصل شی او کهٔ اوګوری چه غمے پاك او سپین دے تعبیر ئې هغه خدمتګار به صالح او پرهیزګاره وی. او کهٔ شین غمے اوګوری تعبیرئې خدمتګار به ئې مُبارك وی. او کهٔ زیړ غمے اوګوری تعبیرئې د دهٔ خدمتګار به بیمار وی او کهٔ تور غمے اوګوری تعبیرئې د دهٔ خدمتګار به سخت زړهٔ والا او بد خویه وی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې د غمے لیدل په اووه وجو وی (۱) ښځه (۲) خدمتګار (۳) وینزه (۴) مال (۵) ادب او کمال (۶) زوئ (۷) غلام. او هر څومره زیاتوالے یا کموالے چه په غمی کښې اوګوری تعبیرئې په دے او منکورو کښې به وی.

## غوټه ورکول (بندنهادن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوك په خپله خیه کښې غوټه اوګوری تعبیر ئې ډیره ده او کهٔ په خپو کښې دوه غوټے اوګوری او په مسجد کښې وی تعبیرئې خوب لیدونکے به په مونځ کښې یا جهاد یا نورخه کار چه د دین د اصلاح دپاره کوی په هغې به محکم وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اووینی چه غوټه د دهٔ په خپو کښې ده او د سفر اراده ئې هم ده تعبیرئې دے به په سفر کښې مقیم وی چه هر څومره مضبوطه غوټه اووینی د هغې په اندازه هلته په سفر کښې به ئې اقامت زیات وی او که سیږدے غوټه اووینی دا ښهٔ ده د تنګے غوټے نه. کهٔ اوګوری چه د تانبے غوټه ده. هم دغه تعبیر لری او کهٔ د اوسپنے غوټه اووینی تعبیر ئې هم دغه تیرشوے دے او کهٔ د رسئ غوټه اووینی تعبیرئې د دهٔ تاموالے به د دین دپاره وی او کهٔ د لرګی غوټه وی تعبیرئې د دهٔ اقامت به د دین د فساد دپاره وی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، کهٔ بیمار سړے اووینی چه په خپو کښې ئې غوټه

ده تعبیر ئے دَ هغه تکلیف نه به خلاصے موجی کهٔ بادشاه اوګوری چه په خپوکښ
ئے غوټه ده تعبیر ئے دَ دهٔ بادشاهي به دوام داره وی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خپوکښ غوټه لیدل په دریو وجو وی
(۱) په دین باندے ثابت قدمی (۲) واده کول (۳) دَ سفرنه واپس راتلل۔
خلاصه دا ده چه په خوب کښ اوګوری چه دَ دهٔ په خپوکښ غوټه ده کهٔ
په نیکئ کښ وی نو به نیکئ کښ په پائیداره وی او کهٔ په بدئ کښ وی نو په
بدئ کښ به پائیداره وی۔

## دَغشي سُوکه (پیکان)

په خوب کښ دَ غشی څوکه لیدل بزرګ او ډیر خطرناك سړے دے کهٔ اوګوری چه
ډیر تیرهٔ غشے ئے اوموندلو او یا ورته چاورکړو تعبیر ئے کار به ئے په درستیٔ
سره حاصلیږی۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، په خوب کښ دَ غشی سُوکه لیدل په خبروکښ قوت
دے چه مقابل ته ئے وائی کهٔ دَ غشی سُوکه دَ فولاد دو وی او چمک وهی کهٔ ماته
یا زنګ وهلی وی تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

## دَغابښونو خلال کول (خلال کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښ دَ غابښونو
خلال کول ښهٔ نهٔ دی ځکه چه غابښونه په خوب کښ دَ کور خلک دی او خلال
دَ جارو مثال لری چه دَ کور دَ خلکو مال جاروکوی کهٔ اووینی چه خلال کوی
تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به ئے غابښونه اوځی او دَ کور دَ خلکو نقصان دے۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دَ خلال سره ئے څهٔ غابښونه راوتی
دی او چاترے ورکړی دی تعبیر ئے دَ کور دَ خلکو مال به په ناحق سره اخلی
او چاته به ئے ورکوی۔

## غوز (ګوز)

غوز په خوب کښ هغه مال دے چه په سختیٔ او په خفګان ئے لاس ته راوړی، کهٔ اووینی چه په غوز ئے
لوبے کړی دی یا غوز دَ دهٔ په لاس کښ دے تعبیر ئے جنګ او جګړه ده۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، هغه غوز چه دَ هغے چکئ تباه شوے وی
تعبیر ئے دَ هغے غوز دَ کمی او زیاتی په اندازه به حرام مال بیا موجی۔
او کهٔ دَ غوز دَ چکئ خوند ښهٔ وو تعبیر ئے حلال مال به ورته

ورسیږی کهٔ اوویني چه غوز ماتوی، تعبیر ئے دَ عجمی سړی نه به مال اَخلي۔

حضرت مغربی رحمۃ اللہ علیہ فرمائی، کهٔ اوویني چه غوز ورسره دے تعبیرئے دا دے چه په جنګ او جګړه کښې به پریوځی کهٔ اوویني چه غوز تریخ اوبے خونده دے، تعبیرئے دَ بخیل سړی نه به ناخوښه خبره واوری کهٔ اوویني چه دَ غوز دَ چکئ نه ئے تیل راویستی دی تعبیرئے دَ بخیل سړی نه به ورته نفع ورسیږی۔

## "ف" فیروزه (پیروزه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، فیروزه په خوب کښې لیدل تعبیرئے فتحه، قوت اومراد حاصلیدل دی کهٔ اوویني چه فیروزه ورنه ضائع شوے ده تعبیر ئے مراد به ئے پوره نشی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، کهٔ څوک اوګوری چه دهٔ سره ډیرے فیروزے دی، تعبیرئے دَ دے په اندازه به ورته قوت حاصل شی اوعزت اوسرداری به بیا مومی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ فیروزے لیدل په خوب کښې په څلورو وجوی (۱) کامیابی اوکومک (۲) حاجت پوره کیدل (۳) قوت (۴) ولایت۔

## فال نیول (فال گرفتن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک اوویني چه فال ئے نیولے دے اوفال ئے ښهٔ ختلے دے تعبیرئے په دُښمن به کامیابیږی اوکهٔ اوګوری چه دَ فال نیولو کار کوی تعبیر ئے دے به ډیره کهوپره خوری۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ فال نیول په دریو وجوی په دُښمن کامیابی (۲) مراد موندل (۳) حاجت پوره کیدل، داکهٔ نیک فال وی اوکهٔ بد فال وی تعبیرئے دَ دے خلاف دے۔

## فقیری (درویشی)

په خوب کښې فقیری دَ مالداری نه ښهٔ ده خاصکر چه دَ دین په اصلاح اولاره کښې وی، کهٔ اوګوری په خوب کښې چه فقیرشوے دے تعبیرئے، دَ دین په ښهٔ والی دے اوکهٔ اوګوری چه مالداره شوے دے تعبیرئے دَ دے خلاف دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ چرے په خوب کښې ئے غریب مُسلمان ته خیرات

ورکړو تعبیر ئے دَ غم او فکرونه به خلاصے بیا مومی کهٔ اوګوری چه دروازه په دروازه ګرځی او ډوډئ غواړی تعبیر ئے، خیرا و نفع به ورته ورسیږی۔

## فالوده

فالوده کهٔ دَ زعفرانو سره وی نو تعبیر ئے بیماری ده دَ فالودے لیدل په خوب کښې چه څومره اور ورته سړ سیډلے وی دَ هغے په اندازه به غم او جګړه ده کهٔ اوګوری چه فالوده ئے خولے ته سړ سیډلے ده تعبیر ئے، پاکیزه خبره به کوی کهٔ اوګوری چه دَ فالودے نوړے ئے چاته ورکړیدٔ تعبیر ئے، هغه کس به دهٔ ته پاکیزه خبره کوی او یا به دَ دهٔ دَ پاره کار کوی۔

حضرت امام جعفر صادق رحمة الله علیه فرمائی، په خوب کښې دَ فالودے لیدل په څلورو وجوی (۱) ښهٔ خبره (۲) مال (۳) نفع (۴) په هغه کار کښې جنګ چه په مشکله سره کیږی۔

## فتنه

حضرت ابن سیرین رحمة الله علیه فرمائی، کهٔ په خوب کښې اوګوری چه دَ کوم ځائے نه فتنه لری شوے ده تعبیر ئے، دَ هغه ځائے خلک به الله تعالیٰ ته رجوع کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ په دے خوشیانو کښې که یو هم اوګوری تعبیر ئے په هغه ملک کښې به بلا او فتنه پریوځی (۱) تیاره (۲) اور (۳) یخه هوا (باد) (۴) ګرمه هوا (باد) (۵) دَ نمرا و سپوږمۍ تورېدل (۶) ګرد (۷) باران (۸) ونے دَ یخ نه وتل (۹) توره یا سره وریځ (۱۰) سره او نره یره کیږه اغوستل۔

## فراخی

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اوګوری چه دَ تنګ ځائے نه فراخ ځائے ته راغلے دے یا دَ تکلیف نه آسانئ طرف ته لاړ دے تعبیر ئے، دَ غم نه به بے غمه شی او دَ غم نه به خلاصے بیا مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه خپل کورور باندے فراخه شوے تعبیر ئے، په عیال او اولاد به ئے روزی فراخه شی او کهٔ اوګوری چه کورور باندے تنګ شوے دے تعبیر ئے په اولاد به ئے روزی تنګه شی او کهٔ اوګوری چه کورور باندے تنګ شوے دے او بیا ور باندے فراخه شوے دے تعبیر ئے، دَ الله تعالیٰ په دین به برابر شی خلاصه دا ده چه دَ تنګ شیانو فراخه کیدل تعبیر ئے په ټولو کارونو کښې پرانسته ده او په هر شی کښې برکت پیدا کیدل دی۔

## فرش غوړونکے (فراش)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، دَ فرش غوړولو والا په خوب کښې لیدل دلاله بنځه ده چه

د خلکو د پاره ښځه غواړي.

## فرش (بساط)

د فرش لیدل په خوب کښې خوشحالي ده که اوویني چه فرش ئې غوړولے دے او ور باندے ناست دے تعبیر ئې روزي به ئې فراخه شي او عمر به ئې اوږد دوي.

حضرت مغربیؒ فرمائي، که اوویني چه نوے، فراخه او پاکیزه فرش لري تعبیر ئې مال او نعمت به ورته ډیر زر حاصل شي خاصکر چه غوړیدلے فرش اوکوري او که اوکوري چه فرش ئې خرڅ کړے دے او یا ئې چا ته ښیلے دے تعبیر ئې په مال کښې به ئې کمے راځي او که اوویني چه فرش ئې سوزیدلے دے تعبیر ئې روزي به ور باندے بنده شي او حال به ئې بد شي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، د نوي او فراخ فرش لیدل په خوب کښې په شپږ وجوه دي (۱) عزت او مرتبه (۲) سرداري او اوچتوالے (۳) مرتبه (۴) مال (۵) ډیر عمر (۶) تعریف ئې د هغې د فراخوالي په اندازه او که د فرش قیمت واخلي تعبیر ئې د دے خلاف دے.

## فرعون

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که اوکوري په خوب کښې چه د فرعونیانو نه څوک یا د محکیني ظالمانو بادشاهانو نه څوک ښار ته راغلے دے او هلته کښې ډیره شوے دے تعبیر ئې په هغه ښار کښې به د فرعون خوی او اخلاق ښکاره شي. او که اوکوري چه د محکیني بادشاهانو نه یو هغه ښار ته راغلے دے تعبیر ئې د هغه بادشاه د عدل خوی به هغه ملک کښې ښکاره شي.

حضرت مغربیؒ فرمائي، که اوویني چه فرعون تحفه ورکړے ده او یا ئې ورته بخشش کړے دے تعبیر ئې د هغې په اندازه به د ظالم بادشاه نه مال حاصلوي او یا به د لوټے سړي نه په حرامه مال حاصلوي.

## فانوس (قندیل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې د فانوس بلول د عبادت توفیق دے خاصکر چه رڼا ئې ورکړې وي که څوک په خوب کښې اوویني چه په کور کښې ئې فانوس بل شوے تعبیر ئې صالحه او پرهیزګاره ښځه به کوي او که دا خوب ښځه اوویني تعبیر ئې ډیر زیات عبادت او بندګي به کوي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، د فانوس بلول په خوب کښې لیدل په څلور وجوه دي (۱) واده کول (۲) توفیق (۳) عزت او دولت (۴) د بندګانو کارونو پرانستل او د فانوس

لیدل چه نهٔ وی بل شوے په خوب کښې لره فائدهٔ ده۔

## فرمان (منشور)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه پرهیزګاراو عالم سړی ورته فرمان ورکړے دے چه دے کارته تیار اوسه تعبیرئے دَدین اودَ آخرت اصلاح ده اودَ دُنیا اودَ آخرت سعادت به بیا مومی اوکهٔ دَدے خلاف اوګوری تعبیرئے نجات به نهٔ مومی اوکهٔ اوګوری چه بادشاه وَرَ فرمان ورکړے دے تعبیرئے عزت اومشری به بیا مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی کهٔ اوګوری چه بادشاه ورته فرمان ورکړیدے اوپه هغه بښار کښې مصلح خلک دو تعبیرئے دَ بادشاه نه به لویه مرتبه مومی او ټول کاروبنه ئے په نظم شی او کهٔ اوګوری چه هغه ښار خراب اوبدنام وطن دے تعبیرئے دَدے خلاف دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه کومے فرښتے یاکوم پیغمبر په خط لیکلے فرمان ورکړے دے تعبیرئے الله تعالیٰ به ورنه راضی او بخښش به ورته وکړی اوکهٔ تور فرمان وی تعبیرئے دَدے خلاف دے۔

## فرضی مارغهٔ "همائی"

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، همائی مارغهٔ په خوب کښې لیدل تعبیرئے دولت، بزرګی او مرتبه اوکامیابی ده، کهٔ اوګوری چه همائی مارغهٔ لری تعبیرئے دَ همائی په اندازه به دولت اوعزت بیا مومی اوکهٔ اوګوری چه همائی مارغهٔ ئے دَ لاسه اَلوتے دے تعبیر ئے په عزت اومرتبه کښې به ئے کے راشی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، همائی لیدل په خوب کښې بادشاه یا رئیس یا څوک عزتمند سړے لیدل دی کهٔ اوګوری چه همائی ئے وژلے اودَ هغهٔ غوښه ئے خوړلے ده تعبیرئے، په چا مشرسړی به کامیابی حاصلوی اودَ هغهٔ مال به اخلی اوو به ئے خوری اوکهٔ اووینی چه همائی لری تعبیرئے کوم کسان چه وو ټیل شول دَدوئ نه به خیراونفع بیا مومی اوکهٔ اوګوری چه همائی ئے په غشی یا په کا ټو وویشتو تعبیرئے په داسے کسانو پسے به روسته بدے خبرے کوی۔ او کهٔ اوګوری چه همائی ئے زخمی کړے دے تعبیرئے، دَدے کسانو نه به ورته ضرر ورسیږی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، همائی لیدل په خوب کښې په اوو وجوو دی (۱) بادشاه (۲) رئیس (۳) څوک عزتمند سړے (۴) دولت (۵) مشری (۶) حکومت (۷) عزت او بخت۔

## فنک (دَ ځناور یو قسم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی دَ فنک لیدل په خوب کښې یو مسافر مالدار سړے دے او دَ خلکو په نزد غریب طبیعه سړے دے۔ دَ دے پوستکے ویښتهٔ، هډوکی لیدل، تعبیرئے مال او غوښه توکے دے او دَ دے غوښه تعبیرئے دَ مسافر مالدار مال دے۔ او که اوګوری چه دا ځناور ئے تابعدار نهٔ دے تعبیرئے فائده به او نهٔ مومی۔ که اوګوری چه دا ځناور ئے وژلے دے او دَ دے پوستکے ئے ویستلے دے او غوښه ئے غورزولے دهٔ تعبیرئے دَ مسافر سړی مال به هلاک کړی۔

او که اوګوری چه دَ فنک مړئ دهٔ خفه کړے دهٔ او دَ مړئ نه ئے وینه روانه شوے دهٔ۔ تعبیرئے مسافره پیغله جینئ به ایساره کړی۔ او که اوګوری چه دَ فنک ځناور ډیر زیات ورته راجمع شوی دی او دَ دوی نه ئے څهٔ تکلیف نهٔ دے لیدلے تعبیرئے چرته دَ ډلے په منځ کښې به راشی او دَ دوی نه به نفع او مومی او که دَ دے خلاف اوګوری تعبیرئے نقصان به او مومی۔

## فال اخستل دَ مرغانو دَ آوازنه (زجر)

که اووینی چه دَ مرغانو دَ آوازنه ئے فال اخستے دے تعبیرئے غرور او دَ دُنیا دروغ دی۔ او فال اخستل په خوب کښې او په بیدارئ کښې دَ تعبیر لمخے دواړه بد دی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اووینی چه دَ مارغانو په آواز فال نیسی تعبیرئے، دَ دُنیا باطلو ته به مائله وی او دَ دین په لاره کښې به مشغوله وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که څوک اووینی چه دَ مارغانو په آواز فال نیسی که طاق وی تعبیرئے نیک دے او که عدد ئے جُفت وی تعبیرئے بیمار به شی او جوړ به شی۔

## قچر (استر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې قچر لیدل که تابع وی تعبیرئے ښهٔ خویه سړے دے او که تابع نهٔ وی نو بد خویه سړے لیدل دی او که اوګوری چه په بے زینه قچر ناست دے او نه پوهیږی چه دا دَ چا قچر دے تعبیرئے په سفر به ځی۔ او که اوګوری چه په خپل قچر ناست دے او سفرئے کړے دے تعبیرئے نفع به بیا مومی او که اوګوری چه په قچر ئے نزمه

کډئی یا بالبنت یا ډولی کډیلئ ایښی ده تعبیرئے، دَ دهٔ ښځه به شنډه وی خاصکرچه قچر دَ دهٔ وی او یا ورته چا بخښلے وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی کهٔ اوګوری چه په توره قچره ناست دے او اوچت لوړ دے۔ تعبیرئے، عزتمنده ښځه به کوی او کهٔ سپین قچره وړ اووینی تعبیرئے، هغه ښځه چه دے ئے غواړی ښائسته او نیک خویه به وی او کهٔ زوړشین قچر اوګوری تعبیرئے، هغه ښځه به دینداره، او پرهیزګاره وی او کهٔ سور قچر اووینی تعبیرئے، دَ دهٔ ښځه به عشق پرسته وی (لهولعب به ئے خوښ وی) او کهٔ زیړ قچر اوګوری تعبیرئے دَ دهٔ ښځه به بیماره او زیږه وی او کهٔ برېښ او تا بعدار قچر اوګوری تعبیرئے سرې به ضعیف وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی چه قچره په خوب کښې آقازاده ده او کهٔ ښځه قچره اووینی نو په سفر به ځی او ځنو ماهرینو استاذانو دَ دے علم وئیلی دی چه نر قچر سړے دے او ښځه قچره ښځه ده۔ کهٔ اوګوری چه دَ چانه ئے ښځه قچره اخستے ده تعبیرئے، دَ چانه به وینزه اخلی او کهٔ اوګوری چه ښځه قچره ئے خرڅه کړے ده تعبیرئے، وینزه به خرڅوی او یا به دَ وینزے نه جُدا شی او کهٔ اوګوری چه په ښځه قچره ناست دے تعبیرئے دا دے ښځه به کوی چه اولاد به نهٔ راوړی او کهٔ اوګوری چه په قچر ناست دے تعبیرئے، عمر به ئے زیات شی او مراد به ئے پوره شی او کهٔ اوګوری چه قچر ورپسے منډے وهی تعبیرئے غم به ورته رسیږی.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی کهٔ اوګوری چه قچره ژړا کوی تعبیرئے دَ ښځو دَ طرفه ناړیاتی او دَ مال دے او کهٔ اووینی چه قچرے عجیبه کار به مخے ته ورته راشی چه خلق به ورته خبرے کړی تعبیرئے، مال به بیا تعبیرئے وژلے دے تعبیرئے، مال به بیا حیران وی۔ او کهٔ اوګوری چه قچر مړ شوے او ضائع شوے تعبیرئے، دَ ښځے موهی او کهٔ اوګوری چه قچر مړ شوے تعبیرئے، دَ یو سړی دَ ملګرتیا یا دَ وینزے نه به جُدا شی او کهٔ نر قچر وی تعبیرئے، دَ یو سړی دَ ملګرتیا یا دَ وینزے نه به جُدا شی او دَ قچر خرمن او غوښه مال دے او ځنی معبرینو داسے فرمائیلی دی چه دَ قچر غوښه بیماری ده او که اووینی چه دَ قچرے پئی ئے څښلی تعبیرئے سختی، یره، خطره دَ پیسو په اندازه ده چه څومره

دهٔ ښښلی وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی دَ قچرے لیدل په خوب کښ په پنځو وجوو وی (۱) سفر (۲) ډیر عمر (۳) په دښمن کامیابی (۴) بشاشت او سهولتونه (۵) بیوقوف سړی او ښځه قچره شنډه ښځه ده او دَ قچر بچے نفع او مراد موندل دی۔

**قید کول (پابندائی کردن)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که په خوب کښ څوک اوګوری چه څوک ئے قیدی کړے تعبیر ئے دَ دهٔ کار به پائیداروی او ورنه به نهٔ جُدا کیږی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ قید کول په دریو وَجودی (۱) هغه کس چه قیدی کړیں ے دَ هغهٔ به مقیم وی (۲) په هغهٔ به بخشش کوی (۳) خیر او نفع به ورته ورسیږی۔ او که اووینی چه دَ قید شوو نه یو کس بهر راوتے دے تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

**قباله (چک)۔(دَ زمکے دَ انتقال خط نه وائی)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی، که څوک اوګوری چه دهٔ سره قباله یا خط دے تعبیر ئے دَ هغے خط په اندازه به حکمت ورته حاصلیږی که اوګوری چه بادشاه ورته قباله یا خط دهٔ ته ورکړے دے تعبیر ئے دَ یو ے صوبے حاکم به ئے جوړ کړی چه قاضی ورته قباله خط ورکړے دے تعبیر ئے دهٔ ته به دَ شریعت علم حاصل شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائیلی دی، قباله په خوب کښے په شپږو وجو وی (۱) ریاست (۲) پوهه (۳) نفع (۴) حکمرانی (۵) دلیل (۶) قوت

**قمیص (پیراهن)** حضرت دانیالؑ فرمائی۔ په خوب کښ دَ سپین قمیص لیدل دَ سړی لیدل دی او ځنی معبرینو فرمائیلی دی چه قمیص ښځه ده او دَ هغهٔ دَ مال او دَ کسب حالت دے که وګوری چه نوے او فراخ قمیص ئے اچولے دے تعبیر ئے اصلاح او دَ حال دَ ښهٔ والی تعبیر لری او که وګوری چه دَ قمیص یوه حصه ئے شلیدلے ده تعبیر ئے دَ نیکئ او بدئ میانه روی ده، او که اوګوری چه دَ دهٔ قمیص زوړ او خیرن دے تعبیر ئے فقیری، ناداری، غم او فکر به ورته رسیږی او چه څومره ډیر خیرن، زوړ او شلیدلے قمیص

اوګوري دَ هغې په اندازه به ورته بلا، مصیبت اوویره زیاته وي . او دومره زیاته ویره به وي چه دَ خوب لیدونکے به هلاک شي اوکهٔ څوک اوګوري چه بادشاه خپل قمیص ورکړے او دهٔ اغوستے دے تعبیر ئے دَ دهٔ نه به بادشاهي واخلي .

حضرت کرمانيؒ فرمائي. کهٔ څوک په خوب کښې اوګوري چه نوے قمیص ئے اچولے دے تعبیر ئے په ښکاره به ښهٔ وي او په پټه به بد وي اوکهٔ اووینې چه قمیص او پرتوګ ئے دواړه خیرن دي او دواړه دي تعبیر ئے کهٔ مالداره وي نو فقیر به شي او غم او فکر کښې به ګرفتار شي.

حضرت جابر مغربيؒ فرمائي. کهٔ څوک په خوب کښې اوګوري چه قمیص ئے نوے او فراخ اغوستے لري تعبیر ئے زندګي به ورباندے فراخه شي اوکهٔ اوګوري چه دَ دهٔ قمیص تنګ دے تعبیر ئے ژوند به ورباندے تنګ شي اوکهٔ اوګوري چه دَ دهٔ قمیص شلیدلے دے تعبیر ئے دَ دهٔ راز به ښکاره شي اوکهٔ اوګوري چه دَ دهٔ قمیص بې ګریوانه او بې لستونړو دے او یوه کریښه پکښې ده او دهٔ اغوستے دے تعبیر ئے دَ دهٔ مرګ به نزدے شوے وي اوکهٔ اووینې په خوب کښې چه دے اوږد قمیص لري تعبیر ئے کار به ئے بد وي او مراد به ئے نهٔ پوره کیږي اوکهٔ اووینې چه دَ قمیص ګریوان دَ شا نه شلیدلے دے تعبیر ئے په دهٔ به دَ دروغو تهمت ولګیږي دَ الله تعالیٰ قول دے (وَإِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ فَكَذَبَتْ[1] (کهٔ قمیص ئے دَ روستو نه شلیدلے وي نو هغه دروغژنه ده) . اوکهٔ دَ ګوري چه قمیص ئے چا ته ورکړے دے او هغهٔ دا قمیص پخپله اغوستے دے تعبیر ئے بے غمه به شي او دَ یوځائے نه به دَ خوشالۍ زیرے ورته مِلاوُ شي. دَ الله تعالیٰ قول دے (اِذْهَبُوْا بِقَمِيصِي هَذَا فَأَلْقُوهُ عَلَى وَجْهِ أَبِي يَأْتِ بَصِيرًا)[2] ترجمه : زما دا قمیص یوسئ او زما دَ پلار په مخ ئے واچوئ هغه به بینا راشي) .

اوکهٔ اوګوري چه دَ دهٔ لاس کښې قمیص په وینو لړلے دے تعبیر ئے په اوږد کار کښې او په غم کښې به پاتې شي اوکهٔ اووینې چه قمیص ئے شلیدلے اغوستے دے تعبیر ئے، کار به ئے خراب وي او راز به ئے ښکاره شي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي کهٔ په خوب کښې دَ نوي او فراخ

(۱) یوسف ۲۷ (۲) یوسف ۹۳

قمیص لیدل په شپږ وجوو ی (۱) دَ خلکو لیدل (۲) پرده (۳) ښه ژوند (۴) ریاست (۵) آرام اوخوشحالي (۶) دَ خوشحالئ زیرے.

**قلعه (حصار)** که اوګوری چه قلعے ته ننلے دے تعبیرئے دَ دُښمن دَ شره نه به په امن کښ وی او که اوګوری چه دَ قلعے نه بهر راوتے دے په دُښمن به کامیابی بیاموهی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه په مضبوطه قلعه کښ دے او دا دَ هغهٔ قلعه ده تعبیرئے دَ دښمن دَ شره نه به امان اوموهی او که اوګوری چه دَ قلعے نه بهر راوتے دے تعبیرئے دَ دے خلاف دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی، که ځان په قلعه کښ اوګوری تعبیرئے دے په نعمت اوروزی به وربانده فراخه شی او که دَ دے خلاف اوګوری تعبیرئے دَ دهٔ تباهی اودَ کاروبار بندیدل دی.

**قلعه (دژ)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه دهٔ قلعه جوړه کړے ده تعبیرئے دَ دهٔ په اِصلاح دے او که اوګوری چه خپله قلعه ئے خرابه کړے ده تعبیرئے دَ دهٔ دَ دین دَ تباهئ او دَ فساد دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی په خوب کښ قلعه لیدل که دَ بنیښو او دَ پخو خښتو جوړه کړی وی تعبیرئے دَ دهٔ خاوند به دوزخی وی او که اوګوری چه دَ ختو او دَ پخو خښتو ئے جوړه کړے ده تعبیرئے دَ جنت دَ خلکو دَ جملی نه به وی او که په مضبوطه قلعه کښ وی تعبیرئے دَ اسلام په دین اولاره کښ به محکم وی او که اوګوری چه هر وخت به دَ قلعه نه راوتو اوننوتو به تعبیرئے دَ دین په کارکښ به پوره نهٔ وی.

حضرت مغربیؒ فرمائی که خپل ځان په قلعه کښ اووینی دَ مغربیؒ دَ قول مطابق تعبیرئے اصلاح دَ دین ده او که دَ دے خلاف اووینی تعبیرئے دَ دین دَ تباهئ او دَ کمزورئ دَ دهٔ دے.

**قلم (خامه)** که اوګوری په خوب کښ چه قلم ئے اخستے دے او یا چا ورکړے دے تعبیرئے عِلم به زده کړی او کار به ئے سم شی او مراد به ئے پوره شی او که اوګوری چه په قلم څهٔ لیکی که هغه نیک بنهٔ وی، تعبیرئے په نیکئ دے او که شروی تعبیرئے په فساد دے. او که اوګوری چه په دوه قلمونو ئے لیکی تعبیرئے چه څوک ئے په سفروی دَ سفر

نه به واپسې راشي.
حضرت کرمانی فرمائي که څوک خپل لاس کښې قلم په لیکلو ووینې
تعبیر ئې دے که د علماء د ډلے نه وي د عالمانو او صالحانو سره به ملګرے
شي او که اوګوري چه په قلم څه لیکي او لوستل کوي تعبیر ئې د دهٔ مرګ دے
د الله تعالیٰ قول دے (اِقْرَأْ كِتَابَكَ كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيْبًا)[1]
ترجمه: نن خپل کتاب ولوله ستا په ځان نن ورځ د احساب کافی دے.) که
هغه څه چه ئې لیکلي وي د اهل السنة والجماعت د کتاب برابر وو تعبیر ئې عزت
او مرتبه به بیا مومي او که اوګوري چه قلم ئې په لاس کښې مات شوے
دے تعبیر ئې عزت به ئې کم شي او کاروبار به ئې خراب وي او که اوګوري چه
په مات قلم ئې لیکل کړي دي که هغه څه چه ئې لیکلي وي که هغه کښې
د ځناورو شمار وو یا د مرغانو تعبیر ئې به ئې د دهٔ د ذات او طبیعت موافق
وي. حضرت امام جعفرصادق فرمائي په خوب کښې قلم په اوو وجوو.
(۱) حکمت (۲) فرمان (۳) علم (۴) کمال (۵) ولایت (۶) سم کیدل د شیانو
(۷) مراد موندل.
قلم. د قلم په تعبیر کښې تعبیر کونکو اختلاف کړے دے.
حضرت ابن سیرین فرمائي. قلم کارحق دے او الله تعالیٰ ته د
لوح محفوظ او د قلم محتاجی نشته دے.
حضرت مغربي فرمائي، قلم یوه فرښته ده چه د الله تعالیٰ په امر
کار کوي، که څوک قلم په خپل صورت او شکل اووینې تعبیر ئې د
عقلمند بادشاه سره به ئې کار پیښیږي او الله تعالیٰ د قلم ذکر کړے دے
(نٓ وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُوْنَ)[2] ترجمه: (ګواه دے قلم او هغه څه چه لیکي)
او که اوګوري چه قلم ئې په لاس کښې اخستے دے تعبیر ئې د دهٔ به نوموړے
ځوئے پیدا کیږي.
حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائي، که اوګوري چه هغه قلم د دهٔ په لاس
کښې دے څه پرے لیکي تعبیر ئې د علم به زده کوي د الله تعالیٰ قول
دے (عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ)[3] ترجمه: (انسان ته ئې هغه څه وښودل
چه دهٔ نه پیژندل.
حضرت امام جعفرصادق فرمائي په خوب کښې د قلم لیدل په پنځو[5]

(۱) بنی اسرائیل ۱۴ (۲) القلم ۱ (۳) العلق ۵

وجووی (۱) دَ الله تعالیٰ امر (۲) فرښته (۳) مالداری (۴) ذکردارحقیقت (۵) پنځم ئے په خامه کښ ذکر شوے دے.

## قیامت (رستخیز)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی. کهٔ اوګوری چه په رښتیا قیامت قائم دے تعبیر ئے په هغه ملک به الله تعالیٰ رحمت کوی اوکهٔ دَ هغه ملک بادشاه ظالم وی نو تعبیر ئے په دهٔ به آفت اوبلا راولیږی اوکهٔ مظلوم وی تعبیر ئے دهٔ ته به په ظالمانو کامیابی ورکوی اوکهٔ اوګوری چه دَ هغهٔ ملک خلک دَ الله تعالیٰ په وړاندے ولاړ دی تعبیر ئے الله به په دوی غصه وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ وګوری چه قیامت قائم دے تعبیر ئے مظلوم به په ظالم کومک موهی اوکهٔ په غم او تکلیف کښ وو خلاصے به بیا موهی اوکهٔ وګوری چه دَ قیامت کومه علامه راښکاره شوے ده لکه نمرد مغرب دَ طرفه راپورته شو یا یاجوج اوماجوج یا دجال علیه اللعنة راپیدا شو تعبیر ئے دا دے چه توبه به کوی اوالله تعالیٰ ته به رجوع کوی اوکهٔ اوګوری چه دَ حساب ځائے ته تللے دے تعبیر ئے دا دَغفلت علامه ده دَ الله تعالیٰ قول دے (اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ مُّعْرِضُونَ.[1] (دَ خلقو حساب نزدے شوے دے او دوی په غفلت کښ مخ ګرځونکی دی).

اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ سره ئے شمار کړیدے تعبیر ئے دهٔ ته به تاوان رسیږی دَ الله تعالیٰ قول دے (فَحَاسَبْنَاهَا حِسَابًا شَدِيدًا وَّعَذَّبْنَاهَا عَذَابًا نُّكْرًا.[2]) ترجمه (او مونږ به دَ هغوی سخت حساب اخلو او هغوی ته به نا اشنا عذاب ورکوو.)

اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ اعمال تلی او دَ دهٔ نیکی زیاته راغلے ده تعبیر ئے دَ دهٔ انجام به نیک وی. دَ الله تعالیٰ قول دے: (فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ[3]) ترجمه: (دَ چاچه دَ نیکئ تله درنه شی دا کسان کامیاب دی).

اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ بدی زیاته شوے ده تعبیر ئے دَ دهٔ ځائے به دوزخ کښ وی. دَ الله تعالیٰ قول دے: فَأُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ[4]) ترجمه: (دا هغه کسان دی چه دوی خپلو ځانونو ته

(۱) انبیاء ۱ (۲) الطلاق ۸ (۳) المؤمنون ۱۰۲ (۴) اعراف ۹

رسولے دے په سبب دَ دے چه دوی داعمل کولو۔
تاوان رَسولے دے په سبب دَ دے چه دوی داعمل کولو۔
اوکۀ اوګوری چه دۀ ته عملنامه ورکړے شوه په ښی لاس باندے
نیولے ده تعبیر ئے، ښی لاس ته به ځی او دَ دین لاره دَ دۀ سمه ده
دَالله تعالیٰ قول دے: (وَاَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَالْمِيْزَانَ) ترجمه (او
مونږ دوی سره کتاب او تله رالیږل۔)
اوکۀ اوګوری چه دۀ ته عملنامه ورکړے شوه او دۀ ته اوویل چه
داووایه کۀ نیک وی نو تعبیر ئے، کار به ئے شی او کۀ دَ فساد یا نو دَ
ډلے نه وی، کار به ئے په خطره کښ وی۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے: اِقْرَاْ
كِتَابَكَ كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيْبًا)[1] ترجمه: (نن خپله عملنامه ولوله
کافی ده ستا په نفس نن ورځ حساب شوے)۔
اوکۀ خپل ځان په پل صراط دَ پاسه اوګوری تعبیر ئے په سمه لاره به
وی اوکۀ اوګوری چه په پل صراط تلل نشی کولے، تعبیر ئے په خطا
لاره به وی او توبه باید وکړی چه الله تعالیٰ ورنه راضی شی۔

## قیمتی کانړی (زبرجد)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ زبرجد (قیمتی کانړے) لیدل تعبیر ئے
خیراو عافیت دے۔ کۀ اوګوری چه ډیر زبرجد کانړی ورسره دی تعبیر
ئے په هغه اندازه به مال او نعمت حاصل کړی۔ اوکۀ اوګوری چه
زبرجد ورنه ضائع شوی دی، تعبیر ئے په مال کښ به ئے نقصان راشی
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ زبرجد لیدل په
درۓ وجوی (۱) خوشحالی (۲) مال (۳) نفع۔

## قیمتی کانړے (زمرُّد)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی زمرد لیدل
په خوب کښ تعبیر ئے زوئ یا رور او
یا حلال مال دے کۀ اوګوری چه زمرد ورسره دی او یا ورته چا ورکړی
دی تعبیر ئے دَ دۀ به زوئ پیدا کیږی یا به ئے رور پیدا کیږی چه ورته به
دَ دوئ نه نفع حاصلیږی۔ اوکۀ اوګوری چه زمرد ضائع شوی دی تعبیر
ئے زوئ به ئے مړ شی او یا به ئے مال هلاك شی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی۔ په خوب کښ زمرد لیدل تعبیر ئے په مذهب
او په پاك دین دے او هرڅومره کمے زیاتے چه په زمرد کښ وی دَ

[1] بنی اسرائیل ۱۴

هغه تعبیر په پاک مذهب څرخیږي.
حضرت مغربيؒ فرمائی، په خوب کښې ترمړد لیدل تعبیر ئې نیکه خبره ده.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې ترمړد لیدل په پنځو وجووی. (۱) زوی (۲) زور (۳) حلال مال (۴) وینزه (۵) نیک غلام چه هرڅومره ترمړد ښهٔ وی په وئیل شوومن کورو شاتو ئې تعبیر ښهٔ وی

## قید خانه۔ جیل (زندان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی کهٔ څوک په خوب کښې اوګوری چه په جیل کښې دے او نور جیلیان ئې نهٔ دی لیدلی تعبیر ئې دَ دهٔ هلاکت دے او کهٔ معلومه زندان وو تعبیر ئې غم او فکر دے او که اوګوری چه دَجیل بیړئ دَ دهٔ په خپو کښې پرتے دی تعبیر ئې چه د دهٔ کوم کار به او ږد وخت پورے وی او غم او فکر کښې به وی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی کهٔ دَ خوب لیدونکے پرهیزګار نهٔ وی تعبیر ئې دهٔ ته به دَ دین په کار کښې غم او فکر حاصلیږی او کهٔ وګوری یوسړے په بند و (ترل شوو) خپو بیا هم زوان دے تعبیر ئې بند کار به ئې پرانستلے شی
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی معلومدار ترندان او جیل لیدل تعبیر ئې دَ مراد مونډلو دے او انجام به ئې ښهٔ وی دَالله تعالیٰ قول دَے (رَبِّ السِّجْنُ اَحَبُّ اِلَیَّ مِمَّا یَدْعُوْنَنِیْٓ اِلَیْهِ) ترجمه: (اے زما ربه ماته دا جیل خوښ دے دَ هغه نه چه ما غواړی).
او کهٔ جیل نامعلومه وی نو هغه به قبر وی او غم او فکر به وی لکه چه سردار یوسف علیه السّلام فرمائی (اَلسِّجْنُ قَبْرُ الْاَحْیَآءِ وَمَنْزِلُ الْبَلْوٰی وَ تَجْرِبَةُ الْاَصْدِقَاءِ وَشَمَاتَةُ الْاَعْدَآءِ) (ترجمه: په خوب کښې جیل دَ ژوندو دَ پاره قبر دے او دَ بلا منزل دے او دَ ملګرو ازمیښت دے او دَ دښمنانو خوشحالی ده). کهٔ اوګوری چه جیل ته تللے دے واپس ورته راغلے دے تعبیر ئې مراد به بیا مومی. ابن سیرینؒ فرمائی چه جیل په خوب کښې لیدل تعبیر ئې قبر دے.

## قالین (زیلو)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې غوړیدلے قالین تعبیر ئې دَ عمر دَ اوږدوالی او دَ کار دَ پوره کیدو دے او چه قالین هرڅومره لوئے وی نو ښهٔ دے او کهٔ قالین تاؤ شوے

اوګوري تعبیر ئې د عمر د کموالي دے اوکهٔ اوګوري چه په وړوکي قالین ناست دے او هغه قالین ورلاندے فراخه شوے دے تعبیر ئې زندګي او روزي به ئې فراخه شي اوکهٔ اوګوري چه قالین ئې په خپل لاس اغښتے او چرته د سامان جمع کولو ځائې کښې ایښے دے تعبیر ئې خپل مال او عزت به تباه کړي اوکهٔ اوګوري چه قالین ئې په شا ایښے دے تعبیر ئې د خلکو امانتونه به د دهٔ په غاړه کښې وي اوکهٔ وګوري چه قالین ئې اغښتے او چا ته ئې ورکړیدے تعبیر ئې عمر به ئې اخیرته رسیدلے وي.

حضرت جابر مغربيؒ فرمائي، کهٔ اوګوري چه شین پاک قالین ورسره دے تعبیر ئې، نعمتونه به ورباندے فراخه شي او کهٔ اوګوري چه قالین نړ وړا وشلیدلے دے، تعبیر ئې زندګي به ورباندے سخته شي اوکهٔ اوګوري چه نامعلومه قالین ئې غوړولے دے تعبیر ئې هغه ځهٔ چه په لاس کښې لري د لاسه به ئې لاړ شي اوکهٔ اوګوري چه چا نوے قالین ورته ورکړے دے او دهٔ په کور کښې غوړولے دے تعبیر ئې بخت او دولت به بیا مومي او عمر به ئې اوږد شي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي په خوب کښې قالین لیدل په شپږ وجوه وي (۱) د کارونو جوړولے (۲) اوږد عمر (۳) فراخه روزي (۴) عزت او دولت (۵) د ژوند سختوالے (۶) ګناه.

## قلعي (سرب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، کهٔ څوک په خوب کښې اوګوري چه قلعي ورسره دي تعبیر ئې، د دُنیا خسیس مال به ورته حاصل شي اوکهٔ اوګوري چه قلعي ئې اوبهٔ کړي تعبیر ئې د خلکو په ژبو به په بد ئې سره وي.

## قافله (قافله)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، کهٔ څوک په خوب کښې اوګوري چه د قافلے سره کورته راځي، تعبیر ئې بند کار به ئې پرا نستلے شي او د خپلوانو نه به لرے شي.

## قافله (کاروان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، کهٔ په خوب کښې اوګوري چه د قافلے سره په لاره دے او د هغه کاروان (قافلے) خلک مصلح او پرهیزګاره وو، تعبیر ئې د دهٔ د کار په اصلاح او خیر دے اوکهٔ اوګوري چه کاروانیان بدکاره او بد اخلاقه دي

تعبیرئې دا دې په خلاف دے او کۀ اوګوری چه سوارۀ دی او د قافلے سامان پوره لری، تعبیرئې دا ده ته به نعمت حاصل شی او که اوګوری چه په قافله کښې پیاده دی او سامان نۀ لری، تعبیرئې د هغه اول خلاف دے

حضرت کرمانیؒ کۀ اوګوری چه د کاروان سره کور ته تللی۔ تعبیرئې کاروَ به وربانده پرا نستلے شی او کۀ د دے خلاف خوب اوګوری، تعبیرئې، کاروته به د دۀ په مخ وتړلے شی۔

## قالب (سانچه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ په خوب کښې د پنړے یا د موزے قالب اوګوری تعبیرئې د ښځو او د خادم دے چه د دۀ کار به سموی کۀ اوګوری چه قالب ورسره دے تعبیرئې، دۀ ته به خادم ملاویږی کۀ اوګوری چه قالب ئې مات شوے او یا ورنه سوزیدلی وی تعبیرئې، هغه د کور خادم به ئې هلاک شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کۀ اوګوری چه ډیر زیات قالبونه ورسره دی تعبیرئې، د خادمانو نه به ورته خیر او نفع حاصلیږی کۀ اوګوری چه پنړے جوړوی او یا موزے ګنډی تعبیرئې دا دے چه ښځه به وی۔

## قبله

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی کۀ اوګوری په خوب کښې چه قبله ئې پریښې ده او مونځ ئې د مشرق طرف ته تللے دے تعبیرئې، د دۀ مینه به د رسول اللهؐ د لارے سره نۀ وی، او کۀ اوګوری چه قبله نۀ پیژنی تعبیرئې، د دین په لاره کښې به پریشانه او حیران وی

## قرآن مجید لوستل (قرآن خواندن)

په خوب کښې د قرآن مجید لوستل په حاکم تعبیر لری کۀ اوګوری چه د رحمت او د خوشحالئ د زیرے آیت د الله تعالیٰ له خوا وی پس واجب دی چه خیرات دے وکړی او د الله تعالیٰ شکر دے ادا کړی او کۀ اوګوری چه د عذاب لولی تعبیرئې، د الله تعالیٰ په غضب او غصه ډِ توبه اوباسی او الله تعالیٰ ته دے رجوع وکړی او کۀ اوګوری چه د قیصو او د مثالونو آیت ئې لوستلے دے تعبیرئې دا دے چه ګناه به کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی کۀ خوب کښې اوګوری چه نیم قرآن مجید ئې لوستلے دے تعبیرئې دا دے چه نیم عمر به ئې تیر شوے وی او کۀ

اؤګوری چه دَ قرآن مجید حافظ شوے دے، تعبیر ئے دَ امانت خیال او فکر به ساتی او که اؤګوری چه دَ قرآن مجید آواز ئے آوریدلے دے تعبیر ئے دَ دهٔ کار به دَ دین په لاره کښں بنهٔ وی۔ او که اؤګوری چه څوک دَ دهٔ قرآن مجید لولی او هغه په هغے نهٔ پوهیږی، تعبیر ئے دَ دهٔ زړه ته به غم او فکر رسیږی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اؤګوری چه ټول قرآن مجید ئے ختم کړے تعبیر ئے ټول مرادونه به بیا مومی او څنے معبرین وائی چه ټول عمر به ئے سرته رسیدلے وی، که ئے اؤګوری چه په اوچت آواز ئے قرآن مجید لوستلے دے تعبیر ئے، کار به ئے اوچت شی او په خلقو کښں به مشهور شی او که اؤګوری چه کوم آیت ئے لوستلے دے هغه ئے یاد دے تعبیر ئے، دَ هغه آیت تفسیر دے۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی که وګوری چه دَ قرآن مجید څلورمه حصه ئے لوستلے ده، تعبیر ئے، کار به ئے نیک شی او که اؤګوری چه سُورة اعراف ئے تر سورة مریم پورے لوستلے وی تعبیر ئے، دَ خلقو په مخکښں به مشهور شی او که اؤګوری چه دَ سُورة ن مرنه تر سورة الناس پورے لوستلے دے تعبیر ئے، ټول حاجتونه به ئے پوره شی او که اؤګوری چه دَ قرآن مجید ټولے سیپارے ئے لوستلے دی تعبیر ئے، کال او میاشته به په دهٔ مُبارکه وی او که اؤګوری چه دَ قرآن مجید او سیپارے ئے لوستلے دی، تعبیر ئے دَ غم او فکر نه به خلاصے بیا مومی که چا قرآن مجید نهٔ وی لوستلے او دے اؤګوری چه قرآن مجید ئے لوستلے دے تعبیر ئے مرګ به ئے نزدے شوے وی دَ الله تعالیٰ قول دے، (اِقْرَأْ كِتَابَكَ كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيْبًا ط بنی اسرائیل ۱۴۰ ولوله ته نن عملنامه خپله بس دے تا لره نن ځان سنا حساب کونکے۔

او که اؤګوری چه بربنړ دے او قرآن مجید لولی، تعبیر ئے دَ څهٔ څیز خواهشمند به وی او که اؤګوری چه په صفا او ناپاک ځائے کښں ئے قرآن مجید لوستلے دے، تعبیر ئے په عقیده کښں به ئے کډ وډوالے وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښں دَ قرآن مجید لوستل په څلورو وجوو ی (۱) دَ آفت نه سلامتیا مومندل (۲) دَ فقیرئ نه روسته مالداری (۳) دَ زړهٔ مراد مومندل (۴) بیداری او پرهیزګاری کول داسے خلک چه

گنهکار وي او دَ هغوي دَ پاره عذاب او سزا دَ قیامت دَ ورځې دلیل قائمیدل دي.

## قرباني کول (قرباني خواندن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که څوک په خوب کښې اووینې چه دَه اوښ یا غوئې یا ګډ قرباني کړے دے، تعبیرئې که غلام وي نو آزاد به شي که په غم او فکر یا سختئ کښې ګرفتار وي نو خلاصے به بیا مومي او که جیل کښې وي نو خلاصے به بیا مومي او که فقیر وي نو مالدار به شي او که څه یره لري نو امن کښې به شي او که قرضدار وي نو قرض به ئې خلاص شي او که حج ئې نۀ وي کړے نو حج به ادا کړي او که اوګوري چه دَ قربانئ دَ پاره صحرا ته تللي وي، تعبیرئې هغه خلک چه دَ څۀ نه په یره کښې وي دَ هغې یرے نه به خلاصي بیا مومي که جیل کښې وي نو راخلاص به شي او که په قحط او تنګئ کښې وي دا به په فراخئ بدل شي او که دا خوب لوئے اختر ورځو کښې لنې او وینې نو اثر به ئې ډیر زر ښکاره شي.

حضرت کرمانيؒ فرمائي که اوګوري په خوب کښې چه په خلقو ئې دَ قربانئ غوښې تقسیم کړي دي تعبیرئې دلته به مالدار سړے مړ کیږي او دَ هغهٔ مال به تقسیم کړي او که اوګوري چه خلکو غوښه پټه کړے ده، تعبیرئې په الله تعالیٰ به دروغ وائي، او قرباني په خوب کښې دَ خوشحالئ زیرے دے. دَ الله تعالیٰ کلام دے: (وَبَشَّرْنٰهُ بِاِسْحٰقَ نَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ وَبٰرَكْنَا عَلَيْهِ وَعَلٰٓى اِسْحٰقَ)[1] ترجمه: (او مونږ هغهٔ ته دَ اِسحٰق نبي زیرے ورکړو چه دَ نیکانو نه وو او مونږ هغهٔ او اسحٰق ته برکت ورکړو) او که ښځه دا خوب اوګوري نو دَ دے به نیک ځوئے پیدا شي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښې دَ قربانئ تعبیر په شپږ وجوو دي (۱) اَمن دَ خوف نه (۲) دَ حاجتونو پوره کیدل (۳) خیر او برکت (۴) دَ تنګئ او دَ قحط لرے کیدل.

## قصاب

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، نامعلومه قصاب ملک الموت دے (عزرائیل). او که اوګوري چه قصاب کور یا کوټې ته ورته راغلے دے، تعبیرئې په دے ځائے کښې به څوک مړ شي او که اوګوري چه دا قصاب دے او دا ئې پیشه نۀ ده، تعبیرئې څوک به ووژني او که اووینې چه دَ قصاب

سړی یوځائے شویدی ے، تعبیر ئے دَ ځا ظالم سړه به ئے ملګرتیا جوړه شی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه قصابی ئے کړے ده او حال دا چه دے قصاب نهٔ وو، تعبیر ئے غم او فکر به ورنه لرے شی او کهٔ قصاب دا خوب اوګوری، تعبیر ئے هغه به وینه توئوی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه نامعلوم قصاب دَ دهٔ کور ته راغلے دے یا کوټې ته ئے، تعبیر ئے په دغه ځائے کښې به اچانک او ناګهانه مرګونه را پیدا شی.

## قصّه وئیل (قصّه گفتن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښې اوګوری چه نامعلوم قصه وائی، تعبیر ئے دَ ظالمانو دَ یرے او خوف نه به په اَمن کښې شی، دَ الله تعالیٰ قول دے: (فَلَمَّا جَآءَهٗ وَقَصَّ عَلَيۡهِ الۡقَصَصَ ۙ قَالَ لَا تَخَفۡ ٝ نَجَوۡتَ مِنَ الۡقَوۡمِ الظّٰلِمِيۡنَ)[1] ترجمه: (کله چه هغهٔ ته راغلو او خپله قصّه ئے ورته بیان کړه ورته ئے وویل چه مهٔ ویریږه دَ ظالم قوم نه تا خلاصے ومونده)

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ وګوری چه خلقو ته قصه اوروی تعبیر ئے دَ دهٔ دَ خیر او دَ صلاح دے کهٔ ښهٔ قصه ئے آوروله وی او کهٔ بده قصه کړې وی تعبیر ئے په شر او په فساد دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری په خوب کښې چه قصه ئے بیان کړے تعبیر ئے کار به ئے ښهٔ شی او مراد به ئے پوره شی او په خوب کښې قصه ویونکے نیک طبعه سړے دے.

## قے کول، اُولتې (قی کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښې اوګوری چه قے (اُولتې) کړے دی او په آسانه سره ئے دَ خُلې نه راوتې دی تعبیر ئے دا دے چه توبه به کوی او کهٔ اوګوری چه قے اونکړے شو او یا دَ ړ اوتلو په وخت کښې واپس خپل ځائے ته لاړ دے، تعبیر ئے دَ توبې نه به واپس شی او آخیر به عذاب بیا مومی او ځنے معبرین وائی چه ورته به مصیبت او تاوان اورسی او کهٔ اوګوری چه قے ئے کړیدے او واپس ئے خوړلے دے تعبیر ئے دَ بُخل دَ وجې نه به په عیال څهٔ خرچه نهٔ کوی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه قے ئے کړے دے او خوند ئے

بیکاره وو، تعبیرئے دَ توبې نه به روسته بیا دَ ګناه کار پسے ځي او که اوګوري چه دَ قې په وخت کښ دَ خیټې نه څه په ژبه راغلي دي تعبیرئے بیماربه شي او که اوګوري چه بلغم راختلي دی تعبیرئے دَ بیمارئ نه به صحت بیا موي او که اوګوري چه ډیره زیاته وینه ورنه وتلې ده تعبیرئے مال به بیا موي او که اوګوري چه صفرا (زیړے اوبه) راوتلې دي، تعبیرئے دَ غم نه به امن کښ شي او که اوګوري چه څه په خیټه کښ وي هغه بهر راوتلې دي تعبیرئے دادے چه هلاك به شي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښ قئ کول تعبیرئے په شپږ وجوه وي (۱) توبه (۲) پښیماني (۳) نصرت (۴) دَ غم نه خلاصون (۵) دَ امانت واپس ورکول (۶) دَ بند کارونو پرانستل.

او که اوګوري چه قئ ئے کړیدے او بیا ئے خوړلے دے تعبیرئے چا ته به څه شے بخشش ورکړي او واپس به ئے ورنه واخلي.

## قوس قزح (لینده). (کمانه آسمان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي که څوك په خوب کښ په آسمان زیړه لینده (قوس قزح) اوګوري، تعبیرئے دَ هغه ملک خلق به بیمار وي.

حضرت کرمانيؒ فرمائي که اوګوري چه په کمانه آسمان (قوس قزح) کښ شینوالے دَ سوروالي نه زیات دی تعبیرئے په هغه ملک کښ به نعمت فراخه وي. او که اوګوري چه سوروالے دَ شین والي نه پکښ زیات دے، تعبیرئے دَ اول خلاف دے.

حضرت مغربيؒ فرمائي، که اوګوري چه په عمودي شکل په آسمان کښ سور والے راپیدا شویدے، تعبیرئے دَ هغه ملک بادشاه ته به قوت او کامیابي وي او که دا ستنے او عمود والے تورے اوګوري تعبیرئے دَ اول خلاف دے.

## قبر (ګور)

حضرت دانیالؑ فرمائي، دَ قبر تعبیر جیل او قید خانه ده که اوګوري چه دَ ځان دَ پاره ئے قبر کنستلے دے تعبیرئے حال به ئے تنګ وي او څنو معبرینو وئیلي دي چه په هغه ځائے کښ ئے چه ځانته قبر کنستلے دے هلته به ځان ته نوے کور جوړوي او که اوګوري چه دائے قبر کښ ایښے دے، تعبیرئے حالات به ورباندے سخت راشي

الله تعالیٰ کلام دے: ﴿ثُمَّ اَمَاتَهٗ فَاَقْبَرَهٗ ۝ ثُمَّ اِذَا شَآءَ اَنْشَرَهٗ﴾ عبس: بیا
ئے مړ کړو او په قبر کښې ئے کیښودو بیا چه کله ئے اوغواړی نو را اژوندے
به ئے کړی - که اوګوری چه په قبر کښې ایښے دے او خاوړے ئے وربانذ
اچولی دی تعبیر ئے د دهٔ د دین نقصان به وی او د دُنیا نه به بے توبی
لاړشی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوك په خوب کښې اوګوری چه خپل
ځان ئے پخپله قبر کښې ایښے دے، تعبیر ئے جیل ته به لاړشی او که
اوګوری چه په قبر کښې مړشوے دے تعبیر ئے دا دے چه په زندان کښې
به مړشی او که اوګوری چه بره په چت ئے قبر کښلے دے تعبیر ئے د دهٔ
عمر به اوږد وی او که اوګوری چه د قبر د پاسه ولاړ دے تعبیر ئے په ګناه
به ولاړ وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که خپل ځان په قبر کښې مړ اوګوری او نکیر
منکر ورته سوال کړے دے، تعبیر ئے د هغه ملک بادشاه به د دهٔ نه مطالبه
کوی او که نکیر او منکر ته ئے خطا سوال جواب ورکړیدے تعبیر ئے د بادشاه په
عذاب کښې به عاجز پاتے شی او که اوګوری چه دے ئے د قبر نه بهر را ویستلے
دے او په دا ئے خیژولے دے او بیا ئے په قبر کښې ایښے دے تعبیر ئے
بادشاه به ورباندے مهربانه وی او انعامی جامے به ورته واچوی او بیا
به ئے په جیل کښې واچوی او که دا خوب کوم سوداګر لیدلے وی تعبیر ئے دے چه
د دهٔ شمار به په سوداګرو کښې وی او د هر یو شمار به په خپل جنس سره
وی او معبرینو ته پکار دی چه د شیانو قیاس په ښهٔ طریقه کوی او پیژنی
د دے د پاره چه په تعبیر کښې خطا نشی۔

## قبرستان (ګورستان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، قبرستان
لیدل په خوب کښې د جاهلانو سره ملګرتیا
ده او د دوی دین او دُنیا خراب دی او غم او پښیمانی ده۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه دهٔ د قبرونو د خلکو زیارت وکړو
تعبیر ئے د جیل د خلکو زیارت به کوی او که اوګوری چه په قبرستان کښې
باران وریږی تعبیر ئے د قبرستان مړی به د الله په رحمت کښې وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که مالداره سړے اوګوری چه په قبرستان کښې

تللو او په مړو ته سلام اچولو، تعبیر ئې فقیر به شي او د خلکو نه به سوال کوي ځکه چه قبرستان د مفلسو خلکو ځائے دے او که اوګوري چه یو معلوم قبرستان کښې دے او مړي د قبرونو نه راوتلي دي تعبیر ئې د هغه ځائے خلک به په بلا او محنت کښې ګرفتار کړے شي او که اوګوري چه په قبرستان کښې ئې قبرونه پرانستلي دي څني ئې ژوندي ولیدل او څني مړي، تعبیر ئې په دغه ولایت (صوبه) کښې به تنګي ظاهره شي.

حضرت امام جعفر صادق فرمائي، د قبرستان لیدل په خوب کښې په دریو وجووي. (۱) جیل (قید خانه) (۲) غم (۳) محنت او بلا.

## قرآن مجید (مصحف)

حضرت ابن سیرین فرمائي، د قرآن مجید لیدل په خوب کښې علم او حکمت دے که اوګوري چه قرآن مجید ئې هدیه کړے دے، تعبیر ئې طالب العلم او عقلمند به وي او که اوګوري چه قرآن مجید ئې په اور سوزولے دے تعبیر ئې د ده د دین په فساد دے.

حضرت کرماني فرمائي، که اوګوري چه قرآن مجید ئې پرانستلے او په سر او سترګو ئې ایښے دے، تعبیر ئې ټول کارونه به په هغه اندازه کوي او د هغه بنا روالي (کورنۍ) به شي او که اوګوري چه د قرآن مجید نسخي ورسره خبرے کړے دي که ښے خبرے ئې کړے وي تعبیر ئې د خیر دے او که بدے خبرے ئې کړے وي تعبیر ئې د بد ودے

حضرت امام جعفر صادق فرمائي، په خوب کښې قرآن مجید لیدل په پنځو وجووي (۱) علم او حکمت (۲) میراث (۳) امانت (۴) حلاله روزي (۵) دین او امانتداري.

## قینچي (ناخن پرا)

حضرت ابن سیرین فرمائي، قینچي په خوب کښې لیدل هغه سړي دي چه تقسیم کوي، که څوک په خوب کښې اوګوري چه په قینچي ئې د سړو ښتو کټ کړي او یا جامے ورباندے کټ کړي، تعبیر ئې دا ټول ښه دے او که اوګوري چه چا ورته قینچي ورکړے ده یا ئې اخستے ده، که یوزوي لري، تعبیر ئې دا دے چه بل زوئ به ئې هم پیدا شي او که لور لري نو بله لور به ئې هم پیدا شي او که د قینچي دوه ټکړے وي نو هم دغه تعبیر لري.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه چا ورته قینچی ورکړے دہ یائے اَخستے دہ او یائے پیدا کړے دہ، کهٔ اَسپه لری نو تعبیرئے دا دے چه بله اَسپه به هم اخلی او یا به ئے پیدا کړی او کهٔ ملک لری نو نور ملک به مومی او ټول تعبیرونه ئے په دے قیاس دی چه یو څیز لری هم هغه څیز به نور ورته حاصل شی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښ قینچی لیدل دا نیکنام او نیک اَصل سړے دے چه دَ دهٔ سرهٔ به دوستی او ملګرتیا کوی او دین او دُنیا به ئے زیاته شی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ قینچئ لیدل په درے وجوهی (۱) تقسیم کونکے سړے (۲) نیک اَصله سړے (۳) نابرابر ملګرے.

## قیمتی کانړے (یشم یا یشب). (سنګِ یشم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی دَ یشم کانړے په خوب کښ لیدل بے اصله ښځه دہ، کهٔ اوګوری په خوب کښ چه دَ دهٔ سرهٔ دَ یشم (یشب) کانړے (ګُتمه) دہ یائے اَخستے دہ، یا ورته چا ورکړیدهٔ تعبیرئے بے اَصله ښځه به کوی او کهٔ ښځه لری تعبیرئے دَ دهٔ به لور پیدا کیږی او کهٔ اوګوری چه دَ یشم (یشب) کانړے ورسرهٔ دے، تعبیرئے دَ ښځونه به نفع اومومی.

## قباله (انتقال، دَ جائیداد کاغذ). (چک)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی کهٔ اوګوری چه مهر شوے قباله چا ورکړے دہ او یا قباله مهر شوے ئے اوموندله، تعبیرئے مال او نفع به بیا مومی. او کهٔ اوګوری چه چا په چک یا په قباله یا په خط څهٔ لیکلی تعبیرئے ښکر به لګوی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه مهر شوے چک دهٔ سرهٔ دے اودَ هغے نه ئے مهر لرے کړے دے تعبیرئے دَ دهٔ په مال کښ به نقصان وی. او کهٔ اوګوری چه ورنه ضائع شوے دے یا سوزیدلے دے تعبیرئے هغه به ضائع شی.

## قسما قسم غوښے (ګوشتها)

حضرت دانیالؑ فرمائی، په خوب کښ چه هر څوک ره پخه

غوښه اوخوري، تعبیر ئې دَ غنیمت مال او حلال مال دے چه په آسانئ سره لاس ته راځي اوکهٔ کچه غوښه اوخوري، تعبیر ئې په سختئ او په تکلیف سره به مال لاس ته ورځي - او دَ غوښو اخستل اوخرڅول غم اوفکر دے.

حضرت ابن سیرین فرمائي، په خوب کښې دَ پخې غوښې خوړل دَ وریتې نه ښهٔ ده او دَ وریتې غوښې خوړل دَ کچه غوښې نه ښهٔ دي کهٔ اووینې چه دَ خپل ځان غوښې خوري، تعبیر ئې دَ خپل کور والؤ به غیبت کوي او څه معبرین وائي چه داسے کار به کوي چه دَ هغې نه به پښیماني اووینې کهٔ اووینې چه دَ خلقو غوښې خوري، تعبیر ئې دَ خلکو به په ناحقه سره غوښې خوري دَ الله تعالیٰ قول دے: (اَیُحِبُّ اَحَدُکُمْ اَنْ یَّاْکُلَ لَحْمَ اَخِیْهِ مَیْتًا فَکَرِهْتُمُوْهُ-الآیہ) الحجرات[۱۲]: (آیا تاسو دا خوښوئ چه دَ یو مړ شوي ورور غوښه اوخوري پس تاسو نفرت کوئ دَ هغهٔ دَ غوښې دَ خوراك نه)

کهٔ اووینې چه یو سړے ئې په دار کړے دے او دے ئې غوښه خوري تعبیر ئې حرام مال به خوري کهٔ اووینې چه دَ ښورب کښې غوښه ئې خوړلې او پخه کړے ده، تعبیر ئې مال او نعمت به بیامومي، کهٔ اوګوري چه حلال کړے کښې ئې کورته راوړے دے، تعبیر ئې هلته به ښوك لوئې سړے مړ شي، کهٔ اوګوري چه دَ کښې دَ عضو څهٔ حصه ئې کورته راوړیده، تعبیر ئې په دغه کورکښې به څوك هلاك شي.

حضرت مغربي فرمائي دَ ښاربهٔ کښې غوښه لیدل بهتر (ښهٔ) ده دَ کمزورې دَ غوښې نه. کهٔ اووینې چه په تازه غوښه ئې څوک وَهلې دي تعبیر ئې هغه سړے به په دے خفه کوي او یا به دَ هغهٔ غیبت کوي، کهٔ اووینې چه وریته کړے غوښه خوري، تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به په غم او فکر روزي بیامومي. کهٔ اووینې چه دَ قصاب نه ئې غوښه اخستې ده او قیمت ئې ورته ورکړے دے او خپل کورته ئې وړیده، تعبیر ئې هلاك به شي، کهٔ اووینې چه دَ ښامار غوښه خوري، تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به دَ دښمن مال اخلي او خرچه به ئې کړي او دښمن به مغلوب کړي کهٔ اووینې چه دَ اس غوښه خوري، تعبیر ئې دَ خلکو په مینځ کښې به نیک نامه شي او دَ بادشاه نه به څهٔ ورته ملاویږي کهٔ اووینې چه دَ قچر غوښه خوري، تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به دَ دښمن مال لاس ته ورځي او دے به ئې خوري

کهٔ اوویني چه دَ اوبښ دَ ېچي غوښه خوري تعبیر ئے، دَ هغې په اندازه به دَ
یتیم مال خوري او دَ هغې نه به روسته بیمار شي او بیا به جوړ شي او ځني
معبرینو وئیلي دي چه دَ بادشاه دَ خلکو نه به ورته نفع ورسیږي کهٔ اووینی
چه دشترمرغ غوښه خوري تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به دَ ځنګلي سړي نه ورته نفع رسیږي
کهٔ اوویني چه دَ عقاب مارغهٔ غوښه ئے خوړلے ده، تعبیر ئے دَ هغې په
اندازه به مال او نعمت بیا مومي کهٔ اوویني چه دَ پړانګ غوښه ئے خوړلے
ده، تعبیر ئے، په جنګ کښې به نوم پیدا کړي او شان او بزرګي به بیا مومي،
کهٔ اوویني چه دَ مرغۍ غوښه ئے خوړلے ده، تعبیر ئے، کوم دولت مند یا
دَ خپل ځوی نه به دَ هغې په اندازه مال حاصل کړي کهٔ اوویني چه دَ بیزو
غوښه ئے خوړلے ده، تعبیر ئے بیمار به شي کهٔ اوویني چه دَ هاتي غوښه
ئے خوړلے ده، تعبیر ئے، دَ هغې په اندازه به دَ بادشاه نه مال مومي کهٔ اوویني
چه دَ چرګ غوښه ئے خوړلے ده، تعبیر ئے، دَ ظالم بادشاه نه به ورته مال
حاصل شي او کهٔ اوویني چه دَ زرک غوښه ئے خوړلے ده، تعبیر ئے دَ خیانتګر
سړي مال به خوري، کهٔ اوویني چه دَ کونګې غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے
دَ غلا مال به خوري کهٔ اوویني چه دَ چکاوک مارغهٔ غوښه ئے خوړلے ده
تعبیر ئے، دَ غلام دَ مال نه به څهٔ قدر خوري، کهٔ اوویني چه دَ خرهٔ غوښه
ئے خوړلے تعبیر ئے، حرام مال به بیا مومي کهٔ اوویني چه دَ سوے غوښه
ئے خوړلے ده، تعبیر ئے، دَ ښځې دَ مال نه به لږ غوندے بیا مومي او ځنے
معبرینو وئیلي دي چه میراث به بیا مومي، کهٔ اوویني چه دَ چرګے غوښه
ئے خوړلے ده، تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به دَ عجمي سړي نه نفع مومي کهٔ
اوکوري چه دَ کیکړه چینجي غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے دَ هغې په اندازه
به حرام مال خوري او په بندګۍ کښې به سُستي کوي کهٔ اوویني چه دَ
تیتر غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے، دَ ښځې مال به اخلي او خرچه به ئے
کړي، کهٔ اوویني چه دَ نولي غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے بیمار به شي
او کهٔ بیمار نهٔ شي نو ویره او خوف به بیا مومي کهٔ اوویني چه دَ کارغهٔ
غوښه ئے خوړلے ده، تعبیر ئے، دَ هغې په اندازه به دَ فاسق سړي مال
خوري کهٔ اوویني چه دَ سنګخواري (مارغهٔ) غوښه ئے خوړلے ده
تعبیر ئے خوب لیدونکے به دَ بے وقوف سړي دَ مال نه فائده او نفع

مومی که اووینی چه دَ بسمسرے غوښه ئے خوړلے ده تعبیرئے په سفر ئے کړے وی خیراو نفع به بیا مومی او څنے وائی چه دَ سمسرے غوښے خوړلوکښ دَ دُنیا زینت اوکمال لرلو باندے تعبیر لری۔

که اووینی چه دَ سپی غوښه ئے خوړلے ده تعبیرئے په دُښمن به کامیابی مومی، که اووینی چه دَ سنجاب مارغهٔ غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے دَ مسافرسړی مال به خوری که اووینی چه دَ سیمرغ مارغهٔ غوښه ئے خوړلے ده تعبیرئے دَ یولوئ سړی مال به ورته رسیږی که اووینی چه دَ باز غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے دَ ظالم سړی دَ مال نه به نفع مومی، که اوګوری چه دَ چیلی دَ بچی غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے دَ ګمراه کس سره به ملګرے شی که اووینی چه دَ ازمری غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے دَ سوداګرئ په وجه دَ خپلوانو سره جګړه کوی که اووینی چه دَ طاءوس مارغهٔ غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے مال او نعمت به بیا مومی که اووینی چه دَ طوطی غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے علم به زده کړی او نفع به ورته ونهٔ رسوی، که اووینی چه دَ ننک مارغهٔ غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے دَ هغې په اندازه به دَ ښځے مال اخلی که اووینی چه دَ کوکو شتکے غوښه خوړلے ده تعبیرئے دَ بنا نُسته ښځے نه به نفع بیا مومی که اووینی چه دَ غوا غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے ډیر مال به حاصل کړی او کار به ئے په نظم شی، که اووینی چه دَ ځنګلی غوا غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے دَ هغې په اندازه به دَ ښځے یا دَ ویښے دَ مال نه ورته نفع رسیږی که اووینی چه دَ کونترے غوښه خوری، تعبیرئے دَ ښځے دَ مال نه به ورته حصه ملاویږی که اووینی چه دَ پیشو غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے نفع به بیا مومی، که اووینی چه دَ لیوهٔ غوښه ئے خوړلے ده تعبیرئے دَ ظالم بادشاه نه به حرام مال بیا مومی که اووینی چه دَ شمشتئ غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے دَ عالم نه به علم زده کړی که اووینی چه دَ کنی کبر غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے بوډئ ښځه به په دهٔ جادو کوی. که اووینی چه دَ عقعق مارغهٔ غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے دَ ځنګلی سړی مال به خوری، که اووینی چه دَ ځنګلی خر غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے مال او نفع به بیا مومی، که اووینی چه دَ چرګی غوښه ئے خوړلے ده، تعبیرئے

دهٔ ته به دَ نوکر یا دَ وینزے نه مال حاصلیږی کهٔ اووینی چه دَ کب غوښه ئے خوړلے دہ، تعبیرئے دَ ښځے دَ مال نه به څهٔ حصه خوری کهٔ اووینی چه دَ بطے غوښه ئے خوړلے دہ، تعبیرئے سرداری اوولایت به بیاموی کهٔ اووینی چه دَ مړی غوښه ئے خوړلے دہ، تعبیرئے هغه مړے به په بدئے سرهٔ یادوی، کهٔ اووینی چه دَ مکر مچھ غوښه ئے خوړلے دہ، تعبیرئے تکلیف او بلا به ورته ورسیږی، کهٔ اووینی چه دَ ملاچرګک (ابابیل) غوښه ئے خوړلے دہ، تعبیرئے دَ یو لوئے او زیرک (هُښیار) سړی نه به ورته نفع ورسیږی، کهٔ اووینی چه دَ هما (فرضی مارغهٔ) غوښه ئے خوړلے دہ، تعبیرئے دَ بادشاه نه به ورته راحت ملاویږی او کار به ئے اوچت کړے شی، کهٔ اووینی چه دَ بلبل غوښه ئے خوړلے دہ، تعبیرئے دَ ښځے یا دَ خوی یا دَ غلام دَ مال نه به ورته نفع ورسیږی، کهٔ اووینی چه دَ باخے غوښه ئے خوړلے دہ، تعبیرئے دَ دښمن مال به خوری کهٔ اووینی چه دَ لیوهٔ غوښه ئے خوړلے دہ، تعبیرئے دَ دښمن مال به خوری۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ دَ غوښو خوړل لیدل په څلورو وجوو دی (۱) مال (۲) میراث (۳) مالداری (۴) غم، مصیبت او فکر۔

## کره او کوټه معلوموونکے (نقّاد)

نقاد په خوب کښ عالم او هُښیار حکیم دے ځکه چه دَ هر ښهٔ شی خوښوونکی دی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک اوګوری چه څوک صالح نقاد شویدے، تعبیرئے، دَ ځان به قرآن مجید او علم دین حاصل کړی کهٔ دَ دُنیا طلبګار وی، تعبیرئے، دَ ځان دَ پاره به شرف او بزرګی حاصلوی او دَ دُنیا مال به خوښوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، نقاد په خوب کښ عاقِل او باتمیزه سړے دے چه نیک او بد مصلح او مفسد کښ فرق کوی۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ نقاد لیدل په څلورو وجو وی (۱) هُښیار سړے (۲) حکیم (۳) عقلمند (۴) دَ کار معلوموولو والا۔

## کوزه۔ لوټه (آبدستان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښ دَ اودس کولو لوټه

او وینی، تعبیر ئے دے به خزانه دار او صاحب تدابیروی او آمدن اوخرچ به دَ دهٔ په لاس کښې وی، کهٔ اوګوری چه بادشاه ورته لوټه ورکړیدهٔ تعبیر ئے دَ بادشاه خزانچی او مشاور به وی او کهٔ دے چاته لوټه ورکوی دَ دے هم دغه تعبیر دے یعنی په دے قیاس دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، لوټه په خوب کښې خادم دے. دَ الله تعالیٰ په قول دی (یَطُوفُ عَلَیۡهِمۡ وِلۡدَانٌ مُّخَلَّدُونَ بِأَکۡوَابٍ وَّأَبَارِیقَ) الواقعه

ترجمه: په جنت کښې به په هغوئ خادمان په کوزو او دَ څاورولوټو سره طواف (ګرځیدل) کوی.

کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ کوزه ماته شوه او یا ضائع شوه تعبیر ئے یا به ښځه ورنه جُدا شی او یا به مړه شی، کهٔ اوګوری چه دَ کوزے نه ئے اوبهٔ څښلی دی، تعبیر ئے دَ دهٔ به زوے پیدا شی، خاصکر چه سپینے اوبهٔ پکښے اوګوری او ښهٔ خوند هم لری.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ کوزے لیدل په پنځو وجوی (۱) خادم (۲) خزانه (۳) مشاور (۴) زوے (۵) کمه روزی دَ هغه ځایه چه اُمید ورنه نهٔ لری.

## کوزه (افتابه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې کوزه لیدل خادمه ښځه یا وینزه ده یا هغه وینزه ده چه دَ هغے په ذمه دَ ډیوے بلول وی او ځنی معبرینو فرمائیلی دی، چه کوزه لیدل قومی خدمتګار دے چه دَ هغهٔ اطاعت به کوی او دَ ګناه نه به ځان ساتی، کهٔ اوګوری چه نوے کوزه ورسره ده او یا ورته چا ورکړیده، تعبیر ئے دهٔ ته به خادمه ښځه یا وینزه ملاؤ شی په هغے صفت چه بیان شویدی، کهٔ اوګوری چه کوزه ماته شوے ده تعبیر ئے وینزه یا خادمه به ئے بیماره شی او یا به مړه شی، کهٔ اوګوری چه کوزه ئے ضائع شوے ده تعبیر ئے، وینزه یا خادمه به ئے اوتښتی او یا به ورنه جُدا شی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې کوزه لیدل په نهو وجوی (۱) ښځه (۲) خادم (۳) وینزه (۴) انصاف (۵) بدن (۶) اوږد عمر (۷) مال او نعمت (۸) خیر او برکت (۹) دَ ښځو دَ طرفه راحت.

## کوزه (بُلبله)

حضرت کرمانیؒ فرمائی، چه په خوب کښ کوزه بلبله لیدل تعبیرئے وینزه ده۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، چه دَ دهٔ ښځه ده، کهٔ اوګوری چه بُلبله ئے اخستی او یا ورته چا ورکړے ده، تعبیرئے یا به وینزه اخلی او یا به وادهٔ کوی، کهٔ اوګوری چه دَ هغهٔ کوزے نه ئے اوبهٔ څښلی دی، تعبیرئے دَ خپلے ښځے سرهٔ به کورولے کوی، کهٔ اوګوری چه دَ هغهٔ کوزه ماته شوے ده تعبیرئے دَ دهٔ وینځه او یا به ئے ښځه مړه کیږی۔

## قیصه

دَ ابوخلدهٔ نه داسے روایت دے چه دَ ابن حضرت محمد ابن سیرینؒ په خدامت کښ ووم چه یو سړے ورته راغلو او عرض ئے وکړو چه صاحب ما یو خوب اولیدلو چه دَ کوزے نه ړم اوبهٔ څښلے او دَ هغه کوزے دوه غُټلے وے دَ یوے غُټلے نه ړم خوږے خوندهٔ ورے او بهٔ څښلے او دَ بلے نه ړم ترخے او تروشے، تعبیرئے ورته وویستو چه ستا سره یوه ښځه ده او بله درسرهٔ دَ هغے خورده او تهٔ دَ دے دواړو سرهٔ جماع کوے توبه اوباسه او دَ الله تعالیٰ نه وویریږه خوب کتونکی وویل چه صاحب همدغه شان ده، توبه ړم ورنه اوویسته او الله تعالیٰ ته ړم رجوع وکړه۔

## کوزه (کوزه مختلفه)

حضرت ابن سیرین (رحمہ الله) فرمائی، په خوب کښ دَ تانبی یا دَ دیګچون کوزه لیدل خادم دے اوکهٔ دَ ټیکری وی تعبیرئے وینزه به ورته حاصله شی دَ هغے کوزے دَ بسهٔ والی په اندازه، کهٔ اوګوری چه دَ کوزے نه ئے اوبهٔ څښلی، تعبیرئے دَ وینزے سرهٔ به جماع کوی، کهٔ اوګوری چه کوزه ئے ماته کړیدهٔ تعبیر ئے، وینزه به ئے مړه کیږی۔

حضرت مغربی (رحمہ الله) فرمائی، کوزه په خوب کښ لیدل مال او نعمت دے، کهٔ اوګوری چه دَ سروزرو کوزه ورسرهٔ ده او یا دَ سپینوزرو تعبیرئے، دهٔ ته به دَ دهٔ دَ خوښے مال ملاویږی مګر دَ هغه مال زر او رو کښ به تهمت وی، کهٔ اوګوری چه دهٔ سره دَ تانبی یا دَ قلعی لوښه ده تعبیرئے مال او نعمت دے او کهٔ دَ او سپنے کوزه لری تعبیرئے هم دغه مال او نعمت دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ کوزے لیدل په

نهوّوجوّوی (۱) ښځه (۲) خادم (۳) وینزه (۴) دَ دین سموالے (۵) دَ وجود تندرستي (۶) اوږد عمر (۷) مال (۸) خیراو برکت (۹) میراث دَ ښځو دَ طرفه او دَ کوزړے نه وړندول ته براده و ئیلے کیږی او دَ دے تعبیر دَ سرداراو امیرلوږ ده

## کُرخے، کلول (باقلا) - (بعضے پښتانه ورته شوپړهم وائی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی

دَ کُرخو لیدل په خوب کښں په خپل موسم یا غیرموسم کښں که یا خړه ئے اوخوری یاخام (کچه)، تعبیرئے دَغم دے او دَ دے تعبیر په وُچواولمدوکښں یوشان دی که اوګوری چه نه ئے دی خوړلی تعبیرئے دَ لږ غم او فکر دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه چا ورته کلول ورکړی دی اودهٔ نه دی خوړلی تعبیرئے دا دے چه غمژن به شی دا هم کیدے شی چه دے سړی سره به جهګړه هم وکړی او ځنی معبرانو وئیلی دی که اوګوری چه کلول ورسره دی او یا ورته چا ورکړی دی او یائے دَ کوره بهرا چولی دی او هیڅ ئے ورنه نهٔ دی خوړلی، تعبیرئے دهٔ ته به هیڅ نقصان نهٔ وی خاصکرچه خپل کلول ئے لیدلی وی.

## کُرخے، لوبیا (یوقسم سبزی ده)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوك په خپل موسم کښں لوبیا اوګوری په خوب کښں، تعبیرئے نیک دے او که بے موسمه کچه (خام) یا پاخهٔ تعبیرئے غم او فِکر دے.

## کوداله (بیل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کوداله په خوب کښں دا سے نوکر دے چه کاروته به کوی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کوداله په خوب کښں یو دا سے خادم دے چه په منافقت سره به کاروته کوی او ځنی معبرینو فرمائیلی دی، چه کوداله په خوب کښں یو دا سے کار دے چه دَ هغے نه به غم او تکلیف وی که څوك په خوب کښں اوګوری چه دهٔ سره کوداله ده او دے پرے کار کوی، تعبیرئے هغه کار به خلاص شی او که کار ئے پرے نهٔ وی کړے، تعبیرئے دَ دهٔ کار به نامکمله وی.

## کوړه، چابک (تازیانه)

حضرت دانیالؑ فرمائی، که څوك اوګوری چه ترا شلے کوړه یا چابک ورسره دی تعبیر

ئې دَدهٔ کارونه به په انتظام سره نهٔ وی، کهٔ اوګوری چه کوړه ئې تراشلے نهٔ ده
دَ هغې کوړے په اندازه دَ شرف او دَ بزرګئ تعبیرلری او څنې وائی چه کوړه
په خوب کښې لیدل په لږ مال تعبیرلری دَ خوب دَ لیدونکی په اندازه کهٔ اوګوری
چه دَ دهٔ دَ چابک څرمن شلیدلی ده، تعبیرئې دَ دهٔ نه به څوک بزرګ او مال
جُدا کیږی.
حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښې اوګوری چه څوک
ئې په چابک وهلی دی، تعبیرئې په یو کارکښې به مشغول شی او دَ هغه کښې
نه به څهٔ فائدهٔ ورته نهٔ رسیږی، کهٔ اوګوری چه چابک ئې دَ لاسه پریوځے
دے، تعبیرئې څهٔ کار چه په لاس کښې لری هغه کار به ئې دَ لاسه پریوځی
کهٔ څوک اوګوری چه چا په چابک وهلے دے او دَ وجود نه ئې وینه روانه
شوے ده، تعبیرئې ناخوښه خبرے به ورله واوری او کهٔ اوګوری چه وینه
ورنه نهٔ ده روانه شوی، تعبیرئې دَ هرے کوړے په عوض کښې به یو یو درهم
مومی، حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دے ئې په چابک وهلے
دے، تعبیرئې دَ هغه سړی نه به حرام مال مومی کهٔ اوګوری چه دَ کوړے
دَ زخم نه وینه روانه شوے ده، تعبیرئې مال به بیا مومی کهٔ اوګوری چه په
وجود ئې دَ چابک زخم پاتے شوے، تعبیرئې ناخوښه خبرے به واوری
کهٔ اوګوری چه دے ئې په چابک وهلے دے او نهٔ پوهیږی چه چا وهلے
دے، تعبیرئې اچانک مال به بیا مومی.
حضرت جابرمغربیؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښې اوګوری چه دَدهٔ
په لاس کښې بښهٔ کوړه ده یا دَ هغې لکئ دَ زیینمو ده، تعبیرئې دَ دهٔ به
زوی پیدا کیږی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ چابک دَ لرګی دے، تعبیرئې دَ
دهٔ دَ حال په قوت دے، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ چابک دَ څرمن یا تسمه ئې
دَ څرمنے ده، تعبیرئې خیر او نفع به ورته رسیږی، کهٔ اوګوری چه چابک
ئې په لاس کښې مات شوے دے، تعبیرئې دَ دهٔ به زوی مړکیږی او یا
به دَ خپل کار نه لرے شی، کهٔ اوګوری چه په آس ناست دے او په چابک
ئې وهی تعبیرئې دَ چا په ځائې به کار کوی او په هغهٔ به احسان کوی
کهٔ اوګوری چه څوک ئې په شا په چابک وهلے دے او دَ هغه ځائې نه
وینه رااووته، تعبیرئې هغه سړے به حرام مال مومی او یا به ئې

وهونکے وربانده دې د ګناه تهمت لګوي او که په خپله شا د چابک زخم اوګوري او نه پوهیږي چه چا وهلے دے، تعبیر ئې دا دۀ د دین او دُنیا شغل به تمام وي او که اوګوري چه ځوک ئې په چابک وهلے دے او چابک ټکړه ټکړه شوے دے، تعبیر ئې دا دۀ د کور د خاندان خلک به سره جُدا شي او که ځوک ئې په بې اندازې کوړوو وهلو، تعبیر ئې دۀ ته به غم او فکر ورسیږي.

حضرت اسماعیل اشعث فرمائي، که ځوک په خپل کور کښې اوګوري چه د دۀ په لاس کښې وړه کوړه ده او هغه بیا روسته اوږده شوه تعبیر ئې، د دۀ ژبه به په دُښمن اوږده شي او که اوګوري چه اوږده وه او بیا لنډه شوه، تعبیر ئې دُښمن به وربانده کامیابیږي.

حضرت امام جعفر صادق فرمائي، چابک په خوب کښې لیدل په پنځۀ وجوه وي (۱) شور او هاها (۲) جنګ کول (۳) د ګران کار روښانه کیدل. (۴) سفر او جُدائي (۵) سرداري او مال.

## کوروالے (جماع)

حضرت دانیال فرمائي، جماع په خوب کښې لیدل د حاجت پوره کیدل دي خاصکر چه وویني چه مني ورنه جُدا شوے ده، که ځوک په خوب کښې اوګوري چه د چا سره ئې کوروالے کړیدے، تعبیر ئې د هغۀ نه به نیکي بیا مومي او حاجت به ئې پوره شي او که اوګوري چه دۀ سره بل چا کوروالے کړے دے، تعبیر ئې د دۀ به کورنۍ مالداره شي، او که اوګوري چه د خپلې ښځې سره ئې کوروالے کړے دے په داسې طریقه چه ښځه د پاسه وه او سړے د لاندې تعبیر ئې، بله ښځه به کوي او د هغې نه به خیر او نفع بیا مومي.

حضرت ابن سیرین فرمائي، که اوګوري چه د خپلې ښځې سره ئې په بله لاره کوروالے کړے دے، تعبیر ئې دا دے به بدعتي سړے وي او یو داسې ناپسندیده کار به کوي چه دۀ ته به هغې کښې څۀ نفع نۀ وي او د رسول الله په سُنتو به عمل نۀ کوي، که اوګوري چه د خپلې مور، خور یا بلې چه په دۀ حرامه وي د هغې سره ئې کوروالے کړیدے، تعبیر ئې د خپلوۓ مینه به ئې د دۀ نه جُدا وي که دے مړ وي یا ژوندے د غم او د فکر تعبیر لري او ځنې معبرینو ویلي دي که ژوندے وي نو د هغۀ نه به خیر او نیکي بیا مومي او که اوګوري چه د خپلې مړې ښځې سره ئې کوروالے کړے دے، تعبیر ئې غمژن او محتاجه به

دی اوکهٔ اوګوری چه دَ پردے ښځے سرهٔ ئے کوروالے کړیدے، تعبیرئے
دَ کوم کار نه چه نا امیده وی هغه به کوی مګر پوره کیږی به نه اوکهٔ اوګوری
چه دَ نامعلومه ځوان سره ئے کوروالے کړیدے او دَ دوی په منځ کښې
جګړه وه، تعبیرئے دَ دے عاقبت به مینه وی او دَ دهٔ نه به خیراونیکی
بیامومی اوکهٔ هغه سړے معلوم ځوان وو، په هغهٔ به کامیابی بیامومی
اوکهٔ اوګوری چه دَ کوم زوړ سړی سرهٔ ئے کوروالے کړیدے، تعبیرئے
دَ خپل بخت نه به خیراونیکی بیامومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دهٔ پیغله جینئ موندلی ده
تعبیرئے په دغه کال کښې دَ دهٔ وادهٔ دے او یا به وینزه واخلی اوکهٔ اوګوری
چه دَ بادشاه کورته تللے دے او هلته ئے کوروالے وکړو، تعبیرئے په دُښمن
به کامیابی بیامومی اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ سره ئے جماع (کوروالے) کړیدے
تعبیرئے هم دغه دے او دَ دهٔ کار به مراد ته رسیږی او ځنی وائی چه دَ
بادشاه نه به ورته یره او خطره رسیږی، کهٔ اوګوری چه دَ چرګے سرهٔ ئے
کوروالے کړیدے، تعبیرئے دَ دے چرګے چه چاته نسبت کیږی په هغهٔ
به کامیابی بیامومی، کهٔ اوګوری چه دَ چا یهودی، عیسائی یا فارسی سرهٔ
ئے کوروالے کړیدے، تعبیرئے دَ دهٔ ټول کارونه دَ دُنیا به په انتظام شی
کهٔ اوګوری چه دَ هغه بوډا چه دَ هغهٔ شهوت مکمل ختم شوے وی
او اوګوری په خوب کښې چه دَ دهٔ شهوت غالب شویدے لکه ځنګه
چه په ځوانئ کښې وو، تعبیرئے دَ دین په کار کښې به مینه ناک وی لکه
اوګوری چه دَ ناکاره ښځے سره ئے جماع کړے ده، تعبیرئے دَ دُنیا طلب
کار به وی او دَ حرام مال اوکهٔ دا خوب ښځه اوګوری هم دغه تعبیر لری۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ اوښ سرهٔ ئے کوړ والے
کړیدے، تعبیرئے دَ سختئ نه به خلاصے بیامومی او په دُښمن به کامیاب
شی او مال به ئے زیات شی او نوم به ئے اوچت شی، اوکهٔ اوګوری چه دَ
بادشاه سرهٔ ئے کوروالے کړیدے، تعبیرئے هغهٔ به عزتمند او مقرّب
شی، اوکهٔ اوګوری چه دَ بادشاه دَ ښځے سرهٔ ئے کوروالے کړیدے، تعبیرئے
دَ هغهٔ نه به نفع بیامومی اوکهٔ اوګوری چه دَ حائضے ښځے سره ئے کوروالے
کړیدے، تعبیرئے دَ دهٔ کار به بد شی، کهٔ اوګوری چه دَ داسے ښځے سره

ئے کوروالے کړیدے چه هغه مړه وه، تعبیرئے کار به ئے بدشی او یا به دُخپلوانو پورے یو ځائے شی او کهٔ ښځه ژوندئے وی نو دَخپلوانو نه به جُدا شی او ځنی معبرینو وئیلی دی چه دَ حا ئضے ښځے سره کوروالے په خوب کښ دَ دُنیا کارونو دَ پاره آسانتیا ده۔

حضرت اسماعیل اشعث فرمائی، کهٔ او کوری په خوب کښ چه هغے ښځے سره ئې چه دَ دهٔ وینزه وه او کوروالے کړیدے تعبیرئے دَ بادشاه نه به ورته نفع او خیر ورسیږی او کهٔ او کوری چه دَ یو معلوم ځوان سره ئے جماع کړیده تعبیرئے دَ هغهٔ نه به ورته خیر او نفع ورسیږی او کهٔ او کوری چه دَ یو نامعلوم ځوان سره ئے کوروالے کړیدے، تعبیرئے دَ بادشاه نه به دَ دهٔ حاجت پوره کړے شی او کهٔ او کوری چه دَ کوم سړی سره ئے کوروالے کړیدے، تعبیرئے دَ هغهٔ دَ پاره به دُعا یا صدقه ورکوی او کهٔ ښځه او وینی چه دَ بلے ښځے سره ئے کوروالے کړے دے، تعبیرئے دَ هغے نه به نیکی مومی او حاجت به ئے پوره شی۔

حضرت امام جعفر صادق فرمائی، هغه جماع او کوروالی چه غسل پرے واجب شی دَ هغے تعبیر نهٔ وی۔

### کعبه "کوٹ" (حرم)

کعبه (حرم) دَ امن او سلامتیا ځائے دے کهٔ څوک په خوب کښ خانه کعبه (حرم) او کوری، تعبیرئے دَ دُنیا دَ آفتونو نه به امن کښ شی او دَ حج اداکول به ئے په نصیب شی۔

حضرت کرمانی فرمائی، کهٔ په خوب کښ او کوری چه دَ چا بادشاه یا دَ چا سردار حرم ته تللی دی، تعبیرئے دے به ټولو ښارونو کښ به امن کښ وی او دَ بادشاه نه به دهٔ ته څهٔ ملاویږی او ځنی معبرینو وئیلی دی دَ دهٔ به دَ هغه حرم خلکو ته څهٔ حاجت پیښیږی او کهٔ او کوری چه بادشاه خپل حرم ته عوښتے دے او دے هلته مقیم شوے دے، تعبیرئے دَ بادشاه په کار به شروع وکړی او دا سے کار به وکړی چه دهٔ ته به دَ هغے نه بد نامی ورسیږی، او کهٔ او کوری چه دَ کوم ظالم بادشاه حرم ته تللے تعبیرئے هم دغه دے۔

### کعبه شریفه

حضرت ابن سیرین فرمائی په خوب کښ خانه کعبه لیدل دا دَ اسلامی خلیفه لیدل دی او هر څوک چه

خانه کعبه کښې زیاتی او نقصان اووینی نو هغه به په اِسلامی خلیفه کښې
دی له اووینی چه ده دَ خانه کعبې طواف وکړو تعبیر ئے دَ ده دَ دین اصلاح
ده او دَ خلیفه نه به آرام مومی که اووینی چه اِحرام ئے تړلے دے او مخ
ئے دَ کعبې طرفته دے تعبیر ئے دَ ده دَ اصلاح زیاتوالے دے که
اووینی چه دَ ده کور کعبه شوید ے او خلکو ئے زیارت کولو تعبیر ئے دَ امانت
حفاظت به کوی او عزت او مرتبه به بیا مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که بادشاه اووینی په خوب کښې چه خانه کعبې ته
ځی تعبیر ئے، دَ خلیفه بزرگی به او مومی که اووینی چه خانه کعبه پریوتے ده او
یا سوزیدلے دے تعبیر ئے دَ خلیفه حالات به بدوی که اووینی چه دَ خانه
کعبې نه ئے څه شے اخستے دے تعبیر ئے، دَ خلیفه نه به ورته فائده ورسیږی
او که اووینی چه په خانه کعبې کښې مونځ کوی تعبیر ئے، دَ خلیفه کانو نه به
ئے کار بنه شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، حقیقت کښې خانه کعبه ایمان او مُسلمانی ده، که
خپل ځان په خانه کعبه کښې اووینی تعبیر ئے، دَ دُښمن دَ شر نه به امن او مومی
او دُعا کانے به ئے قبلیږی، دَ الله تعالیٰ قول دے (وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا)
ال عمران ۹۷ (ژباړه: چه خانه کعبې ته داخِل شو هغه په امن کښې شو) که اووینی چه
حجرِاسود ئے مخ اِیښے دے او ښکل کړے ئے دے تعبیر ئے حج به کوی که
اووینی چه دَ رسُول الله صلی الله علیه وسلّم قبر زیارت مُبارک کښې دے
یا ئے دَ ابراهیم مقام اولید و، تعبیر ئے حج ته به ځی او روغ به واپس راځی
که ځان دَ کعبې په چت اووینی تعبیر ئے بد مذهبه به وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی خانه کعبه په خوب کښې لیدل په
څلورو وجو وی (۱) خلیفه (۲) امام (۳) اِیمان او مُسلمانی (۴) ډیرے نه امن۔

## کُنے یو څناور دے۔ (کُنه)

حضرت ابن سیرین فرمائی په خوب کښې کُنے لیدل دَ خلکو عیال دے که اووینی
چه کُنے دَ ده اندام خوړلے دے، تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به عیال دَ ده
مال خوری۔ که اووینی چه ډیر زیات کُنی په ښاروی پورے دی۔ تعبیر ئے
دَ ده دَ ښارو و نه به خلق فائده اوچتوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که اووینی چه دَ ځان نه کُنے لرے غورزوی تعبیر

ئے، دَ ځان نه په خپل عیال لرے کوی۔ که ا و وینی چه دَ خپلو چارپایانو نه کُنی لرے کوی اولرے ئے اچوی، تعبیر ئے هیڅ نه به فائده نهٔ رسوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښے کُنے لیدل په دریو وجو دی (۱) عیال (۲) خدمتګاران اونوکران (۳) مال او زیات مطلبونه۔ که اووینی چه کُنے ئے وژلے دے۔ تعبیر ئے دا پورته چه ذکرشول په دے کښے به دَ دهٔ نقصان وی۔

## کب دَ شکے

سقنقور دا سے یوکب دے چه دَ شکے په منځ کښے وی۔ حضرت ابن سیرینؒ فرمائیلی دی که اوګوری چه دهٔ سره دَ شکے کب دے تعبیر ئے، دَ دهٔ به نیک کاروته په نصیب شی او دَ زړهٔ مراد به ئے حاصل کړے شی مګر په دین کښے به کمزورے وی تعبیرکونکو ئیلی دی چه دَ شکے کب په خوب کښے لیدل بد دی۔

## کور (خانه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کور په خوب کښں لیدل دَ سړی دَ پاره ښځه ده، کهٔ اوګوری چه خپل کور ئے سره دَ ستنو پورته کړیدے، تعبیر ئے دَ مخوریزے او شفیقے ښځے سره به وادهٔ کوی او کهٔ اوګوری چه کور ئے نوے شویدے تعبیر ئے، دَ مالداره ښځے سره به وادهٔ کوی او مالداره به شی کهٔ اوګوری چه کور ئے یوازے چونا کړیدے او نهٔ پوهیږی چه دا دَ چا ملکیت دے، تعبیر ئے دَ کور مالک به دَ دُنیا نه سفر کوی او کهٔ اوګوری چه کوم کور ته تښتیدلے دے او هغه بند وو او هغه کور دَ نورو کورونو سره پیوست دے، تعبیر ئے، دَ غم او تکلیف نه به خلاصے بیا مومی او کهٔ بیماروی نو صحت به ئے بښهٔ شی او کهٔ اوګوری چه دَ کور دروازه ئے خپله ماته کړے، تعبیر ئے مال به په اولاد خرچه کړی او کهٔ اوګوری چه کور ئے دَ هغے نه لوئے شویدے دَ مخکښی نه تعبیر ئے مال او نعمتونه به وربانده فراخه شی او کهٔ دَ دے خلاف اوګوری، تعبیر ئے مال او نعمت به وربانده تنګ شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ کور یا دَ کور دیوال پریوتے دے، تعبیر ئے، ډیر مال به بیا مومی او کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ کور بغیر دَ کوم سبب خراب شویدے، تعبیر ئے مال او دولت به ورته ورسیږی کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ دَ او سپینے کوردے تعبیر ئے دا دے چه مالداره به شی

ئے اوګوری چه دَ دهٔ کور کښی سپین زړ دی (دروازه ئی هم دَ سپینو زرو ده)
ىس دی توبه او باسی، دَ الله تعالیٰ کلام دے: (لِمَنْ يَّكْفُرُ بِالرَّحْمٰنِ لِبُيُوْتِهِمْ
سُقُفًا مِّنْ فِضَّةٍ) ترجمه (کوم خلق چه په رحمٰن بادشاه کفر کوی دَ هغوئی
ملکو دَ کورونو چتونه به دَ چاندئ کړو۔) کهٔ مالداره وی نو ربه هم نعمت
ئے زیات شی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ کور سره بل هیځ کوم کور نشته دے
تعبیر ئے، حال به ئے تباه شی۔

## کُنی کبر، کیکړه، کنجه پوړ (خرچنګ)

دَ دے لیدل په کم همته سړی تعبیر دے
کهٔ خوب کښی اوګوری چه کُنی کبر ئے نیولے دے، تعبیر ئے، دَ کوم بے همته
کمینه او بد خویه کس سره به ملګرے شی او دَ هغهٔ نه به لږه شان نفع مومی،
کهٔ اوګوری چه خوب کښی چه کُنی کبر ئے وژلے دے او یا ئے چرته لرے غورزولے
دے، تعبیر ئے، دَ بد خویه سړی نه به جُدا شی او کهٔ اوګوری چه دَ کُنی کبر
غوښه ئے خوړلے ده، تعبیر ئے، دَ هغے په اندازه به مال حاصل کړی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دهٔ سره کُنی کبر دے، تعبیر ئے
دَ خوش طبعه سړی سره به ملګرتیا کوی او دَ هغهٔ نه به نیکی مومی۔

## کړے (دست اورنجن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کړے لیدل په
خوب کښی دَ ښځو دَ پاره خاوند دے، او سړو
دَ پاره غم او فکر دے، کهٔ اوګوری چه دهٔ سره دَ سپینو زرو کړه ده تعبیر
ئے کم غم او فکر به دَ دهٔ وی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه چا ورته دَ لاس کړے ورکړی
دی، تعبیر ئے، دَ دهٔ به زوی پیدا کیږی او یا به ئے رور پیدا کیږی او کهٔ
دا خوب ښځه اوګوری، تعبیر ئے، خاوند به اوکړی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښی اوګوری چه په دواړه لاسه کښی
کړے دی، تعبیر ئے دهٔ ته به مال او نعمت په تکلیف حاصلیږی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښی دَ لاس کړے کتل په
پنځو وجوه دی (۱) ریاست (۲) حِکمت او پوهه (۳) مکر (۴) غم (۵) رور یا زوی

## کنځل (دشنام)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ خوب کښی اووینی
چه چا ورته کنځل وکړل تعبیر ئے حال به دَ دهٔ

نیک وی او په هغه کنځل کونکی به کامیابی موهي۔
حضرت کرمانیؒ فرمائي، که اوګوري چه چا ته ئې کنځل کړې دی تعبیر ئې هغه سړی به په دهٔ غالب او کامیاب وی۔

## کاږهٔ، بادیان (رازیانج)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې کاږهٔ لیدل په خپل موسم یا بے موسمه غم او فکر دے او دَ دے خوړل ضرري دی که اوګوري چه په هغه ځمکه کښې چه دَ دهٔ ملکیت دے په کښې زیات کاږهٔ اولیدل، تعبیر ئې په غم او فِکر کښې به ګیر شي۔

## کلی (روستا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه دَ کلی نه ښاریے ته لاړ دے، تعبیر ئې انشاء الله دَ فتنو او عذاب نه به په امن کښې شي او کارونه به ئې په نظم شي، او که اوګوري چه دَ ښار نه کلی ته تللے دے، تعبیر ئې دَ اول خلاف دے۔
حضرت مغربیؒ فرمائي، که په خوب کښې اوګوري چه په کلی کښې دَ دهٔ ملکیت دے او یا ورته چا ورکړے دے، تعبیر ئې دَ هغه کلی دَ آبادئ په اندازه به ورته خیر او نیکي رسیږي او که کلے وران ویجاړ اوګوري، تعبیر ئې دَ دے خلاف دے۔

## کشمالو (ریحان)

که اوګوري چه کشمالو او خوشبوداره او شین دے تعبیر ئې دَ زوی دے او دَ کشمالو دَ زړګے نه ویستل تعبیر ئې دَ ژړا او دَ غم دے۔
حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خپل ځائے کښې کشمالو اوګوري تعبیر ئې خوب لیدونکے به نیک کار ونه کوي۔
حضرت دانیالؑ فرمائي، چه خوشبوداره کشمالو په خوب کښې لیدل تعبیر ئې خوب لیدونکے به دَ نیکئ کارونه کوي او دَ نیکو کارانو به مدد کوي۔
حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائي، دَ کشمالو لیدل په خوب کښې په اووه وجوه وی (۱) ښځه (۲) وینزه (۳) دوست (۴) زوی (۵) ښه خبره (۶) دَ عِلم مجلس (۷) نیک کردار۔ که اوګوري چه دَ دهٔ په کور یا باغ کښې کشمالان دی، تعبیر ئې دَ خیر او دَ نفعے دے۔
حضرت مغربیؒ فرمائي، په خپل موسم کښې کشمالو خرڅوونکی ډیر

یات نیک دے۔

## کارغه (زاغ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کارغهٔ لیدل په خوب کښ یو فاسق بے دینه، دروغژن سړے دے کهٔ وګوری چه کارغهٔ ئے نیولے دے، تعبیرئے دَ داسے سړی سره به ملاویږی چه دَ هغهٔ دَ کارغهٔ صفت وی او په باطل کار کښ به مشغول شی کهٔ اوګوری چه کارغهٔ ئے وژلے دے، تعبیرئے هلته به فاسد او کافر او غلهٔ راجمع وی، کهٔ اوګوری چه کارغهٔ ئے ښکار کړیدے، تعبیرئے چرته به په دروغو مال حاصلوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ کارغهٔ په خوب کښ اوګوری، تعبیرئے هندوستانی وینزه ده او ډیر کارغان لیدل په خوب کښ تعبیرئے لښکر دے کهٔ اوګوری چه دَ کارغهٔ خرمن ئے ویستلے ده، تعبیرئے دَ مسافرے ښځے سره به ږناکوی او کهٔ اوګوری چه دغه کارغهٔ ئے وژلے دے، تعبیرئے دَ کورخلک به ورته نقصان ورسوی او کهٔ اوګوری چه ډیر کارغان په هوا راغلی دی او تیریږی تعبیرئے په دغه ملک کښ به دَ کارغانو لښکر راځی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه کارغهٔ او طاؤس دَ دهٔ په پرتوګ کښ دی، تعبیرئے دَ وینزے سره به فساد وکړی او کهٔ اوګوری چه دَ کارغهٔ سره ئے کورولے کړے دے، تعبیرئے ځوک غل سړے به بند کړی۔

## کوړے لګیدل، په کوړو وَهل (زدن)

حضرت دانیالؑ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دے ئے په کوړه (چابک) وهلے دے او دَ وهلو نښی ورباندے ښکاره شوی دی او یائے ستنے پورو تړلو او ئے وهلو ترڅ دے چه وینے ترینه روانے شوے دَ دے تعبیر بد دے۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښ اوګوری چه دے ئے په کوړو وهلے دے، تعبیرئے دهٔ ته به حرام مال حاصل کړے شی خاصکر چه دَ اندام نه ئے وینه راغلی وی او اندام ئے په وینو لړلے شوے وی او کهٔ دَ دهٔ په وجود بد حالی راښکاره شوی وی، تعبیرئے دَ دے په اندازه به ترینه فائده واخلی او ځنی معبرینو ویلی دی چه نوے جامے به اغوندی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دے ئے په کوړه وهلے دے او

وینه ورنه روانه شوے ده، تعبیر ئے هغه سړے به حرام مال بیا مومی، کهٔ په خپله شا کوړے اوګوری او نهٔ پوهیږی چه چا وهلے دے، تعبیر ئے دَ دین او دُنیا شغل به ئے نیک وی کهٔ اوګوری چه څوک ئے په کوړه وهلے دے تر دے چه کوړه ئے ماته شوه، تعبیر ئے دَ دهٔ دَ خاندان خلک به پریشان وی، کهٔ اوګوری چه دے چا بیشماره کوړے وهلے دے، تعبیر ئے دهٔ ته به غم او سیږی، او کهٔ اوګوری چه دے چا په کوړو وهلے دے، تعبیر ئے دَ دے دینه منافق سړی نه به غمژن شی. کهٔ اوګوری چه محتسب (کوتوال) په کوړه وهلے دے، تعبیر ئے باد شاه به دهٔ ته حکم ورکړی او کار به ئے نیک وی، کهٔ اوګوری چه دے چا په غُنډه ویشتلے دے، تعبیر ئے دَ هغه سړی نه به نفع بیا مومی او کهٔ اوګوری چه دهٔ څوک په غُنډه ویشتلے دے، تعبیر ئے دے به څوک او سواکړی او کهٔ اوګوری چه دے چا په مخ په څپیړه وهلے دے، تعبیر ئے دَ چا نه به خرابه خبره آوری.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دے مړی وهلے دے، تعبیر ئے په سفر کښ به نفع مومی او یا به دَ لاسه تللے مال واپس مومی کهٔ اوګوری چه دے مړشوے دے او چا وَهلے دے، تعبیر ئے دَ دهٔ دَ دین دَ قوت دے.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ وَهل کیدل په شپږ وجو دی (۱) نفع (۲) جګړه (۳) دَ سخت کار آسانیدل (۴) سفر (۵) شرف او بزرګی (۶) حرام

## کُنجکه (سپید مهره)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښ کنجکه اوګوری، تعبیر ئے دَ دهٔ پټ راز به ظاهر شی، کهٔ اوګوری چه کوړوسره لوبے نشی کولے، تعبیر ئے هغه کار به کوی چه نهٔ پرے پوهیږی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، دَ کُنجکے لیدل په خوب کښ دَ سړو دَ پاره تکلیف او سختی ده او دَ ښځو دَ پاره رسوائی ده او دَ پټ راز ښکاره کیدل دی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، کنجکه په خوب کښ لیدل په څلور وجووی (۱) خراب شے (۲) دروغ خبره (۳) دَ راز ښکاره کیدل (۴) تکلیف او سختی.

## کُناتی (سرین)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ کُناتی لیدل تعبیر ئے دَ خپلوانو لیدل دی، حتی معبرین وائی

چه ښے کُناټے تعبیرئے په زوی دے او دَ چپ کناټی لیدل په لور تعبیر لری کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ کناټی واړهٔ او کمزوری دی، تعبیرئے دَ اول خلاف دے، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ کناټی مات شوی دی، تعبیرئے زوی ئے مرشی.
حضرت امام جعفر صادق رح فرمائی، دَ کناټو لیدل په خوب کښ په څلورو وجووی (۱) زوی (۲) قوت (۳) باغ (۴) دَ خپلوانو نه یو کس.

## دَ ونو کلئ (غوټئ) (شګوفه درختان)

دَ ونو کلئ په خپل موسم کښ په تعبیر کښ ښهٔ دی او نیړه کلئ په تعبیر کښ دَ سرے او دَ سپینے نه په کمه درجه کښ ده او په خوب کښ ګُلنار ناوے ده دَ ونو کلئ دَ هغے دَ قد و رکوالی او لوئے والی په مطابق په پاکیزه خبرو تعبیر لری.
حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه په موسم کښ ئے دَ ونو کلئ خوړلی دی، تعبیرئے دَ ونو خاوندانو نه به پاکیزه خبرہ واوری او دَ هغوی نه به خیر او نفع بیامومی او کهٔ کلئ ئے بوئی کړے وی، تعبیرئے خلک به ئے صفت او تعریف کوی.

## کلونجی، توره دانه (شونیز)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی کلونجی په خوب کښ لیدل تعبیرئے غم او فکر دے او دَ دے خوړل تعبیرئے ضرر او نقصان دے کهٔ اوګوری چه ډیرے کلونجی ورسره دی، تعبیرئے په غم او فکر کښ به ګرفتار شی.

## کنډه "چیړ" (صمغ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، دَ ونے کنډه پاتے شوے مال دے کهٔ اوګوری چه دهٔ سره کنډه دی او یا ورته چا ورکړے، تعبیرئے دَ هغے په اندازه به دَ چا پاتے شوے مال خوری کهٔ اوګوری چه چا ته ئے کنډه ورکړیدے، تعبیرئے دَ پاتی شوی مال نه به چا ته څه ورکوی.
حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښ دَ کنډه لیدل لږ نفع ده چه هغه به دَ دا سے سړی نه مومی چه دَ هغه ونے نسبت ورته کیږی۔ کهٔ دَ بادام دَ ونے کنډه ئے خوړلی وی، تعبیرئے دَ بخیل سړی نه به نفع مومی۔ او کهٔ دَ زردالو کنډه ئے خوړلی وی، تعبیرئے دَ بیمار سړی نه به نفع بیامومی۔ او کهٔ دَ کیکر کنډه ورسره وی، تعبیرئے دَ بیابان او سیدونکی نه به نفع مومی۔

## کجورے ګُل (طلع)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ کجورے یو یا دوه یا درے ګُلونه ئے اخستی

دی، تعبیر ئے دَ دهٔ به زوی پیدا کیږی که اوګوری چه دَ کجورے ګل ئے خوړلے
دے، تعبیر ئے بنهٔ ډیر مال او دولت به حاصل کړی او که اوګوری چه کجورے
ګلان ورسرهٔ دی نه ئے ورنه خوړلی او نه ئے چاته ورکړی دی، تعبیر ئے بادشاه
به دَ ده مال واخلی آخیر به خوشحاله شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی دَ کجورے ګل په خوب کښ لیدل
په څلورو وجووی (۱) زوی (۲) رحمت (۳) نفع (۴) په زبردستئ مال اخستل۔

## کوتوال (عسس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری په خوب کښ چه دَ کوتوال سره ګرځی او هغهٔ سره
بنهٔ خلک دی، تعبیر ئے دهٔ ته به خیر او نفع رسیږی او که دَ دے خلاف
اوګوری نو تعبیر ئے په شر او په نقصان دے که اوګوری چه کوتوال نیولے
دے او نقصان ئے ورته رسولے دے، تعبیر ئے دَ بادشاه دَ عملے نه به ورته
تکلیف رسیږی، که اوګوری چه دَ هغه کوتوال نه څهٔ تکلیف نه دے رسیدلے
تعبیر ئے دَ خیر او دَ نیکئ دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه کوتوال ورنه جامے ایستلی دی
او یا ئے په جیل کښ اچولے دے، تعبیر ئے دَ بادشاه دَ عملے نه به ورته نقصان
رسیږی. او بے عزتی به اووینی، که خوب کښ اوګوری چه دَ کوتوال نه
او تښتید او او وے نهٔ نیولو، تعبیر ئے لږ تکلیف به ورته رسیږی۔

## کُندر، دارو دی (علک)

که اوګوری چه کندر ئے په اور ایښی دی
تعبیر ئے دَ هغے په اندازه دَ مال نقصان دَ ے
او که اوګوری چه کندر ئے خُلے ته اچولی دی، تعبیر ئے په جګړو او خبرو به
مال مومی۔

## کاسه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ دَ لرګی کاسه لیدل
چه دَ خوراک لپاره وی او هغے کښ څهٔ شے وی او وے خوړلو
تعبیر ئے حلاله روزی دَ هغے په اندازه به دَ سفرنه بیا مومی او دَ ټیکری کاسه
په خوب کښ روزی ده او تشه کاسه عاجزی ده۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کاسه په خوب کښ لیدل خادم دے چه دَ برکت
او نفعے خاوند وی چه دَ هغهٔ په لاس خیرات کیږی او دَ صلاح په وخت
مال تقسیم کوی او دَ سرو زرو او سپینو زرو کاسه چه په هغے کښ دَ خوراک

شے وی، تعبیرئے حرامه روزی ده، او دَ سِکے او قلعی کاسه لړه لړه روزی ده چه شکمنه وی او دَ بنیښے کاسه په هم دے تعبیر لری او تشه کاسه غریبی ده۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه په خپله کاسه کښ ئے په خپله خوړ خوند ور شے ایښے دے تعبیرئے مال او نعمت به بیا مومی او که پکښ تروش او بے خونده شے اوګوری تعبیرئے غم او فکر دے۔

## کاغذ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښ کاغذ لیدل مال او سردار ی ده، که اوګوری چه دهٔ سره پاک او صفا کاغذ دے، تعبیرئے دَ هغے په اندازه به مال او سرداری بیا مومی، که اوګوری چه په او بو کښ کاغذ وروست شوے او یا سوزیدلے دے، تعبیرئے دَ هغے په اندازه به دَ مال او سردارئ نقصان بیا مومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی په خوب کښ کاغذ علم او هنر دے که خوب لیدونکے پرهیزګاره وی، او که اوګوری چه دهٔ سره ډیر زیات کاغذونه دی تعبیرئے په علم او بهتروالی کښ به شهرت بیا مومی او که خوب لیدونکے فاسد او ناپوهه وی تعبیرئے دَ دے په خلاف دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ کاغذ لیدل په څلورو وجوو دی (۱) بنځه (۲) سرداری (۳) مال (۴) چل او فریب۔

## کافور

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښ کافور لیدل تعبیرئے پاک نفس او راستی او دَ حق دَلارے دے او که اوګوری چه کافور ئے سوزولی او دَ هغے نه خراب بوئی راځی تعبیرئے دَ هغه چا سره به نیکی کوی چه په هغهٔ به احسان کوی، که اوګوری چه لږ غوندے کافور ئے پیدا کړیدی تعبیرئے دَ خوشحالئ نه پیرے به وربانده وشی او که ډیر کافور ئے پیدا کړی وی تعبیرئے، ډیر زیات مال او نعمت به بیا مومی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ کافور لیدل په اووه وجو وی (۱) عالِم سړے (۲) بنځه (۳) ملګرے (۴) ښائسته وینزه (۵) ډیر مال (۶) صفت او شاباسی او ښه خبرے (۷) دَ نفس تابعدار کیدل۔

## کونتره (کبوتر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کونتره په خوب کښ وینزه ده یا بنځه، که څوک په خوب کښ اوګوری چه کونتره

ئے نیولے دہ تعبیر ئے وادہ بہ کوی او لوربہ ئے پیدا کیږی، کۂ اوګوری چہ ډیرے کونترے نئے نیولی دی تعبیر ئے ذکونترو پہ شمار بہ ښځے کوی اویا بہ وینزے اخلی اوکۂ اوګوری چہ ذکونترے غوښہ ئے خوړلے دہ، تعبیر ئے ذ ښځو ذ مال نہ بہ فائدہ اخلی اوکۂ اوګوری چہ ذکونترو بچی ئے نیولی دی تعبیر ئے ذ ښځو نہ بہ فائدہ اخلی اوځنی معبرینو ویلی دی چہ ذکونترو بچی غم اوفکر دے چہ ذ ښځے ذ طرفہ رسیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی کۂ اوګوری چہ ذ دوی پہ کورکښں ډیرے کونترے دی تعبیر ئے ذ دۂ بہ ډیرزامن پیدا کیږی، دا هم وئیلے شی چہ ذ ښځو ذ طرفہ بہ ډیرمال بیامومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کونترے پہ خوب کښں لیدل آزادے ښځے دی کۂ اوګوری چہ دۂ ذ چاکونترہ پہ چل سرہ نیولے دہ تعبیر ئے ذ هغے پہ اندازہ بہ مال پہ چل حاصل کړی اوکۂ اوګوری چہ پہ هوا کښں کونترہ ذ دۂ مخے تہ راغلہ او ذ دۂ تابعدارہ شوہ تعبیر ئے ذ هغہ ځایہ چہ ذ دۂ امید وہ نۂ وی هلتہ نہ بہ ورتہ فائدہ حاصلہ شی، کۂ اوګوری چہ کونترے تہ ئے دوړئ ورکړے تعبیر ئے ښځے تہ بہ نصیحت کوی اوکۂ اوګوری چہ ډیرے کونترے را اجمع شوی دی او پوهیږی چہ دا ذ دۂ دی، تعبیر ئے ریاست او بادشاهی دہ او سپینے کونترے ذ ټولونہ پہ خوب کښں ښہ دہ اوکۂ ښځہ پہ خوب کښں شنہ کونترہ اوګوری تعبیر ئے دا ښځہ بہ خاوند کوی اویا بہ ذ دے لور پیدا کیږی او کونتربازی (ذ کونترو سرہ لوبے کول) پہ خوب کښں باطل کار دے دا هم وئیل کیږی چہ ذ کونترو کور دا ذ ښځو ځائے دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی پہ خوب کښں کونترہ لیدل پہ پنځو وجوو (۱) ښځہ (۲) وینزہ (۳) مال (۴) ذ غائب خط (۵) ریاست

او معبرینو ویلی دی چہ ذ کونترو لیدل پہ خوب کښں ذ هر یو کونترہ پہ عوض پہ وینبہ یو درهم موندل دی۔

## کونترہ (ورسان)

دا یو ځناور دے چہ پہ خراسان کښں ورتہ کونترہ وائی او ذ دے لیدل پہ خوب کښں ښځہ یا وینزہ دہ۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی کۂ څوک پہ خوب کښں اوګوری چہ ذ ورسان کونترہ ئے نیولے دہ اویا ورتہ چادر کړے دہ، تعبیر ئے ښځہ بہ کوی اوکۂ اوګوری

چه ا خستې نې ده که د لاسه ئې الوتې وي، تعبیر ئې ښځې ته به طلاق ورکوي
اویا به وینزه خرخوي.
حضرت کرماني فرمائي که اووینې چه ورسان ئې وژلے او د هغې غوښه
ئې خوړلې ده، تعبیر ئې د هغې په اندازه به د ښځې مال په ظلم سره خوري، که
اوګوري چه بنه ډیرے ورسانې ورسره دي، تعبیر ئې ډیرے زیاتې وینزے
به اخلي. دیته قانوي هم وائي.
حضرت امام جعفرصادق فرمائي او د کونترولیدل په خوب کښې په دریو
وجوو ي (۱) نفع (۲) معیشت (۳) غم او فکر.

## کتاب لوستل (کتاب خواندن)

حضرت ابن سیرین فرمائي که
څوک په خوب کښې اوګوري چه د
تفسیر خه کتاب لولي تعبیر ئې د دین او پرهیزګارئ لارے ته به مائله وي او
بد کارونه به د ده ېرا نستلے شي او که اوګوري چه د فقهې کوم کتاب لولي تعبیر
ئې د نه کولو کارنه به روسته شي او که اوګوري چه د تاریخ کتاب لولي تعبیر
ئې د بادشاه په وړاند ے به د شوري خاوند وي او که اوګوري چه د اصولو
کتاب لولي تعبیر ئې په داسے کارونو کښې به مشغول شي چه په تکلیف به نفع
حاصلوي او که اووینې چه د عقائد و کتاب لولي تعبیر ئې د علماء دین سره
به مشغول شي او دوي به داسے کار فرمائي چه د هغې نه به د دین فائده وي.
او که اوګوري چه د فضائلو (ثوابونو) کتاب یا د تسبیح او تهلیل کتاب لولي تعبیر
ئې د ده په ژبه به د خیرا و د صلاح خبرے روانې شي او که اوګوري چه د تصو
کتاب لولي تعبیر ئې د اولیاء او پیغمبرانو د خبرو به ډیر حریص وي او که
اوګوري چه د علم نجوم کتاب لولي تعبیر ئې د دے دُنیا فائده به ورته حاصله
شي او که اوګوري چه د آدابو کتاب لولي تعبیر ئې د دُنیا په شُغل به مشغول
وي او خلک به ئې متشکر او صفت به ئې کوي، او که اوګوري چه د رسالو
کتاب لولي، تعبیر ئې د وادهٔ په تدبیر کښې به مشغول وي او که اوګوري
چه د طبیعاتو کتاب لولي تعبیر ئې د شیانو په طلب او د هغې په پیژند ګلوکښې
به مشغول شي او که اوګوري چه د شعرونو کتاب لولي که چرته غزل او صفت
وي تعبیر ئې په داسے کار کښې به مشغول شي چه خلک به ئې ملامته کوي
او که د رسول الله صلی الله علیه وسلم صفت او یا د عقائد و کتاب لولي تعبیر

ئې دا چه دے به نیک وی او که د خوبونو د تعبیر کتاب لولی، تعبیر ئې چرته سردار بانده به په لویه خبره احسان کوی او که اوګوری چه د هغه یه کتاب لولی تعبیر ئې دا سے کار کښې به مشغول شی چه خلق به ورته پوه او هوښیار وائی مګر د دین فائده به ئې نه وی او که اوګوری چه د قضا او د فیصلو کتاب لولی تعبیر ئې په دا سے سفر به ځی چه د هغې نه نفع بیا مومی او که د حساب کتاب لولی تعبیر ئې غمژن به وی او که اووینی چه د خندا او لطیفو کتاب لولی تعبیر ئې دا سے کار به کوی چه په هغې کښې څه بدی نه وی او که اوګوری چه د بدئ او غیبت کتاب لولی تعبیر ئې د خلکو عیبونه به لټوی او خلکو کښې به بدنام شی۔

**کدو** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوك په خپل موسم کښې د کدو بوټے په کور کښې اووینی تعبیر ئې د دهٔ عزت او مرتبه به زیاته شی او که بیمار روی نو صحت به مومی او که غلام وی نو آزاد به شی او که کافر دا خوب اووینی نو مُسلمان به شی او که مُسلمان ئې اوګوری نو سالم روغ به خپل وطن ته ورسیږی او که فاسق ئې اوګوری نو توبه به اوباسی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی که څوك اوګوری چه دهٔ سره کدو دے تعبیر ئې د پرهیزګاره شخص نه به نفع بیا مومی او که اوګوری چه د کدو بوټے ئې ویستلے دے تعبیر ئې د یو مشرے شخص نه به نفع بیا مومی که اوګوری چه پوخ شوے کدو ئې خوړلے تعبیر ئې حاجت به ئې پوره شی او د بند ګئ اطاعت به بیا مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی په خوب کښې کدو لیدل په دریو وجووی۔
(۱) عزت او مرتبه (۲) مال او نعمت (۳) د کارونو نظم او سمون۔

**کُرتی (کرته)** دا یو لنډه جامه ده چه خلک ورته قرطق وائی او د دے اغوستل په خوب کښې د سفر قوت او توفیق دے که اوګوری چه د دهٔ شنه کرتی وی تعبیر ئې د بادشاه نه به قوت او ملاتړ اومومی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که څوك په خوب کښې اوګوری چه سپینه کُرتی ئې اچولے ده تعبیر ئې د غم او فکرنه به خلاصے بیا مومی او که اووینی چه ژیړه کُرتی ئې اچولے ده تعبیر ئې په بیمارئ دے او که اوګوری چه

آسمانی رنګه کرُتی نے اچولے ده تعبیر ئے، دۀ ته به مصیبت رسیږی او
کۀ سره اووینی تعبیر ئے، دَ دُنیا په عشرت به مشغول شي۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی کۀ اووینی چه دَ ریښمو کرُتی ئے اچولے ده،
تعبیر ئے، دَ یو لوئے سړی نه به مشری او شرف بیاموَمی مګر په دین کښ به
کمزورے وی کۀ اوګوری چه کرُتی ئے سوزولے او یا ضائع شوے، تعبیر ئے
دَ دۀ په ملاتړ او قوت کښ به کمے راځی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ دَ کرتو اچول په څلورو
وجودی (۱) قوت (۲) ملاتړ (۳) سفر (۴) دَ کارونو سمولے۔

## کرُسئ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کرسئ په خوب کښ لیدل علم دے
او دَ عقل دَ خاطره دا سے ضروری دی چه الله تعالیٰ په خپل
کلام کښ ذکر کړی دی (وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ) البقره ۲۵۵ او دَ دۀ کرسئ
په آسمانونو او زمکو باندے فراخه ده۔
حضرت ابن عباسؓ فرمائی دَ کرسئ نه مراد علم دے۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی کرسئ دَ الله تعالیٰ قدرت او حد دے او څنے معبرین
وائی چه دَ کرسئ تعبیر دا دے چه عاقل او بالغ به وی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی دَ کرسئ تعبیر تابعدار امام دے، یا زاهد پرهیزګار
باکماله دے یا پوره عقلمند هُنبیار بادشاه دے څنګه چه په احادیثو
کښ ذکر شوی دی تعبیر ئے دا دے چه دا اهل دی او عالمانو دپاره نیک
دے او خوب لیدونکے به دَ بادشاه نه خیر او نیکی مومی او مال به ئے زیات شی
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی دَ کرسئ لیدل په خوب کښ په
شپږو وجودی (۱) عدل (۲) انصاف (۳) عزت او شرف (۴) مرتبه (۵) ولایت (۶)
اوکۀ څوک اوګوری چه په آسمان په کرسئ ناست دے تعبیر ئے دَ دۀ
کار به اوچت شی او مرتبه، عزت او قدر به بیاموَمی او ټول مراد و نه
به ئے پوره شی او دَ خلکو په وړاندے به عزت مند شی او دَ خلکو په منځ
کښ به عدل او انصاف پیدا شی اوکۀ هغه کرسئ کومه چه ترکاڼ جوړوی
په خوب کښ اوګوری تعبیر ئے، ښځه به کوی کۀ اوګوری چه دۀ لویه او پاکیزه
کرسئ اخستے ده او دے پرے ناست دے تعبیر ئے خوب لیدونکے به ښځه
کوی او دَ هغے نه به نعمت او مال حاصل کړی کۀ اوګوری چه په کرسئ ناست

دے تعبیر ئے پیغله جینئ به کوی او که اوګوری چه ده لاندے کرسئ ماته شوه، تعبیر ئے ښځه به ئے مړه شي، که اوګوری چه د ده کرسئ نړه اوورړه ده تعبیر ئے د ده ښځه به ذلیله، فقیره او عاجزه وی او که اوګوری چه د ده کرسئ ده او دے پرے ناست دے، تعبیر ئے کورته به ښوګ ښځه خدمت د د پاره راولی۔

## کوڼ کیدل (کوی)

کوڼ کیدل فقیری، بد حالی او په کارونو کښے عاجزی ده۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښں کوڼ کیدل د دین تباهی غم او فکر دے او کارونه به ئے بند شی او مراد به ئے پوره نشي۔ د الله تعالیٰ کلام دے (صُمٌّۢ بُكۡمٌ عُمۡیٌ فَهُمۡ لَا یَرۡجِعُوۡنَ) البقرۃ (کاڼه دی، ګونګیان دی، ړانده دی، دوی نه ګرځیږی حق ته۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی په خوب کښں کوڼ کیدل بے برخے کیدل او د کارونو بندولے دے که اوګوری چه غوږونه ئے آوری تعبیر ئے مراد به ئے پوره شی او د الله تعالیٰ د رحمت نه به برخه مومی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښں کوڼ کیدل په څلورو وجووی (۱) فقیری (۲) د دین تباهی (۳) غم او فکر (۴) د کارونو بندیدل، او بے مراده کیدل۔

## کفن

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه د مړی یا ژوندی د پاره ئے کفن جوړ کړے دے که هغه سړے معلوم وی نو د هغۀ نه به تکلیف مومی۔ او که اوګوری چه د معلوم مړی کفن دے تعبیر ئے په دُنیا کښں به د دغه مړی طریقے تلاش کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه د مړی کفن ئے شلیدلے دے معبرین وائی که خوب لیدونکے پرهیزګاره وی او طالب العلم وی او باریکے خبرے کوی تعبیر ئے دُنیا به مړه ته کوی او حرام مال به راجمع کوی، که اوګوری چه د مړونه کفن اوباسی او ځائے په ځائے ګرځوی تعبیر ئے حرام مال به د دۀ په لاس روان وی که خوب لیدونکے فاسد وی تعبیر ئے منافق او چغلخور به وی او د خلکو په فسادونو به ګواهی ورکوی۔

## کُنزلے (کنجد)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کُنزلے په خوب کښں لیدل مال دے چه هره ورځ زیاتیږی که اوګوری

چه کُنزلے ورسره دی او خوری ئے تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به مال حاصل کړی کهٔ اوګوری چه چا ته ئے کُنزلے ورکړیدی تعبیر ئے دَ خپل مال نه به هغهٔ ته نفع ورسوی کهٔ اوګوری چه کُنزلے ئے خوړلے دی او خوند ئے ښهٔ نهٔ دے، تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به حرام مال بیا مومی او ځنے معبرینو وئیلی دی چه دهٔ ته به غم او فکر ورسیږی.

## کوڅه (کوچه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی کهٔ څوک په خوب کښې اوګوری چه دے په آباده کوڅه کښې دے تعبیر ئے خیر او نفع به ورته رسیږی خاصکر چه په هغې کښې پرهیزګاره خلک وی اوکهٔ دَ دے خلاف اوګوری تعبیر ئے ضرر او نقصان به ورته ورسیږی.

حضرت مغربیؒ فرمائی کهٔ اوګوری چه په فراخه کوڅه کښې مقیم شوے دے تعبیر ئے غم او فکر به ورته رسیږی.

## کیکرونه (کاکیر)

کهٔ څوک په خوب کښې اوګوری چه دهٔ سره کیکر دی او یا ورته چا ورکړیدی تعبیر ئے غمژن به شی کهٔ اوګوری چه کیکر ئے خوړلی دی تعبیر ئے زیات غم او فکر دے او کهٔ اوګوری چه کیکر ئے چا ته ورکړیدی تعبیر ئے دهٔ ته به غم او فکر رسیږی او دَ کیکر په لیدلو کښې څهٔ فائده نهٔ وی او الله تعالیٰ ډیر ښهٔ پوهیږی.

## کورکمن (مارچوبه)

کهٔ اوګوری چه دهٔ دَ ، مکے نه کورکمن را جمع کړی دی په خپل وخت کښې تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به دهٔ ته نفع ورسیږی او کهٔ اوګوری چه خام (کچه) کورکمن ئے خوړلی دی تعبیر ئے ضرر او تکلیف دے.

## کب (ماهی)

حضرت دانیالؑ فرمائی چه کب په ګرم دریاب کښې لیدل بلا او تکلیف دے او په یخ دریاب کښې لیدل تعبیر ئے دَ دے خلاف خوشحالی ده او کهٔ ډیر تازه، غټ کب اوګوری، تعبیر ئے مال او غنیمت دے او کهٔ وړوکے اووینی تعبیر ئے غم او فکر دے او کهٔ دَ کب په خیټه کښې ملغلرے پیدا کړی تعبیر ئے دَ دهٔ به زوی پیدا کیږی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دهٔ ته چا وچ یا مالګین کب ورکړیدے تعبیر ئے دهٔ ته به دَ بادشاه نه یا دَ مشر نه ضرر رسیږی او که نمکین (مالګین) کب او خوری تعبیر ئے غلام به دهٔ ته ضرر رسوی او ځنو وئیلی دی

چه نمکین سُورکړے کب خوړل تعبیر ئے سفر دے چه دَ علم طلب یادَ چا سرې سره ملاقات دَ پاره وی او دَ ورکوټی کب خوړل جګړه ده، کهٔ اوګوری چه څهٔ حصه دَ کب دَ بدن نه لګه وینه، هلاوکی، او هغه څهٔ چه په کیلاه دَ کب کبن دی پیدا کړی دی تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به مال او خیر او برکت به وی او یا به غلام اخلی او کهٔ اوګوری چه په دریاب کبن ئے غټ کبان نیولی دی، تعبیر ئے دَ هغه چا نه به بنځه کوی چه هغه مالداره وی

حضرت مغربیؒ فرمائی په خوب کبن تازه او سُورکړے کب مال او نعمت دے ځکه چه تازه کبان دَ اهلِ جنت خوراکه ده او دَ حضرت عیسیٰؑ په دسترخوان ووچه دَ آسمان نه را اکوزشوی وو. دَ الله تعالیٰ قول دے: رَبَّنَآ اَنۡزِلۡ عَلَيۡنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ) البقرۃ (اے ربه زمونږ په مونږه دَ آسمان نه خوانچه را اولیږے، کهٔ اوګوری چه کب دَ دهٔ دَ خُلے نه راوتے دے تعبیر ئے په څهٔ کارکبن به دروغ وائی او کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ عضو تناسل نه کب راوتے دے تعبیر ئے دَ دهٔ به زوی پیدا کیږی او کهٔ بنځه اوګوری چه دَ دے دَ خُلے نه کب را اوتے دے تعبیر ئے غمژنه به شی او کهٔ اوګوری چه دریاب نه ئے کب نیولے دے تعبیر ئے دَ کوم لوئے سړی نه به مال او نعمت بیا مومی او کهٔ اوګوری چه تازه کب ئے خوړلے دے تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به مال حاصل کړی.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه کبان خرخوی تعبیر ئے دَ دهٔ ته او دَ دهٔ کسانو ته به خیر او نفع را سیږی کهٔ اوګوری چه کب ئے دَ ډنډ نه نیولے دے، تعبیر ئے دَ یو عام سړی نه به په چل او فریب څهٔ شے اخلی کهٔ اوګوری چه دَ دریاب کبان ورته په خبرو راغلی دی، تعبیر ئے دَ بادشاه راز به ظاهروی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کبن کبان لیدل په شپږ ووجه وی (۱) وزیر (۲) لښکر (۳) پیغله جینئ (۴) غنیمت (۵) غم او فکر (۶) هندوه ویزه.

**کُنج (سکه)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، تازه غوړی په تعبیر کبن حلال مال او نعمت دے کهٔ اوګوری چه دَهٔ کُنج اخستے دے او یا ورته چا ورکړے دے او دَ هغې نه ئے خوړلی دی تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به حلال مال مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی په خوب کښې کچ خوړل ږښتینی گواهی ده اوکه دَ کچ نه خوړلی وی تعبیر ئے دهٔ ته به مال اونعمت حاصل شی اودَغوا کچ تعبیر ئے دغه کال به وربانذے مُبارک وی اودَ هغې په اندازه به خیراو نفع بیامومی خلاصه دا چه دَ هغه څنا ورو چه غوښه ئے حلاله وی تعبیر ئے حلال مال دے اودَ هغو چه دَ هغې غوښه حرامه وی تعبیر ئے په حرام مال دے۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، کچ په خوب کښې لیدل په څلورو وجوی (۱) حلال مال (۲) ږښتینی گواهی (۳) غم او عقل (۴) گناه۔

## کیله (موز)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کیله دَ مالدارو دَپاره مال دے او دینداروا دَ پاره دین دے اودَ کیلوپانړے دَ نورو ونو نه ښے دی که اوکوری چه دهٔ کیله اخستی اویا ورته چاورکړے ده او هغه سړے مالداره وی تعبیر ئے مال دے مال به ئے زیات شی اوکهٔ اوکوری چه کیلے ئے خوړلے دی تعبیر ئے دَ دین او دُنیا نفع به مومی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، کیله په خوب کښې په دریو وجو وی (۱) دَ مال زیاتوالے (۲) دَ دین زیاتوالے (۳) حلاله روزی اوښهٔ ژوند۔

او څنې معبرینو وئیلی دی که په خپل موسم ئے وکوری چه کیله خوری تعبیر ئے دا دے چه ښهٔ ښا ئسته او مالداره ښځه به کوی او دَ هغې نه به نفع بیا مومی۔

## کفن کښ۔ دَکفن غل (نباش)

دا هغه سړے دے چه په غلا بانذے دَ مړو نه کفن اوباسی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښې اوکوری چه دَ کفن غلائے کړے که هغه خوب لیدونکے دَ اهلِ علم څنی وی تعبیر ئے دے به علم خرڅوی اودَ باطلے دُنیا په طلب کښې به وی اوخپل عُمر به په دے کښې خرڅه کوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که چرے کفن کښ اوکوری چه ډیر کفنونه ئے راجمع کړی تعبیر ئے یو مصلح سړے به شی او علم او پوهه به حاصله کړی۔ او څنې معبرینو وئیلی دی تعبیر ئے دا دے چه حرام مال به را جمع کړی او دَ خلکو نه به ملامتیا او خبرے واوری۔

## کیناستل (نشستن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوکوری چه په ځمکه مضبوط ناست دے او اوچاته

ئے لګولے ده تعبیر ئے په سفر کښې به ئے کار نیک شی او که او ګوری چه ډیر زیات او ده شوے دے نو هم دغه تعبیر لری.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې په اَس، قچر یا په خره کیناستل په شلو ژرو وجوی (۱) بخت (۲) دولت (۳) مرتبه (۴) حکومت او په هوا کیناستل دَ بادشاهئ تعبیر لری خاصکر چه هوا دَده تابع وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که او ګوری چه دَ یو نیک سړی سره په لاره تللو او بیا په لاره کښې کیناستلو، تعبیر ئے نفسانی خواهش به لری او دَدین مخالف به وی لکه څنګه چه الله تعالیٰ په خپل پاکیزه کلام کښې فرمائیلی دی ( فَرِحَ الْمُخَلَّفُوْنَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلَافَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ) التوبه : روسته پاتی کیدونکی دَ رسول اللهؐ نه په خپل ناستی خوشحاله دی ) او که دَدین مخالف وی (بدکاره) او تللو او په لاره کښې کیناستلو تعبیر ئے دَ دے خلاف دَے.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی که او ګوری چه دَ نیکو او پرهیزګارو خلکو سره ناست دے تعبیر ئے دَ ده به خیر او اصلاح نوره هم زیاتیږی او که او ګوری چه دَ بدکارو سره ناست دے تعبیر ئے دَ دے خلاف دَے.

## کنډر (ویرانی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې دَ کور دُکان او دَ دے په شان چه دَ دے دَ ګمراهئ تعبیر لری او که او ګوری چه کنډر ئے آباد کړے تعبیر ئے دَ دے خلاف دے (ښه ده دے).

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که او ګوری چه یو آباد ځائے خراب شویدے تعبیر ئے دَ دے ځائے او سیدونکی به بلا او مصیبت کښې ګرفتار شی که او ګوری چه زاړه او وران ځایونه سموی تعبیر ئے دَ خوب لیدونکے دَ کار دَ سموالی تعبیر لری او دَ ګمراهئ نه نیکی لارے ته راتللو تعبیر لری.

حضرت مغربیؒ فرمائی، که او وینی چه ویرانی دَ الله جؐ دَ طرفه وی. تعبیر ئے خوب لیدونکی ته به نفع وی او که ویرانی دَ مخلوق دَ کردار دَ وجے وی تعبیر ئے دَ دے برعکس دے.

## کانونه موندل (یافتن کانها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که خوب کښې او ګوری چه غرئے او کنستلو او دَ زرو کان ئے په کښې او موندلو، تعبیر ئے دَ خیل قدر

په اندازه به ولایت او حکومت مومي که دَ هغه خوب لیدونکے نیک
او پرهیزګار وي تعبیر ئې الله تعالیٰ به دهٔ ته علم، حکمت نصیب
کړي، که اوګوري چه دَ سپینو زروکان ئې اوموندلو تعبیر ئې دَ دے
به یوه ښځه دَ هغه خلکو چه دَ سردارانو او دَ زیسانو دَ جملې نه
وي په نکاح اخلي دا سے ښځه چه ښائسته او مالداره به وي او
ځنې معبرینو وئیلي دي چه دَ دهٔ په کورکښې به مبارک زوی پیدا شي
که اوګوري چه دَ تانبے یا دَ پیتلو کان ئې اوموندلو تعبیر ئې دَ دهٔ به دَ یو
ظالم او بد کاره بادشاه سره ملاقات وشي، او که اوګوري چه دَ دهٔ دَ قلعي سپکے
ټین کان اوموندلو، تعبیر ئې ښائسته ښځه به نکاح واخلي که اوګوري چه
دَ او سپنے کان ئې اوموندلو، تعبیر ئې دَ مضبوط او قوي بادشاه سره به
ئې ملاقات اوشي او دَ دهٔ نه به مال مومي، که اوګوري چه دَ بنیبنو
کان ئې اوموندلو، تعبیر ئې دَ بادشاه دَ ښځے نه به ورته نفع ورسیږي
که اوګوري چه دَ زمرود او زبرجد وکان ئې اوموندلو، تعبیر ئې دَ
مال او مرتبے خاوند به شي او که اووینې چه دَ یاقوتو کان ئې اوموندلو
تعبیر ئې مال او عزت به ئې زیات شي، او که اوګوري چه دَ فیروزو کان
ئې موندلے دے تعبیر ئې په دښمن به کامیابي بیا مومي او هغه به مغلوبه
کړي او که اووینې چه دَ عقیقو کان ئې موندلے دے تعبیر ئې دَ بادشاه
نه به نفع مومي او که اوګوري چه دَ شبې کان ئې اوموندلو تعبیر ئې دَ
بادشاه سره به خبرے اترے کوي او که اوګوري چه دَ لعلونو کان ئې وموندلو
تعبیر ئې مرتبه او دبدبه به بیا مومي او که اوګوري چه دَ نوشادرو کان
ئې اوموندلو تعبیر ئې غمژن به شي او که اوګوري چه دَ مالګے کان ئې
موندلے دے تعبیر ئې دَ سردار نه به نفع مومي که اوګوري چه دَ زنجو
یا دَ زاک کان ئې موندلے دے تعبیر ئې غم او فکر دے او که اوګوري چه دَ
سیپینے خاورے کان ئې موندلے دے تعبیر ئې دَ بادشاه سره به ئې ملاقات وشي

## کولمې (رووده)

حضرت ابن عباسؓ فرمائي، که په خوب کښې اووینې چه
کولمې ئې اخستلې دي او دهٔ خوړلې تعبیر ئې دَ خپلوانو
نه به نفع مومي که اووینې چه دَ دهٔ خپلے کولمې راښکاره کیږي تعبیر ئې دَ دهٔ په
خپلوانو کښې به څوک بادشاه کیږي که اووینې چه دَ چا کولمې ئې خوړلې دي

تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به دَ چا مال خوري۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که اوګوري چه کولمې ئې دَ خولې نه بهر راوتلې دي تعبیر ئې دَ دهٔ دَ ښامنو مرګ دے چه زامن به ئې مري که اووینی چه دَ چا کولمې ئې راویستلې تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به دَ چا پټ مومي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی په خوب کښې کولمې راوتل او ظاهریدل دَ هغهٔ اینبودلے شوے پټ مال ظاهریدل دي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې کولمې لیدل په شپږ وجو وي (۱) حرام مال (۲) ناخوښه خبرے (۳) کنځلے (۴) زوی (۵) خپل کاروکول (۶) ژوند۔

## کارونه پوره کیدل (تمام شدن کارها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوري چه دَ دهٔ کارونه دَ دُنیا په نظم شویدي او مراد مند شویدے تعبیر ئې حالات به ئې متغیر او بدل شي، دَ الله تعالیٰ قول دے (حَتّٰى إِذَا أَخَذَتِ الْأَرْضُ زُخْرُفَهَا وَازَّيَّنَتْ) ترجمه (تر دے چه هر کله زمکه خپل ځان ښائسته کوي او ښه ښائسته شي) او که اوګوري چه دَ دهٔ کار نیمګړے دے تعبیر ئې دَ دهٔ دَ حال دَ بدلیدو دے دایره ده چه دَ دهٔ عمر پوره شویدے او دے به ظالم وي او انتقام به ورنه اخستے کیږي۔

## کُوهے (چاه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کوهے په حقیقت کښې ښځه ده که اوګوري چه په یو ځائے کښې کوهے او باسي تعبیر ئې ښځه به کوي که اوګوري چه په کوهي ویستلو کښې څوک ورسره مدد کوي تعبیر ئې، چه دَ دهٔ او دَ هغه ښځې په منځ کښې څوک مینځے دے او غواړي چه په چل او په دهوکه کښې ورته دغه ښځه به وادهٔ کړي ځکه چه دَ کوهي ویستل چل او دهوکه ده او په مثال کښې وائی چه فلانے کوهے دَ فلانی دَ پاره کني یعنی بد او دهوکه ورسره کوي او دَ کوهي او به دَ ښځې مال دے که څوک اووینی چه دَ کوهي نه ئې اوبه څښلې، تعبیر ئې دَ ښځې مال به خوري او که دَ خښتو پوخ کړي کوهي او به ئې څښلې وي دَ دے تعبیر ئې دَ ښځې مال دے که اووینی چه دَ چا کوهے ویستلے دے او اوبه نه دي راوتلې تعبیر ئې، فقیره ښځه به کوي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ کوهی اوبهٔ خنبلو کښې خوړې
وی تعبیر ئې دَ ښځې مال به په ناروا خلی اوکهٔ اوګوری چه دَ کوهی ګرمې
اوبهٔ ئې خنبلی تعبیر ئې دَ ښځې دَ مال په وجه به ظلم مومی او دَ ځنې معبرینو
دینا مطابق بیمار به شی کهٔ اوګوری چه دَ کوهی اوبهٔ ښې اوبخې دی تعبیر
ئې دَ ښځې نه به خیر او نفع مومی کهٔ اوګوری چه دَ کوهی اوبهٔ ښې ډیرې دی
تعبیر ئې دَ دهٔ ښځه به خوا نمرده او سخی به وی اوکهٔ اوګوری چه دَ کوهی
اوبهٔ لږې دی، تعبیر ئې ښځه به ئې بې وقوفه او بې همته وی کهٔ اوګوری
چه دَ کوهی نه بډا او باسی اواوبهٔ ئې ړراوتلی دی تعبیر ئې ښځه به ئې بیماره شی
او خپل مال به په بیمارئ کښې خوری اوکهٔ دَ کوهی نه تورې اوبهٔ راوتلی
دی یا آسمانی رنګې اوبهٔ تعبیر ئې غم او فکر به ورته ناسیږی اوکهٔ اوګوری
چه دَ کوهی نه سپینې اوبهٔ راوتلې دی، تعبیر ئې میراث به مومی اوکهٔ
اوګوری چه دَ کوهی اوبهٔ ژورې لاړې او هیڅ پاتې نهٔ شوې تعبیر ئې
ښځه به ئې هلاکه شی او مال به ئې تباه شی اوکهٔ اوګوری چه دَ کوهی اوبهٔ
ئې مکه کښې لاړې تعبیر ئې دَ دهٔ دَ ښځې دَ هلاکت دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی کهٔ څوک اووینی چه ډولچه ئې په کوهی کښې ښکته
کړې چه اوبهٔ راوباسی او ډولچه په کوهی کښې پریوته او رسئ اوشلیده
تعبیر ئې دَ دهٔ به ناقص زوی پیدا کیږی۔

**قصّه، واقعه**:۔ په حدیث شریف کښې دی چه یو سړی دَ عبدالله ابن
عباسؓ نه تپوس اوکړو چه په خوب کښې مې ولیدل چه ډولچه مې کوهی کښې
ښکته کړه چه اوبهٔ ئې اوباسم چه رسئ دوهٔ ټوټې شوه او هغه یوه ټوټه
راغله او یوه کوهی کښې پاتې شوه حضرت عبداللهؓ ورته جواب کښې اوفرمایل
تهٔ غائب وې او د استا زوی پیدا شوے او هغه مړ شو او دفن ئې کړو دَ
هغې شپږ میاشتې شوې دی سړی ووئیل چه دَ دے خبرے نه په تعجّب کښې شوم۔

حضرت دانیالؑ فرمائی کهٔ څوک په خوب کښې اووینی چه په یو معلوم
ځائې کښې کوهے اوباسی تعبیر ئې خپلو خلکو ته به چل او دهوکه جوړوی
او دَ ځنې معبرینو دَ وینا مطابق دَ کوهی کنستل او اوبهٔ راوتل دَ نکاح
تعبیر لری کهٔ اوګوری چه دَ بل چا دَ پاره کوهے اوباسی تعبیر ئې دَ چا
په نکاح کولو کښې به مینځې وی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی که او وینی چه ډ کوهی نه او به راوباسی تعبیر ئے به چل او په دهوکه به مال را جمع کوی خاصکر چه کوهے ئے خپله کنستلے وی که او کوری چه په ډولچه ئے او به راویستلی دی او په چا ئے کښی ئے اچوی تعبیر ئے، ډ خپل مال حفاظت به کوی که او وینی چه هغه او به ئے را اویستلی دی او هغه په زمکه کښی لاړے دی تعبیر ئے خپل مال به په خیرسره نفقه کوی که او کوری چه په کوهی کښی پریوتے دے تعبیر ئے په چل او په دهوکه کښی به پریوځی، که او کوری چه باغ ته ئے او به ورکړی تعبیر ئے کوم مال ئے چه ګټلے وی په هغے به بله ښځه کوی او یا به وینزه اخلی او که او کوری چه په هغه باغ کښی میوه ده تعبیر ئے زوی به ئے پیدا کیږی او ځنی وائی چه که او ګوری چه باغ ئے او به کړے دے تعبیر ئے ډ خپلے ښځے سره به کورولے کوی که او کوری چه او به ډ کوهی سره راختلی دی او روانے شوے تعبیر ئے مالداره ښځے سره به نکاح کوی او ډ هغه ښځے نه به مال او نعمت ورته حاصل کړے شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښی کوهے لیدل په شپږ و وجودی (۱) ښځه (۲) وینزه (۳) عالم (۴) مالداری (۵) چل او دهوکه (۶) مکر او حیله او کوهے ویستونکے سړے په خوب کښی چل او دهوکه ده۔

## کجوره (خرما)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښی کجوره لیدل مال او مراد دے که په خوب کښی او وینی چه کجورے ئے خوړلی دی که اهلِ علم وی تعبیر ئے علم به ئے نور هم زیات شی او که خوب لیدونکے سوداګروی تعبیر ئے مال به ئے زیات شی که او وینی چه کجورے ئے او خوړلے او نړے ئے بهر او غورزولو، تعبیر ئے شرعی احکام به په ځائے راوړی او ځنی معبرینو ویلی دی، که او وینی چه کجوره ئے خوړلے تعبیر ئے وراثت به بیا مومی او که او وینی چه کچه کجوره ئے خوړلے تعبیر ئے ډ خپل ځوی میراث به خوری او که او وینی چه ډ ده په کور کښی ډ خرما ونه ده او ډ کجورو نه ډکه ده تعبیر ئے، ډ کوم لوئے سړی سره به یو ځائے ملګرتو کوی او ډ هغه نه به نفع مومی که او وینی چه هغه ډ خرما ونه ډ بیخه وچه شوه تعبیر ئے، ډ دوی تر منځه به جدائی راځی، که او وینی چه ډ ده په کور کښی وچه کجوره ده او هغه بیا شنه شوه که خوب لیدونکے بیمار وی

نو بنهٔ به شی او که اووینی چه دَ خرما بیخ پر یکړے شوے دے تعبیر ئې دَ دهٔ دَ اهل نه به څوك بیمار شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه دهٔ سرهٔ تازه کجورے دی تعبیر ئې په سختئ سره به مال حاصلوی که اوګوری چه تازهٔ یا وُچے کجورے خوری تعبیر ئې دَ ایمان خوږوالے به مومی او کارونه به ئې په انتظام شی که اوګوری چه دَ اخرما دَ بیخه پر یکړے شوے وی تعبیر ئې، کوم کار چه په لاس کښې لری هغه به ئې دَ لاسه لاړ شی او معبرینو وئیلی دی خرما په خوب کښې هغه نفعه ده چه بادشاه نه به ورته ملاویږی که اووینی چه دَ دهٔ په کور کښې ډیرے کجورے دی تعبیر ئې، دَ هغې په اندازه به مال او سامان حاصل کړی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه دهٔ سره کجورے دی تعبیر ئې مالداره بنځه به کوی او په یو بل قول چه مال به بیا مومی که اووینی چه خرما کښې انګور لګیدلی دی او دهٔ راخستی دی تعبیر ئې دَ وینځے نه به تور زوی راوړی که اووینی چه وُچو کجورونه تازهٔ کجورے راشوکولی دی تعبیر ئې، دَ منافق سړی نه به خوږه خبره واوری او ځنی وائی چه دَ جاهل سړی نه به عقلمنده خبره واوری او که خوب لیدونکے غمژن وی دَ غم نه به خلاصے بیا مومی، دَ الله تعالیٰ قول دے (وَهُزِّي إِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسَاقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا) مریم [۲۵] (دَ کجورے تنه به پتا تازهٔ کجورے راوغورځوی)

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې کجورے لیدل دَ کریم او حلیم رئیس دَ طرفه حلال مال دے او وُچه کجوره په خوب کښې په پاک دین او په حلال مال تعبیر لری او تازهٔ خرما دَ سترګو په رڼا او په حلال مال تعبیر لری او په زوی او په نیکئ هم تعبیر لری۔

**قصه (واقعه)**: یو سړے دَ حضرت ابن سیرینؒ په خدمت کښې حاضر شو او وے وئیل چه په خوب کښې م ولیدل چه دَ بادشاه دَ محل په دروازه کښې م څلویښت کجورے اوموندلے، ورته ئې جواب ورکړو چه صبا به تاته هلته څلویښت بینتونه (ډنډے) لګیږی، هم هغه شان او شول هغه سړی بیا هم په بل کال کښې دَ حضرت ابن سیرینؒ په خدمت کښې حاضر شو بیائې ووئیل چه دَ بادشاه دَ محل په دروازه کښې م څلویښت کجورے

او موندلے ورته ئے جواب ورکړو چه څلویښت زره درهمه به بیا موهغه سړی ورته وویل چه تیرکال دے هغه شان دا تعبیر ئے ویستلے وواو سږ کال دغه شانته حال دا چه یو شانته خوب وو ورته ئے اوفرمائیل چه تیر کال کجورے په ونوکښې نهٔ وی دَ هغے تعبیر ئے دَ لرګی ډنډے وی او سږ کال په ونوکښې کجورے شته او ونے شنے او تازه دی دَ دے تعبیر هم دغه شانته دے دَ هغے نه یوه هفته روسته ئے څلویښت زره درهمه ومونډل

## کلے (دیهه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه په کلی کښې دَ او دَ کلی نوم ورته نهٔ ورځی (نهٔ پیژنی) تعبیر ئے په خیر او نیکی دے او کهٔ دَ هغے کلی نوم پیژنی تعبیر ئے بد دے، کهٔ اووینی چه دَ کلی نه بهر او تللے دے تعبیر ئے نیک دے او کهٔ اووینی چه کلی ته تللے دے تعبیر ئے بد دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دَ ښار نه کلی ته لاړو او هلته آباد شو چه په هغے کښې نعمت دے تعبیر ئے خیر، برکت، عزت، دے او کهٔ دَ دے خلاف اووینی تعبیر ئے په بدئ او دوستی یا تے کیدلو کښې دے، کهٔ اووینی چه په کلی کښې ورک شوے دے تعبیر ئے په نیکئ سره دَ

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښې اووینی چه چا ورته نا معلوم کلے ورکړیدے یا ئے اخستے دے یا ئے جوړ کړے دے، تعبیر ئے دَ کلی دَ آبادئ په اندازه به خیر او نفع مومی، او کهٔ دَ دے خلاف اووینی تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

## کشمالو (شاه اسپرغم)

حضرت ابن سیرینؒ، کهٔ په خوب کښې اووینی چه کشمالو پاکیزه او خوشبوداره دی تعبیر ئے بزرګی ده، کهٔ زیړاو مړاوے اووینی، تعبیر ئے بیماری ده۔

حضرت جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ کشمالو لیدل په شپږ وجوی (۱) عزت او بزرګی (۲) زوی (۳) ملګرے (۴) ښهٔ خبره (۵) دَ علم مجلس (۶) نیک نامی، تعریف او صفت.

## کُونے (شیشه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، دا هغه څناور دے چه دَ ګرمئ په موسم کښې دَ شپے په جامو کښې او په پوستین کښې کیږی او هغه تباه کړی او دے ته بزموسن هم وائی، دَ دے لیدل په

خوب کښې همسایه (ګوانډی) دے که اووینې چه کونے د ده کپړه خوړلے ده، تعبیرئے د ده د مال نقصان به وی. که اوګوری چه کونے پشمین سامان او اسباب تباه کړے دے تعبیرئے د ده د کوره به غله څه شے وړی، که اووینې چه کونے وژلے دے، تعبیرئے غل به نیسی او مال به ورنه اخلی۔

## کجاوه (عماری)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اووینې چه کجاوه کښې ناست دے او کجاوه په قچریا په اس ده او روان دے تعبیرئے مرتبه او بزرګی به بیا مومی او که اووینې چه د کجاوے نه پریوتلو او یا ورنه بهر راووتلو، تعبیرئے د دے خلاف دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینې چه چا په کجاوه کښې کښینولے دے تعبیرئے د کوم سرداره سره به ملاویږی او کار به ئے اوچت وی او مرتبه به ئے اوچته شی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اووینې چه په دښمن ئے کامیابی موندلے ده، تعبیرئے په دښمن به کامیابی حاصله کړی او که د دے خلاف اووینې تعبیرئے دښمن به په ده کامیابی حاصله کړی۔

## کافر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک خوب کښې اووینې چه کافر شوے دے تعبیرئے د کفر دین طرفته به ئے مائیله وی که اووینې چه بت پرست شو او ورته سجدے کوی، تعبیرئے د الله تعالیٰ ګنهګار به وی که اووینې هغه اور ته او شغلے ته لری تعبیرئے حرام مال به لټوی او خپل دین به په حرام مال خرڅوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې کافر کیدل په دریو وجو وی (۱) د کفر طرفته میلان او مینه لرل (۲) د بے دینه خلکو سره ناسته (۳) د بد او خرابے عقیدے خاوندانو سره ناسته او په هغے رسوا کیدل۔

## کتان کپړه (کتان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې کتان لیدل حلال مال دے په هغه اندازه چه ده لیدلے دے او د دے نفع د مالوچو نه کمه ده، د هغے بیان مونږ په حرف جیم کښې ذکر کړے دے په خوب کښې د کتان جامه مبارکه ده که اووینې چه د کتان تخم ئے خوړلے دے تعبیرئے پوره مال به حاصل کړی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښں دَ کتان لیدل په درېو وجوو ی (۱) حلال مال (۲) نفعه (۳) شرارت۔

## کشتۍ (کشتي)

حضرت دانیالؑ فرمائی، په خوب کښں دَ کشتۍ لیدل غم او اندېښنه ده یا جیل دے یا به دلسے کار کوی چه دَ هغے نه به ورته غم او بلا رسیږی خاصکر چه دَ دریاب نه کشتی بهر نهٔ وی راوتی او یا کشتۍ په دریاب کښں وی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښں اووینی چه په کشتۍ کښں دے او روغ سلامت دَ هغه ځایه راوتلے دے تعبیرے ئےدَ غم نه به خلاصے مومی۔ دَ الله تعالیٰ قول دے (فَأَنجَيْنَاهُ وَمَن مَّعَهُ فِي الْفُلْكِ الْمَشْحُونِ) الشعراء ۱۱۹: (مونږ هغهٔ او دَ هغهٔ ملګرو لره په ډکه کشتۍ کښں خلاصے ورکړو) ۔ کهٔ اووینی چه په دریاب کښں کشتۍ تباه شوه، تعبیرے ئےدَ چا قوم دَ لاسه به هلاک شی، کهٔ اووینی چه دَ دهٔ کشتۍ په زمکه پاتے شوے تعبیرے ئےپه تکلیف او غم کښں به ګرفتار کړے شی او ډیروخت پس به خلاصے بیا مومی او کهٔ اووینی چه کشتۍ ډوبه شوه او دے سالم پاتے شوے دے تعبیرے ئےمال به ئے هلاك شی او دے به سالم او روغ پاتے شی کهٔ اووینی چه کشتۍ ماته شوه او ټول غرق شول تعبیرے ئےلوئے مصیبت به دهٔ ته رسیږی، کهٔ اووینی چه په کشتۍ کښں په اوچت ځائے باندے ناست دے او کشتۍ په اوبو روانه وه تعبیرے ئےدهٔ ته به دَ بادشاه نه او دَ سردارانو نه نزدیکت او مرتبه پیدا شی۔ کهٔ اووینی چه دَ دریاب په مینځ کښں کشتۍ منډے وهی تعبیرے ئےپه سفر به ځی او ډیروخت به نهٔ راځی بلکه په هغه سفرکښں به مقیم شی کهٔ اووینی چه په کشتۍ کښں ناست دے او ښهٔ هوا چلیږی او کشتۍ ښهٔ چلوی تعبیرے ئےدَ غم او فکرنه به خلاصے بیا مومی کهٔ اووینی چه کشتۍ ولاړه ده او دَ هرطرفه پرے چپے راځی تعبیرے ئےسختی به ورته مخکښے راځی چه دَ دهٔ یره او هلاکت به وی۔ دَ الله تعالیٰ قول دے؛ (وَجَاءَهُمُ الْمَوْجُ مِن كُلِّ مَكَانٍ) یونس ۲۲ :(دَ هرطرفه وربا ندے چپے راغلے) کهٔ اووینی چه کشتۍ دَ دهٔ په وړاندے روانه ده او دے ورته ونهٔ رسید لو تعبیرے ئےپه سخت کارکښں به پریوځی او اخیر به خلاصے بیا مومی دَ الله تعالیٰ قول دے؛ (فَأَنجَيْنَاهُ وَأَصْحَابَ السَّفِينَةِ) العنکبوت ۱۵ (مونږ

هغه او دَ کشتئ خاوندانو ته خلاصے ورکړو، که اووینی چه په دریاب کښ دَ کشتئ په خوا کښ تللی دی تعبیر ئے په سفر به ځی او ډیره نفعه به ورته حاصله کړے شی، دَ الله قول دے (یُزْجِیْ لَکُمُ الْفُلْکَ فِی الْبَحْرِ لِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ) بنی اسرائیل ۶۶ (ستاسو دَ پاره په دریاب کښ کشتئ گرځوی دَ دے دَ پاره چه تاسو دَ هغهٔ مهربانی حاصله کړئ) که اووینی چه په کشتئ کښ څهٔ نهٔ وو او خالی روانه وه تعبیر ئے، بادشاه به چرته سفیران لیږی که اووینی چه کشتئ ډوبے شوی دی تعبیر ئے هغه سفیران به خلک ایسار کړی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه کشتئ په دریاب کښ ډوبه شوے ده او دے پوهیږی چه دا دَ دهٔ ملکیت دے تعبیر ئے، دهٔ ته دَ هلاکت یره نهٔ وی، که اووینی چه په کشتئ کښ ناست دے او دَ بادشاه نه یریږی تعبیر ئے، دَ بادشاه مقرّب به وی او دَ کشتئ دَ لوئے والی په اندازه به ورته نفع ورسیږی او که په کشتئ کښ په امن کښ ناست وو تعبیر ئے، دهٔ ته به دَ بادشاه نه یره وی، که اووینی چه کشتئ رنگ په رنگ کپړو باندے ښائسته شوی دی تعبیر ئے، دَ بادشاه په وړاندے به مقرب وی که اووینی چه کشتئ دَ دریاب میځ ته تللے ده، تعبیر ئے، دهٔ ته به دَ بادشاه نه لوئے قوت وی او که اووینی چه کشتئ نهٔ تلله تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، که اووینی چه په وړه کشتئ کښ ناست دے او هغه په دریاب کښ ننټی تللے، تعبیر ئے دهٔ ته به غم او فکر نور هم زیات شی او که اووینی چه کشتئ په دریاب کښ روانه ده، تعبیر ئے په سفر به ځی او نړ به واپس راشی او که کشتئ په وچه ولاړه اووینی تعبیر ئے په کوم کار کښ به عاجز وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ کشتئ لیدل په آتهٔ وجوو (۱) زوی (۲) پلار (۳) ښځه (۴) سورلی (۵) خوشحالی (۶) امن (۷) عیش وعشرت (۸) مالداری۔

## کُنی کبر (گفتار)

کُنی کبر په خوب کښ مُرداره او پلیته او بد کرداره ښځه ده۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اووینی چه دهٔ کُنی کبر تړلے دے تعبیر ئے ښځه کړی او هغه او بد عمله ښځه به کوی که اووینی چه دَ کُنی کبر غوښه ئے

خوګلې لري تعبیر ئې په دا دۀ به جادو کوي.

حضرت کرماني فرمائي، کۀ اووینې چه دۀ د کُنې کبر پېئ ښکلې یا ئې د دۀ سره د کُنې کبر هېروکې یا خرمن وه تعبیر ئې، د هغه ښځې نه به فائده حاصلوي.

حضرت کرماني فرمائي، کۀ اووینې چه کُنې کبرورسره خبرې کړې تعبیر ئې، ښځه به ورسره بد ژباني کوي.

حضرت امام جعفر صادق فرمائي، په خوب کبن د کُنې کبرلیدل بد دي.

**کمربند** حضرت ابن سیرین فرمائي، کۀ اووینې چه د ملا نه ئې کمربند تړلے دے، تعبیر ئې دۀ ته به د چا نه مدد او ملا تړ حاصل وي او ځنې وائي چه دۀ به د زوي یا د خپلوانو مدد حاصل وي، کۀ اووینې چه کمربند د ملغلرو او جواهر ونه ډک دے تعبیر ئې د قیمت په اندازه به مال حاصل کړي او د دۀ به قوت او مدد دوربانده جوړ شي دا هم کیدے شي چه د دۀ به زوي پیدا شي چه په ټولو قبیلو به بجتور او دولتمند وي.

حضرت کرماني فرمائي، کۀ اووینې چه دۀ په ملا پورے درے ځلوړ کمربنده تړلي دي، تعبیر ئې د دۀ مال او نوکران به ډیروي دا هم وئیلے شي چه عُمر به ئې اوږدوي. کۀ اووینې چه چا ورته کمربند ورکړے دے او دۀ په ملا پورے تړلے دے تعبیر ئې، په سفر به ځي، کۀ اووینې چه کمربند مات شو او پریوتو او ضائع شو، تعبیر ئې، د دۀ په مال او بزرګۍ کبن به نقصان راشي.

حضرت مغربي فرمائي، کۀ اووینې چه د دۀ کمربند په ملغلرو ډک دے تعبیر ئې د قوم سردار به جوړ شي او د دۀ په وجه به د دۀ خاندان مالدار شي کۀ اووینې چه د دۀ کمربند د او سپنے او د تانبے د تورے سره بنا ئسته دے تعبیر ئې په لږ وغوښتلو دے، کۀ اووینې چه چا ورته توره او کمربند بخشش ورکړے دے تعبیر ئې، د بادشاه د پاره به سفر کوي.

حضرت امام جعفر صادق فرمائي په خوب کښے کمربند لیدل په شپږ وجوه دي

(۱) د موړ او پلار او خپلوانو نه نفع (۲) زوي (۳) بزرګي او پناه (۴) لوئے عمر

(۵) انصاف موندل (۶) دَ دین پاکی۔
کهٔ اووینی چه کمربند ئے ملا پورے تړلے دے تعبیر ئے دَ دښمنا نو سره به انصاف کوی۔ مګر نیم عمر به ئے تیر شوے وی۔

**وربیځ (ګهُس زخم)** کهٔ اووینی چه دهٔ ګهُرا خستے دے تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به په دین کښ ګمراهی اووینی، او کهٔ اوګوری چه ګهُرے، ناسره بدل شولو، تعبیر ئے توبه به اوباسی، کهٔ اوګوری چه دَ ګهُرنه کهر کښ تلکے دے تعبیر ئے مُنافق به وی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه په تیارهٔ ګهُر کښ دے تعبیر ئے غم، فکر او دَ کار دَ بندیدو دے، کهٔ اووینی چه هوا، ناڅاپه، او سمدستی ګهُر را ښکاره شو، تعبیر ئے په هغه ملک کښ به اچانک مرګونه وی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ دَ ګهُرلیدل په څلورو وجووی (۱) رو ستو ولے (۲) دَ کارونو پټیدل (۳) بدعت (۴) ګمراهی۔
حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دَ ګهُرنه رانا ته راغلو تعبیر ئے دَ فقیرئ نه به مالدارئ ته راشی او دَ بدعت او دَ ګمراهئ نه به لری وی۔
حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ دَ ګهُرلیدل ښهٔ نهٔ دی۔

**دَ اوبو راویستلو دَ پارهٔ خاکانے جوړول (کاریز)** نوټ:- دا یو قسم دَ اوبو چینو را ویستلو پروګرام دے چه د ېر

خاکانے اوکوهیان اوباسی او دَ زمکے دننه دَ یو کوهی نه بل کوهی ته دَ اوبو تللو لارهٔ جوړه کړی او آخر کښے دَ یو کوهی اوبه بهر را و باسی او زمکے وربانډے اوبهٔ کیږی۔
حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک په خوب کښے اوګوری چه په یو معلوم ځائے کښے دَ کاریز جوړولو کار کوی، تعبیر ئے دَ خپلو کسانو سره به چل او فریب کوی، دا تعبیر هغه وخت دے چه کله کاریز او باسی او اوبه ونکړی او که اوبهٔ ئے را و ویستلے او جاری شوے بیائے تعبیر په هغه مقررهٔ کاریز مقصود دے۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی که په خوب کښے اووینی چه دَ کاریز نه اوبه اخلی، تعبیر ئے په چل او فریب به مال راجمع کوی خاصکر چه دهٔ کاریز کنستلے وی، بیا به ورته نفع وی چه څومره اوبه ئے ورنه اخستے وے دَ هغے په اندازه به نفع مومی۔ که اوګوری چه دَ کاریز نه اوبه ناخلی او په منګی او په چاټئ کښے ئے اچوی تعبیر ئے په هغه مال دے چه خرچ کوی ئے۔ که اوګوری چه په

کاریز کښې پریوتے دے۔ تعبیر ئې په چل او دهوکه کښې به ګیر شي۔
حضرت مغربیؒ فرمائي که اوګوري چه د کاریز نه باغ او بڼې کوي د خپلے بخے سره به کور والے کوي او کاریز په خوب کښې لیدل هغه سړے چه د دُنیا کارونه په چل او دهوکه سره جوړوي۔

## ګُنګے کیدل (ګنګي)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که څوك په خوب کښې خپل ځان ګونګے اووینی، تعبیر ئې د دۀ د دین تباهي او نقصان دے لکه څنګه چه الله تعالیٰ فرمائیلي (صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ) ترجمه (کاڼه دي، ړانده دي، ګونګیان دي او د حق طرف ته نه ګرځیږي)۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښې ګنګي کیدل په اوو وجوي.
(۱) فقیري (۲) بد حالي (۳) غم او فکر (۴) د ژوند نقصان (۵) مصیبت (۶) د مال نقصان (۷) د دین نقصان، که ګُنګے په خوب کښې اووینی چه ژبه ئې پرانستلے شوے، تعبیر ئې بند کار به ئې پرانستلے شي۔

## ګُونګے (یومارغۀ)

ګُونګے مارغۀ په خوب کښې لیدل ناکاره فاسد او حاسد او غل سړے دے، که اوګوري چه د ګونګے مارغۀ سره ئې جنګ کړیدے، تعبیر ئې د چا سره به په جنګ او جګړه شي او په نورو تولو حالاتو کښې د ګُونګے لیدل ښۀ دي۔
حضرت مغربیؒ فرمائي، که اوګوري چه دۀ سره ګُونګا دے او یا ورته چاورکړیدے، تعبیر ئې غل سړے به ئې الاندے کوي، که اوګوري چه د ګُونګي غوښه ئې خوړلے ده، تعبیر ئې د هغے په اندازه به د غل سړي مال خوري، که اوګوري چه دۀ سره د ګُونګي بچي دي، تعبیر ئې وړوکے غلام یا د هغۀ شاګرد به هغۀ ته ملاویږي۔

## ګوتے (انګشتان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې پنځه ګوتے د ښي لاس پنځه مونځونه دي په تعبیر کښې او پنځه ګوتے د چپ لاس زامن یا ورونه دي او ځنې معبرینو وئیلي دي غټه ګوته د سهار د مونځ او د شهادت ګوته د ماسپخین مونځ او منځے ګوته د مازدیګر مونځ او دے سره خوا کښې ګوته د ماښام او کچه ګوته د ماسخوتن مونځ تعبیر دے۔

کهٔ څوك اوګوری چه دَ بنی لاس ګوتے نهٔ لری تعبیرئے زوئ یا رود به ئے مړ کیږی، ځنی وائی چه زوی یارورته به ئے مصیبت ورسیږی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ دَ بنی لاس ګوتے یوځائے دی، تعبیرئے تنګدستة به شی اوکهٔ اوګوری چه ګوتے ئے یوځائے راجمع کړی، تعبیرئے دَ ورو نو یا زوی کار به ئے درست وی اوکهٔ اوګوری چه ګوتے ئے دَ موتی په شان بند کړی وی، تعبیرئے دَ دهٔ اودَ دهٔ دَ کور والؤ کار به سم وی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ غټه ګوته پریکړے ده تعبیرئے دَ دهٔ دَ مال قوت دے اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ دَ شهادت ګوته پریکړے شوے ده، تعبیرئے په فرض مونځونو کښں به کوتاهی کوی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ منځنئ ګوته پریکړے شوے ده، تعبیرئے په مال کښں به ئے نقصان راشی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ کچه ګوته پریکړے شوے ده تعبیرئے دا دے چه دَ دهٔ نوَسے (لمسے) به مری۔
حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی په خوب کښں دَ خپو ګوتے لیدل دَ ښائست او آرایش تعبیر لری، کهٔ دَ خپو ګوتے سختے اوقوی اوګوری تعبیرئے دا دے چه دَ دهٔ وادهٔ به جوړ شی اوکهٔ دَ دے خلاف اوګوری تعبیرئے، دَ دهٔ کار به نهٔ کیږی کهٔ اوګوری چه دَ خپو ګوته ئے ځه آفت ورسیدلے دے لکه تلل ئے نشی کولے، تعبیرئے دهٔ ته به دَ مال په تللو سخت خفګان ورسیږی، کهٔ اوګوری چه دَ خپو او لاسونو ګوتے ئے ماتے دی تعبیرئے دَ دهٔ کار به خراب شی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښں دَ ګوتو لیدل په شپږ وجوه دی (۱) زوی (۲) وراره (۳) خدمتګار (۴) دوستان (۵) قوت (۶) پنځه وخته مونځونه۔
کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ ګوتے غوړه یدلے دی او یا پریکړے شوی دی تعبیرئے دَ ګوتو په باره کښں چه بیان وشو دَ خپلوانو نه به جدا شی، اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ ګوته ماته شوے، تعبیرئے یو دَ کور والؤ دَ دهٔ نه به مری۔
او خلف اصفهانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ کچے ګوتے نه ئے بیئ راغلی او یا دَ شهادت دَ ګوتو نه ئے وینه راغلے تعبیرئے دا سړے به دَ چیلے خوابنے

سره فسا د کوی او که او گوری چه د گوتے نه ئے آواز راځی، تعبیر ئے د خپلوانو په مینځ کښ به ئے خبرے کیږی۔

## گیتهئ (پاشنہ پائے)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ د خپو گیتهئ لیدل تعبیر ئے د کاروبو په نظم کیدل او د خلکو په کسب تعبیر لری که او گوری چه د خپو گیتهئ ئے ماتے شوی دی تعبیر ئے دا سے کار کښ به مشغول شی چه د هغے نه به پښیمانه شی که او گوری چه د ده د خپو گیتهئ خیری شوی دی یا زخمی شوی دی هم دغه تعبیر لری مگر د اول نه به ئے پښیمانی کمه وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که څوک په خوب کښ او گوری چه د خپے گیتهئ ئے پریکړے ده او دے خوړله او درنګ کانو ته ئے ورکړله، تعبیر ئے چه هغه څه چه په کسب کښ لاس ته راوړی و به ئے خوری او دښمنانو ته به ئے ورکړی، که او گوری چه گیتهئ ئے پریوتی ده، تعبیر ئے بیکاره وبے کسبه به شی او نادار او فقیر به شی۔

## گیتهی (شتالنگ)

په خوب کښ گیتهئ موندل جنگ او جگړه ده، که څوک خوب کښ او وینی چه د شتالنګ سره ئے لوبے کړی او آواز او شور ورنه راتلو تعبیر ئے په جگړه کښ به پریوځی او که هغه دخت چُپ په چُپ لوبے دی تعبیر ئے حرام مال به موی۔

## گیتهئ، پونده (کعب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی د گیتهئ لیدل په مقام[1] تعبیر لری، که او وینی چه د گیتهئ سره ئے لوبے کړی، تعبیر ئے جنگ او جگړه به کوی او که او گوری چه ډیر گیتهئ لری تعبیر ئے د هغے په اندازه به ورته غم او فکر رسیږی او که او وینی چه د خپے گیتهئ ئے ماته شوے ده، تعبیر ئے زوی به ئے مری او یا به ورته غم رسیږی چه د جگړے معنیٰ ته ئے او گوری او د ده گیتهو جگړه او فریب او دهوکه ده۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، د گیتهو سره لوبے کول د سپک دښمن سره جنگ جگړے کولو تعبیر لری۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، گیتهئ په خوب کښ په پنځو[5] وجوی

(۱) مقام (۲) بنځه (۳) زوی (۴) مال (۵) خبرے اترے، د الله تعالیٰ کلام دے

رذ ګوا عِبَ اَ تْرَا بَاۃَ لَاوَّسَکَاْ سَّا دِ ھَا قَّاْلَم) النبا، (او ځوانانے همزولے ښځې او دَ شرابو پیالے ډکے) ـ کهٔ اوګوری چه دَ ځنا دروکیتهٔ درسرهٔ ده دَ کوموچه غوښه حلاله ده، تعبیرئے حلال مال دے او کهٔ دَ حرامو ځناورو کیتهٔ وی تعبیرئے حرام مال دے۔

## دَګرمئ موسم، اوړے (تابستان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی ګرمی په خوب کښں لیدل سخت بادشاه دے، کهٔ ډیره سخته ګرمی وی داسے چه خلکوته ئے نقصان وو تعبیرئے، دَ هغهٔ ځائے خلکوته به دَ بادشاه نه خیراونیکی ر سیږی په خپل وخت ګرمی لیدل ښهٔ دی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ څوك اوړے (دَګرمئ موسم) په خوب کښں اوګوری داسے چه خلق خوشحاله دی او ونے دَ میوؤنه ډکے دی تعبیر ئے عزت او دولت به ئے زیات شی او حاجت به ئے پوره شی او دَ عام سړی په خوب کښں بادشاه لیدل تعبیرئے، قوت او نصرت دے او کهٔ ګرمی ئے په بل موسم کښں ولیدله، تعبیرئے دَ دے خلاف دے۔

## ګلئ (ګګرس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خپل وخت کښں ګلئ لیدل کهٔ لږه نهٔ وی نو دَ عذاب او دَ دُنیا دَ تنګئ دے او کهٔ په خپل وخت کښں اوګوری تعبیرئے، دَ هغه ځائے خلقوته به نعمت او فراخی وی مګر بے وخته ګلئ لیدل دَ هغه ځائے خلکو دَ پاره دَ غم او دَ پریشانئ تعبیرلری۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ ګلئ لیدل په خوب کښں په پنځو وجووی (۱) بلا (۲) جګړه (۳) لښکر (۴) قحط (۵) بیمار۔

## ګلئ (ژاله)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښں اوګوری چه په کوم ښار یا کلی کښں ګلئ وریږی، تعبیرئے دَ هغه ځائے خلکوته به دَ بادشاه نه تکلیف رسیږی۔ کهٔ اوګوری چه باران، بریښنا ګلئ سره وریږی تعبیرئے، په هغه ځائے کښں به قحط، تنګی او ضرر وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، ګلئ دَ باران سره په خوب کښں لیدل تعبیر ئے نعمت، فراخی او دَ امن کیدو دے

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ ګلئ لیدل په خوب کښں په پنځو

وجووی (۱) بلا (۲) جګړه (۳) لښکر (۴) قحط (۵) بیماری.

**ګل خیرو (خطمي)** یو قسم داروډی

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خپل موسم کښې ګل خیرو لیدل نفع ده او بې موسمه لیدل غم او فکر دے او د دے خوړل ضرر او نقصان دے - او په دے سرو ینځل تعبیر په توبه او په پاك دین دے.

**ګونګټ (سرګین ګردان)** دا هغه وړوکی حشرا تو کښې دے کوم چه ګندګی را جمع کوی ..... او تعبیر ئے په هغه سړی دے چه د مال جمع کولو والا دے.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که او ګوری چه ګونګټ ئے نیولے دے تعبیر ئے، د دهٔ به د حرام خور سړی سره ملاقات او ملګرتیا راشی او که او وینی چه ګونګټ ئے مړ کړے، تعبیر ئے، حرام خور سړے به مړ کړی او که خوړلی ئے وی، تعبیر ئے د حرام خور سړی مال به خوری.

**ګومنز (شانه)** ګومنز هغه سړے دے چه د هغهٔ اصل او نسب نهٔ وی او د هغهٔ په دین کښې منافقت وی، که او ګوری چه سر او ګیره ئے ګومنځ کړی دی، تعبیر ئے د غم نه به خلاصے بیا مومی او د قرض نه به خلاص شی او مراد به مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که او ګوری چه سر او ګیره ئے ګومنز کړی دی او خهٔ ویښته ئے بهر او باسی، تعبیر ئے، د مال زکوٰة به ورکوی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، ګومنز په خوب کښې په کار خیر کښې موافق ملګری دے او ویښته ګومنز کول د مراد موندل دی او ګومنز جوړولے هغه سړے دے چه د دهٔ زړهٔ نه غم او فکر لرے کوی او قرض ئے خلاصوی.

او ځنې معبرینو وئیلی دی، چه ښائسته خلک دی چه د هغوی په لیدلو سترګے روښانه کیږی.

**ګیدړ (شغال)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که او ګوری چه د ګیدړ په موندلو پسے ګرځی او حیران وی چه نه ئے شی نیولے تعبیر ئے، بیمار به شی او که او ګوری چه ګیدړ ورسره لوبے کوی، تعبیر ئے، چرته په ښځه به عاشق وی او که او ګوری چه د ګیدړ غوښه ئے خوړلے، تعبیر ئے، بیمار به شی او صحت به ئے ښهٔ شی او که

ضدارے وی نو دَ قرض نه به خلاص شي او دَ کیږ رو یېنته، څوک
هلوکي په خوب کښې لیدل دَ ټولو تعبیر مال دے.

**کُرز (عمود)** دا دَ جنګ وسله ده.
حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، کُرز په خوب کښې
یښتینې او بشهٔ سړے دے او معبرین وائي چه سختې خبرے دي که اوګوري
ه په کُرز ئے څوک وهلي دي، تعبیر ئے چا ته به سختې خبرے کوي او که
ګوري چه دهٔ سره دَ او سپینے کُرز وي تعبیر ئے دهٔ ته به دَ بادشاه دَ طرفه
وت او مدد حاصل وي او که اوګوري چه دَ دهٔ دَ لاسه چا کُرز واخستلو
عبیر ئے دَ دے خلاف دے.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي په خوب کښې کُرز لیدل په درېو
وجو وي (۱) رښتینې سړے (۲) سختې او ضرري خبرے (۳) بزرګ او سردار

**کُرز (قمع)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، وړوکے کُرز په خوب
کښې غلام یا وینزه ده، او غټ کُرز دَ ډکولو والاد
که اوګوري چه وړوکے کُرز ئے اخستے دے او یا ورته چا ورکړے دے
تعبیر ئے وړوکے غلام یا وړه وینزه به اخلي او که اوګوري چه کُرز ئے
مات شوے او یا ضائع شوے تعبیر ئے، دَ خپلو ملګرو دَ ملګرتیا نه به
دَ دهٔ جدائي وشي او که اوګوري چه دَ دهٔ کُرز دَ سپینو زرو دے تعبیر
ئے دَ دهٔ دَ یو بښهٔ او عقلمند سړي سره ناسته وي او که اوګوري چه دهٔ
سره دَ او سپینے کُرز دے تعبیر ئے دَ دهٔ به دَ بهادر قوي سړي سره
ناسته شي او دَ هغه نه به خیر او نفع بیا مومي.

**ګګوشتکه (فاخته)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، ګګوشتکه په
خوب کښې نیمګړے دین او بد اخلاقه ښځه
ده چه دَ چا سره موافقه نه کوي، که اوګوري چه دهٔ سره ګګوشتکه ده،
تعبیر ئے بے دینه ښځه به کوي او که اوګوري چه دَ ګګوشتکے بچي ئے نیولي
دي تعبیر ئے، دَ دهٔ به زوی پیدا کیږي او که اوګوري چه دَ ګګوشتکے غوښه
ئے خوړلے ده، تعبیر ئے په دے اندازه په دَ ښځے مال اخلي او ځ به
کوي. حضرت کرمانیؒ فرمائي ګګوشتکه دروغژن زوی دے که اوګوري
چه دَ دهٔ په بام (چت) ګګوشتکے یو ځل آواز کړے دے، تعبیر ئے دَ غائب آواز به

داوُړی اوکۀ دوه ځل ئے آواز کړے وی دا ډیر ښهٔ دے اوکهٔ درے ځلۀ کړے وی دا نهایت ډیر ښهٔ دے کهٔ اوګوری چه کارغهٔ اوګکوشتکه دواړه دَ دهٔ کورته راغلی دی تعبیرئے دا چه غله به دَ دهٔ کورته راځی اوسامان به ورنه وړی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَګکوشتکے لیدل په خوب کښں په دریو وجووی (۱) بنځه (۲) ځوی (۳) خدمتګارم۔

## یوګوند، چیبړ (کتیرا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه کتیرا ورسرهٔ ده اویا ورته چادرکړے ده تعبیرئے دَ بخیل سړی نه به څهٔ پاتے شوے مال حاصل کړی اوکهٔ اوګوری چه کتیرا ئے خوړلے ده، تعبیرئے مال به خوری۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَکتیرا لیدل په خوب کښں په دریو وجووی (۱) دَ خلکو پاتے شوے مال (۲) لږه نفع (۳) داسے کارم به کیږی چه خوب لیدونکی ته به لږه نفع ورسیږی۔

## ګرمی دانے (ګرمکے) (ګبر)

ګرمی دانے (ګرمکے) په خوب کښں لیدل مال اوخواهش دے، کهٔ څوک په خوب کښں اوګوری چه دَ دهٔ په وجود ګرمکے دانےم ابنکاره شوی دی اولږ شانته خارښت هم کوی او په دا نو کښں نوَ (پیپ) وو، تعبیرئے مال به په تکلیف او مشقت سره حاصل کړی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه ګرمکے دَ دهٔ په بدن دے اوټول ختمے شوی دی تعبیرئے، دَ دهٔ جمع شوے مال به هلاکیږی اوځنی معبرینؒ وئیلی دی کهٔ دَ دهٔ وجود آسمانیم رنګه او توروی، تعبیرئے، دَ حرام مال جمع کولو دے۔

## ګلوبند (ګردن بند)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دهٔ سره دَ سپینو جواهرو ګلوبند دے، تعبیرئے الله تعالیٰ به دهٔ ته عِلم په برخه کړی اوڅومره چه دَ ګلوبند جواهر قوی او مضبوط وی تعبیرئے عِلم اوعقل به ئے ډیروی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ ګلوبند دَ سرو زرو دے او په قیمتی بے بها ملغلرو پیللے شوے دے تعبیرئے دَ هغے

په اندازه به عزت او سرداري به بيا مومي دا هم کيدے شي چه د دۀ په ذمه به امانت وي او کۀ اوګوري چه ګلوبند ئے غټ شوے دے، تعبير ئے امانت به ادا کړي او کۀ وړوکے شوے وي تعبير ئے د دے خلاف دے.

حضرت مغربي" فرمائي، کۀ اوګوري چه خپل ګلوبند ئے د ملغلرو نه پيللے دے او يا پيللے شوے ګلوبند د دۀ په غاړه دے تعبير ئے مرتبه او ولايت به مومي او کۀ ګلوبند اوږد وي، تعبير ئے مرتبه به مومي او کۀ لنډ وي، تعبير ئے د دے خلاف دے او کۀ اوګوري چه دۀ سره ډير ګلوبندونه دي، تعبير ئے په علم کښ به کامل وي.

حضرت امام جعفر صادق" فرمائي په خوب کښ د سرو زرو ګلوبند ليدل په شپږو وجهو دي (۱) حج (۲) ولايت (۳) جنګ او جګړه (۴) امانت (۵) علاج (۶) وينزه، او د سرو زرو ګلوبند حج دے او د سپينو زرو ګلوبند وينزه ده.

## کاړے (ګردون)

حضرت ابن سيرين" فرمائي، کۀ اوګوري چه په کاړي ناست دے او کاړے بنۀ روان دے، تعبير ئے عزت او سرداري به بيا مومي او کۀ اوګوري چه کاړے بغير د غوايانو ولاړ دے او دے په کاړي کښ دے، تعبير ئے په سختئ، تکليف او بيمارئ کښ به پريوځي، کۀ اوګوري چه بادشاه د خپلو کاړونه کاړے ورکړے دے، تعبير ئے د بادشاه نه به مرتبه او بزرګي مومي.

حضرت امام جعفر صادق" فرمائي په خوب کښ د کاړي ليدل په اتۀ وجوو وي (۱) ولايت (۲) عزت (۳) مرتبه (۴) بزرګي (۵) مصيبت. (۶) خوشحالي (۷) او چتوالے (۸) په کارونو کښ آساني.

## کانړه کول (ګرو) ګردن

حضرت ابن سيرين" فرمائي، کۀ اوګوري چه په کانړه ځائے کښ دے او يا ئے ځان کانړه کړے دے په څۀ شي، تعبير ئے د تيرو ډيرو ګناهونو نه به ځان بانده يريږي. او کۀ اوګوري چه خپل اهل او عيال ئے د چا سره کانړه کړے دے، تعبير ئے په دۀ به ظلم او زياتے کيږي او کۀ اوګوري چه خپل ځان ئے د چا سره کانړه کړيدے، تعبير ئے، هغه کس به مظلوم وي او دا کيدے شي چه څوک به ور باندے ظلم کوي.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کۀ اوګوری چه خپل ځان ئې ګانړه کړیدے تعبیر ئې د دین فساد دے. د الله تعالیٰ کلام دے د ﴿کُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ﴾ ترجمه: هر روح په خپل کسب کبن ګانړه دے).

کۀ اوګوری چه د دُنیا څۀ سامان ئې د چا سره ګانړه کړے دے تعبیر ئې د هغه سړی سره به د دُنیا د سامان د پاره خبرے اترے کوی، او ضرر به موهی.

## ګنجے کیدل (کل شدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ اوګوری چه سر ئې ګنجے شویدے تعبیر ئې مال اومراد به موهی او ځنی معبرینو وئیلی دی چه غم او فکر به ورته لرے شی کۀ قرضدار دے وی نو د قرض نه به خلاص شی او کۀ اوګوری چه د ګنجی سړی سره ئې ناسته پاسته کړے، تعبیر ئې، د مالداره سړی سره به اشنا شی کۀ اوګوری چه دے ګنجے وداوبیا پرے ویښته راغلی تعبیر ئې مال به ئې هلاک شی او قرضداره به شی.

## ګل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کبن ګل حکم په دوه قسمه دے یو قسم په ونه ګل او بے ونے ګل او د هغه ګل چه پاڅے نۀ وی د دے لیدل، تعبیر ئې د هغے لیدل خوب لیدونکی د پاره غم او فکر دے او کۀ سور ګل په وخت په موسم په ونه اوګوری تعبیر ئې، د دۀ زوی به پیدا کیږی او کۀ بے موسمه وی تعبیر ئې، د زوی په وجه ورته مصیبت رسیږی او د ګل ونه په خوب کبن سردار او خبرلوڅه سړے دے او د نرګس ونه سوداګره ښځه او حاجت پوره کونکے دہ او د سپین ګل ونه تعبیر ئې په عزت او دولت ومرتبه دے کۀ په خپل سرائے کبن د ګل ونه اووینی، تعبیر ئې ځینئ به په نکاح کوی او کۀ په کور کبن د صدبرګ ګل ونه اووینئ تعبیر ئې، د زوی په وجه به خوشحاله شی او کۀ د هر قسم ګل غوړیدلے اووینی، تعبیر ئې، د اهل بیت (د کور خلک) او د خلوا نونه به خوشحاله شی او کۀ د ګل بیخ د زمکے نه تو کیدلے اوګوری، تعبیر ئې د دۀ د کور خلک به سُست وی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب د ګل لیدل بے همته او بے وفا سړے دے چه د چا سره وفا نۀ کوی کۀ اوګوری چه ګل ئې د لاسه پریوتے دے

او یا ئے چا ته ورکړیدے تعبیر ئے دَ بے وفا سړی نه به لرے وی.
حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائیلی دی، کُل په خوب کښ دَ غائب سړی خط دے چه دهٔ ته به رسیږی، او یا به دَ غائب سړی راتګ وی.
حضرت امام جعفرصادق فرمائی په خوب کښ کُل لیدل په شپږ وجوو دی (۱) ښځه (۲) ملګرے (۳) بے همته سړے (۴) وینزه (۵) غلام. (۶) دَ غائب سړی خط.

## کُل قند (گل شکر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ دَ کُل قند او دَ کُل انګبین لیدل دَ خوړلو په اندازه حلال مال دے کهٔ اوګوری چه دهٔ سره کُل قند او کُل انګبین ډواړه دی او دهٔ خوړلی دی تعبیر ئے، کهٔ مالداره وی نو مال به ئے نور هم زیات شی او کهٔ غمژن وی نو غم به ئے لرے شی او خوشحاله به شی او کهٔ قرضداره وی نو قرض به ئے خلاص شی.

## کِرجه (کلیسا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښ اوګوری چه کرجی ته تللے دے او هلته ئے دَ قبلے طرف ته مونځ کړیدے تعبیر ئے دا سړے به دَ ګناه نه توبه کوی او په دین کښ به قوی شی، ځکه چه کِرجه دَ عبادت ځائے دے.
حضرت کِرمانیؒ فرمائی کهٔ اوګوری چه کِرجی ته تللے دے تعبیر ئے دَ دهٔ میلان به بُت پرستوته وی خاصکر کهٔ دَ دوی دَ قبلے په طرف ئے مونځ کړے وی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه مندر ته تللے دے که چرے خوب لیدونکے پرهیزګاره وی تعبیر ئے، خراب به شی خاصکر چه هلته مقیم شوے.

## ګُناه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښ اوګوری چه ګُناه ئے کړے او نهٔ پوهیږی چه څهٔ ئے کړی تعبیر ئے، په ګُناه او بدئ کښ به ګرفتاره شی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښ ګُناه کول تعبیر ئے، ګُناه دے باید چه توبه او باسی دَ دے دَ پاره چه دَ الله تعالیٰ دَ عذابه امن کښ شی او کاروبار ئے سم شی.

## گُنبد

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې دَ گُنبد لیدل ښځه ده، که پاکیزه گُنبد اوګوري او پوهیږي چه دَ دهٔ مالک دے تعبیر ئے ښکلے ښځه په کوي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښې گُنبد لیدل عزت او سرداري ده که اوګوري چه دے په لوئے گُنبد کښې دے، تعبیر ئے خیرا و نفع به ورته رسیږي

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې گُنبد لیدل په څلورو وجوو دی (۱) ښځه (۲) وینزه (۳) نفع (۴) عزت او مرتبه۔

## کوکړ (ګوګرد)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کوکړ په خوب کښې لیدل غم او فکر دے او دَ کوکړو په لید لو کښې څهٔ خیرا و نفع نشته دے۔

## کوزن (فالج) (لقوه)

دا یو داسے بیماري ده چه خُله پکښے کږه شي۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک په خوب کښې اوګوري چه دَ دهٔ مخ دَ کوزن دَ وجے نه کوږ شویدے، تعبیر ئے دَ خلکو په وړاندے به خوار او ذلیل شي او که اوګوري چه مخ ئے صفا او پاکیزه دے، تعبیر ئے دَ خلکو په وړاندے به معزز او محترم وي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، کوزن په خوب کښې لیدل منافق دے چه دَ خلکو په مینځ کښې دَ منافقت خبرے کوي، که اوګوري چه کوزن و هلے دے دَ دے بیماري ښکاره کیدل دَ دین دَ نقصان دَ وجه نه دي۔

## ګُډ کیدل (لنګ شدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوري چه ګُډ شویدے تعبیر ئے طلب دَ خیرا و دَ شرا و دَ سستوا و کمزورو او طاقت کارونو دے۔

او څنې معبرینو ویلي دي که څوک ځان په خوب کښې ګُډ او ذلیل او وینی تعبیر ئے، دَ خلکو په سترګو کښې به ذلیل او خوار وي۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوک په خوب کښې ځان ګُډ او ویني تعبیر ئے په دین او دُنیا کښې به مات مات وي او مراد به ئے په لاس نهٔ راځي او که اوګوري چه ځان ئے پخپله قصداً ګُډ کړے دے، تعبیر ئے په خپل کار کښې به دَ چا نه مدد غواړي، که او ویني چه ګُډ شوے دے او په همسا

ئې تعبیر ئې دَ هغه چا نه به مدد غواړي چه خلک ورباندې اعتماد کوي اومراد به ئې حاصل شي اوکهٔ اوګوري چه ځان ئې قصداً ګنډ کړے تعبیر ئې ظاهري به په یو کس اعتماد کوي او حقیقت کښې به ورباندې اعتماد نهٔ کوي۔

حضرت مغربيؒ فرمائي، کهٔ څوک ځان په دواړو خپو ګنډ اوګوري دا سے چه په دواړو لاسو ګښې لړګے اخستے وواو تللو تعبیر ئې دَ ګوروالځ په کار کښې به عاجزاوناتوان وي اوکهٔ اوګوري چه دَ ازغي دَ وجه نه چه دَ دهٔ به خپه کښې تللے دے اوګنډ دے او نشي تللے، تعبیر ئې دَ هغه سړي دَشر نه به امن کښې وي اوکهٔ اووینې چه په دواړو خپو کښې ئې ازغي تللي دي اوپړسیدلي دي اوګنډ نهٔ دے، تعبیر ئې دُښمن به په دهٔ حسد کوي اودَ دهٔ مال اومرتبه به زیاته شي۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائي، کهٔ په خوب کښې څوک ګنډ اوګوري چه دَ دهٔ خپه جوړه شوے ده اونهٔ ګنډیږي، تعبیر ئې بند کارونه به دَ دهٔ خلاص شي اودَ هغه مراد چه ناامیده وو پوره به شي اوټول کارونه به ئې په نظم سره شي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښې ګنډ کیدل په پنځو وجو وي (۱) په کارونو کښې سُستي (۲) ناامیدي (۳) فقیري (۴) غم اوفکر۔ (۵) دَ عیش اوعشرت نقصان۔

## ګزارش

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، کهٔ په خوب کښې اووینې چه ګزباندې باران یا بل څهٔ شے اندازه کوي تعبیر ئې دَ دهٔ ته به نفع او فائده وي۔

## ګړنګ دَ پُوزي (خلم)

تهٔ ګنګ شان موادي چه دَ پوزې نه راووځي چه ورته ګړنګ وئیل کیږي کهٔ اوګوري چه دَ پوزي نه ئې ګړنګ راوتي دي تعبیر ئې دَ قرض نه به خلاص شي اودَ غم اوفکر نه به خلاصے مومي۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، ګړنګ لیدل په خوب کښې تعبیر ئې زوي دے کهٔ اوګوري چه ګړنګ په جامو غورزیدلے دے تعبیر ئې دَ دهٔ به زوي پیدا کیږي اوکهٔ اوګوري چه په زمکه پریوتے دے، تعبیر ئې لور به ئې پیدا

کیږی او که اوګوری چه په ړمکه ئے ګرنګ پریوتے دے، تعبیرئے ښځه به ئے حامله کړے شی او د دے نه به د زوی اسقاط وکړے شی او که او وینی چه ښځے وربانده ګرنګ اچولے دے، تعبیرئے، د کاونډی ښځے سره به فساد کوی او که اوګوری چه ګرنګ ئے خوړلے دے، تعبیرئے د قید خانے مال به په نیکه وجه خوری۔

## ګډ ے ، (ګوسفند)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښں ګډ ے لیدل غنیمت دے که اوګوری چه ګډ ے خروی تعبیرئے په یوه ډله به مشری او سرداری مومی، که اوګوری چه څنی ګډ ے سپینے او څنی تورد ی تعبیرئے هغه ډله به څنی عرب او څنی عجمه وی او که اوګوری چه ډیرے ګډ ے ړا جمع شوی دی او پوهیږی چه د دهٔ ملکیت دے تعبیرئے، ډیر مال به ورته حاصلیږی که اوګوری چه ګډه ئے د څټ نه نیولی ده تعبیرئے، د چا خواری به په غاړه اخلی او که اوګوری چه د ګډ ے سره کړے غوښه خوری تعبیرئے، غم او فکر دے که اوګوری چه د خوړلو د پاره ئے ګډه حلاله کړے، تعبیرئے په دښمن به کامیابی مومی او د هغهٔ مال به خوری، او که اوګوری چه د ګډ ے پخه کړے غوښه خوری تعبیرئے، د هغے په اندازه به ورته غنیمت وی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی، که او وینی چه ګډه ئے نیولے ده او پاورته چا ورکړے ده، تعبیرئے، د چا مشر سړی سره به ئے صحبت او ملګرتیا وی او د هغه مشر به مال مومی، که اوګوری چه د ګډ ے مړئ ئے پریکړے او څښتے کړے ئے ده، تعبیرئے په چا مشر سړی به کامیابی مومی او مال به ئے اخلی او خرچه کوی به ئے، که اوګوری چه په نرګډ ناست دے او د دهٔ تابع دے تعبیرئے په کوم لوئے سړی به زور ور کیږی او که اوګوری چه ګډ په دهٔ غالب شوے دے تعبیرئے د دے خلاف دے، او که اوګوری چه د ګډ سر او ښکے مات کړی دی تعبیرئے په هغه سړی چه صفت ئے مونږ وکړو وربانده غالب شی، که اوګوری چه د ګډ سر او ښکے اوږد دے قوی دی تعبیرئے هغه سړے به تندرست وی او که اوګوری چه په نرګډ ورځے اوږد دے او بېرے دی تعبیرئے، د هغے په اندازه به ئے مال او نعمت

زیات شی۔ کهٔ اوویني چه دَ ګډ وړے لوئے شوی دی او دے پوهیږی
چه دَ دهٔ ملکیت دے تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به خلکو ته حکومت کوی
او دوی به دَ خپل لاس لاندے راولی او دَ دوی نه به ډیر مال او نعمت
مومی او څنګ وائی چه دَ هر ګډ د شمار په عوض دَ یو کال مشری او
عزت به حاصل شی

حضرت مغربی" فرمائی' په خوب کښ ګډ لیدل ښځی او لویه ښځه ده،
لکه څنګه چه الله تعالیٰ دَ حضرت داؤد علیه السّلام په قصه کښ په قرآن
مجید کښ فرمائیلی، دَ الله تعالیٰ قول دے (اِنَّ هٰذَآ اَخِیْ لَهٗ تِسْعٌ وَّ
تِسْعُوْنَ نَعْجَةً وَّلِیَ نَعْجَةٌ وَّاحِدَةٌ) ص۲۳ (زما دَ ورور یو کم سل ګډے
او زما یوه ګډه فقط) کهٔ اوګوری چه ګډه ئے نیولے ده او یا ورته چا
ورکړے تعبیر ئے په دے صفت چه ذکر ئے وکړے شو ښځه به دَ دهٔ محبه
او غوښتونکے وی او دَ دے نه مال حاصل کړی کهٔ اوګوری چه ګډه ضائع
شوے، تعبیر ئے هغه ښځه به ورنه جُدا کیږی۔

حضرت اسمٰعیل اشعث" فرمائی، کهٔ اوویني چه په خوب کښ ئے دَ ګډے
مړئ ئے پریکړے ده تعبیر ئے په پرهیزګاره ښځه به تهمت لګوی او کهٔ
ګډه توره وی تعبیر ئے هغه ښځه به عربه وی او کهٔ سپینه ګډه وی هغه
ښځه به عجمه وی۔ او دَ ګډے څرمن غنیمت او حلال مال دے او دَ ګډ
لیدل په خوب کښ په پنځو وجووی (۱) بادشاهی (۲) لویه ښځه (۳) مال۔
(۴) حکومت (۵) مرتبه او نفع۔

## ګډ وړے (دُنبه)

حضرت ابن سیرین" فرمائی په خوب کښ دَ
ګډ لیدل دَ مال کخوړه ده چه دَ هغے حفاظت
به کوی یا د ښځے مال دے دَ هغے دَ ترِ یاتی او کمی په اعتبار سره او کهٔ
اوګوری چه کچه ګډ وړے ئے خوړلے دے تعبیر ئے شکمن مال به خوری
او کهٔ اوګوری چه پوخ کړے ئے خوړلے دے تعبیر ئے دَ دهٔ مال به دَ دهٔ
دُښمن خوری۔

حضرت ابراهیم کرمانی" فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ دَ ګډ په شان لم
ئے دے تعبیر ئے دَ دهٔ به زوی پیدا کیږی چه دَ دولت او بخت خاوند
به وی او روزی به ئے فراخه وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې د ګډلم لیدل د سروزرو کڅوړه (همیانئی) ده۔

## کولئی خوړل (حب خوردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې کولئی خوړل که چرے د بیمارئ د پاره ئے خوړلی وی تعبیرئے، د هغې سړی به شفا مومی نو په ښوکارو کښې د نفعے تعبیر لری او که او ګوری چه د نفعے د پاره ئے نه ده خوړلے، تعبیرئے د اول خلاف دے۔

## ګنډل (رفوکردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې جامے یا بل شے ګنډل په جنګ او جګړے تعبیر لری که اووینی چه خپلے جامے یا بورقعه ګنډی تعبیرئے په خپلو نو کښې به د چا سړی په جګړه کښې پریوځی یا د دوست سړی چه په هغه کښې به خیرا و نفع نه وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که په خوب کښې اووینی چه خپلے جامے خپله ګنډلی وی، تعبیرئے، د خپل عیال د پاره به غم او فکر کوی او په خوب کښې جامے ګنډل جنګ او جګړه ده او په کوشش سره به خپل کارسموی او د جګړے نه به تښتی۔

## ګډا کول (رقص کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې ګډا کول غم، فکرا و مصیبت دے او ځنے معبرین وائی چه بیماری ده او ځنے وائی چه د سړو د پاره جیل نه خلاصے دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښې ګډیدل د ښځو د پاره رسوائی او شرمندګی ده او د سړو د پاره مصیبت مګر د صوفیانو او د ګډیدونکو د پاره غم او فکر نه دے او په خوب کښې ګډیدونکے هغه سړے دے چه د خپلو او پردو په غم کښې به همیشه وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې ګډیدل غم او مصیبت دے۔

## ګُهنګرو (زنګله)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې ګُهنګرو لیدل جنګ او جګړه ده که څوک اووینی چه ده سره ګُهنګرو دے تعبیرئے، د کوم مالدار سړی سره به جنګ کوی که اووینی چه چا دوست ملګری ورته د سرو نه رو یا د سپینو نه رو ګهنګرو ورکړے دے تعبیرئے، د کوم مالدار سړی سره به جنګ کوی که اووینی چه ګهنګرو د

چاندۍ یا دَ پیتلو دے تعبیرئے دَ جاعام سړي سره به جګړه کښې پریوځي.

## ګواهي (شهادت)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اووینی چه رښتیا ګواهي ورکوی تعبیرئے دَ غمونو نه به خلاصے مومی او دَ دهٔ آخرا نجام به ښهٔ وی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ نیک عمله سړے په خوب کښې اووینی چه په رښتینی ګواهي ورکوی تعبیرئے دَ مرګ په وخت به شهادت اومومی اوکهٔ خوب لیدونکے بد عمله او فسادی وی تعبیرئے دا چه توبه به اوباسی او دَ ګناه نه به پښیمانه وی او کهٔ خوب لیدونکے مشرك وی تعبیرئے مُسلمان به شی او انجام به ئے ښهٔ وی.

## ګاذره (ګزر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې ګاذره غم او فِکر دے، کهٔ اووینی چه دهٔ ګاذره اَخستے ده او خوړلے ئے ده تعبیرئے ډیرغم به ورته رسیږی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه خوږه ګاذره ده، تعبیرئے لږ غم به وی او کهٔ ګاذره په غوښه کښې پخکړے وی تعبیرئے هغه نفع ده چه په سختئ سره لاس ته راځی او څنی معبرین وائی چه دَ ګاذرے خوړل په خوب کښې بیماری ده او سرے کړے ګاذرے لیدل هم ښهٔ نهٔ دی. ښهٔ هغه ده چه دَ غوښے سره پخکړے وی.

## ګلاب

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې ګلاب لیدل تندرستی ده، کهٔ اووینی چه ګلاب ئے په خُلهٔ کښې اچولے دے تعبیر ئے تندرست به وی او خلک به دَ دهٔ تعریف او صفت کوی کهٔ اووینی چه هرچاته ګلاب ورکوی تعبیرئے په هغه ملک کښې به ئے نوم مشهورشی اوکهٔ داخوب عالم اووینی تعبیرئے دَ دهٔ عِلم نه به خلق فائده واخلی.

## ګندنه (یو قسم ساګ دے)

حضرت دانیالؑ فرمائی په خوب کښې ګندنه لیدل داسے سړے دے چه خلک به ئے ښهٔ یادوی. حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې ګندنه لیدل حرام مال دے او بده خبره ده. کهٔ خوب لیدونکے پرهیزګاره نهٔ وی تعبیرئے حرام مال به بیا مومی او همیشه به خرابے خبرے کوی او دَ ګندنے په خوراك کښې کومه فائده نشته دے.

## کُلِ معصفر (یو قسم کُل دے)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ دَ کُلِ معصفر لیدل په درېو وجوه دی (۱) غم او فکر (۲) بیماری (۳) دا سے کار چه دَ هغے کولو سره تکلیف او غم رسیږی.

## دَ کُلا بو بُوټے (نبات جلاب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ دَ کُلا بو بُوټے لیدل ښهٔ خبره ده، که ډیر بُوټی دَ کُلا بو اووینی تعبیرئے مال او نعمت دے که اووینی چه چا ورته په خُلهٔ کښ دَ کُلا بو بُوټے ایښے دے تعبیرئے دَ هغه سړی نه به ښهٔ خبره واوری او یا به هغه دے ښکلوی.

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی، که څوک په خوب کښ اووینی چه دهٔ سره دَ کُلا بو ډیر بُوټی دی تعبیرئے دَ هغے په اندازه به مال او نعمت حاصل کړی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ کُلا بو لیدل په پنځو وجوی (۱) ښهٔ خبره (۲) ښکلول (۳) نفع او مال (۴) زامن (۵) حلاله روزی.

## لنګ (ازار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، لنګ په خوب کښ ښځه ده که اوګوری په خوب کښ چه لنګ ئے ضائع شوے دے تعبیرئے ښځه به کوی او یا به وینزه اخلی، که اوګوری چه لنګ ئے شلیدلے دے تعبیرئے دَ ښځے دَ نقصان او عیب دے، که اوګوری چه لنګ ئے ضائع شوے دے، تعبیرئے دَ ښځے نه به جُدا شی، او که اوګوری چه [illegible] دے تعبیرئے، دَ دهٔ په ښځے دَ آفت او دَ بیماریٔ دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی که اوګوری چه دَ دهٔ لنګ دَ سوتی یا دَ پشمینے دے تعبیرئے دَ دهٔ ښځه به تیزه او دینداره وی او که خپل لنګ ئے زوړ او خیرن اوګوری تعبیرئے، دَ دے خلاف دے او که اوګوری چه دَ دهٔ لنګ دَ ریښم یا دَ ابریشم نه جوړ دے تعبیرئے دَ دهٔ ښځه به عیاشه او متکبره وی.

## لوټ کول (تاراج)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که څوک په خوب کښ اوګوری چه مال او نعمت ئے لوټ کړے دے تعبیرئے، هغه کس ته به نقصان، غم او فکر ورسیږی دَ وړل شوی مال په اندازه.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، لوټ کول لیدل په خوب کښ په

څلور وجوړی (۱) شور (۲) تاوان (۳) غم او فکر (۴) د نرخ ارزانی مګر چه غنیمت دی.

**لینبو (ترنج)** حضرت دانیال فرمائی چه لینبو یروی لیکن خوشبو یه او خوشذ ائقه، لید لوکښ ښه وی او وټلے کیږی چه د جنت د میوؤ نه دے او په خوب کښ د دے لیدل ډیر ښه دی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، لینبو لیدل په خوب کښ مالداره او ښائسته سړے دے په خلکو کښ چه خلک ئے خوښوی، که اوګوری چه ده سره لینبو دے او یا ورته چا ورکړے دے تعبیرئے دے چه په دصفت چه ذکرئے اوشو د ده په ورسره صحبت او ملګرتیا اوشی، او که لینبو په خپل غیر کښ اوګوری تعبیرئے د ده به ښائسته زوی پیدا کیږی او که اوګوری چه لینبو ئے خوړلے تعبیرئے ده ته به د باچا د مال نه حصه رسیږی. او که اوګوری چه ده لینبو پټ کړے دے او ا تغښتے ئے دے تعبیرئے د ده به زوی هلاکیږی او که اوګوری چه ده سره په کور کښ ډیر لینبو دی او چا ته ئے بخشش کړی دی تعبیرئے د چا په حق کښ به نیکی کوی او که اوګوری چه لینبو ئے په لستوڼی کښ ایښے دے تعبیرئے د ده به د وینزے نه زوی پیدا کیږی او که اوګوری چه د لستوڼی نه ئے پریوتے دے تعبیر ئے د ده به زوی پیدا کیږی.

حضرت دانیال فرمائی، که څوک په خوب کښ یو لینبو یا دوه یا درے اووینی تعبیرئے زوی دے او که ډیر اووینی تعبیرئے مال او نعمت به اومومی او د شنه لینبو لیدل په خوب کښ د زیړ نه ښه دے.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، لینبو په خوب کښ لیدل په څلور وجوړی (۱) ښځه (۲) پاک دینه وینزه (۳) مالداره ملګرے (۴) نیک او صالح زوی.

**لیمبو (لیموں)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خپل موسم یا غیر موسم کښ د زیړ لیمبو لیدل بیماری، درد او غم تعبیر لری. او که شین وی نو په لږ غم او فکر تعبیر لری او د دے په خوړلو کښ څه خیر او نفع نه وی او الله تعالیٰ ښه پوهیږی.

**خانک (تغار) لوښے تالے** د لوښے تالی په خوب کښ لیدل همه د اونیکه ښځه ده چه د کور صلاحیت

لرې او حلکوته بنه لاره ښائي او د بدۍ او د شرنه توبه کوي.

حضرت کرماني فرمائي، که اوګوري چه تالے مات شوے دے او یا ضائع شوے دے، تعبیرئے هغه ښځه به د دهٔ نه جدا شي او یا به د دُنیا نه سفر کوي او د ځنو معبرینو په قول تالے په خوب کښ لیدل ویڼزه یا خادمه ده.

## لرګے (چوب)

حضرت کرماني فرمائي، په خوب کښ لرګے لیدل د دښمن لیدل دي او ځنو معبرینو ویلي دي چه په خوب

## لسي (شوملے) (تره دوغ)

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي، د تروه لسي څښل خوب کښے تعبیرئے غم او فکر او

او بعضې تعبیر کونکو بیان کړے دے چه لسّي (شوملے) څکل خوب کښے خوب کښے حرام مال حاصلول دي ځکه چه دے نه ئے کچ ویستلی دي او که چا ورکړے شوملے هغه سړے به غمژن شي.

## څه شے لوګے کول

حضرت ابن سیرین فرمائیلي دي په خوب کښے څه لوګے کول تعبیرئے د کوم عزت مند سړي نه مال حاصلول دي، که اوګوري چه د کوم خوشبویه شي نه ئے لوګے کړے دے تعبیرئے د هغے په اندازه به د کوم سړي نه مال حاصلوي.

حضرت جابر مغربي فرمائیلي دي چه کوم لوګے څومره ښه بوی لري د هغے په اندازه د لیدونکي خوب د پاره هغه هومره ښه نفع او خیر به ورته رسیږي. او که د لوګي څه خوشبوي نهٔ وه. تعبیرئے د لیدونکي د خوب د پاره د اول خلاف دے

حضرت امام جعفر صادق فرمائیلي دي، د څه شي لوګے کول په خوب کښے تعبیر په درے وجوه دي (۱) ډیر مال (۲) ښه ژوند (۳) نیک نوم.

کښ لرګے اوګوري تعبیرئے هغه سړے دے چه هغه په منافقت کښ وي او که څوک ئے ورته ورکړي تعبیرئے هغه سړے به د دهٔ سره منافقت کوي او د کاږهٔ لرګي تعبیر هم د غه د سم لرګي تعبیر دے او که کوږ لرګے د سوزولو قابل او وینې تعبیرئے منافق دروغژن سړے دے.

## لیوهٔ (خرس)

حضرت ابن سیرین فرمائي، په خوب کښ لیوهٔ د وکه مار او احمق دُښمن دے که اوګوري چه په لیوهٔ ناست دے تعبیرئے د بادشاه نه به ذلت مومي. او که اوګوري چه لیوهٔ ئے وژلے

دے تعبیرئے په دُښمن به کامیابی مومی. او که او گوری چه دَ لیوۀ غوښه خوری او خرمن ئے دَ ځان سرۀ کړے ده تعبیرئے ویره به ورته رسیږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی نرلیوۀ په خوب کښ لیدل بد بخته او لیونی سړی دی او ښځه لیوۀ په دے شکل او خوی کښ ښځه ده که او گوری چه ښځه لیوۀ ئے نیولی ده تعبیرئے په دے صفت به ښځه کوی او که او گوری چه لیوۀ دَ دۀ کور ته راغلے دے که نرلیوۀ وی نو په دے صفت سړی به دَ دۀ کور ته راځی او دَ لیوۀ لیدل په خوب کښ په هرحال کښ ښۀ نۀ دی.

## لور (داس)

هغه آله چه گیاه پرے رېبلے شی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوك په خوب کښ او گوری چه دَ دۀ په لاس کښ لور دے، تعبیرئے داسے سامان به جوړ کړی چه دَ هغے نه ورته مال حاصلیږی او که اووینی چه دَ دۀ لور ضائع شو یا دے تعبیرئے دَ دۀ دَ مال نقصان دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی، که او گوری چه دۀ سرۀ دَ سرو زرو یا دَ سپینو زرو لور دے تعبیرئے دَ حرام مال نه به څۀ حاصلوی او که او گوری چه دَ هغے نه څۀ سهوی شے پریکړے شی تعبیرئے مال او نعمت به حاصلوی.

## لُور (دختر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ لُور لیدل ښادی او خوشحالی ده که اووینی چه دَ دۀ جینئ شوے ده او یا ورته چا ورکړے ده او یائے ورته بخشش کړے ده تعبیرئے دَ جینئ دَ ښائست په اندازه به ورته مال، نعمت، خوشحالی حاصله شی، که او گوری چه دَ دۀ جینئ مړه شوے ده تعبیرئے دَ دے خلاف دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که او گوری چه دَ دۀ لُور خیرنه او ناقصه ده تعبیرئے غم او فکر دے که او گوری چه لوړ ئے په غیږ کښ واخسته او بوئے تله تعبیرئے خیرا و نفع ده او که اووینی چه خپله لور ئے چا ته ورکړے ده تعبیرئے دَ دۀ نه به هغه کس ته خوشحالی ورسیږی.

## لیوان (دوکان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که او گوری چه دَ دۀ لیوان تهول خرۀ شوی دی یا یو خر شوے دے او یو غوائی شوے دے یا یو گډ شوے دے تعبیرئے روزی به ور باندے فراخه شی مکر دۀ ته تاوان لری او که او گوری چه دَ دۀ خاروی لیوان شوی دی تعبیر

ئے دَ دے خلاف دے۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښں دَ لیوانو لیدل په څلورو وجوو وی (۱) دُښمن (۲) ظالم بادشاه (۳) بے فکره ښځه (۴) کاونډی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، که اودینی چه دَ لیوانو غوښه ئے خوړلے تعبیر ئے دَ خلکو مال به په چل سره لاس ته راوړی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه دَ لیوهٔ په شکل شوے دے تعبیرئے دَ دهٔ عقل به لاړشی او که اوګوری چه دلیوانو سره ئے خبرے کړی تعبیرئے بادشاهی به بیامومی او که اوګوری چه لیوان وژنی تعبیرئے په دُښمن به کامیابی بیاموی۔

## لرګے تراشل (درودگری کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښں دَ لرګی تراشلو والا لیدل دَ خلکو خیرخوا سړے دے مکرناسته به ئے دَ منافقو او بی دینه خلکو سره وی او دَ هغوئ په خبره به ځی ځکه چه دَ لرګو والا سړے په خوب کښں په منافقت تعبیرلری۔ دَ الله تعالیٰ کلام دے (كَاَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ)[1] ترجمه لکه تکیه لګولی لرګی دی۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، دَ لرګو تراشلو والا سړے په خوب کښں لیدل دَ ماشومانو استاذ دے۔ چه ناپوهه او بی علمه خلکو ته پوهه او کمال نه ده کوی او دَ خلکو دَ کارونو اصلاح کوونکی او تدبیرکوونکی دی او دَ نفاق او دَ فساد لارے نه ئے لرے کوی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، دَ لرګی تراشلو والا لیدل په خوب کښں دَ ماشومانو استاذ دے۔

## لاس (دست)

حضرت دانیال فرمائی دَ ښی لاس تعبیرنه ورور دے او دَ چپ لاس تعبیرخور ده که اوګوری چه دَ دهٔ ښے لاس اوږد شوے دے تعبیرئے دَ ورور یا دَ دهٔ دَ شریکوال کار به نیک شی او که اوګوری چه دَ دهٔ دواړه لاسونه بیالنړ شوی دی تعبیرئے خور او رور به دَ دهٔ نه مخ واړوی او که اوګوری چه دواړه لاسونه دَ دهٔ لنړ شوی دی تعبیرئے دَ خور او دَ ورور نه به نفع واپس اخلی که او وینی چه دواړه لاسونه دَ دهٔ پریکړے شوی دی او پریوتی دی تعبیرئے ورور او خور به ورنه په ژوند جُدا شی۔ او که اوګوری چه دواړه لاسونه ئے په سینه ایښی

دی تعبیر ئے، دَ دوستانو دَ وجه نه به خپله غم خوری کهٔ اوګوری چه دَ خلکو په منځکښ دے اولاسونه پرتوی تعبیر ئے، دلته به وادهٔ کوی اوکهٔ اوګوری چه یوائے لاس وهی اوخوشحالی کوی تعبیر ئے غم اوفکر دے کهٔ اووینی چه قاضی یا بادشاه دَ دهٔ لاس پریکړے دے نو په قول دَ ابن سیرینؒ دَ دهٔ ورور یا خور اویا زوی به مړکیږی اوکهٔ دواړه لاسه ئے پریکړی وی تعبیر ئے مراد به نهٔ مومی اوکهٔ اووینی چه په یو لاس دَ بل لاس نه پوستکی اوباسی تعبیر ئے په خپلو کسانو به ظلم او زیاتی کوی او کهٔ اووینی چه خپل لاس ئے دَ چاړے سرهٔ پریکړے دے تعبیر ئے دَ چا سرهٔ به جګړه کوی اویا به ئے زړهٔ په چا مشغول وی دَ الله تعالیٰ قول دے (فَقَطَّعْنَ اَیْدِیَهُنَّ) ترجمه: (دے ښځو خپل لاسونه پریکړل) اوکهٔ اوګوری چه یو ورغوے دَ بل ورغوی سرهٔ مښی تعبیر ئے څوک خپله ښځه به په نکاح اخلی اوکهٔ اوګوری چه یو لاس ئے پریکړے شوے دے، او دے په دار (پهانسی) شوے دے تعبیر ئے دَ هغه ځائے امیران به دَ خپلو عهد و نه لرے کړے شی اوکهٔ اووینی چه دَ ښارو په شان په ځلورو خپو لاسونو ځی او ځُله ئے آسمان طرفته کړے ده تعبیر ئے نه کید ونکے آرزو به لټوی او په مُشکله به پُوره کیږی اوکهٔ اووینی چه دَ دهٔ لاس پید ائشتی وُچ دے تعبیر ئے، دَ صدقے اوکار خیرنه به عاجزه وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ لاس ئے ستنے سرهٔ درست کړیدے تعبیر ئے دَ دهٔ همت علم او هوښیارتیا به په تعلیم وی کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ لاس پریکړے شوے دے اونهٔ پیژنی چه ښے لاس دے کهٔ چپ لاس دے تعبیر ئے، دهٔ ته به غم او مصیبت رسیږی کهٔ اوګوری چه لاس ئے پریکړے شوے دے او قرآن کریم لولی تعبیر ئے لاس به ئے بچ شی او معبر ینو وئیلی دی چه پریکړے لاس لیدل تعبیر ئے عمر به ئے زیات وی او ګناه به پریږدی او به نیک کار کښ مشغول کیدل دی اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ ښے لاس دَ کومے ګناه په وجه پریکړے شوے دے تعبیر ئے، دَ وغږن او بے دینه به وی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ څوک اوګوری چه په خپل لاس ئے په ختې کښ آویزانهٔ کړے دے تعبیر ئے، په نیک عمل به موښځ کولو، بندګی، حج

کول، غزاکول او نیک کار دے کهٔ اوګوري چه دَ دهٔ ښے لاس پریکړے شوے دے تعبیر ئے په دروغه به قسم خوري کهٔ اوګوري چه دَدهٔ لاس دَ بادشاهِ وخت په بدن بدل شوےدے کهٔ بادشاه نیک وي تعبیر ئے په نیکیٔ او په دین باندے دے او کهٔ بادشاه فاسد او بے دینه وو تعبیر ئے دَ دهٔ په دین کښې به شر او فساد وي کهٔ اوګوري چه یو لاس ئے دَبل لاس نه اوږد شوے دے تعبیر ئے قوت او مرتبه او هغه څه چه غواړي بیا به ئے مومي، او کهٔ اوګوري چه په دواړو لاسونو ځي تعبیر ئے په خپل کار به اعتماد کوي او معبر ئیو وئیلي دي چه دَ خپلوانو نه به نفع مومي او کهٔ اووینې چه لاس او څپوئے ورسره خبرے کړي، تعبیر ئے ژندګي به ئے ښه شي. او کهٔ اوګوري چه دَ خپل دوست دَ پاره ئے ملغلرے په لاس کښې نیولې دي تعبیر ئے، قول قرآن مجید به ښکاره لولي.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائي، کهٔ اووینې چه دَ دهٔ لاس دَ بادشاه دَ لاس په شان شوے دے تعبیر ئے، سرداري او بادشاهي به بیا مومي او کهٔ اووینې چه دَ دهٔ ښے لاس دَ سرو زرو شوے دے تعبیر ئے، دولت به ئے لاړشي او کهٔ اووینې چه خپل لاس ئے په صابون سره وینځلے دے تعبیر ئے، بے امیده به شي کهٔ اووینې چه هغه ښاروي چه په تعبیر کښې ښهٔ دي دَ هغهٔ دَ چپ (ګس) لاس نه اوو تلو او ښي لاس نه بهر شو یا دَ ښي لاس نه اوو تلو او چپ نه بهر شو تعبیر ئے دا دے چه دَ غم نه به خلاصے بیا مومي او انجام به ئے ښهٔ وي او کهٔ هغه ښاروے (ځناور) چه په تعبیر کښې بد دي تعبیر ئے دا دے چه چرته کمزوري باندے به ظلم کوي او کهٔ اووینې چه دَ دهٔ لاس وُچ شوے دے تعبیر ئے دَ دهٔ دَ صحبت دکشا دے کهٔ اووینې چه لاس ئے دَ دهٔ په لاس کښې نیولے دے او یا ئے لاس دَ دهٔ په څټ وهلے او هغه کس ژوندے دے یا مړ دے تعبیر ئے دَ دهٔ عمر به اوږدیږي او کهٔ اووینې چه دَ مشرك په لاس کښې ئے کړے اچولي ده تعبیر ئے، هغه مشرك به دَ دهٔ په لاس مُسلما نیږي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي په خوب کښې لاس لیدل په دولسو وجوو دي (۱) ورور (۲) خور (۳) شریک (۴) ملګرے (۵) زوي (۶) رفیق (۷) قوت (۸) طاقت (۹) ولایت (۱۰) مال (۱۱) عاشق (۱۲) پیشه او صنعت وغیره.

**لکئ (دنبال)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ دَ خر یا غوایهٔ یا دَ اسپے په شان لکئ شوے ده تعبیرئے مال به ئے نۀ یا تیرِی او ژوند به ئے په آرام شی مګر په دین کښ به کمزورے وی اوکهٔ اوګوری چه دَ اَس یا دَ خرهٔ لکئ ورسره ده تعبیرئے حرام مال به بیا مومی او خلک به ئے ملامته کوی اوکهٔ اووینی چه دَ دهٔ په لاس کښ دَ اس یا غوایهٔ یا دَ خرهٔ لکئ ده تعبیرئے دَ هغې په اندازه به مال او نعمت مومی اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ په لاس کښ دَ هغه حیوان لکئ ده دَ کوموچه غوښه حرامه ده تعبیرئے حرام مال به بیا مومی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په خوب کښ لکئ لیدل په څلورو وجووی (۱) اخستل او خرڅول (۲) باران (۳) مال (۴) آرام او خوشحالی۔

**لوګے (دود)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، لوګے لیدل په خوب کښ ظالم بادشاه دے اوکهٔ اوګوری چه دَ مشرق یا مغرب دَ طرفه لوئے لوګے دے تعبیرئے دَ هغه ملک خلک به دَ ظالم بادشاه نه ظلم او نۀ یاتے اوچتوی۔ کهٔ اوګوری چه لوږے په دُنیا کښ اوچت شوے او او نۀ شغلے وهی تعبیرئے په مخلوق کښ به فِتنه پیدا کیږی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ څوک اوګوری چه په کوم ښار یا ولایت (علاقه) کښ بے اوره لوګے اوچت شویدے تعبیرئے، هغه ځائے ته به دَ الله تعالیٰ دَ طرفه ویره وی اوکهٔ اوګوری چه دَ دهٔ دَ کوره یا دَ دهٔ دَ خُلے نه لوږے اوځی تعبیرئے، هغهٔ ته به ظالم بادشاه ضرورنه ضرورځهٔ ضرر ورکوی اودَهغهٔ مال به په زورسره اخلی۔

**لسی، شوملے (دوغ)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، دَ شوملو اخستل په خوب کښ تعبیرئے غم اوفکر دے او خوړل ئے بیماری ده او معبرینو ویلی دی چه دَ شوملو خوراک حرام مال دے ځکه چه دَ دے نه ئے کوچ ویستلی دی اوکهٔ اوګوری چه شوملے ئے چا ته ورکړی دی تعبیرئے، هغه کس به غمژن وی۔

**لیونتوب (دیوانگی)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی لیونتوب په خوب کښ حرام مال دے دَ هغه لیونتوب په اندازه

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری په خوب کښ چه لیونے شوے دے تعبیر

ئې په حرامو کښې به پريوځي او سود به خوري د الله تعالیٰ قول دے (اَلَّذِیْنَ يَاْكُلُوْنَ الرِّبٰوا لَا يَقُوْمُوْنَ اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِیْ يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ البقرة ۲۷۵) کوم خلق چه سود خواره دی. هغوئ به نهٔ اوچتيږی په قيامت کښې مګر د هغه کسانو په شان ته چه شيطان ورته رسولی وی له ليونتوب نه.

حضرت مغربیؒ فرمائی که اووينی چه د ليونی سره ملګرے شوے دے تعبير ئې د سود خور فسادی سره به ملګرتيا کوی او د دهٔ نه به ملامتی او بد نامی حاصله شی

**لاره (راه)** حضرت ابن سيرينؒ فرمائی په خوب کښې د لارے ليدل د دين استقامت دے او د دين په لاره کښې د راستئ تلاش دے. او ديندارى ده که اوګوری چه په عام سړک ځی تعبير ئې د دين په لاره به وی او که اوګوری چه يو ے ډلے ته ئې سمه لاره ښودلے ده تعبير ئې يو قوم به په سمه او د دين په لاره برابروی او سمه لاره به ورته ښائی که اوګوری چه په لاره کښې حيران او پريشان ولاړ دے تعبير ئې داد ے چه د دين او يا د دُنيا په کار کښې به حيران او سرګردانه وی او که اوګوری چه دهٔ سامان ئې د لارے نه وړيں ے تعبير ئې د هغه ورل شوی مال به اندازه به د چا تاوان پوره اداکوی او که اوګوری چه په لاره تللو او نهٔ ستړے کيدلو تعبير ئې خپل حق به په مشکله د چا نه اخلی که اوګوری چه چا نيغے لارے نه کږ ے لارے ته راړولے دے تعبير ئې په څهٔ ګناه به مشغول شی او د صراط مستقيم نه به لرے شی او که اووينی چه د شپے په تيارهٔ کښې تللو او لاره مشکله وه او د هغې ګمان ئې لرو چه دا نيغه لاره ده تعبير ئې په نيغه لاره کښې به استقامت مومی که ډيرے لارے اوګوری او نهٔ پوهيږی چه په کومه لاره ځی تعبير ئې په خپل دين کښې به حيران وی او د بے دينه خلکو سره به ناسته کوی که اوګوری چه لاره وربانده مشکله شوے ده او نهٔ پوهيږی چه چرته ځی او د رسول الله د سُنت موافق په ښی طرف روان شوے دے تعبير ئې د حق لاره به په دهٔ ښه وی او که اووينی چه قصداً د نيغے لارے نه يو طرفته ځی تعبير ئې دُښمن ته به څهٔ چل او فريب جوړوی که اووينی چه په نيغه لاره ځی او د چا د عزت د وجے نه وا پس شو تعبير ئې دا سے کار به کوی چه د هغې نه به دين ته نقصان

دی او په ناممکنو به مشغول شی دَ خپل ژوند دَ وجے نه او که اووینی چه په لاره ځی او ورته ښځه مخامخ راغله او دَ هغه ښځے په وجه دَ لارے نه یو طرفته شوې ے او یو طرفته تللے دے تعبیر ئے دَ دهٔ په دین کښ به نقصان راشی او په دُنیا به عاشق وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که اوګوری چه دَ دهٔ په لاره کښ سبزه او ښهٔ ښهٔ بوټی دی نو دا دَ دهٔ دَ نیکئ او پاک دینئ تعبیر دے که اووینی چه په پټه لاره په ګُمان ځی تعبیر ئے په دین کښ به ځهٔ بدعت کوی او یا به په خپل کار کښ حیران وی۔ دَ الله تعالیٰ قول دے: اِنَّ هٰذَا صِرَاطِیْ مُسْتَقِیْمًا فَاتَّبِعُوْهُ الانعام:۱۵۳ "دا زما نیغه لاره ده دَ دے تابعداری کوئ"۔ که اووینی چه دے ئے دَ لارے نه بوتلے دے تعبیر ئے دَ دین په فساد دے دَ الله تعالیٰ قول دے (وَقَدْ خَابَ مَنْ دَسّٰهَا) الشمس:۱۰ "چا چه دَ هغهٔ سره دهوکه وکړه هغه په زیان کښ پریوتو"۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، نیغه لاره په خوب کښ مُسلمانی ده او کږه لاره دَ دے خلاف ده۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ لاره لیدل په پنځو وجوو دی (۱) دُنیا (۲) آرام (۳) نیک کار (۴) خیر او برکت (۵) آسانی او راحت۔

## لومبړه (روباه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی لومبړه په خوب کښ دهوکه باز سړے دے یا دروغژنه ښځه یا دروغژنه وینزه ده که اووینی چه لومبړه جنګ کوی تعبیر ئے، دا سړے به دَ چا سره په جنګ جګړه کښ پریوځی او که اوګوری چه لومبړه تهٔ پونه وهی تعبیر ئے دَښا پیرُ نه به ویریږی او که اوګوری چه دَ لومبړے سره ئے لوبے کړی څوك ښځه به ئے غواړی مګر دَ دے ښځے مینه کمزورے ده۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که اوګوری چه لومبړه په ګومنز سره صفا کوی تعبیر ئے، دَ چا سره به دهوکه کوی او هغه به دهوکه کړی او که اوګوری چه لومبړه دَ دهٔ چاپلوسی کوی تعبیر ئے، څوك مسافر سړے به دَ دهٔ سره دهوکه کوی او دَ لومبړے غوښه مال دے چه په دهوکه ئے لاس ته راوړی او دَ لومبړے شودهٔ (پئی) په خوب کښ خوړل تعبیر ئے دَ بیمارئ دَ صحت او دَ غم او فکر نه خلاصے دے او دَ قید نه خلاصے دے او ځنے

معبرینو ویلی دی چه د لومبړے پئ خوړل تعبیر ئے په بیمارئ دے یا ویره ده چه ورته به ورسیږی.

حضرت مغربیؒ فرمائی لومبړه لیدل په خوب کښ دروغژنه ښځه ده که اووینی چه لومبړه ئے نیولی ده او یا ورته چا ورکړے ده تعبیر ئے دروغ او دهوکه ماره ښځه به کوی که اووینی چه لومبړه ورکړه راغلے او کور کښ ئے ځائے نیولے دے تعبیر ئے هغه ښځه به وادهٔ کوی چه د دهٔ سره ئے دوستی وه او که اوګوری چه لومبړه ورنه تښتیدلے ده تعبیر ئے د دهٔ ښځه به تښتی۔

## د لیمبو شربت (سکنجبین)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی د لیمبو شربت په خوب کښ لیدل که چرے خوږ وی تعبیر ئے مال او حلاله روزی ده چه په آسانئ سره لاس ته راځی او که تروش وو تعبیر ئے غم او فکر دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که بیمار اووینی چه دهٔ د لیمبو شربت څکلے دے که خوږ وو تعبیر ئے دادے چه صحت به ئے ښهٔ شی او که تروش وو بیماری به ئے اوږده شی۔

## لومبړے په شان ځناور (سمور)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی سمور په خوب کښ لیدل، کافر، ظالم او غل سړے دے که اوګوری چه د سمور سره ئے جنګ کړے دے تعبیر ئے د دے په صفت والا سړی سره به جنګ کوی چه قوت به د هغه چا وی چه غالب شی او که اوګوری چه د سمور غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے د ظالم مال به خوری۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی د سمور لیدل په خوب کښ مالداره مُسافر سړے دے او د دے غوښه، ویښته او څرمنه مال او هغه څه چه ئے غواړی که اوګوری چه سمور ئے وژلے او هغه په نرمکه پریوتے ده تعبیر ئے د مُسافر سړی مال به هلاکوی۔

## لړے (شکنبه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی د هغه ځناورو لړے د کوموچه غوښه حلاله ده د دوئ لړی لیدل تعبیر ئے حلال مال دے او که لړے د سُوتونه ډک اووینی تعبیر ئے حرام مال

دے او کۀ اووینی چه لرے ئے پوخ کړے او خوړلے ئے دے تعبیر ئے، خیر او نفع به بیاموهی۔

## لامبوو هل (شناوری کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښ په صفا او بو کښ لامبوو هل په چل او تدبیر سره د کسب طلب دے او کۀ اوګوری چه په صفا او بو کښ ئے لامبوو هلے او په کښ ډوب شوے دے تعبیر ئے، د دُنیا په مال کښ به ډوب شی

حضرت کرمانیؒ فرمائی کۀ اوګوری په خوب کښ چه په دریاب کښ ئے لامبو وهی او غاړے ته نشو تللے تعبیر ئے، بادشاه به هغه د عمل نه منع کوی کۀ اووینی چه لامبوو هل ورته آسان وو تعبیر ئے، کار به ئے آسان وی او کۀ اوګوری چه لامبو وهل ورته سخت وو تعبیر ئے، د دۀ کار به د سختئ سره وی او کۀ دریاب غاړه اونۀ وینی تعبیر ئے، په قید خانه کښ به قید شی کۀ اوګوری چه او بو غلبه کړے دے او مرکړے شوے دے تعبیر ئے دا دے چه د دښمنانو د لاسه به هلاك شی او کۀ اووینی چه د غرق کیدو نه امن ملاؤ شوے دے تعبیر ئے، د دُنیا د کارونو نه به خلاص شی او د آخرت په کار کښ به مشغول شی او کۀ اووینی چه او بو لاندے کړے دے تعبیر ئے، دۀ ته به غم په مخکښ راځی او کۀ اووینی چه د او بو لاندے په نه مکه راغلے دے تعبیر ئے، د غم نه به خلاصے اوموهی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی کۀ اوګوری چه په لامبووهلو د دریاب نه بهر راوتے دے او جامے ئے اغوستے دی تعبیر ئے، د بادشاه د کارونو نه به خلاصے اوموهی او کۀ د دے خلاف اوګوری نو تعبیر ئے هم د دے خلاف دے کۀ اوګوری چه د لوښے خوړنه په لامبو بهر راوتے دے او غاړے ته راغلے دے تعبیر ئے چرته لوئے شغل نه به خلاصے اوموهی او کۀ د دے خلاف اووینی نو په هغه شغل کښ به پاتے وی۔

## لیئوکول (صادوج)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی کۀ چرے اوګوری چه لیوئے کړیدے تعبیر ئے، د خلکو سره به نرمے او پاکیزه خبرے کوی او په خوب کښ د لیو والا سړے لیدل خوش طبعه سړے دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائی کۀ اوګوری چه د چا د پاره ئے لیوکړے دے تعبیر ئے، د هغه سړی مدد به کوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې لیوکول په درېو وجوو (۱) نرمه پاکیزه خبره (۲) مدد کول (۳) دَ هغه سړی رضا تلاش کول.

**لوټ مار (غارت)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه دَده مال، نعمت خلکو لوټ کړو، تعبیر ئې غم او مصیبت دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی که په خوب کښې اوګوری چه دَ اسلام لښکر دَ کفارو ملک نیولے او هغه ئې لوټ کړو تعبیر ئې دَ کفارو دَ پاره به غم او مصیبت وی او که اوګوری چه دَ کفارو لښکر اهل اسلام (مسلمانان) لوټ کړل تعبیر ئې، مسلمانانو ته به غم او مصیبت رسیږی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې لوټ مار لیدل په څلورو وجوو (۱) جنګ (۲) تاوان (۳) غم او فکر (۴) دَ نرخ ارزانی.

**لونګ (قرنفل)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې لونګ نیک تعریف او صفت دے که اوګوری چه دَه سره ډیر لونګ دی او هر چا ته ئې ورکوی تعبیر ئې، دَ هغه ملک خلق به دَده صفت کوی او خلکو کښې به دَده به نوم مشهور شی او که اوګوری چه لونګ ئې خوړلی دی تعبیر ئې، دَه ته به غم، فکر او ګناه رسیږی.

**لوږه (ګرسنګی)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې لوږه دَ مړے نه ښه ده او تنده بیا دَ مړخت نه ښه ده که اوګوری چه اوږے شوے دے او څه ئې پیدا نکړل چه ویے خوری تعبیر ئې دَه ته به حرص او لالچ دَ دُنیا په مال کښې کم وی.

حضرت مغربیؒ فرمائی که په خوب کښې اووینی چه اوږے شوید ے تعبیر ئې، دَ لوږے په اندازه به دَه ته مصیبت وی.

که اوګوری چه اوږے شوید ے او څه ئې اوخوړل او موړ شو تعبیر ئې، دَ ګناه نه به توبه کوی او که هغه خوړلے شوے څیز خوږ او مزیدار وو تعبیر ئې، په توبه به محکم او ثابت وی او که هغه خوړلے شوے څیز تروش او بے مزے وو تعبیر ئې، په خپله توبه به محکم نهٔ وی او خپله توبه به ماته کړی او ګناه پسے به ځی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې لوږه لیدل په څلورو وجوو (۱) ضرر (۲) حرص (۳) جُرم او ګناه (۴) طمع لرل دَ خلکو نه.

**لړم (کژدم)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښں لړم یو کمزوړے دښمن دے چه خلک تنګوی او ورته دوست او دُښمن برابر دی، که څوک په خوب کښں اووینی چه لړم چیچلے دے تعبیر ئے دُښمن به ورته سخته خبره کوی او دَ دهٔ نه به خفه کیږی او کهٔ اووینی چه لړم ئے وژلے دے تعبیر ئے په دُښمن به کامیابی حاصلوی او کهٔ اووینی چه لړم دَ وژلو نه پس بیا ژوندے شو او بیا ورته تکلیف ورکوی تعبیر ئے په دښمن به کامیابی مومی او بیا به دُښمن سره مقابله کوی او کهٔ اووینی چه دَ دهٔ په لاس کښں لړم دے تعبیر ئے، دے به آزاری وی او خلکو پسے به بدے خبرے کوی او خلک به یو بل سره په جنګ کوی او فتنه به خلکو کښں اچوی۔

او کهٔ اووینی چه لړم ئے پوخ یا سُور کړو او وے خوړلو تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ دښمن مال خوری او کهٔ اووینی چه لړم ئے په خُلهٔ کښں ایښے او خوړلے ئے دے تعبیر ئے دُښمن به کور کښں لری او دَ هغهٔ سره به ناسته پاسته کوی او کهٔ اووینی چه لړم دَ دهٔ په جامو کښں دے همدغه تعبیر لری.

حضرت مغربیؒ فرمائی کهٔ اووینی چه دَ لړم نه یریږی او دے لړم اوچیچلو تعبیر ئے، دَ دُښمن نه به ضرر مومی او ځنی معبر ینو وئیلی دی چه دَ ښځے سره به کور والے نشی کولے او کهٔ اووینی چه لړم دَ دهٔ په قمیص کښں دے تعبیر ئے دَ دُښمن نه به ورته ضرر رسیږی او کهٔ اووینی چه دَ دهٔ پر توګ کښں لړم دے تعبیر ئے، دَ دهٔ دُښمن به دَ دهٔ دَ عیال او یا دَ دهٔ وینزے سره فساد کوی

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښں دَ لړم چیچل په درے وجوی (۱) دُښمن (۲) کینه ګر (۳) خبر لوښی۔

**لړم خوړونکی (کژدم خواره)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی دا یو ځناور دے چه په حورستان کښں په اوبو کښں وی او په زمکه لګی ړاکاږی او څوک چه زخمی کړی او یا ئے اوخوری فوڑا مړ کیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی په خوب کښں لړم خوړونکی ځناور عقلمند، بردبار عاجز، با دام او خوږ ژبه دُښمن دے او په دُښمنئ کښں سخت دے کهٔ او کوری چه لړم خوړونکی ځناور چیچلے تعبیر ئے، په دے صفت چه ذکر ئے اوشو دَ داسے دُښمن نه به ورته بَلاٗ او تکلیف ړسیږی، او کهٔ اووینی

چه دے ئے نۀ دے خوږلے تعبیر ئے دُښمن نه به امن کښې وی کۀ اووینی
چه دَ لړم خوړوونکی په شان ځناور دے او دے ورنه یرېږی تعبیر ئے دَ
چا دښمن نه به ویره کوی او حالانکه چه دے به دَ دۀ دُښمن نۀ وی.

## لینده (کمان)

حضرت دانیال فرمائی کۀ اوګوری په خوب کښې چه لینده بغیر دَ غشی راکاږی تعبیر ئے په سفر به ځی او دَ فائدے
سره به واپس راځی او کۀ دَ ړانبکلو په وخت لینده اوشلیده تعبیر ئے دَ دۀ
سفر به نۀ پوره کیږی او داکیدے شی چه په لاره کښې به ورته نقصان او
ضرر رسیږی او کۀ اوګوری چه چا ورته لینده ورکړے ده تعبیر ئے دَ دۀ
به زوئ یا ورېرا کیږی او کۀ اوګوری چه دَ دۀ لینده ماته شوے ده
تعبیر ئے دَ عزت او سرداری نه به پریوځی او یا به ئے څه قدرے مال هلاك
شی او کۀ اوګوری چه دَ لیندے نه ئے غشے غورزیږی تعبیر ئے دَ کوم
لوئے سړی نه به دۀ ته خطره رسیږی.

حضرت ابن سیرین فرمائی کۀ اووینی چه دَ لیندے نه ئے غشے غورځولے
تعبیر ئے دَ حق او باطله خبره به کوی دَ غشی دَ سوالی او کوږ والی په اندازه
او کۀ اوګوری چه دَ خپل ځان دَ پاره ئے لینده جوړه کړے ده تعبیر ئے
دَ عجمی بادشاه نه به ورته عزت او مشری حاصله شی او یا به عجمی ښځه
کوی او دَ هغے نه به ئے زوئ پیدا کیږی او کۀ اوګوری چه دَ لیندے نه
غشے نشی ویشتلے تعبیر ئے دۀ ته به دَ بادشاه نه یا دَ هغۀ دَ ښځے نه فائده
نۀ رسیږی او کۀ اوګوری چه لینده ئے خرڅه کړے او یا ئے چا ته ورکړے
ده تعبیر ئے دَ دۀ دَ عزت او مشرے نقصان دے او ځنو ویلی چه لینده
په اوږد عمر تعبیر لری.

حضرت کرمانی فرمائی کۀ اوګوری چه دۀ سره نوے او پاکیزه لینده ده
تعبیر ئے ښځه به کوی او کۀ اوګوری چه لینده ئے رانبکله تعبیر ئے دَ دۀ
ښځه به پائیداره وی او کۀ اوګوری چه دَ دۀ لینده ضائع شوے ده تعبیر
ئے دَ ښځے نه به جدا کیږی او کۀ اوګوری چه دَ دۀ لینده سخته ده او دَ رانبکلو
په وخت نرمه ده تعبیر ئے ښځه به په نکاح واخلی او کار به ئے په آسانه سره
اوشی او کۀ سفر ئے کړے وی نو مبارک به وی او دَ هغه سفر نه به مراد ته
ورسیږی او کۀ اووینی چه دَ دۀ لینده کمزورے ده او سخته شوه تعبیر ئے دَ دے

خلاف دے او کۀ اووینی چه لینده ئے په لاس کښې دَ خپل ځان دَپاره جوړه
کړے ده تعبیر ئے دَ دۀ کار به جوړ شی او کۀ اووینی چه لینده ئے خرڅه
کړے ده او دَ هغې قیمت ئے روپئی او اشرفئی اخستے دے تعبیر ئے دُنیا به
په دین خوښوی او کۀ دَ لیندے قیمت ئے دَ ړوپو نه سوا څه بل شے اخستے
دے تعبیر ئے دَ دۀ دَ زړۀ مراد به حاصلیږی او کۀ اووینی چه دۀ ته
لینده چا بخشش کښې ورکړے ده تعبیر ئے زر به واده کوی او په دُښمن به
کامیابی حاصلوی او کۀ اووینی چه کږه لینده ئے را بشکلے دۀ ته چا ورکړیده
تعبیر دَ دے نه چه دۀ را بشکله تعبیر ئے دَ دۀ عمر به ډیر اوږد وی او کۀ اووینی
چه دۀ لینده په کمان دان (دَ لیندے کیښودلو ځائے) کښې ایښې ده تعبیر
ئے دَ دُنیا نه به ځی او کۀ اووینی چه دَ دۀ سره ډیرے لیندے دی تعبیر ئے
دَ دۀ به ډیر ملګری وی او دَ سختئ په وخت کښې به دَ دۀ فریاد رسی کوی.
او کۀ اووینی چه دۀ سره یا که اونوے لینده ده تعبیر ئے ښه کار، خیرات
او بندګی به کوی او حج به هم کوی او هغه څۀ چه الله تعالیٰ ته ورباندے
نزدے کیږی، دَ الله تعالیٰ قول دے (فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَىٰ) النجم ۹
پس دَ دوؤ لیندو دَ موټو هومره بلکه دَ دے نه هم نزدے شو۔

حضرت امام جعفر صادق فرمائی، په خوب کښې لینده لیدل په شپږ و
وجوو (۱) سفر (۲) زوئے یا ورور (۳) ښځه (۴) قوت (۵) نیک عملونه۔
(۶) په کارونو کښې سم سرے۔

## لینده وغیره (بلا نګین)

حضرت ابن سیرین فرمائی، خوب کښې لینده په لاس کښې اخستل تعبیر ئے دۀ
سره به دِ چا مدد نه وی کۀ اوګوری چه لینده ئے دَ نرم لرګی نه لښتولی ده،
تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

## لینده یو قسم (کمان ګروهه)

دا یو بیل قسم لینده ده۔
حضرت ابن سیرین فرمائی، کمان ګروهه
دَ بادشاه کار دَ غم او فکر سره دے کۀ اووینی چه کمان ګروهه ورسره ده او دَ هغې
نه ئے ټوپئی غوړز وَلے ده، تعبیر ئے چا ته به بده خبره کوی او کنځل بد رد
به ورته وائی ځکه چه کمان ګروهه ورسره ده لاره کښې ناخوښه ده.
حضرت کرمانی فرمائی کۀ اوګوری چه دَ هغې لیندے سره دَ خلکو ټوپئ

کوزوی تعبیر ئے، دَ خلکو آزارولو په وجه به غمژن دی او که اوگوری چه کمان کړوهه ئے ماته شوے ده او یا ضائع شوے ده تعبیر ئے، چاته به آزار نهٔ ورکوی۔

## لتی وَهل (لکدزدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوك په خوب کښې اوګوری چه چاله ئے لته ورکړیځ تعبیر ئے دَ دهٔ نه به یا دَ دهٔ دَ خپلوانو نه به دهٔ ته نقصان رسیږی، که اووینی چه اَسپے لته ورکړے ده تعبیر ئے، دَ دهٔ په عزت او بزرګئ کښې به نقصان رابشکاره شی او ځنې معبرینو وئیلی دی چه په فساد به مشغول شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه ښځے په لته وهلے دے تعبیر ئے دَ ښځے په وجه به غمژن شی او که اووینی چه غټے بوډئ ورله لَته ورکړے ده تعبیر ئے مال به ئے هلاك شی او که اووینی چه اوښ په لَته وهلے دے تعبیر ئے دَ کوم لوئے سړی نه به ورته نقصان رسیږی او که اووینی چه خرے لَته ورکړے ده تعبیر ئے په سفر کښې به ورته ضرر او نقصان رسیږی او که اووینی چه غوایهٔ لته ورکړے ده تعبیر ئے، په دے کال کښې به ورته نقصان رسیږی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې لته وهل په څلورو وجوی (۱) تاوان (۲) ضرر (۳) غم او فکر (۴) دَ عیال فساد۔

## لوټه (مطهره)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که اوګوری چه دهٔ سره نوے لوټه ده تعبیر ئے دَ سفر نه به ورته خیر او نفع رسیږی که اوګوری چه لوټه ئے زړه او ماته ده تعبیر ئے، دَ دے خلاف دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې لوټه لیدل په دریو وجوی (۱) سفر (۲) مال (۳) ژوند۔

## لوپټه (مقنعه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، لوپټه په خوب کښې دَ ښځو دَ پاره خاوند او دَ سړو دَ پاره ښځه ده، او که اوګوری چه لوپټه ئے دَ سر نه جُدا شوے ده تعبیر ئے، خاوند به ورته طلاق ورکوی، که توره لوپټه اووینی تعبیر ئے، دَ دے خاوند به فاسِق وی او که سره لوپټه اووینی تعبیر ئے، دَ دے میړهٔ (خاوند) به عیش پرست او جنګ خوښوونکے وی او که اووینی چه آسمانی رنګه ده، تعبیر ئے، دَ دے خاوند به مصیبت زده وی او که زیړه اووینی دَ دے

تعبیر ئے دا دے چه دَ دے خاوند به بیمار وی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ لوښه لیدل په څلورو وجوه وی (۱) ښځه (۲) وینزه (۳) خدمتګار (۴) دَ ښځو نه نفع.

**لیکو نکے (کاتب، خطاط)** که اوګوری چه څهٔ شے لیکی او لیکونکے وی تعبیر ئے دَ چا مال به په چل او فریب سره اخلی او دَ نه کولو کار به کوی او که اووینی چه دَ بادشاه دَ پاره څهٔ لیکی تعبیر ئے ښهٔ ډیر مال او نعمتونه به مومی، او که اووینی چه دَ عامو خلکو دَ پاره څهٔ لیکی تعبیر ئے په خپل مکر او فریب سره به خلک پریشانه کوی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه اچانک (ناګهانه) لیکونکے شو دے تعبیر ئے دَ خلکو نه به چل او فریب سره روزی لاس ته راوړی او کهٔ عالم وی او خوب کښ اوګوری چه لیکل کوی تعبیر ئے، خیر او نفع به بیا مومی، کهٔ اوګوری چه شعر، غزل یا افسانه لیکی تعبیر ئے، دَ دُنیا په شغل به مشغول شی او دَ آخرت شغل (کار) به هیر کړی، کهٔ اوګوری چه قرآن مجید، توحید او دُعا لیکی تعبیر ئے، خیر او نفع به مومی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه خط لیکی او سیاهی وینه ده نو تعبیر ئے دا دے چه دَ سُود (ربا) چیک به لیکی.

حضرت اسماعیل اشعثؒ فرمائی، کهٔ څوک لیکوال (منشی) اوګوری چه بادشاه ته ئے خط لیکلے دے کهٔ صالح وی نو دا دَ دهٔ دَ دین او دینداری دَ ضائع کیدو تعبیر لری او کهٔ فاسق وو نو توبه به اوباسی او کهٔ اووینی چه په سره سیاهیٔ سره لیک کوی تعبیر ئے دَ دنیا عیش او عشرت دے او کهٔ په زیړه سیاهیٔ ئے لیکل کړی وی تعبیر ئے بیمار به شی او کهٔ په شنه سیاهیٔ ئے لیکل کړی وی تعبیر ئے، نوم به ئے په هغه ملک کښ په نیکیٔ او خوشحالیٔ سره مشهور شی او کهٔ اووینی چه دَ سرو یا دَ سپینو زرو په سیاهیٔ لیکل کړی دی تعبیر ئے، دَ بادشاه نه به خیر او نفع مومی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ لیکل په څلورو وجوه وی (۱) خیر او نفع (۲) مال او نعمت (۳) په چل او فریب سره څهٔ حاصلول.
(۴) دَ خپل کار نه بیکاره کیدل (دَ خپلے عهدے نه جُدا کیدل)

**لمسے (نمده)** دا یو قسم فرش دے چه دَ وړیٔ (اُون) نه جوړیږی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دهٔ سره سپین پاکیزه لمسے دے تعبیر ئے حلال مال به بیا مومی او کهٔ خیرن لمسے اووینی په دے کښ څهٔ فائده نشته دے او کهٔ اووینی چه دهٔ سره ډیر لمسی دی تعبیر ئے، دَ هغے په اندازه به دَ خپل کسب نه مال حاصلوی او کهٔ اووینی چه لمسے ئے سوزولے دے، تعبیر ئے مال به په فساد ضائع کړی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه لمسے ورسره دے او ورنه ضائع شوے دے تعبیر ئے په مال کښ به ئے نقصان اوشی او دَ لمسی جوړونکے هغه سړے دے چه حلال او نه مائله وی او دَ حرامو پرهیزګوی

## لیکل (نوشتن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ خوب کښ اوګوری چه لیکل کوی یا چاته لیکل نه ده کوی تعبیر ئے علم به نه ده کوی او کهٔ اوګوری چه څهٔ لیکی دَ هغے دَ شر او دَ فساد تعبیر دے که اووینی چه قرآن مجید، توحید او احادیث شریف یا څهٔ دُعا لیکی تعبیر ئے خیر او صلاح ده او کهٔ شعر یا غزل ئے لیکلے وی تعبیر ئے شر دے۔

## لنګرئ (هاون دسته)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښ لنګرئ دوه شریکان دی چه یو بل ته ئے ضرورت وی کهٔ دواړه متفق وی نو کارِ نیک او فائده به رسوی کهٔ دے دواړو کښ یو نهٔ وی دے کښ څهٔ فائده نهٔ وی او کهٔ اووینی چه په لنګرئ کښ ئے څهٔ ټکولی دی او هغه دَ خوراک څیزوو تعبیر ئے خوب لیدونکی ته به دَ هغے دَ قیمت په اندازه دَغم او دَ مشقت سره نفع رسیږی او کهٔ هغه څیزدارو وی کهٔ هغه دارو دَ دستونو دَ بندیدوو وی تعبیر ئے دَ مال دَ نه یاتوالی دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ هغه څهٔ چه په لنګرئ کښ ټکولی دی خواږهٔ دی تعبیر ئے په سختئ او تکلیف به فائده مومی او کهٔ تراخهٔ وی نو په غم او فکر تعبیر لری او کهٔ جواهرات په لنګرئ کښ ټکوی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به نفع اووینی او آخیر به خپل مال ضائع کړی۔

## لمر (آفتاب)

حضرت دانیالؑ فرمائی په خوب کښ دَ لمر (آفتاب) لیدل بادشاه دے یا پرهیزګاره خلیفه دے کهٔ په خوب کښ اووینی چه آسمان ته ئے لمر رانیولے دے او یا ئے په خپل ملک کښ راوستے دے تعبیر ئے

بادشاهي او بزرګي به بیا مومي او یا به د بادشاه مقرب جوړ شي که اوګوري
چه خپله بادشاه شوے دے تعبیر ئے، بادشاه به شي د لمر د رڼا په اندازه
او که د بادشاهئ اهل نه وي تعبیر ئے، د خپل همت په اندازه به بزرګي
او مرتبه بیا مومي که اوګوري چه د لمر سره جنګ کوي تعبیر ئے، د بادشاه
سره به جګړه کوي او که اوګوري چه د نمر په ځائے سپوږمئ قائمه شوے
ده تعبیر ئے، بادشاه به وي او بادشاهي به قائموي که اوګوري چه د لمر نه
رڼا اخلي تعبیر ئے د لوئے بادشاه نه به ملک اخلي که اوګوري چه لمر
ئے رانیولے دے مګر د آسمان نه نه دے رانیولے او شغلے او رڼائے هم
نښتے دے او توره تیاره ده تعبیر ئے، د غم نه به خلاصے مومي که اوګوري
چه لمر توره تیاره ده او په خپل ځائے هم نه دے تعبیر ئے، بادشاه به په
خپلو کارونو کښ محتاجه وي.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي لمر په خوب کښ پرهیزګاره بادشاه دے
او سپوږمئ وزیر دے او زهره د بادشاه ښځه ده او عطارد بادشاه
منتظم دے او مریخ شاهي پهلوان دے او نور ستوري د بادشاه
لښکرے دي.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائي، لمر په خوب کښ لیدل : پلار دي او سپوږمئ
مور ده او نور ستوري د بادشاه لښکرے دي لکه څنګه چه الله تعالیٰ د
حضرت یوسفؑ په قصه کښ ذکر کړے دے (اِنِّيْ رَاَيْتُ اَحَدَ عَشَرَ
كَوْكَبًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ رَاَيْتُهُمْ لِيْ سَاجِدِيْنَ ۝) یوسف (بیشکه په خوب
کښ ما یوولس ستوري ولیدل او لمر او سپوږمئ ما ولیدل چه ما ته سجده کوي
او هر څوک چه رڼا تواله او کموالے په لمر او سپوږمئ اووینی تعبیر ئے په
مور او پلار او په وروڼو دے او که اووینی چه لمر صفا او پاک راوتلے دے او د
ده په کور کښ ئے رڼا کړے ده تعبیر ئے، په خپلوانو کښ به وادهٔ (ښځه) کوي
که اووینی چه وریځ د لمر رڼا پټوي تعبیر ئے، د بادشاه حال به خطرناک
دي او حال به ئے بد وي خاصکر هغه وخت چه لمر روښانه شوے دے

که اووینی چه لمر د تیارے نه رانړا ته راغلو تعبیر ئے، بادشاه به بیمار شي مګر
زر به صحت مند شي که اوګوري چه د لمر په جسم رسئ (بیاسته) یا تار وغیره
زوړند دے کذے تعبیر دا دے چه ده ته به د بادشاه نه مدد او قوت حاصلیږي

کهٔ اوګوری چه رسئ اوشلیدہ او دے پریوتو تعبیر ئے، دَ بزرګئ او مرتبے نه
بہ پریوزی کهٔ اوګوری چه لمر یا سپوږمئ ته ئے سجده کړے ده تعبیر ئے څهٔ
خطا ګناه بہ ورنه ظاهریږی کهٔ اوګوری چه سپوږمئ، لمر یا ټولے سیارے
را جمع شوی دی او دا ټولے ئے نیولی دی او ړنا ئے اخلی تعبیر ئے دَ دُنیا
بادشاهی بہ لاس ته راوړی او دَ دُنیا بادشاهان بہ دَ دهٔ مطیع او تابع شی، کهٔ
اووینی چه لمر، سپوږمئ او ستوری ئے نیولی دی او ټول توره تیارهٔ دی
تعبیر ئے، خوب لیدونکے بہ هلاك شی خاصکر چه ظالم او خونخوار بہ وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دَ لمر په مینځ کښ تور ټاپی دی
تعبیر ئے، دَ بادشاه زړهٔ بہ په ملک مشغوله وی کهٔ اوګوری چه دوه لمره دی
او خپلو کښ جنګ کوی تعبیر ئے، دَ دوه بادشاهانو خپلو کښ جنګ پریوځی
او کهٔ اوګوری چه لمر ړنګ ته راکوز شوے دے او څهٔ ړنا ئے نهٔ وه تعبیر
ئے، دَ هغه ملک بادشاه بہ مشغوله شی او ملک بہ ئے دَ لاسه لاړ شی کهٔ اوګوری
چه لمر ئے په لاس کښ لیدلے او تور ئے لیدلے دے تعبیر ئے، بادشاه
ته بہ لوئے غم راسیږی کهٔ اووینی چه لمر په سُوړه کښ پټ دے او دَ
نظر نه غیب شوے دے تعبیر ئے، بادشاه بہ دَ دُنیا نه سفر کوی او عام خلکو
ته بہ غم او فکر راسیږی کهٔ اوګوری چه ستوری څهٔ شے پټ کړے دے تعبیر
ئے، دَ بادشاه لښکر بہ دَ دښمن په مقابل کښ ناکامیږی کهٔ اووینی چه دَ
لمر عبادت کوی تعبیر ئے، دَ لوئے بادشاه مقرب بہ وی.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه په آسمان ناست دی او
مخ ئے دَ لمر طرفته دے او بیا ئے لمر طرف نه راګرځولی دی تعبیر ئے دا
سړے اول کافر وو بیا مُسلمان شو او بیا بہ کافر شی کهٔ په خوب کښ لمر
اووینی تعبیر ئے دَ ملک بادشاه ته بہ دَ څهٔ شی نه خفګان موجی دَ هغه ځایه
چه اُمید ئے ورنه نهٔ وی کهٔ اووینی چه لمر ور سره خیرے کړی دی
تعبیر ئے دَ بادشاه نه بہ مرتبه او دبدبه موجی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ لمر لیدل په اتهٔ وجوی
(۱) خلیفه (۲) لوئے بادشاه (۳) رئیس (۴) عزتمند حاکم (۵) دَ بادشاه عدل
(۶) دَ رعیت نفعه (۷) ښځے ته خاوند او سړی ته ښځه (۸) نیک او روښانه کار
داسے هم وئیلی دی چه لمر ته ئے سجده کړے ده، تعبیر ئے بادشاه بہ

دربانده مهربانه وی او دَ دهٔ دوست به شي مرتبه به ئے لویه وي دَ ملک رئیس به وی عدل به کوی او دَ ظلمونو لیدل دَ دے برعکس وی کوم چه مونږ ووئیلے۔

## لمونځ (نماز)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اوګوری چه دَ مشرق طرفته لمونځ کوی تعبیرئے حج به ادا کوی او که دَ حج وخت نهٔ وی نو دَ عیسا یا نو طرفته به ئے مینه وی او که اووینی چه دَ مغرب طرف ته لمونځ کوی او دَ دهٔ مینه دَ قبلے طرف ته وی تعبیرئے دَ اسلام مبارک دین به ئے شاته غورځولی وی او که اووینی چه په لاره کښې لمونځ کوی او شائے دَ قبلے طرفته ده تعبیرئے مرګ به ئے نزدے شوے وی پکار ده چه توبه اوباسی که اوګوری چه لمونځ کوی او نهٔ پوهیږی چه قبله کوم طرفته ده تعبیرئے دَ دین په لاره کښې به متحیر وی که لمونځ ئے دَ قبلے طرفته کړے وی تعبیرئے دَ دین په لاره به برابر وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه یو قوم ته مخکښے دَ امامتی لمونځ ورکوی چه څومره کسانو ته ئے امامتی کړی وی دَ هغې په اندازه ئے ځلکو به حکومت کوی او که اووینی چه دَ لمونځ تیرشو او دَ پاک ځائے دَ لمونځ دَ پاره پیدا نهٔ کړو چه لمونځ ورباندے اوکړی تعبیرئے کارونه به ئے په تکلیف او سختئ سره پوره کیږی که اوګوری چه لمونځ ئے په نیمائی کښې پریښے دے او باقی ئے نهٔ دی کړی او یائے بے اودسه لمونځ کړے تعبیرئے هغه مطلب او مقصد چه لری هغه به پوره شي که اوګوری چه په جومات یا په مدرسه کښې امامتی ورکوی تعبیرئے دَ هغه ملک بادشاه به دَ دهٔ تابعدار شي او که دَ دے خلاف اووینی تعبیرئے هم دَ دے خلاف دے که اووینی چه په لمونځ کښې ئے رکوع او سجدے پوره ادا کړی تعبیرئے دَ دین او دَ دُنیا کارونه به ئے نیک وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه دَ ماسپخین لمونځ ئے په وخت کړے دے او آسمان روښانه او پاکیزه دے تعبیرئے دَ الله تعالیٰ په ورانده به دَ او چتو درجوخاوند وی که آسمان کښې توره وریځ وی تعبیرئے غم او فکر دے که اووینی چه لمونځ کوی تعبیرئے هغه امید چه لری پوره به شي که اووینی چه دَ ماښام فرضی لمونځ کوی تعبیرئے دَ اهل وعیال سره به دا سے معامله کوی او دَ هغوئ نه به خوشحاله وی۔ که اووینی چه دَ

سحر لمونځ کوی تعبیر ئې په سفر به ځي او که دا خوب ښځه اوويني تعبیر ئې حائضه به شي که اوويني چه بې اودسه لمونځ کوي تعبیر ئې بیمار به شي که اوګوري چه د ماسخوتن فرض لمونځ کوی تعبیر ئې په امن کښ به شي او په دُښمن به کامیابي مومي که اوويني چه په باغ کښ لمونځ کوي تعبیر ئې، د ګناه نه به توبه کوي که اوويني چه کشتۍ کښ لمونځ کوي تعبیر ئې، د قرضه به خلاص شي که اوويني چه د لمونځ ځائے نۀ دے او دۀ پرے لمونځ کړے دے تعبیر ئې مفسد او بد عمله به وي که اوويني چه لمونځ کوي او مخ ئې د ځنګل طرفته وو تعبیر ئې د رسُول کریمؐ د قبر مبارک زیارت به کوي که اوويني چه په خانه کعبه کښ لمونځ کوي تعبیر ئې، د خلیفه د طرفه به ئې کارونه ټول په نظم کښ شي څنګه چه د دۀ زړۀ غواړي که اوويني چه د لمونځ نه روسته ئې سجده کړے ده تعبیر ئې، په لوئے سري به فتح مومي او په هغه به قابض وي که اوويني چه بغیر د الله تعالیٰ نه ئې بل چا ته سجده نۀ ده کړے تعبیر ئې مراد به ئې حاصل کړي شي که اوويني چه د دیوال د پاسه ئې سجده کړے تعبیر ئې د مشرانو د طرفه به ورته خواري او تکلیف رسیږي که اوويني چه لمونځ کوي او شهد (شات) ئې خوړلي دي تعبیر ئې، خپل عیال ته به نزدے شي که اوويني چه په لمونځ کښ په قاعده ناست دے تعبیر ئې د غم نه به خلاصے مومي او حاجت به ئې پوره شي که اوويني چه په لمونځ کښ اول کس طرفته ئې سلام ګرځولے دے تعبیر ئې حالات به ئې پریشانه وي که اوويني چه په ناسته لمونځ کوي تعبیر ئې، په دُښمن به کامیابي مومي او ځني وائي چه د دۀ

مذر به قبول کړي که اوويني چه په مونځ کښ ئې خپل ځان ته دُعا کړیده تعبیر ئې د دۀ به زوئے پیدا کیږي د الله تعالیٰ قول دے (إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُ نِدَاءً خَفِيًّا ط) مریم ۳: (هغه وخت چه پټ آواز ئې کولو رب خپل ته. که اوګوري چه په تیاره کښ لمونځ کوي تعبیر ئې، د غمونو نه به خلاصے مومي که اوګوري چه د شپے (تهجّد) لمونځ کوي تعبیر ئې د ټولو یرونه به امن کښ شي او نعمت، بزرګي او حکومت به مومي که اوګوري چه په ملا ماتي ئې لمونځ کړیدے تعبیر ئې، بیمار به شي او که اوګوري چه د شپے

لمونځ کوی تعبیر ئے په سفر به ځی او حلاله روزی به مومی او که اوګوری چه په بیت المقدس کښ ئے لمونځ کړیدے تعبیر ئے میراث به بیا مومی او روزی به ئے فراخه کړے شی که اوګوری چه په خانه کعبه کښ لمونځ کوی او یا د خانه کعبی د پاسه تعبیر ئے مخ به د کعبی طرف ته راواړوی او کار به ئے په خیرسره شی۔

حضرت حافظ معبرؒ فرمائی، په خوب کښ لمونځ کول په درېو وجو وی (۱) فرض (۲) سُنت (۳) نفل۔ که اووینی چه فرض لمونځ کوی تعبیر ئے الله تعالیٰ به ورته ج په نصیب کړی او د قبیحو کارونو نه به ئے وساتی د الله تعالیٰ قول دے (اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰى عَنِ الْفَحْشَآءِ وَ الْمُنْكَرِ) ترجمه بیشکه لمونځ سړے د بے حیا کارونو نه او له ناروا نه منع کوی

او که اوګوری چه سُنت لمونځ کوی تعبیر ئے په کارونو کښ به صبر کوی او نامه به ئے نیکه او روښانه شی او په خلکو به مهربانی کوی او که نفلی لمونځ ئے کړے وی تعبیر ئے، په اهل او عیال به شفقت کوی او د دوستانو په کارونو کښ به کوشش کوی او د هرچا سره به ښه سلوك کوی که اووینی چه په ښاروی ئے لمونځ وکړلو تعبیر ئے دهٔ ته به لوئے نکړه سیږی که اووینی چه په کارخانه یا دوکان کښ لمونځ کوی تعبیر ئے الله تعالیٰ به ورته په کار او کسب کښ برکت واچوی او که اووینی چه د جُمعے لمونځ ئے وکړو تعبیر ئے، کاروته به ئے ړا جمع کړے شی۔

حضرت خالد اصفهانیؒ فرمائی، الله تعالیٰ ته رکوع او سجده کول په خوب کښ تعبیر ئے د الله تعالیٰ نزدیکت دے د الله تعالیٰ قول دے (كَلَّا لَا تُطِعْهُ وَ اسْجُدْ وَ اقْتَرِبْ) ترجمه (ته د هغهٔ تابعداری مهٔ کوه سجده کوه او نزدے شه)۔ او معبرینو وئیلی دی که اوګوری چه په لمونځ کښ ئے رکوع نهٔ ده کړے تعبیر ئے، د مال زکوة به ئے نهٔ وی ورکړے که اوګوری چه لمونځ ئے کړیدے تعبیر ئے، الله تعالیٰ به د دهٔ عبادت قبلوی او دُعا به ئے قبلوی او په دهٔ به رحمت کوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ لمونځ کول په اوو وجو وی (۱) امن (۲) ښادی (۳) عزت او مرتبه (۴) مرتبه (۵) خلاصے (۶) د مراد مونډل (۷) په قضاء کښ نقصان۔ او دا هم وئیلی شوی دی چه په خوب

کښې رکوع او سجده کول په پنځو وجوو ی (۱) مراد مونډل (۲) دولت (۳) ملاتړ (کومک) (۴) کامیابي مونډل (۵) د الله تعالیٰ حکم په ځائے راوړل۔ د الله ﷻ قول دے: (یَآاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا ارْکَعُوْا وَاسْجُدُوْا وَاعْبُدُوْا رَبَّکُمْ وَافْعَلُوا الْخَیْرَ لَعَلَّکُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝ پ۱۷ع۱۷) ترجمه: (اے د ایمان خاوندانو رکوع کوئ او سجده کوئ او د خپل رب عبادت کوئ او نیک کار کوئ د پاره د دے چه خلاصے اومومي۔)

که اوګوري چه جنازه ئے کړے ده تعبیر ئے دا دے چه هغه ته به دُعا او صفت به ئے کوي۔ که اووینی چه لمونځ ئے پوره نه دے کړے تعبیر ئے د دے خلاف دے۔

## لامبوزن (غواص)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوك په خوب کښې اووینی چه دریاب کښې غوپه وهلے ده او ملغلرے ئے را اویستی دی تعبیر ئے د هغې په اندازه به علم او هوښیارتیا زده کړي او د بادشاه د مال نه به آرام مومي که اووینی چه په دریاب کښې ئے غوپه وهلے ده او څهٔ شے نه دے را ویستے تعبیر ئے د علم په زده کړه به مشغول وي مګر فائده به ترینه او چته نکړي که اووینی چه د دریاب د بیخ نه ئے ملغلرے را ویستی دی تعبیر ئے عالِم او فاضل به شي او د بادشاه نه به نفع مومي.

## لیوهٔ (گرگ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې لیوهٔ لیدل ظالم او دروغژن بادشاه دے، که اووینی چه د لیوهٔ سره جنګ کوي تعبیر ئے د بادشاه یا د بل چاسره به ئے دُښمنی وی او جنګ او جګړه به ئے ورسره وی که اووینی چه د لیوهٔ پئ ئے خوړلی تعبیر ئے دهٔ ته به یره وی یا د څهٔ کار پوره والے به په دهٔ سره وی که اووینی چه د لیوهٔ غوښه ئے خوړلے تعبیر ئے د ظالم بادشاه نه به د هغې په اندازه مال بیامومي.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه لیوهٔ ئے وژلے دے تعبیر ئے مُسلمانان به د دهٔ نه خ وارزوی او په دهٔ کښې به هیڅ کوم خیر نهٔ وی او څنی وائی چه دُښمن به مغلوبه کړی که اووینی چه د لیوهٔ سر ئے مونډلے دے او یا ورته چا ورکړے دے تعبیر ئے د هغې په اندازه به شرف او بزرګی بیامومي که اووینی چه لیوهٔ د دهٔ کورته راغلے او نقصان ئے وکړو تعبیر

نے دۀ نه به دَ بادشاه نه ضرر رسیږی او که اووینی چه نقصان ئے نهٔ
دے کړے تعبیر ئے بادشاه به دَ دهٔ میلمه راځی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه لیوهٔ دَ دهٔ په بستره کښ پټ
دے تعبیر ئے بادشاه به دَ دهٔ عیال سره فساد کوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ لیوهٔ لیدل په دریو وجو
دی (۱) ظالم بادشاه (۲) در وغژنه ښځه (۳) که ماده لیوهٔ (پړانګه) وی
نو کمزورے دُښمن دے۔

## دَ لرګی سمسئ (کفچه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښ دَ
لرګی سمسئ دَ کور دَ حکومت کار دے که اووینی
په خوب کښ چه دهٔ سره نوے او پاکیزه دَ لرګی سمسئ ده تعبیر ئے دَ دهٔ خدمت
کار به پرهیزګاره وی که اووینی چه دَ لرګی سمسئ ئے زړه او ماته ده تعبیر
ئے دَ دے خلاف دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه دَ دهٔ دَ لرګی سمسئ ماته شوه تعبیر
ئے دَ دهٔ خادم به مری او یا به بیمار شی او که ضائع شی یا ماته شی دَ دے تعبیر
هم دا دے چه خادم به ئے مرشی۔

## لښکر (لشکر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښ اووینی چه
لښکر په یو ځائے کښ دے یا راغلے دے تعبیر ئے دَ هغه
ځائے خلکو ته به تکلیف رسیږی او که لښکر تیار او وینی تعبیر ئے په کوم ملک
کښ چه لښکر دے دَ هغه سوت او نصرت بانددے دے۔ هم دارنګه دَ هغه
ملک دَ بادشاه قوت هم دے چه لښکر دَ دهٔ وو او که لښکر بے وسلے وی تعبیر
ئے دَ هغه ملک دَ بادشاه او دَ هغه ملک دَ خلکو دَ کمزورتیا بانددے دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ دَ لښکر لیدل په پنځو وجو وی
(۱) ملخ (۲) چپاوُ (۳) سخت باد (۴) جګړه (۵) بلا او مشقت۔

## دَ لاس تلی (کف)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اووینی چه دهٔ سره په
تلی کښ څهٔ څیز دے تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به
ورته څهٔ څیز ملاویږی که اووینی چه دَ لاسونو تلی ئے اپوټه شوی دی تعبیر
ئے دغلته به وادهٔ او خوشحالی وی که اووینی چه دَ دهٔ تلی زخمی شوی دی
تعبیر ئے دَ سفر نه به ایسار شی که اووینی چه دَ دهٔ تلی پرانستلی دی تعبیر

سڼه فراخ دستي ده (لاس به ئے آزاد شي) اوکهٔ دَ دے خلاف اووینی تعبیر ئے نامرادی او تنګ ستی ده۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې تلی لیدل په شپږو وجوی (۱) دست فراخي (۲) مال (۳) ریاست (۴) زوئ (۵) زرورتیا (۶) دَ ښځے سره حرام کار کښې داخلیدل۔

## لال (لعل)۔ یوقیمتی کاڼړے دے

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې لال لیدل مالداره او ښائسته ښځه ده کهٔ په خوب کښې اووینی چه دهٔ سره لال آتشین دے اویا ورته چا ورکړیے یائے اخستے دے تعبیرئے په ذکرشوی صفت موصوفه ښځه به کوی اویا به پاکیزه وینزه اخلی اوکهٔ ښځه لری نو پاکیزه او ښائسته لور به ئے پیدا شي کهٔ اووینی چه دهٔ سره ډیر لالونه دی تعبیرئے دَ هغې په اندازه به مال حاصل کړی مګر دَ دین نه به ګمراه (بے لارے) وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه کوم اشنا ورته دَ لال ټوټه ورکړے ده، تعبیرئے نامعلومه ښځه په دے صفت موصوفه به کوی کهٔ اووینی چه کوم ځوان ورته دَ لال ټوکړه ورکړے ده تعبیرئے مال به حاصل کړی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ لال لیدل په څلورو وجوی (۱) ښځه (۲) وینزه (۳) نفع (۴) دَ دُنیا مال او جینکئ۔

## لاک (لک)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دَ دهٔ سره لاک دی تعبیرئے دَ کوم کمینه سړی نه به ورته نفع ورسیږی کهٔ اووینی چه لاک ئے په اور ایښی دی او لوګے کوی تعبیرئے، نوم به ئے په هغه ملک کښې په نیک نامئ مشهور شي کهٔ اووینی چه لاک ئے خوړلی دی تعبیرئے غمژن به شي کهٔ اووینی چه چاړهٔ دَ دهٔ په لاس کښې ده او دَ لاک سره ئے جوړه وی تعبیرئے دَ دوئ هوښیارانو او پرهیزګارانو ترمنځ به صُلح کوی۔

## لوح محفوظ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، چه لوح محفوظ په عام تعبیر کښې دیانتداره سړے دے چه خپل مال دَ الله تعالیٰ په لاره کښې خرچه کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی لوح محفوظ په تعبیر کښې علم پوهه او قرآن حکیم دے کهٔ اووینی چه لوح محفوظ ورو کے دے تعبیرئے دَ دهٔ حال به بد وی۔

کهٔ اوویني چه په لوحِ محفوظ ئې څهٔ لیکلي دي تعبیر ئې کار به ئې نیک وي کهٔ اوویني چه په لوحِ محفوظ کرښې تعبیر ئې، دَ لوئې بادشاه سره به په شغل کښې پریوځي او هغه به حاکم وي کهٔ اوویني چه دَ دهٔ نوم په لوحِ محفوظ کښې لیکلے دے تعبیر ئې دَ دهٔ مرګ به نزدے شوے وي۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښې دَ لوحِ محفوظ لیدل په شپږو وجووی (۱) زیاتوالے (۲) زوی (۳) علم (۴) هدایت (۵) حکومت (۶) علم او پوهه۔

## مېچن (دستِ آس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې مېچن لیدل دَ فکرنه نجات دے کهٔ اوویني چه دَ دهٔ سره مېچن ده تعبیر ئې، دَ هغې په اندازه به خیر او نفع مومي کهٔ اوویني چه دَ مېچن کانړے مات شو، تعبیر ئې دَ مېچن خاوند به هلاک شي او یا به په محنت کښې پریوځي او کهٔ دَ مېچن کانړے (کټه) غلا شوے وي تعبیر ئې بیمار به شي او کهٔ اوویني چه په مېچن نکریزے یا بل څهٔ شے دَل کوي تعبیر ئې، په جګړه کښې به پریوځي۔

## مارغهٔ (سار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، کهٔ څوک په خوب کښې اوویني چه دهٔ سره سار مارغهٔ دے تعبیر ئې دَ مکار سړي دے چه لوئې سفر به کوي کهٔ اوویني چه دهٔ سره سار مارغهٔ دے او یا ورته چا ورکړیں ے تعبیر ئې، دَ مُسافر سړي سره به ملګرتیا کښې پریوځي او کهٔ دَ سار مارغهٔ غوښه ئې خوړلې وي تعبیر ئې، چه څومره ئې خوړلې وي دَ هغې په اندازه به خیر او نفع مومي۔

حضرتِ مغربیؒ فرمائي، په خوب کښې دَ سار مارغهٔ لیدل کافر سړي دے چه دروغ به زیات وائي، کهٔ اوویني چه دهٔ باندے زیات دَ سار مارغان را جمع شوي دي تعبیر ئې دَ کافرانو په منځ کښې به ګرفتار کړے شي۔

## محرم لسم (عاشوره)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي کهٔ څوک په خوب کښې دَ عاشورے ورځ اوګوري تعبیر ئې، مراد ته به رسیږي دَ الله تعالیٰ قول دے (اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ) المائده (نن ورځ مې په تاسو خپل نعمتونه تمام کړل او دَ ستاسي دین

ډېر که څوک په خوب کښې د کال اولنۍ ورځ یا د میاشتې یا د ورځ شروع او آغاز اوګوري تعبیر ئې، هغه ورځ یا میاشت یا ورځ به په ده مبارکه وي او تعبیر ئې د خیر او د نیکئ دے.

## مړاوے شے (افسرده)

حضرت کرمانیؒ فرمائي، په خوب کښې مړاوے شے خوړل غم او فکر دے که اوګوري په خوب کښې چه مړاوے شے خوري تعبیر ئې، د هغې په اندازه به ورته غم او فکر ورسیږي او که اوګوري چه چا ورته مړاوے څیزونه ورکړي دے او د هغې نه ئې خوړلے دے تعبیر ئې، د هغه سړي سره به جنګ کوي او که د هغې نه ئې څه نۀ دي خوړلي نو غم او فکر به ورته نۀ ورسیږي.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائي، په خوب کښې مړاوے شے خوړل تعبیر ئې، په جنګ او جګړو کښې به ګیر یږي خلاصه دا چه د دے په خوړلو کښې څۀ خیر نشته دے.

## مټ (بازو)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، مټ په خوب کښې ورور یا زوئ دے یا اعتمادي ملګرے یا شریکوال دے که اوګوري چه د ده سره مټ قوي دے تعبیر ئې، ده ته به د خپلوانو نه نفع او قوت ورسیږي او که د دے خلاف اوګوري تعبیر ئې، د خپلوانو نه به ورته څۀ فائده او قوت نۀ وي که اوګوري چه د ده مټ پریوتے دے او یا چا پریکړے دے تعبیر ئې، د ده ورور یا دوست یا شریک د دُنیا نه سفر کوي او یا به د ده نه د جُدائیٔ تلاش کوي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښې د مټ لیدل په شپږ وجوو دي (۱) ورور (۲) زوي (۳) شریک (۴) ملګرے (۵) د تره زوئ (۶) کاوندې.

## مخکښې تلل (پیش گرفتن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که څوک په خوب کښې اوګوري چه کوم کار کښې یا د دین په کار کښې لکه حج، عبادت، جهاد وغیره کښې وړاندے تللی دے، تعبیر ئې آخرت کښې به خلاصے مومي او ده ته به د الله تعالیٰ په نزد ثواب دي او که د دُنیا په کار کښې مخکښې تللے وي تعبیر ئې عزت، بخت او مال به مومي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښې مخکښې تلل د خیر په کار ونو کښې د دواړو جهانو خیر او صلاح دے که اوګوري چه د شر په کار کښې

مخکښ تللے دے تعبیر ئے، دَ دواړو جهانو په فساد تعبیر کوی.

## مولئ (ترب)

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښ مولئ لیدل غم او فِکر دے خاصکر چه خوړلی ئے وی او که اوګوری چه خوړلی ئے وی تعبیر ئے، دَ هغې په اندازه به ورته غم او فِکر رسیږی که اوګوری چه چا ورته مولئ ورکړے ده تعبیر ئے، دَ هغه سړی نه به ورته غم او فِکر رسیږی که او وینی چه دهٔ چاته مولئ ورکړے ده یا ئے دَ کوره بهر اچولے ده او څه ئے ورنه نهٔ دی خوړلی تعبیر ئے، دَ غم او فِکر نه به خلاصے مومی.

## ملغلرے (جوهر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه ملغلرے یا جوهر خرڅوی او هغه ملغلرے دَ دهٔ ملکیت وو تعبیر ئے دا دے چه دَ عِلم او دَ دین والا به وی او دَ هر چاسره به نیکی او احسان کوی او که دیندارهٔ نهٔ وی نو دَ غلامانو مالک به وی او دَ ملغلرو دَ قیمت په اندازه به مال حاصل کړی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، که چرے خوب کښ مصلح او پرهیزګاره دوا او وینی چه ملغلرے هم خرڅوی تعبیر ئے، دهٔ ته به عِلم او دین حاصلیږی.

## ملغلرے (ګوهر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، ګوهر او ملغلرے په خوب کښ مالداره او ښائسته ښځه ده که او وینی چه دهٔ سره ملغلرے دی تعبیر ئے، دَ دهٔ ښځه به وی او طلاق به ورکړی او که او وینی چه دهٔ سره ډیرے ملغلرے دی تعبیر ئے، ډیر مال به حاصل کړی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که او وینی چه ملغلرے خرڅوی تعبیر ئے، دَ ښار په شغل کښ به مشغول دی او دلالی به کوی او که او وینی چه په څنو ملغلرو کښ سُوری دی او څنو کښ نشته دے تعبیر ئے، دَ پیغلو جینکو او دَ کونډو ښځو دلالی به کوی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، سپینی ملغلرے په خوب کښ زوئ دے که اوګوری چه دهٔ سره سپینے ملغلرے دی تعبیر ئے دَ دهٔ به زوئ پیدا کیږی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی دَ ملغلرو لیدل په خوب کښ په آتو (۸) وجوی (۱) مال (۲) عِلم (۳) نیک زوئ (۴) څهٔ قیمتی څیز (۵) ښائسته ښځه (۶) فائده نلکے خبرے (۷) خیرا و برکت (۸) نیک کارکول. که خوب لیدونکے پرهیزګار

نه وی نو دَ دهٔ دَ پاره پښیماني ده. او ملغلرے خرڅولے په خوب کښې دَعِلم او حکمت خاوند سړے دے.

## ملغلرے (مروارید)

حضرت دانیالؑ فرمائي، ملغلرے په خوب کښې دَ غلام زوئ یا دَ وینزے زوئ دے.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، ملغلرے په خوب کښې ښائسته وینزه یا ښائسته ښځه ده که اووینی چه دهٔ سره زیاتے ملغلرے دي لکه په شمیر کیدے نهٔ شوے تعبیرئے دَ ملغلرو په اندازه به ورته نفع حاصلیږي او ځنې معبرینو وئیلی دي که خورے ورے ملغلرے اووینی تعبیرئے په عِلم او په پوهه دے او بعضو وئیلی دي چه تعبیرئے په زامنو او لونړو دے.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که چرے هم داسے ملغلرے اووینی تعبیرئے ښځے او جینکئ دي او که اوګوري چه ډیرے ملغلرے ورسره دي تعبیرئے دَ هغې په اندازه به مال حاصل کړي که اوګوري چه دَ دهٔ دَ خولے نه هار وتلے دے تعبیرئے دَ دهٔ دَ خُلے نه دَ حکمت او پوهے منظم خبرے او دَ دے په شان نورے خبرے راووځي که اوګوري چه ملغلرے ئے خوړلی تعبیرئے عِلم او پوهه او دَ پوهے خبرے به پټوي او یا به قرآن مجید هیر کړي که اوګوري چه په لاره یا په کور کښې دَ ملغلرو هار ونه غوړولی دي تعبیرئے دَ دهٔ تصنیفات او تالیفات به په عِلم او حکمت کښې ډیروي او خلک به دَ دهٔ دَ کلام نه عِلم او پوهه زده کوي او که اوګوري چه دَ سوزولو دَ لرګو په ځائے ئے ملغلرے سوزولی دي ډیرعِلم به خلکو ته زده کړي او خلک به دَ زده کولو جوګه (قابل) نهٔ وي که اووینی چه ډیرے ملغلرے ورسره دي او دے پرهیزګاره او دینداره وو تعبیرئے دَ دین او دینداری زیاتوالے دے او که مالداره وي نو مال به ئے زیات شي.

حضرت کرمانیؒ فرمائي، که څوك اووینی چه ملغلرے ورسره دي تعبیرئے دَ دهٔ به ښائسته زوئ پیداکیږي لکه څنګه چه الله تعالیٰ په خپل کلام پاك کښې فرمائیلی دي (کَاَنَّهُمْ لُؤْلُؤٌ مَّکْنُوْنٌ) طور ۲۴ (ګویا دا هلکان به داسے وي لکه ملغلرے چه په غلاف کښې پټے وي او که غټے ملغلرے اووینی داسے چه ډیره زیاته غټه ده تعبیرئے ډیر زیات مال به ورته حاصلیږي او که اووینی چه ملغلرے ئے خرڅے کړے تعبیرئے عِلم او قرآن مجید به هیر کړي که اووینی چه هغه ملغلرے ئے په خُله کښې اینې دي او تیرے کړے ئے دي تعبیرئے

الله تعالیٰ به دهٔ ته عِلم او پوهه روزی کړی او کهٔ اووینی چه ملغلرے ئے په نامعلومه ځائے کښ اچولی دی تعبیر ئے، دَ چا په حق کښ به داسے کار کوی چه هغه به دَ دے کار عزت او قدر نهٔ پیژنی او کهٔ اووینی چه دَ ملغلرو هار دَ دهٔ په لاس کښ دے تعبیر ئے، دَ دهٔ به لور پیدا کیږی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه ډیرے ملغلرے ورسره دی تعبیر ئے الله تعالیٰ به ورته عِلم، قرآن مجید او پوهه نصیب کړی او کهٔ اووینی چه دَ دهٔ دَ خُلے نه یوه قیمتی ملغلره را ووځی تعبیر ئے، دَ نیکئ خبرے به کوی او خلک به ئے خوښوی کهٔ اووینی چه دَ ملغلرو هار ئے دَ لاسه پریوتے دے او مات شوے دے تعبیر ئے ډیرے خبرے به کوی۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه ملغلرے ئے په ډیران او یا په کوم کنده ځائے کښ اچولی دی تعبیر ئے، کم عقل خلکو ته به عِلم و حکمت ښائی که اووینی چه ملغلرے ئے په اور سوزولی او یا ئے په کانړی ماتے کړے تعبیر ئے، خلافِ شرعه کار به کوی او کهٔ اووینی چه ملغلرے ئے دَ خپو لاندے ماتے شوی دی تعبیر ئے دَ دهٔ به زوئ مری او کهٔ اووینی چه دَ دهٔ آلهٔ تناسل نه ملغلرے راوتی دی او هغے کښ سوری نهٔ وو تعبیر ئے دَ دهٔ به لور پیدا کیږی او کهٔ اووینی چه دَ ملغلرو هارونه ئے په غاړه کښ اچولی دی تعبیر ئے، هر قسم علمونه به حاصلوی او کهٔ دَ چا په غاړه کښ ئے اچولی دی تعبیر ئے هغه کس ته به عِلم او پوهه ور ده کوی او کهٔ اووینی چه دَ دهٔ په دواړو غوږونو کښ دَ ملغلرو والئ (غوږ والئ) دی تعبیر ئے، قرآن مجید به یاد او ور ده کړی او کهٔ اووینی چه ډیرے ملغلرے ورسره دی تعبیر ئے، دَ هغے په اندازه به مال حاصل کړی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دَ ملغلرو خرخول ئے کړی دی تعبیر ئے هغه سړے به پرهیزګاره او مُصلح وی او په هر عِلم کښ به دَ دهٔ حصه وی او کهٔ هغه سړے دَ اهلِ علمو ځنی نهٔ وی نو زوئ او ډیر مال به ورته حاصل شی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ ملغلرو لیدل په شپږو وجوو دی۔ (۱) قرآن مجید (۲) پوهه او کمال (۳) مال (۴) ښځه (۵) ښائسته وینزه (۶) نیک زوی۔ او ملغلرے خرخوونکے هغه سړے دے چه ډیر امن او اولاد او ډیر مال لری او عِلم به هم ډیر لری۔

## مالوچ وهونکے (حلاج)

دا هغه سړے دے چه پنبه اومالوچ جُدا کوی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، مالوچ وهونکے په خوب کښں قوی سړے دے چه دَ خلکو کارونه دَ ده په واسطه خلاصیږی اوکهٔ اووینی چه دَ مالوچ وهلو کار کوی تعبیرئے، دَ کوم سړی صفت چه ذکروشو دَ دهٔ به ورسره ناسته اوشی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، مالوچ وهل په خوب کښں لیدل په دوه وجوو دی (۱) نفع (۲) فراخی۔

## دَ مړی خوشبوئ (حنوط)

دا یوقسم بناشته بوئ دے چه خلک ئے په مړو وهی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که چرے اوګوری چه حنوط ئے مړلی دی، تعبیرئے، توبه به اوباسی او دَ الله تعالیٰ په پناه کښں به دی اوکهٔ دا خوب پرهیزګاره کس اووینی تعبیرئے، دَ غم اوفکرنه به خوشحالی مومی او دَیرے نه به اَمن کښں شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی حنوط بویَول دَ خلکو صفت دے ځکه چه اهلِ تعبیرو بیان کړے دے دَ حنوط په اندازه دَ مړی دَ خلکو نیکنامی ده۔

## مړئ خپه کول (خبه کردن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که خوب کښں اوګوری چه دهٔ مړئ خپه کړله تعبیرئے غمژن به شی او دَ خپل کار نه به بیکاره شی اوکهٔ اوګوری چه دهٔ دَ چا مړئ خپه کړله تعبیرئے غم اوفکردے اوځنی معبرینو وئیلی دی چه ژوند به ئے تنګ شی۔

## منشی توب (دبیری)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښں اوګوری چه منشی توب کوی تعبیرئے دَ مړومال به دَ حیلے سره اوړی اونامناسب کار به کوی اوکهٔ اوګوری چه دَ بادشاه منشی توب کوی تعبیرئے دَ بادشاه دَ قوم نه به نفع حاصلوی. اوکهٔ اووینی چه دَ عامو خلکو منشی توب کوی تعبیرئے دَ خلکو رونه به ځان باندی سوزوی۔

حضرت دانیالؑ فرمائی، کهٔ اووینی چه لیکوال شوے دے تعبیرئے دَ خلکو نه به په چل او فریب روزی حاصلوی اوکهٔ منشی هوښیار اووینی چه منشی

توب کوی تعبیر ئے، ډیره ښیاته نفع او خیر به مومی که خوب لیدونکے د عملے والاوی نو د خپلے عملے نه به لرے شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه قرآن مجید یا احادیث شریف لیکی تعبیر ئے د هغے دُنیا خیرا و نفع به مومی او که اووینی چه شعراو غزل لیکی تعبیر ئے په عیش او د لهو لعب آلاتو کښ به مشغول وی او که اووینی چه خط لیکی او بسهٔ سیاهی ده تعبیر ئے، د ښکے په باره کښے چک به لیکی (انتقال) او که اووینی چه هغه څهٔ لیکی چه څهٔ د شریعت وی تعبیر ئے انجام به ئے بد وی۔

## مخ اولاس وینځل (دست وروشستن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښ اووینی چه دهٔ مخ اولاس په صفا اوبو وینځلی دی تعبیر ئے د غم نه به خلاصے او مومی او که بیمار وی صحت به ئے نبهٔ شی او که قرضدار ے وی نو قرض به ئے خلاص شی او که اووینی چه مخ اولاس ئے وینځلی دی او لمونځ کوی تعبیر ئے، دین به کمزورے وی او څهٔ مال چه لاس کښ لری د لاسه به ئے ووځی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه په دواړه لاسونو سره مخ وینځی، تعبیر ئے، د خپلو دوستانو نه به مدد غواړی که اوګوری چه مخ اولاسونه ئے وینځلی دی او اودس ئے بیا مات شو تعبیر ئے، په خپل کار او کسب کښ به عاجز وی، که اوګوری چه اودس ئے مات شو او بیا ئے مخ اولاسونه وینځلی دی او لمونځ ئے شروع کړو مګر لمونځ ئے پوره نکړو تعبیر ئے عمر به ئے پوره شوی وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، که اوګوری چه چا ورته مخ اولاسونه وینځلی دی او دے په هغے کښ سوچ کوی تعبیر ئے مراد به ئے پوره شی۔

## منډه وهل (دویدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که اوګوری چه منډے وهی او یا خاروی ته منډه ورکوی تعبیر ئے په سفر به ځی او چه هر څومره منډه ښیاته وی د هغے په اندازه به ئے سفر زیات او اوږد وی که اوګوری چه پالان والا اس باندے سور دے او هغه ښیاغلوی تعبیر ئے، د عیال سره به سفر کوی او مال به مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه په منهٔ کښې په چا مخکښے والے کړے دے تعبیر ئے، دَ مال په حرص کښې به دَ هغهٔ نه مخکښې کیږی کهٔ اوو ینی چه په منهٔ کښې ستړے شوے دے اوآرام کوی تعبیر ئے، دُنیا به پریږدی او صابر به شی۔

## منډے وهل (شتافتن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ څهٔ کار دَپاره منډے وهی تعبیر ئے، دَ هغه کار نه به پښیمانه شی او کهٔ اوګوری چه پښیمانه شو او منډے ئے وهله تعبیر ئے، هغه کار کښې به جلتی کوی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، په هر یو کار کښې منډه وهل دَ تاخیر تعبیر لری او تاخیر کول په تندی تعبیر لری۔

## مخ (رخسار)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، مخ په خوب کښې لیدل زنړائی ده او عزتمند دَ خلکو دے کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ مخ پاکیزه او سُور دے تعبیر ئے، دَ خلکو په وړاندے به محبوب / عزیز وی کهٔ اووینی چه دَ دهٔ مخ تور یا زیړ شوے دے تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، مخ په خوب کښې لیدل دَ خلکو زندګی او دَ کور مالک دے او کهٔ مخ سوزیدلے او وینی تعبیر ئے دَ کوروالو دَپاره نقصان دے او کهٔ دَ دے خلاف اووینی تعبیر ئے دَ کوروالا په نیکئ تعبیر لری۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، مخ په خوب کښې لیدل دَ حال بهتری او دَ خوشحاله سړی تعبیر دے او خراب مخ دَ غم او فکر او دَ بیمارئ تعبیر لری۔

## مخ (روئے)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ خوک مخ په خوب کښې اووینی چه دَ خپل عادی بنائست نه بنائسته شوے دے تعبیر ئے، دَ دهٔ عزت او بزرګی نوره هم زیاته شی او کهٔ خپل مخ خراب اوګوری تعبیر ئے، مرتبه به ئے کمه شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ خپل مخ سور او پاکیزه اووینی تعبیر ئے محبوبه به وی او کهٔ اووینی چه دَ دهٔ مخ سپین شوے دے تعبیر ئے دَ دهٔ دَ دین ښیګړه ده دَ الله قول دے (وَ اَمَّا الَّذِیْنَ ابْیَضَّتْ وُجُوْهُهُمْ فَفِیْ رَحْمَةِ اللّٰهِ هُمْ فِیْهَا خٰلِدُوْنَ ۝ اٰل عمران) (او دَ چا مخونه چه سپین دی هغوی دَ الله تعالیٰ په رحمت کښې دی او دوئ به همیشه په کښې وی۔

اوکهٔ اووینی چه دَ دهٔ مخ ژیړ شویدے تعبیر ئے بیمار به شی اوکهٔ تور شوی وی تعبیر ئے دَ خلکو په وړاندے به شرمنده شی اوکهٔ اووینی چه مخ ئے تور دے اوجامے ئے سپینے اچولی دی تعبیر ئے دَ دهٔ به لوړ پیدا کیږی دَ الله تعالیٰ قول دے (وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِالْأُنثَىٰ ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ ۝ النحل) (او کله چه په دوئی کښے کوم یو ته دَ جینئ زیرے ورکړے شی نو مخ ئے دَ غصے نه تور شی.

اوکهٔ اووینی چه دَ دهٔ مخ تور او په دوړو ګنده دے تعبیر ئے دے به مشرک وی اوکهٔ اووینی چه دَ دهٔ مخ په وینو ګنده دے او یا دَ دهٔ دَ مخ نه زیړے اوبهٔ روانے دی او دَ دهٔ په مخ زخم نهٔ وی تعبیر ئے دَ دهٔ دَ مال تاوان به وی اوکهٔ اووینی چه دَ دهٔ مخ کوږ شوید ے تعبیر ئے دَ دهٔ دَ حال تباهی ده اوکهٔ اووینی چه دَ دهٔ په مخ خال دے تعبیر ئے قرضدار به شی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ خپل مخ په اوبو یا په ښیښه کښ ښهٔ اووینی او یا ښوك ورته ووائی چه ستا خوښهٔ مخ دے تعبیر ئے دَ دهٔ به کار نیک شی او کهٔ خراب وو تعبیر ئے دَ دهٔ خلاف دے اوکهٔ اووینی چه دَ دهٔ مخ سور دے تعبیر ئے دَ چاسره به مُباحثه کوی او غصّه به خوری اوکهٔ خپل مخ سپین او روښانه اووینی تعبیر ئے دَ بندګئ توفیق به مومی اوکهٔ خپل مخ تور اووینی تعبیر ئے غم او فکر دے او دَ کفر ویره ده. دَ الله تعالیٰ قول دے (فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ) آل عمران ۱۰۶. ترجمه: او دهغه چا چه مخونه تور وی وئیلے به شی ورته چه آیا د ایمان نه پس کافر شوئی.

اوکهٔ پخپل مخ زخم اووینی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به غم او فکر مومی اوکهٔ خپل مخ کرځیدلے اووینی تعبیر ئے دَ دهٔ کار کښ به خلل او نقصان وی اوکهٔ خپل مخ دوه مخونه اوګوری تعبیر ئے منافق به وی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ مخ لیدل په اتو وجوو دی (۱) عزت او سرداری (۲) ذلّت او خواری (۳) دَ کارونو انتظام (۴) دین او دینداری (۵) غم او رسوائی (۶) قرض (۷) نیکی (۸) دَ اطاعت توفیق.

## موچئ (زنبور)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، موچئ په خوب کښ کمینه او بد ذاته سړے دے، کهٔ اوګوری چه موچئ چیچلے دے تعبیر ئے دَ بد ذاته او کمینه سړی نه به ورته تکلیف رسیږی اوکهٔ

اوويني چه ډيرے موچيان وړ بانده ٔ را جمع شوي دي تعبير ئے په کمينه خلکو کښې به ګرفتاره شي خاصکرچه موچيان خوړلے وي.

حضرت ابراهيم کرماني فرمائي، که اوګوري چه موچيان چيچلے دے تعبير ئے ذَدهٔ به ذکمينه او خبرلوخوشحوسره کار پيښيږي اوکه اوويني چه موچيان ئے مړے کړي دي تعبير ئے په ذښمنانو به کاميابي مومي اوکه اوويني چه ډيرے موچيان په هوا را جمع شوے او ذَدهٔ نه را چاپيره شوي دي تعبير ئے دے ملک ته به يو لښکرورسيږي.

حضرت امام جعفر صادق فرمائي، په خوب کښې ذموچيان ليدل په شپږو وجوه دي (۱) شور (۲) کمينه او بې اصله سړے (۳) لښکر (۴) ملخ (۵) دښمن (۶) زامن

## مَساله داره چټني (زيره باج)

حضرت ابن سيرين فرمائي که مَساله داره چټني اوګوري که چرے تروشه نه وي اوخوږ والي ته مائيله وي تعبير ئے خيرا و نفع ده، اوکه تروشوالي ته مائيله وي تعبير ئے غم او فکر دے اوکه په دے کښې زعفران وي تعبير ئے بيماري ده او څني معبر بينو وئيلي دي په خوب کښې ذمساله داره چټني تعبير غم، فکر او مصيبت بانده دے.

## مړوند (ساعد)

حضرت ابن سيرين فرمائي ذ مړوند ليدل په خوب کښې دوست او شريکوال دے که اوويني چه ذَدهٔ ذلاس مړوند قوي دے تعبير ئے دهٔ ته به ذ دوستانو او شريکوالو نه خير او نفع را سيږي اوکه اوويني چه مړوند ئے مات شوے دے تعبير ئے ملګرے، دوست او شريکوال به ورنه جُدا شي.

حضرت مغربي فرمائي، که اوګوري چه ذَدهٔ ذلاس په مړوند ډيرنيات ويښتهٔ دي تعبير ئے دوستان به ورنه جُدا شي او غمژن به شي، اوکهٔ اوګوري چه دهٔ ذخپل مړوند ويښتهٔ خرئيلي دي تعبير ئے، ذقرض نه به خلاص شي

## ماشکی (سقا)

حضرت ابن سيرين فرمائي، ماشکی هغه سړے دے چه ذَدهٔ لاس کښې خيرات کيږي خاصکرچه خلکو ته اوبهٔ بے طمعے ورکوي.

حضرت کرماني فرمائي کهٔ چرے اوګوري په خوب کښې چه خلکو ته بې طمعے

اوبهٔ ورکوی تعبیر ئے، دَ آخرت کار کښې به راغب وی او کهٔ اوګوری چه مشک ئے دَ اوبو نه ډک کړو او چا ته ئے اوبهٔ ورنکړے تعبیر ئے، مال به جمع کړی او دَ هغې نه به فائده او آرام نهٔ مومی او کهٔ اووینی چه دَ کور خلکو دَ پاره اوبهٔ اوړی تعبیر ئے، دَ داسے خلکو دَ پاره به مال جمع کړی چه دهٔ ته ئے څهٔ فائده نهٔ وی.

## مرمنړ (شمامه)

حضرت ابن سیرین فرمائی، مرمنړ په خوب کښې دَ غلام زوئ دے کهٔ اووینی په خوب کښې چه مرمنړ ئے نیولے اویا ورته چا ورکړے دے تعبیر ئے، دَ غلام زوئ به ئے پیدا شی کهٔ اووینی چه مرمنړ ئے دَ لاسه اَلوتے دے تعبیر ئے، دَ غلام زوئ به ئے مری.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، مرمنړ په خوب کښې حلاله روزی ده دَ الله تعالیٰ قول دے (وَاَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى) البقرة (مونږ په تاسې من او سلوٰی نازل کړی وو). او کهٔ اووینی چه دَ مرمنړ غوښه ئے خوړلی وی تعبیر ئے حلاله روزی به بیا مومی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې مرمنړ لیدل په څلورو وجو دی (۱) دَ غلام زوی (۲) حلاله روزی (۳) نفع (۴) خیر او مال.

## مرخنډئے په شان میوه (سنجه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سنجه په خوب کښې نیک مال دے چه په تکلیف سره لاس ته راځی، کهٔ اوګوری په خوب کښې چه سنجه ئے اخستے دے اویا ورته چا ورکړی دی تعبیر ئے، ډیر مال به حاصل کړی او کهٔ اوګوری چه سنجه ئے خوړلی دی تعبیر ئے، په خپل عیال به مال خرچه کړی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی سنجه په خوب کښې په دریو وجوی.
(۱) په تکلیف سره مال (۲) ملاویدل (۳) مال چه دَ محنت نه بغیر ملاویږی.
(۳) دَ بد خویه سړی نه نفعه.

## دَ مارغهٔ یو قسم دے (سنګخواره)

دا هغه مارغهٔ دے چه کاڼړی خوری.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری په خوب کښې چه سنګخواره ئے نیولے ده تعبیر ئے، په کار او سختئ کښې به پریوځی او دَ هغې نه به خیر نهٔ وی اویا به دَ دهٔ کوم بے وقوف سړی سره کار پیښیږی.

کهٔ اوګوری چه سنګخواره ئے دَ لاسه اَلوتی ده او یا ئے په لاس کښې مړه

شوے دہ تعبیر ئے، دَ سخت کار نہ بہ زړہ خلاصے مومی او کهٔ اوګوری چه دَ سنګخوارے غوښه ئے خوړلے دہ تعبیر ئے، دَ خپل کسب نه بہ په سختئ سرہ څهٔ لاس ته راوړی۔

## مړیدل (سیری)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوك په خپل ځان په خوب کښ موړ اووینی تعبیر ئے، چا ته به محتاج نۀ وی مګر دَ دین په کار کښ به کمزورے دی او کهٔ خپل ځان اوږے اووینی تعبیر ئے، ګناه به کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، ښهٔ خوب هغه دے چه خپل ځان نه موړ او نۀ اوږے اووینی ځکه چه دواړه دَ طبع خلاف دی او هغه شے چه دَ طبیعت مخالف وی دَ هغے په وجه تکلیف ته رسیږی۔

## مارغهٔ عنقا (سیمرغ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښ نر عنقا اووینی تعبیر ئے دَ خوش طبیعته او مشر سړی سرہ به دوستی کوی او کهٔ ښځه (ماده) عنقا اووینی تعبیر ئے ښائسته او دَ ښو اخلاقو والا ښځه به کوی۔

اوکهٔ اووینی چه عنقا ورسرہ خبرے کړی تعبیر ئے، دَ بادشاه وزیر به جوړیږی او کهٔ دَ عنقا مارغهٔ سرہ ئے جنګ کړے وی تعبیر ئے، دَ کوم مشر سړی سرہ به جنګ کوی او کهٔ دَ عنقا مارغهٔ غوښه ئے خوړلے وی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ کوم مشر مال مومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه ښځه (ماده) عنقا ئے وژلے دہ تعبیر ئے، پیغله جینئ به وادهٔ کوی او کهٔ اووینی چه عنقا ئے دَ لاسه ګوتے دہ تعبیر ئے، ښځے ته به طلاق ورکوی او کهٔ اووینی چه دَ عنقا مارغهٔ بچی ئے نیولی دی تعبیر ئے، دَ دهٔ به بے وقوف زوئے پیداکیږی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، عنقا مارغهٔ په خوب کښ بادشاه دے۔

کهٔ اووینی چه عنقا مارغهٔ دَ دهٔ کوٹے ته راغلے دے او دَ دے کوٹو خلکو وژلو تعبیر ئے، دَ هغه ملك بادشاه به هلاك کړی او کهٔ اوګوری چه دَ عنقا نه یریږی تعبیر ئے، بادشاه به ورته څهٔ انعام ورکړی۔

## ماتول (شکستن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری په خوب کښ چه څهٔ شے ئے مات کړے تعبیر

ئ دَ هغې په اندازه به ورته تاوان رسیږي او که اوګوري چه هغه مات کړے شے دَ بل چا دي تعبیر ئے دَ هغې نقصان به په خوب لیدونکي دَ پسه کیږي او که اوګوري چه دَ دهٔ دَ وجود په اندامونو کښې یو اندام مات شو تعبیر ئے دَ دے اندام چه دَ کومو خپلوانو سره تعلق لري غم او مصیبت ورته رسیږي او که اوویني چه دَ لهو لعب په شان لکه رباب (شرنګ لرګی) چنګ، دوبړئ او شپیلئ مات کړي، تعبیر ئے داکار په خوشحالئ دے.

## مُشک (خیک)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، په خوب کښې دَ مُشک لیدل دَ ازمري او دَ مار خهره ده چه دَ چا په لاس حرام مال خرچه کیږي او دَ شهد و مُشک په خوب کښې لیدل عالم، عقل ښود لو والا او رهبر سړے دے که اوویني چه دَ دهٔ سره مُشک دے یا ئے اخستي دے تعبیر ئے دَ دهٔ به داسے سړي سره ملګرتیا وي چه دَ هغهٔ نه به خیر او نفع موهي که اوویني چه مُشک غلا شوي دي او یا ضائع شوي دي تعبیر ئے دے به دَ دے چه دَ داسے سړي نه جُدا شي

## ملګرتیا

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که په خوب کښې اوویني چه دَ نیک او پرهیزګاره سره ملګرتیا ده تعبیر ئے دینداري او دَ دهٔ ژوند به درستئ سره وي او که دَ دے خلاف اوویني تعبیر ئے دَ هغهٔ فساد او تباهي ده.

حضرت مغربیؒ فرمائي، که اوویني په خوب کښې چه بادشاه سره ملګرتیا کوي تعبیر ئے دَ بادشاه نه به ورته خیر او نفع ورسیږي او که دَ عالم سره ملګرتیا کوي تعبیر ئے عِلم او پوهه به بیا موهي او کارونه به ئے انتظام سره شي که اوویني چه دَ مُشرک سره ملګرتیا کوي تعبیر ئے بایدچه توبه اوباسي، که اوویني چه دَ کوم بزرګ سره ملګرتیا کوي تعبیر ئے په دُنیا به مغروره وي.

## میښه (ګاؤمیخ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، میښه په خوب کښې تندرمند سړے دے چه خلکو ته ورنه نفع رسیږي خاصکر چه دَ دهٔ تابعداره وي.

## دَ مړي دَ کفن تعبیر (تاویل کفن مرده)

حضرت ابراهیم کرمانيؒ فرمائي، که په خوب کښې اوویني چه پیژندګلو مړي ته ئے کفن اغوستے دے تعبیر ئے په دُنیا کښې به دَ هغه مړي طریقه اختیار وي که هغه مړے عالِم وو نو په عِلم کښې او که

مالدارۀ وونوپه مال کښ اوکۀ اووینی چه دَ مړی نه ئے کفن کوزکړیږے تعبیرئے دغه مړے به په قبرکښ ژوندے وی اودَدے مړی حال به ښۀ وی اوکۀ اووینی چه دۀ مړی ته کفن ورکړے دے تعبیرئے دَمړی خپلوانو ته به جامے ورکوی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په خوب کښ دَ مړی جامے لیدل په دریو وجووی (۱) مال (۲) دَ مشکل کار ظاهریدل (۳) دَ دین فساد۔

کۀ اووینی چه مړی کوریږی تعبیرئے دَدۀ عمر به زیات وی مګردَ دۀ په کور کښ به خرابی وی کۀ اووینی چه مړی راژوندی شوی دی تعبیرئے مشکل کار به وربانده ظاهریږی داسےلکه دَ خپلے عهدے نه لرے شوے نوکار به بیامومی اوکۀ بادشاه وی نوعلم اوحکمت به ئے زیات شی او هغه اُمید چه لری نو پورۀ به شی اوکوم شغل کښ چه پریشانه وی نو پوره به شی دَالله تعالیٰ قول دے، ﴿فَأَمَاتَهُ اللَّهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُ الخ﴾ البقرة (الله تعالیٰ دے تَل کاله مړاوساتلو او بیائے راژوندے کړو)۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کۀ اووینی چه عالم یا بادشاه راژوندے شوے دے تعبیرئے دَ هغهٔ طریقه او خصلت به ژوندی وی کۀ هغه ښۀ وی او کۀ بد وی۔ کۀ اووینی چه مړی په ترخ کښ نیولے دے تعبیرئے دَ دۀ عمر به زیات وی ادا وچت کار به نیسی کۀ اووینی چه مړی ته ئے څۀ څیز ورکړیږے تعبیرئے هغه څیز به ګران وی او دَ هغے نرخ به قیمته وی دا هم دَلیلے شی چه هغه مړے به ښیلے او شهیدا وی کۀ اووینی چه مړے درنه ډوډئ غواړی تعبیرئے هغه مړے به دَدۀ دَ صدقے اُمید داره وی۔

## ماستهٔ، چکه (ماست)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، خوارۀ ماستهٔ په خوب کښ لیدل تعبیرئے خیر او نفع دہ او تروش ماستهٔ لیدل غم او فکر دے۔

حضرت دانیال[ع] فرمائی، ماستهٔ هغهٔ مال دے چه سفرکښ حاصلیږی اوکۀ اووینی چه ماستهٔ ئے خوړلی دی تعبیرئے په سفرکښ به مال حاصل کړی خاصکر چه خوارۀ ماستهٔ وی اوکۀ اووینی چه دَ ماستو نه ئے کُچ ویستلی دی تعبیرئے دَ هغے په اندازه به ورته مال حاصل شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کۀ اووینی چه خوارۀ ماستهٔ ئے خوړلی دی

تعبیرئے حلال مال بہ پہ لاس راؤړی او تروش ماستۀ پہ غم او فکر تعبیر لری.

## متهایلنے (شیرینی ها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، خوارۀ څیزونه پہ خوب کښں بنادی، خوشالی او حلاله روزی ده کۀ پہ خوب کښں اوګوری چه چاورته خوارۀ ورکړی دی تعبیرئے د هغه سړی نه پہ روزی بیا مومی او کۀ اوګوری چه خوارۀ ئے خوړلی دی تعبیر ئے نفعه بہ بیا مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، خوارۀ پہ خوب کښں نیکه وینزه ده او کۀ اوګوری چه خوارۀ سپین دی تعبیرئے پرهیزګاره بہ وی او کۀ خوارۀ سرۀ وی دے بہ ئے د لهو ولعب کښں اخته او عیش پرسته بہ وی او کۀ زیړوی نو د بیمارۓ وینز تعبیر لری.

حضرت جعفر صادقؒ فرمائی، پہ خوب کښں خوارۀ لیدل پہ څلورو دجو وی.

(۱) نفعه (۲) حلال مال (۳) عِلم، ادب، کمال، حکمت او نیک صفت (۴) بنائسته وینزه

## مُصَبّر، ایلوا دارو دی (صبر)

مصبر پہ خوب کښں داسے عالم دے چه د عِلم د غرض نه ئے د مال ترابنکل وی کۀ اوګوری چه مصبرئے خوړلی دی تعبیرئے پہ دے صفت بہ عالِم جوړشی، او کۀ خوړلی ئے نۀ وی تعبیرئے د دے خلاف دے.

حضرتِ مغربیؒ فرمائی، د مصبر خوړل پہ خوب کښں تعبیرئے غم او فِکر دے چه دۀ تہ بہ ئے رسیږی.

## مُهر (طابع)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ اووینی چه دۀ تہ مُهر ورکړے شوے دے دے د پارۀ چه پہ خپله خزانه مُهر ولګوی تعبیرئے عزت، مرتبه او بزرګی بہ بیا مومی، ځکه چه د مُهر لګون تعبیر د کوتی لګولو نه بهتر او قوی دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کۀ اوګوری چه بادشاه یا امیر ورته مهر ورکړے دے د پارۀ چه خزانه مُهر کړی تعبیرئے خپل مال بہ دۀ تہ سپاری او کۀ خوب لیدونکے د دے قابل نۀ وی تعبیرئے د خپل قدر پہ اندازه بہ عزت او مرتبه مومی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی پہ خوب کښں مُهر لیدل پہ دریو وجو وی (۱) سرداری او مرتبه (۲) خزانه (۳) د مال جمع کول.

## مسُور (عدس)

دَ تعبیر ورکونکو دَ مسورو په تعبیرکښې اختلاف دے. حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، مسور په خوب کښې لیدل ښهٔ دی ځکه چه دا حضرت ابراهیم علیه السّلام خوښول.

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائي، په خوب کښې دَ مسورو خوړل بد دی ځکه چه بنی اسرائیل دَ من او سلوٰی خوړلو سره تنګ شو نو دوئ دَ الله تعالیٰ نه مسور، پیاز او اوګه وغوښتل.

حضرت مغربیؒ فرمائي، په خوب کښې مسُور خوړل مال دے چه دَ ښځو نه به لاس ته راځي خاصکر چه پاخهٔ وی او که کچه (خام) وی تعبیر ئې غم او فکر دے.

## مسور پاخه کړی- (تفشله)

چه په فارسی مسور وته تفشله وئیل کیږی که څوک ئې په خوب کښې اوګوری تعبیر ئې غم او فکر دے.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي که اوګوری چه په خوب کښې پاخهٔ کړی مسور ئې خوړلی دی. تعبیر ئې غم او فکر به خوری او یا به ئې دَ چا سره جګړه پریوځي او دَ هغې په وجه به بیمار وی. خلاصه دا چه دَ دے په خوړلو کښې څهٔ خیر او نفع نشته.

## معزول کیدل (عزل)

دَ خپلے عهدے او دَ خپل کار نه لرے کیدل دی که اووینی چه څوک بودا ئې دَ خپل کار نه لرے کړے دے تعبیر ئې بے عزتی او ذلت به مومی او که اووینی چه ځان ئې دَ خپلے عهدے نه معزوله کړے دے تعبیر ئې دَ دے خلاف دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائي، که اوګوری چه څوک سردار ئې لرے کړے دے تعبیر ئې دَ دین صلاح ده او که دَ څهٔ کار نه ئې معزول کړے دے چه دَ ژوندګئ په کسب کښې دے تعبیر ئې دَ دهٔ دَ ژوندګئ نقصان دے.

## ښجنوغه (فلاخن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، که اووینی چه په چا ئې ښجنوغه ورولی ده (کا نړی ئې ورولی دی) تعبیر ئې هغه سړی ته به خیرے کوی او که اووینی چه چا په دهٔ کانړی ورولی دی تعبیر ئې هغه سړے به دهٔ ته خیرے کوی که اووینی چه دَ دهٔ اندام دَ ښجنوغے په کانړی زخمی شوے دے تعبیر ئې په خیرو به ورته څهٔ آفت او بیمار به شی.

## میوه، ممیز، وشکی (کشمش)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی دَ ممیزد لیدل په خوب کښې تعبیر ئے مال او نعمت دے کهٔ اووینی چه دهٔ سره ممیز دی او یا ورته چا ورکړی دی او خوړلی ئے دی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به خیر او نفع هغه کس ته رسوی کهٔ اووینی چه دَ میوے او بهٔ ئے ویستلے دی او خښلی ئے دی کهٔ عالم وی نو علم به ئے زیات شی او کهٔ سوداګر وی نو مال به ئے زیات شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دَ میوے ډیرے ورسره دے کهٔ چرته عالم وی تعبیر ئے دَ دهٔ مال به زیات شی او کهٔ څهٔ کاریګر وی تعبیر ئے ټول مال به دَ کسب نه حاصلوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، دَ میوے خوړل په خوب کښې په درۓ توګو دی (۱) نفع (۲) حلال مال (۳) کسب۔

## مرئ (ګلو)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښې اووینی چه دَ دهٔ مرئ روغه ده او څهٔ درد نهٔ کوی تعبیر ئے امانت او قرض به خلاصوی کهٔ اووینی چه تکلیف او آفت ئے دَ مرئ ظاهر شوے دے تعبیر ئے دَ دے خلاف دے او کهٔ خپله مرئ فراخه اووینی تعبیر ئے روزی به په دهٔ فراخه شی او کهٔ تنګه اووینی تعبیر ئے دَ دے خلاف دے او کهٔ خپله مرئ قوی او جوړه اووینی تعبیر ئے دَ امانتونو خیال به ساتی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دَ دهٔ مرئ پریکړے شوے ده تعبیر ئے مرئ پرے کوونکے به په دهٔ ظلم کوی یا به دهٔ ته په دین پیغور ورکوی، دَ هغے ځناور چه دَ هغے حلالول روا نهٔ دی کهٔ اووینی چه دَ دے ځناور مرئ ئے پریکړے ده تعبیر ئے، هغه ځناور چه دَ کوم سړی سره نسبت لری چه خلک به په هغهٔ ظلم کوی کهٔ اووینی چه دَ چارپائی مرئ ئے پریکړے ده تعبیر ئے کار به په دهٔ سختیږی او کهٔ اووینی چه دَ ځناور مرئ دَ ضرورت دَ پاره پریکړے ده او غوښه ئے خوړلے ده کهٔ دَ هغه ځناور غوښه حلاله وی تعبیر ئے، حلاله روزی به بیا مومی او کهٔ غوښه ئے حرامه وی نو حرام به بیا مومی کهٔ اووینی چه دَ انسان مرئ ئے پریکړے ده تعبیر ئے په هغهٔ به ظلم کوی او یا به په دین پیغور ورکوی او کهٔ اووینی چه دَ چا مرئ ئے خپه کړے ده تعبیر ئے دَ سرداری او عزت نه به لرے کړے شی

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، چه مرئ دَ سړی په آمدن او خرچ تعبیرلري.
حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، چه دَ مرئ خپه کول دَ مغلوب سړی دَ عیش دَ تنګئ تعبیرلري.

## محل (کوشک)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښ اوګوری چه په محل کښ دے تعبیرئے غوښتل شوے مال به بیاموعی خاصکرچه محل دَ خټې او دَ کچه خښتووی کهٔ اوګوری چه دَ خټواو دَ پخو خښتو وی تعبیرئے مال به بیا مومی مګردَدهٔ په دین کښ به نقصان وی کهٔ اوګوری چه بادشاه ورته محل ورکړے دے تعبیرئے، دَ بادشاه نه به مال حاصل کړی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ محل خراب شوے دے تعبیرئے، مال به ئے هلاک شی کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ محل کښ اوریږی تے دے تعبیرئے، بادشاه به و، نه تاوان واخلی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښ محل لیدل په اتو وجو وی (۱) نعمت (۲) ولایت (۳) مرتبه (۴) ریاست (۵) عزت (۶) بادشاهی (۷) خوشالی (۸) دَ کور دَ اوچتوالی او بنا ښت په اندازه خوشالی.

## ماشوم (کودک)

حضرت دانیالؑ فرمائی، په خوب کښ ماشوم والے غم او فکر دے کهٔ خوب کښ اوګوری چه ماشوم شوے دے او دَ استاذ سره په کتاب کښ څهٔ لولی، تعبیرئے په غم او فکر کښے به ګرفتاره شی ځکه چه ماشوم دَ نساد نه صلاحیت غواړی او معبرانو ویلی دی کهٔ خپل ځان ماشوم اوګوری تعبیرئے، کاره به ئے کمزورے شی.
حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری په خوب کښ چه دَ دهٔ په وړاندے دریت شوے ماشوم ایښے دے او دهٔ خوړلے دے تعبیرئے ډیر خیر به مومی. او هغه هلک به لوئے مرتبے ته ورسیږی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، ښائسته هلک په خوب کښ دَ فرښتے تعبیر لري او بد شکله هلک (ماشوم) نفع ده، کهٔ خوب کښ اوګوری چه پئ خوړونکے ماشوم شوے دے تعبیرئے، دَ خپل مقصد نه به پاتے شی کهٔ سړے اوګوری چه دهٔ ماشوم ته پئ ورکړی دی تعبیرئے، دَ پید او ښت په وخت به سلامت وی.

## مار

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې دَ مار لیدل پټ بد خوا دُښمن دے کهٔ اووینی چه دَ دهٔ په کور کښې مار دے تعبیر ئې دَ کور دُښمن دے او کهٔ په صحرا کښې اووینی تعبیر ئې بیګانه دُښمن دے کهٔ اوګوری چه دَ مار سره ئې جنګ کړے دے تعبیر ئې، دَ دښمن سره به جنګ کوی او کهٔ اوګوری چه مار پرے غالب شوے دے تعبیر ئې، به دُښمن به کامیابی نهٔ حاصلوی کهٔ اووینی چه مار چیچلے وی تعبیر ئې، دَ دُښمن نه به ضرر مومی کهٔ اووینی چه مار ئې وژلے دے تعبیر ئې په دُښمن به کامیابی مومی او کهٔ اووینی چه دَ مار غوښه ئې خوړلے ده تعبیر ئې، دَ دُښمن مال به دَ هغې په اندازه خوښی او په خیر او خوشحاله به وی کهٔ اوګوری چه مار ئې دوه ټوټے کړے دے تعبیر ئې، دَ دُښمن مال به خوری کهٔ اوګوری چه مار ورسره ښے خبرے کړی دی دَ دهٔ په مخکښے به داسے عجیبه کار کیږی چه دَ هغې نه به خوشحالی او ښادی اووینی کهٔ اوګوری چه مار ورسره منښیے او بدے خبرے کړی تعبیر ئې دُښمن به ور باندے کامیابی حاصلوی او کهٔ مړ مار اوګوری تعبیر ئې الله تعالیٰ به ورنه شر او آفت وګرځوی بغیر دَ دے نه چه تکلیف به ورته ورسیږی کهٔ اوګوری چه مار ئې تابع شوے دے تعبیر ئې عزت او بزرګی به بیا مومی او کهٔ اوګوری چه مار ورنه تښتیدلے او نهٔ ئې شو نیولے تعبیر ئې دَ دښمن په کمزورے تیا دے. او کهٔ اوګوری چه شین مار دے تعبیر ئې په دیندار او امین دُښمن دے او کهٔ اوګوری چه تور مار دے او نور ماران هم ورسره دی تعبیر ئې په لښکر دے او کهٔ ژیړ مار اوګوری تعبیر ئې په بیمار دُښمن دے او کهٔ اوګوری چه سُور دے تعبیر ئې په عیش پرسته او سرور خوښوونکی دُښمن دے کهٔ اووینی چه دَ مار پښے دی تعبیر ئې په قوی او زوړ دُښمن دے مګر ضرر به ورنه نهٔ وینی کهٔ اووینی چه ډیر ماران دَ دهٔ په مخکښې راجمع شوی دی او دے تنګوی تعبیر ئې دَ دهٔ په ډیر دُښمنان خپلوان دی مګر دَ هغوی نه به نقصان نهٔ مومی. کهٔ اووینی چه دَ مارانو سرونه او غاښونه دی تعبیر ئې، دُښمن به ئې کمینه او بد اخلاقه وی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه مار ئې دَ پوزے یا غوږ نه یا دَ سینو یا دَ اندام تناسل یا دَ غټه اودس ماتی دَ لارے بهر راوتلے دے تعبیر ئې،

دَ دۀ په زوئ دُښمن وی او کۀ اووینی چه ما ر نے دَ خُلے نه راوتلے دے تعبیر ئے ښه خبره به کوی چه دۀ ته به وبال وی پکښې۔

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائی، سپین مار دُښمن دے او تور مار سپاهی دے کۀ اووینی چه دَ مار نه تښتیدلے دے او دے مار نۀ دے لیدلے تعبیر ئے آرام او خوشحالی به مومی او کۀ اووینی چه دے مار نیولے او تکلیف ئے نۀ دے ورکړے تعبیر ئے مشری به بیامومی او دُښمن نه به امن کښی شی۔

حضرت خلف اصفهانی فرمائیلی دی کۀ اووینی چه شین مار ئے تابعدار شوے دے تعبیر ئے خزانه به بیامومی کۀ اووینی چه دَ لستونی نه ئے مار راوتلے دے تعبیر ئے، دُښمن به ئے زوئ وی او کۀ اووینی چه مار ئے وژلے دے او په وینو ئے ځان ګنده کړے تعبیر ئے دَ دُښمن مال به بیامومی کۀ اووینی چه په خپله بستره ئے وژلے دے تعبیر ئے ښځه به ئے مری کۀ اوګوری چه دَ دۀ دَ ګریوان یا دَ خُلے نه مار راوتلے دے او په زمکه ننوتلو تعبیر ئے هلاک به شی او ښامار په خوب کښ کمزورے دُښمن دے۔

حضرت امام جعفر صادق فرمائی په خوب کښ مار لیدل په لسو وجوی (۱) قوت (۲) ژوند (۳) سلامتیا (۴) بادشاهی (۵) سپه سالاری (۶) ښځه (۷) دولت (۸) مرګ (۹) زوئ (۱۰) سیلاب۔

## محراب

حضرت ابن سیرین فرمائی، کۀ اوګوری چه په محراب کښ ئے مونځ کړے دے تعبیر ئے دۀ ته دَ نیک عمله زوئ زیږے دے لکه څنګه چه الله تعالیٰ دَ حضرت زکریا علیه السّلام په قصه کښ فرمائیلی دی (وَهُوَ قَائِمٌ يُّصَلِّيْ فِي الْمِحْرَابِ - آل عمران ۳۹) (او دے ولاړ وو په محراب کښ چه مونځ ئے کولو.

کۀ اووینی چه په خپل وخت مونځ کوی تعبیر ئے زامن به ئے نیک عمله دی کۀ اووینی چه په محراب کښ ناست دے تعبیر ئے په مونځ کښ به سُستی وی۔

حضرت کرمانی فرمائی، کۀ اووینی چه دَ محراب عمارت ئے آباد کړے تعبیر ئے دَ دۀ زوئ به عالِم او امام وی او ځنی وائی چه خپل مال به خرچه کړی۔

حضرت امام جعفر صادق فرمائی، په خوب کښ دَ محراب لیدل په پنځو وجوی (۱) امام (۲) بادشاه (۳) قاضی (۴) محتسب (کوتوال) (۵) دَ خلکو قاصد۔

## مَذی

دَ شهوت اوبهٔ دی دَ منیٔ نه مخکښ دا اوبهٔ راوځی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ د مذی لیدل تعبیر ئې خوشحالی ده د لیدلو په اندازه۔

## مونګا (د سمندر یو کانړے دے) (مرجان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ مرجان لیدل زوئ دے او که سوړ وی تعبیر ئې ښائسته زوئ دے او که مرجان د ملغلروسره اووینی تعبیر ئې په هغې اندازه به مال او نعمت حاصل کړی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ د مرجان لیدل په څلور وجوو وی (۱) ښځه یا زوئ (۲) ښائست (۳) زینت (۴) د خادم له وجهٔ مال۔

## مشهور سړے (مرد معروف)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که چرے په خوب کښ مشهور سړے اووینی د بیداری په شکل کښ تعبیر ئې د دهٔ هم نام یا د هغهٔ په شان به اووینی که چرے نامعلوم ځوان اووینی تعبیر ئې د دهٔ به دُښمن وی او که نامعلوم بوډا اووینی تعبیر ئې د دهٔ بخت به ښهٔ وی او خیر او بزرګی به او مومی۔ که ځوان او کوری چه د دهٔ ویښتهٔ سپین شوی دی تعبیر ئې په دینداری او د دهٔ په ښهٔ والی دے او که معلوم بوډا اووینی چه د دهٔ ویښتهٔ تور شوی دی تعبیر ئې د دے خلاف دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که په خوب کښ بوډا اووینی تعبیر ئې د چا نیکی او ایمانداری او د دین ښهٔ والے او نیکی به حاصله کړی۔

او که سړے ځوان په خوب کښ اووینی تعبیر ئې د لوئے سړی نه به زحمت او نفرت ورته رسیږی او که کمزورے سړے اووینی چه د هغهٔ سره بخے خبرے کوی تعبیر ئې په دے صفت سړی سره به جګړه کښ پریوځی او په هغهٔ به کامیابی مومی که اووینی چه ماشوم شوے دے تعبیر ئې ناپوهه کار به کوی چه په هغې به ئې خلک ملامته کوی که اووینی چه د دهٔ د ښځے عضو تناسل دے لکه څنګه چه د سړو وی تعبیر ئې د دے به زوئ پیدا کیږی او د کور د خلقو سردار به وی که سړے اووینی چه د دهٔ د ښځے اندام مخصوصه دے تعبیر ئې د دهٔ د شرمندګئ، خواری او د بد حالئ دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، د بوډا سړی په خوب کښ لیدل دولت او بخت دے خلکو ته او د ځوان سړی لیدل تعبیر ئې چل او فریب او دناخوښه څیز لیدل دی۔

## مړې ژوندې کېدل (مرده زنده شدن)

حضرت کرمانیؒ فرمائي، که اووینی چه مړے ژوندے شوے دے تعبیر ئے، حال به ئے نیک شي خاصکر چه مړے خوشحاله اوروښانه ښکاره اووینی او که ژوندے مړے اووینی تعبیر ئے حال به ئے بد وی خاصکر چه ښکاره ئے تروشه وی که څوک خپل مړ پلار ژوندے اووینی خوشحاله او روښانه ښکاره ئے اووینی او په پاکو جامو کښ ئے اووینی تعبیر ئے بخت او دولت به بیا مومی او کار به ئے جوړ شي او که مړه مور ژوندۍ اووینی دَ غم نه به خلاصے مومی که ښځه اووینی چه دَ دهٔ زوی ژوندے شوے دے تعبیر ئے دَ دهٔ غائب به دَ سفر نه راځی او که اوګوری چه پردے مړے ئې راژوندے شوے دے تعبیر ئے دَ هغه مړی دَ خپلوانو حال به ښهٔ وی او که اوګوری چه ژوندے مړ شوے دے تعبیر ئے دَ دے خلاف دے که اوګوری چه مړے ئے راژوندے کړے تعبیر ئے کافر به دَ دهٔ په لاس مُسلما نیږی. (اسلام به راوړی)

حضرت مغربیؒ فرمائی، که چرے څوك خپل مور او پلار غمژن او په خیرنو جامو کښ اوګوری تعبیر ئے دَ دهٔ دَ بخت او دولت نقصان به وی ځکه دَ الله تعالیٰ په کور کښ دے په کوم صفت چه مړے په خوب کښ اووینی تعبیر ئے دَ ژوندی دَ احوالو دے که څوك خپل مور یا پلار په روښانه تندی، خوشحاله او په پاکو جامو کښ اووینی تعبیر ئے ډیرې یا ت نعمتونه به بیا مومی او که خپل رور په دے صفت چه مونږ یا ذکر ړل اووینی تعبیر ئے عزت سرداری او مرتبه به بیا مومی که دَ دے خلاف اووینی نو تعبیر ئے هم دَ دے خلاف دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوك مړے په خوب کښ اووینی او ورته دوائی چه زهٔ مړ شوے ئے هغه جواب ورکړی چه زهٔ خو مړ نهٔ یم بلکه ژوندے یم تعبیر ئے، دے دُنیا کښ دَ مړی خبره ښهٔ ده او الله تعالیٰ به ورنه خوشحاله وی، دَ الله تعالیٰ قول دے (وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا ؕ بَلْ اَحْيَآءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُوْنَ ۙ) (آل عمران ۱۶۹) کوم خلق چه دَ الله تعالیٰ په لاره کښ قتل شوی دی هغوئ مړهٔ مهٔ حسابوئ بلکه هغوئ دَ خپل رب په نزد ژوندی رِزق ورکولے شي او هغه څهٔ چه الله تعالیٰ په خپل فضل

سره ورکړی دی په هغې خوشحاله دی) او دا آیت په دے دلیل دے چه مړی څهٔ وائی هغه ړ ښتیا وائی، کهٔ څوك اووینی چه مړے خوشحاله او په خندا کورته راغلے دے او په کوړ کښې ناست دے تعبیرئے دُعا او صدقه به ورته ړسیدلی وی (ثواب به ئے ورته رسید لے وی)

حضرت امام جعفر صادق فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښې اووینی چه دهٔ مړے په خپل کوړ کښې په غیږ کښې نیولے دے تعبیرئے تندرست او سلامت به وی او بخت او دولت به بیا مومی او کهٔ هغه مړے دَ دهٔ دَ خپلوانو نه وی نو هغه مړے دَ دهٔ نه دَ دُعا او صدقے طمعه لری کهٔ څوك دَ خپل کور مړے خوشحاله اووینی تعبیرئے دَ دهٔ دَ کور دَ خلکو خوشحالی ده او کهٔ مړے خفه او تروش ښکاره اووینی تعبیرئے دَ دے خلاف دے کهٔ اووینی چه مړے دَ دهٔ دَ کور والؤ نه په دهٔ در ټوپ کړو او مناظره ورسره کوی او یائے ورته مخ کړخولے دے تعبیرئے، هغه مړے به وصیت کړے وی او هغه به ځاے په ځاے نهٔ وی راوړے کهٔ اووینی چه مړے په خندا او خوشحالئ دَ دهٔ خواته نزدے شوے دے تعبیرئے، دُعا او صدقه به ورته ړسیدلی وی کهٔ چرے دَ دے خلاف ئے اووینی تعبیرئے، دَ دے مړی په حق کښې به ئے کوتاهی کړے وی کهٔ اووینی چه مړے ورسره نیکی خبرے کوی تعبیرئے، حال به دَ دهٔ نیک شی۔ او کهٔ خبره ئے ورته بده کړے وی او یائے ورته وصیت کړے وی تعبیرئے بَد دے کهٔ چرے مړی ورسره دَ علم او دَ پوهے خبرے کړی وی او یائے ورته نصیحت کړے وی تعبیرئے، خیر او دَ دین اصلاح او دینداری به دَ خوب لیدونکی دی او کهٔ مړے په ښهٔ حال او نیک اووینی چه دَ ژوندَ حالاتو نه ښهٔ وی او پاکے جامے ئے لرلے تعبیرئے، دَ دهٔ خاتمه به په سعادت سره وی او کهٔ دَ دے خلاف اووینی تعبیرئے، مړے به دَ خدائے دَ عذابه په امن کښې وی او عاقبت به ئے ښهٔ وی۔

حضرت حافظ معبرؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه مړی دَ دهٔ په څټ کښې لاس اچولی دی او دے په غیږ کښې نیولے دے تعبیرئے، دَ دهٔ غم به او ږد وی کهٔ اووینی چه مړے ورته څهٔ خیال ونکړو او خبرے ونکړے تعبیرئے، خوب لیدونکے دِ دَ دهٔ پاره څهٔ صدقه ورکړی او مړے دے په خپله دُعا کښې یاد کړی او کهٔ چرے مړے تروش تندے او غمژن اووینی تعبیرئے گنهګار

به وی که مړے او خاندی او بیا وژاړی تعبیرئے هغه مړے به مُسلمان نهٔ وی مړ شوے دَ الله تعالیٰ قول دے (فَاَمَّا الَّذِیْنَ اسْوَدَّتْ وُجُوْهُهُمْ اَكَفَرْتُمْ بَعْدَ اِیْمَانِكُمْ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ) ال عمران. دَ هغه کسانو چه دَ دوئی مخونه تور دی آیا تاسو دَ ایمان نه پس کافر شوی یئی پس وڅکئ عذاب په سبب دَ کفر. او که مړے سترے او بغیر دَ جامو (بربنډه) او وینی، تعبیرئے دَ دے مړی حال به بد وی.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، که مړے په مونځ کښ او وینی تعبیرئے هغه سړے به په ژوند کښ ډیر زیات استغفار ویئلے وی او معبرینو ویلی دی چه دَ مړی دَ پاره دَ اطاعت په ځائے ثواب دے ځکه چه خوب لیدُونکے طاعت او مونځ کښ سُست دے که څوک مړے په هغه ځائے کښ چه هلته دهٔ په ژوند مونځ کولو په مونځ کښ او وینی تعبیرئے دَ مړی په پاک دین او دَ ژوند په سموالی او عاقبت با ندے دے.

## دَ مړی څهٔ څیز ورکول (مرده چیزی دادن)

حضرت دانیال ۴ فرمائی که

اوګوری چه مړی څهٔ شے دَ دُنیا سامان ورته ورکړو تعبیرئے، دَ هغه ځایه چه دَ دهٔ امید ورنه نهٔ وی څهٔ څیز به ورته ورسیږی که اوګوری چه مړی څهٔ دَ خوراک څیز یا دَ څښلو څهٔ څیز ورته ورکړے دے او دهٔ او خوړلو یا وڅښلو تعبیرئے، حلاله روزی به بیا موهی او که وے نهٔ خوړلو تعبیرئے دَ دے خلاف دے. که اوګوری چه مړی ورته دَ خپلے جامے نه څهٔ شے ورکړے دے او دهٔ واغوستلو تعبیرئے، دهٔ ته به دَ خپل مال او ځان نه څهٔ غم او فکر ورسیږی او که جامه ئے نهٔ وی اغوستے او هم دغه شان مړی اَغوستی دی تعبیرئے، دَ دُنیا نه به سفر کوی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه مړے دهٔ ته دوه جامے ورکړے دی او دهٔ هغه جامے واغوستے او بیائے اوویستے او خلکو تهٔ ئے ورکړے تعبیرئے، دَ دهٔ به نقصان نهٔ وی بلکه مال به ئے زیات شی او که اوګوری چه خپلے جامے ئے چا ته ورکړے دے او ورته ئے وویئیل چه دا وګنډه یائے اوسوزوه او یائے خیال سا ته تعبیرئے دهٔ ته به غم او فکر سیږی او که. اوګوری چه مړی دهٔ ته خپلے جامے ویړیا ورکړی دی او بیائے ورنه

غوښتې تعبير ئې، ذ دغه مړي کار به خراب وي او که مړي ورته نوي
جامې ورکړې وي تعبير ئې خوب ليږ ونکې به فقير شي او که نوې جامه
وي چه دۀ ته ئې ورکړې وي تعبير ئې عزت او بزرګي به بيا مومي او که
چرته ئې قرآن کريم يا ذ فقهې کوم کتاب يا نور ذ دے په شان ته کتابونه

ئې ورکړي تعبير ئې، ذ خير، نيکۍ او ذ بندګۍ توفيق به بيا مومي او که سپرے جامے
خرڅوي تعبير ئې دغه جامې به قيمتي شي او که څۀ خيز ئې مړي ته ببښلے وي
او دۀ قبول کړے نۀ وي تعبير ئې دۀ ته به ضرر او تاوان رسيږي.

## ذ مړي ژړا (مرده ناليدن)

حضرت ابن سيرين فرمائي، که چرے مړے په بد حال او په ژړا او کوري تعبير ئې چه په دُنيا کښ به دۀ په ژوند څۀ بد کارونه کړي وي ذ هغې په باره کښ به ورته تپوس شوې وي او که مړے بيمار او کوري تعبير ئې ذ دۀ نه به ذ دين او ايمان په باره کښ تپوس کيږي او که او کوري چه مړے ذ سر درد نه ژاړي تعبير ئې په دُنيا کښ چه دۀ څۀ لوئي او تکبر کړے وي ذ هغې په باره کښ به ورنه تپوس کيږي او څنو ويلي دي چه ذ مور او پلار په باره کښ ئې کومه کوتاهي کړي وي ذ هغې به ورنه تپوس کيږي او که ذ غاښونو ذ درد نه ژاړي تعبير ئې ذ غيبت په باره کښ چه دۀ ذ خلکو په دُنيا کښ کړے وي ورنه به تپوس کيږي او که ذ سترګو ذ درد نه ژاړي تعبير ئې ذ خلکو په عيال چه دۀ بد نظر کړے وي ذ دۀ نه به ئې تپوس کيږي او که ذ غوږ درد نه ژاړي تعبير ئې، کومې چه ذ بے حيائي او خرابے خبرے کړي وي ذ دۀ نه به ئې تپوس کيږي او که ذ لاس ذ درد نه ژاړي تعبير ئې ذ ښځو او ذ ورونو په باره کښ چه څۀ ئې په دُنيا کښ کړي وي ذ دۀ نه به ئې تپوس کيږي او که ذ ملا درد نه ژاړي چه ذ مور او پلار په حق کښ چه ئې څۀ کړي دي ذ دۀ نه به ئې تپوس کيږي او که ذ اړخ نه ژاړي تعبير ئې چه څۀ ئې په دُنيا کښ ذ ښځو سره کړي وي ذ هغې په باره کښ به ذ دۀ نه تپوس کيږي او که او کوري چه ذ عضو تناسل نه ژاړي تعبير ئې چه په دُنيا کښ ئې څۀ زنا او فساد کړے وي ذ دۀ نه به ئې تپوس کيږي او که ذ ګنا تو نه ژاړي تعبير ئې چه ذ خپلوانو په حق کښ په سفر او په کور کښ چه څۀ ئې کړي وي ذ دۀ نه به ئې تپوس کيږي او که ذ پوندے او پښي نه ژاړي تعبير ئې هغه څۀ چه ئې په دُنيا کښ کړے

وی دَدهٔ نه به ئے تپوس کیږی۔

## دَمړی سره کوروالے (مجامعت کردن با مرده)

حضرت امام جعفرصادقؒ

فرمائی، دَ دے اصل خوب هغه دے چه دَ مړی سرهٔ ئے کوروالے کړے وی او منی ورته نهٔ وی بهرشوے او نه جُدا شوے وی تعبیر دَ دے ښهٔ درست او ر پښتینی دے او کهٔ غسل ورباندے واجب شوے وی تعبیرئے باطل دے (منی ر ا بهرشوے وی) کهٔ اوګوری چه دَ مړی سرهٔ ئے کوروالےکړے دے تعبیرئے دَ هغه ځایه چه دَدهٔ امید ورته نهٔ وو اُمید به ئے ورته پوره شی او کهٔ دَ خپلے مړے مور او مړے خور سرهٔ ئے کوروالے کړے وی تعبیر ئے چرته نه دے مړی نه دَ صدقے ثواب رسیږی او کهٔ اوګوری چه دَ هغه جاسرهٔ چه دهٔ سره ئے دَ عمر نکاح حرامه وه او دهٔ ورسره کوروالے اوکړو تعبیرئے دهٔ ته به دَ دغه مړی نه څهٔ میراث وغیره ر سیږی او کهٔ چرته مړی نه په شهوت څُله واخلی تعبیرئے ښځه به وکړی او دَ مړی دَ پارهٔ به خیرے کوی او یا به هغه په دُعا کښ یاد کړی او کهٔ اووینی چه دَ مړی سرهٔ ئے کوروالے کړے وی تعبیرئے، دَ مړی دَ مال (میراث) نه به څهٔ ورته ر سیږی۔

## مړی پسے تلل (از پس مرده شدن)

حضرت کرمانیؒ فرمائی په خوب کښ مړی پسے تلل کهٔ چرے مړے پرهیزګارهٔ او نیک وی نو دَ هغهٔ لارهٔ به اختیاروی او کهٔ چرے فاسق وی نو هم دَ هغهٔ عادت به نیسی او کهٔ چرے نهٔ پوهیږی چه دغه مړے صالح او پرهیزګارهٔ دے او کهٔ فاسق او بدکارهٔ دے او هغهٔ پسے تللے دے تعبیرئے، بیمار به شی او آخر به ښهٔ شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ چرے اووینی چه مړی ورته دَ آواز جواب ورکړے دے او مړے ئے او نهٔ لیدو تعبیرئے، دَ دُنیا نه به نهٔ رسفرکوی او کهٔ اوګوری چه مړی پسے چرته نامعلوم ځائے ته ورغلے دے تعبیرئے دے به مړشی او کهٔ دهٔ مړی ته دوئیل چه فلانی میا شتے او وخت راشه او مړی ورته دوئیل چه ر ا به شم تعبیرئے، په هغه وخت به دَ دُنیا نه سفر کوی کهٔ چرے مړے پرهیزګارهٔ او مصلح وی نو په هغه وخت به دَ دُنیا نه ر خصتیږی او کهٔ اوګوری چه مړے ئے خپل کورته را بللے او دے دَ هغهٔ

کوړ نه لانړو تعبیر ئے، بیمار به شي او صحت به ئے بښه شي او که اوګوري چه مړے ئے د خپلے حصے غوښتلو د پاره بللے دے او ده منع کړے نۀ شو دا د ده د مرګ تعبیر لري. او که اوګوري چه مړي دے بازار ته بوتللے دے تعبیر ئے د ده کسب او زندګي به ښه شي.

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائي، که څوک خپل ځان د مړو په مینځ کښې اوګوري تعبیر ئے امر به په نیکۍ او د بدۍ نه به منع کوي او خلک به د ده خبره نۀ آوري او که اووینی چه د مړي سره ملګرتیا شوه تعبیر ئے، په سفر به ځي او په هغه سفر کښې به بخت او خوشحالي مومي که اوګوري چه د مړو په مینځ کښې دے داسے چه هلته بل ژوندے نۀ وو تعبیر ئے د فسادیانو په ډله کښې به ناسته کوي.

او که اووینی چه دے هم مړشوے دے تعبیر ئے د ده به په دین کښې فساد وي او که اووینی چه د مړو ډلے طعام خوړلے دے تعبیر ئے په هغه ملک کښې به طعام قیمته (ګران) شي.

حضرت حافظ فرمائي، که اووینی چه د مړي د وجود څه حصه خوري تعبیر ئے، د ړ مکے نه به خزانه مومي، که اووینی چه نامعلوم مړي په توره وهلے که خوب لیدونکے پرهیزګاره او مصلح وي تعبیر ئے، د ده په لاس به خلک د بدیو نه توبه کړي او د خرابو کارونو نه به منع شي او ځنې معبرینو وئیلي دي چه د خلکو سره به بحث او مباحثه کوي او ټول خلک به په حجت او دلیل قانع کوي.

حضرت امام جعفر صادق فرمائي که اووینی چه مړي ورته لاره ښودلے تعبیر ئے، د شریعت لاره به پیدا کړي او که اووینی چه مړے خپل ځان وینځي تعبیر ئے، د ده خپلوان به د غم نه خلاصے مومي او که اووینی چه مړے په ړ مکه راکاږي تعبیر ئے، د حرام کسب نه به خوراک کوي او ډیر مال به مومي او که اووینی چه مړے ئے وړے دے تعبیر ئے حرام مال به مومي او که اووینی چه مړے ئے ژوندے کړے تعبیر ئے، د څرهنے رنګ کولو کار به کوي او که اووینی چه د مړي سره په کور کښې اوده شوے دے عمر به ئے زیات شي.

## د مړو جامے (مرده را جامه)

حضرت ابن سیرین فرمائي، که اوګوري چه مړي ښښے جامے

اچولی دی تعبیرئے دَ دُنیا نه به شهادت سره تللے وی او که اوګوری چه سپینے جامے
لری تعبیرئے دَ نیکانو درجه کښ به وی او که اوګوری چه تورے جامے ئے
اچولی دی تعبیرئے حال به ئے بد وی او دَ دوزخیانو توره جامه ده او که
اوګوری چه سرے جامے ئے اچولی دی تعبیرئے بد دے او که اوګوری چه
زیړے یا آسمانی رنګے جامے ئے اچولی دی تعبیرئے خوب لیدونکی دَ پاره
غم او مصیبت دے او که نقشه داره جامو کښ اووینی تعبیرئے دَ هغهٔ په
ژوند کښ به ئے دَ هغهٔ سره جګړے کړے وی او مړی به په حق باندے وو او
که دَ دے خلاف اووینی نو ژوندے به حق طرف باندے وو او څني معبرینو
وئیلی دی که ژوندے سړے په خوب کښ مړو ته جامے واچوی تعبیر
ئے دَ دهٔ دَ مرګ نیټه به نزدے شوی وی.

## مرغان (مرغ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی چه په خوب کښ هر
خومره غټ مارغهٔ وی تعبیرئے په همت سره به
غټ کار طلب کوی او که اوګوری چه ډیر زیات مارغان په یو ځائے کښ
آوازونه کوی تعبیرئے دَ هغه ځائے خلکو ته به یعنی اوسیدونکو ته به غم او
مصیبت رسیږی او که اوګوری چه دَ مارغانو هګۍ ورسره دی تعبیرئے
دَ دهٔ به زوئ پیدا کیږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه چرګ ورسره خبرے کړی دی
تعبیرئے دَ دهٔ کار به اوچت وی او که اووینی چه مارغهٔ په لاس کښ دهٔ کښ
مړ شوے دے تعبیرئے غمژن به شی او که اووینی چه دَ مارغهٔ په شا
ئے پیټے ایښے دے تعبیرئے دَ هغه چا چه دا مارغهٔ وی هغهٔ ته به ضرر
او نقصان رسیږی.

او که اووینی چه مارغهٔ دَ دهٔ دَ بدن نه تازه غوښه یوړه تعبیرئے دَ دهٔ
مال به خوك په زور واخلی او که اووینی چه خپله غوښه پخپله دَ بدن نه پرے
کوی او چرګ ته ئے مخکښ اچوی تعبیرئے دَ خپل مال نه به څهٔ حصه چا ته
بښی او که اووینی چه مارغهٔ غوښه او هډوکی دَ دهٔ په مخکښ ایښی دی
تعبیرئے مال به بیا مومی، دَ هر مارغهٔ تعبیر کښ هغه سړے دے چا ته
چه دَ دے مارغهٔ نسبت کیږی (چه دَ چا دا مارغهٔ وی) او دا خبره مخکښ
بیان شوے ده.

حضرت مغربیؒ فرمائی، چرګ دَ برده فروش (انسان خرڅونکی) په شان دی چه غلام او وینزه خرڅوی۔
حضرت اسمعیل اشعثؒ فرمائی، که او وینی چه مختلف قسم مارغان بنا ته راغلی دی تعبیر ئے دلته به پردے لښکر راسیږی که او وینی چه چرګ دَ دهٔ ستر ګے ویستلی دی تعبیر ئے دهٔ ته به دَ چا نه دَ دهٔ په دین کښ تباهی رسی اوکهٔ او وینی چه دَ چرګ وینه ښښی تعبیر ئے دَ وینے په اندازه به ورته مالی نقصان راسیږی۔

## مرهم پټئ (دَ دارو پټئ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی که اوګوری چه په خوږ شوی زخمی ځائے بانس ئے مرهم پټئ لګولی ده تعبیر ئے دَ دین کار او خیر او اصلاح ده اوکهٔ اوګوری چه مرهم ئے خوړلی دی تعبیر ئے حرام به خوری او یا به ورته ضرر او نقصان رسیږی که اوګوری چه چا ته ئے مرهم ورکړی دی تعبیر ئے دَ خلکو بیا نو ته به خیرا و نفع رسوی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه مرهم ئے په زخمی ځائے او یائے په ګیډه ایښی دی او هغه مرهم غوښنه خوری تعبیر ئے دَ دهٔ دَ مال نقصان دے۔

## مزدور، نوکر (مزدوران)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه مزدور دَ دهٔ په کور کښ کار کوی تعبیر ئے دے به دَ بادشاه خپلوانو سره جګړه کښ پریوځی او دَ هغوئ نه به دَ جدائیٔ لار لټوی۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری په خوب کښ چه دَ خلکو په کور کښ کار کوی تعبیر ئے په سخت کار کښ به ګرفتار کړے شی او دَ کور دَ خاوند به دَ چا سره جګړه شی کهٔ اوګوری چه مزدوران دَ دهٔ په کور کښ کار کوی تعبیر ئے غمژن به شی۔
حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه مزدوران دَ دهٔ کور ته خاوره راوړی تعبیر ئے، دَ هغه خاورے په اندازه به ورته مال او نعمت حاصل شی او کهٔ دَ دے خلاف او وینی تعبیر ئے مالی نقصان به ئے وشی۔

## مسجد، جومات

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، دَ مسجد (جومات) آبادی په تعبیر کښ عالم سړے دے چه خلک

بہ دَ اصلاح دَ پارہ دَ دۀ خواتہ دیر راځي، اللہ تعالیٰ پہ خپل کلام کښې فرمائي: (وَمَسٰجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللهِ كَثِيرًا) الحج ۴۰ (جوماتونہ چہ دَ اللہ تعالیٰ ذکر پہ کښې ډیرزیات کیږي). کۀ او وینی چہ جومات ئے جوړکړے دَے تعبیرئے دَ مسلمانانو دَپارہ بہ خیراونیکی کوی او دۀ تہ بہ دَ هغے نہ اَجر او ثواب حاصلیږی او یا قوم بہ خپل کاره پانسے را جمع کوی او شریعت پانسے بہ ئے قائم ساتي۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، دَ مسجد بنیاد ایښودل تعبیرئے ښځه کول دی کۀ اوګوری چہ مسجد ئے جوړکړے دے کۀ بنیاد ئے تمام کړے وی تعبیر ئے حلالہ ښځه بہ کوی او هغه ښځه بہ پرهیزګاره او دینداره دی او کۀ اوګوری چہ دَ مسجد ډیوه (چراغ) ئے مړکړے دے تعبیرئے زوی بہ ئے مړی کۀ اوګوری چہ جامع مسجد ناست دے او دَ دۀ چاپیره شینکے شو دے تعبیرئے، پہ دۀ بہ څوک داسے ګمان کوی چہ هغه بہ پہ دۀ کښې نۀ وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کۀ اوګوری چہ دے چا دَ مسجد نہ منع کړیدے تعبیرئے هغه سړے بہ پہ دۀ ظلم کوی، کۀ اوګوری چہ پہ مسجد کښې ئے مونځ کړے دے او مخ ئے قبلے طرفتہ نۀ وو تعبیرئے بد دے کۀ اوګوری چہ پہ مسجد کښې مخ لاس وینځي تعبیرئے خپل مال بہ پہ هغۀ مسجد کښې مصرفوی او حاجت بہ ئے پوره شی کۀ اوګوری چہ مسجد ویران شوے دے تعبیرئے عالِم دین بہ مری۔

حضرت اسمٰعیلؒ اشعث فرمائي، پہ خوب کښې دَ مسجد جوړول خواهش دے او دَ ګمراه خلکو را جمع کول دی او یائے پہ سمه لاره برابرول دی او دَ دښمنانو غیبت کول دی لکه اللہ تعالیٰ چہ فرمائي (وَقَالَ الَّذِيْنَ غَلَبُوْا عَلٰٓى اَمْرِهِمْ لَنَتَّخِذَنَّ عَلَيْهِمْ مَّسْجِدًا) الکھف ۲۱ (هغه خلک چا چہ پہ خپل کاره زوره وو دوی ووئیل چہ مونږ پہ دے جومات جوړوو) کۀ اوګوری چہ دَ دۀ کوم ځائے نہ مسجد جوړشو، تعبیرئے پہ دین کښې بہ عزت او بزرګی بیامومی او خلک بہ دَ حق طرفتہ رابلی او کۀ اوګوری چہ پہ مسجد کښې ئے ډیوه بلہ کړے دہ تعبیرئے دَ دۀ بہ صالح او نیک عملہ زوئ پیدا کیږی کۀ اوګوری چہ دَ مکے معظمے یا دَ مدینے منورے مسجد تہ ننوتے دے تعبیرئے دَ تهولو یرونہ بہ امن کښې وی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ مسجد لیدل په دولسو وجوهو (۱) بادشاه (۲) قاضی (۳) عالم (۴) رئیس (۵) امام (۶) خطیب (امامِ جمعه) (۷) مؤذن (۸) مسجد (۹) امیر (۱۰) خیرا و برکت (۱۱) واده کول (۱۲) نیکی کول۔

کهٔ اوګوری چه دَ جمعے په ورځ ئے مسجد بنا ئسته کړے دے تعبیرئے عالم خلک به دَ دهٔ نه خیرا و برکت مومی کهٔ اوګوری چه مسجد آبادوی تعبیرئے دَ دهٔ دَ ایمان او دَ دین دَ درستیٔ دے کهٔ اوګوری چه په جومات کښ دے تعبیرئے دَ یرے نه به امن کښ وی دَ الله قول دے (وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا ط) ترجمه (چه څوك مسجد ته داخل شو هغه په امن کښ شو

## مسح

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښ اووینی چه دَموزو مسح کوی تعبیرئے فاضل او عالم زوئے به ئے پیدا شی او خلک به ئے تابع شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه په موزو مسح کوی، تعبیرئے په سفر به ځی او په هغه سفر کښ به ډیر زیات دولت لاس ته راوړی او ټول کاروبه ئے په نظم شی۔

## مسواک

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښ اووینی چه دهٔ مسواك کړے دے تعبیرئے مال به په خیرات کښ مصرف کړی چه هیڅ ثواب به ورته نهٔ ملاویږی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دهٔ مخکینی غابښونه مسواک کړی دی تعبیرئے دَ خویندا و ورونړو سره به نیکی کوی او کهٔ اوګوری چه ټول غابښونه ئے مسواك کړی دی تعبیرئے دَ ټولو خپلوانو سره به نیکی کوی۔

## مُشرک کیدل (مُشرک شدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ مشرك اوګوری چه مُسلمان شوے دے تعبیرئے په اسلام کښ به مړ کیږی او کهٔ اووینی چه مشرك دَ قبلے طرفته مونځ کوی او دَ الله تعالیٰ شکریه اداکوی تعبیرئے مُسلمان به شی او نعمتونه به ورباندے زیات شی دَ الله تعالیٰ فرمان دے (اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ ط) النور ۳۵ (الله تعالیٰ دَ

نه مکے او آسمانونو نه نا کوزکے دے نو دۀ دَ نور مثال دَ تا ئجی په شان دے) کۀ اووینی چه مشرك دَ مُسلمان کورته راغلے دے هم دغه تعبیرلری.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، کۀ څوك په خوب کښې مشرك اووینی او خوب لیدونکے پرهیزګاره وی تعبیر ئے طالب علم به شی او په دُښمن به کامیابی مومی اوکۀ پرهیزګاره نۀ وی تعبیر ئے دَ بے دینه سړی سره به ملګرتیا کوی.

## معجون

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ اووینی چه دَ بیمارئ یا دَ درد دَ پاره ئے معجون جوړ کړی دی تعبیر ئے خلکوته به دَ دۀ نه خیرا و نفع نه سیږی اوکۀ هر چا دَ پاره ئے معجون جوړ کړی وی تعبیر ئے دَ دۀ نه به عام خلکوته نفع نه سیږی.

## معده

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ اووینی چه دَ دۀ معده قوی او بے نقصانه ده تعبیر ئے دَ دۀ به ژوند زیات وی او کۀ دَ دے خلاف اووینی نو عمر به ئے لږ وی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې معده لیدل په شپږو وجوو وی (۱) حرام مال (۲) بدی (۳) بی کاره خبرے (۴) زوئے (۵) ډیر عمر (۶) هغه کار کول چه هغے کښې به نفع حاصلوی.

## ماغزهٔ (مغز)

حضرت دانیالؑ فرمائی، په خوب کښې دَ سر او هډوکی ماغزهٔ لیدل تعبیر ئے مال دے چه جمع کړے ئے وی او کۀ اووینی چه مار او لړم دَ دۀ دَ سر ماغزهٔ خوړلی دی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ خلکو مال خوری.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی دَ سر ماغزهٔ په خوب کښې ځخ کړے مال دے کۀ اوګوری چه دۀ ګنده او بی مزے ماغزهٔ خوړلی دی تعبیر ئے دَ دۀ به مال حرام وی او یا به ئے زکوٰة نۀ وی ورکړے.

## مُسلمانیدل (مُسلمان شدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ څوك مُسلمان په خوب کښې اوګوری چه بیا مُسلمان شوے دے تعبیر ئے دَ بلا او آفتونو نه به محفوظ شی، اوکۀ کافر اووینی چه مُسلمان شوے دے تعبیر ئے هغه کافرته به الله تعالیٰ مُسلمانی روزی کړی (مُسلمان به ئے کړی) اوکۀ اوګوری چه مُسلمان کافرته وائی چه مُسلمان شه

تعبیر ئې ټول کارونه به ئې سم شي.
حضرت مغربيؒ فرمائي، که اووينې چه مُسلمان کافر شوې دې تعبير ئې په بلا کښې به گرفتار شي او دَ دهٔ دَ کار خاتمه به په خير سره نهٔ وي او که اوگوري چه دَ دهٔ په لاس کافر مُسلمان شوې دې تعبير ئې څوک به بد کارئ او فساد نه منع کوي.

## ميخ (مسمار)

حضرت ابن سيرينؒ فرمائي، که څوك په خوب کښې ميخ اووينې تعبير ئې لوئې سړې دې چه په کارونو ولاړ وي او ورسره يو ځائې وي او ځنې معبرينو وئيلي دي چه په خوب کښې ميخ بادشاه يا لوئې اَمير دې که اووينې چه سره غټ او قوي ميخ دې تعبير ئې دَ دهٔ به چرته دَ لوئې سړي سره ناسته وي که اووينې چه دهٔ شے په ميخ جوړ کړې دې تعبير ئې چرته دَ لوئې سړي نه به خراب کار کوي او بيا به اصلاح شي او که اووينې چه ميخ مات شوې او يا ضائع شوې تعبير ئې دَ دې خلاف دې.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښې ميخ ليدل په څلورو وجوو دي (۱) لوئې سړې (۲) هغه سړې چه دَ خلکو سره وعده پوره کوي (۳) امير يا والي (۴) نقصاني او خراب کار.

## ميخ

حضرت ابن سيرينؒ فرمائي، ميخ په خوب کښې وروړ دې که اوگوري چه ميخ ئې په ديوال کښې لګولې دې تعبير ئې قوم ځائې کښې چه دهٔ ميخ لګولې دې په هغه ځائې کښې به سړې نيسي ځکه چه ديوال په معنیٰ دَ سړي دې که اووينې چه ميخ ئې دَ رسئ سره تړلې دې تعبير ئې دَ دهٔ ورور به دَ چا سړي سره ملاويږي.
که ئې اووينې چه ميخ ئې په شا وهلې دې تعبير ئې دَ دهٔ دَ شانه به دلسه زوئې پيدا کيږي چه هغه به بادشاه وي يا به پوره عزت او سرداري ته رسيږي يا به پرهيزګاره وي چه نوم ئې به ټولو خلکو کښې مشهور شي.
حضرت کرمانيؒ فرمائي، ميخ په ټولو شيانو کښې دَ عزت او سرداري او دَ دين دُنيا مرتبه ده که اوګوري چه ميخ دَ دهٔ په دروازه دې تعبير ئې عزت او سرداري به مومي او که اووينې چه ميخ دَ خپل کورنه او باسي تعبير ئې دَ دې خلاف دې که اووينې چه دهٔ سره دَ لرګي يا دَ اوسپنې يا دَ چاندئ يا دَ تانبې يا دَ هډوکي ميخ دَ ده دې دوه قسمه تعبير دې (۱) دا چه ښځه به کوي (۲) يا به څوك دوست جوړوي

کهٔ اووینی چه، میږے پهٔ ستنه یا پهٔ لرګی لګولے تعبیرئے، دَ هغه چا سره به دوستی کوی چه دَ دهٔ سره به موافق وی - اوکهٔ پهٔ ونه ئے لګولے وی او سم والے ئے موندلے دے تعبیرئے دَ هغه ونے سرهٔ سمولے او موافق دے یا نکاح یا بخشش یا ملاقات دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ چرے میږ دَ چاندئ یا دَ تانبے دے تعبیرئے ښځهٔ دے اوکهٔ دَ او سپنے یا دَ هډوکی وو تعبیرئے نیکی او قوت دے اوکهٔ اووینی چه دَ دهٔ پهٔ لاس کښ دَ او سپنے میږ دے تعبیرئے دَ دهٔ به داسے زوئے پیدا شی چه دَ بادشاهئ قابل به وی اوکهٔ زوئے ئے نهٔ وی نو خدائے تعالٰے به ورته عِلم نصیب کړی اوکهٔ دَ اهلِ علم نهٔ وی تعبیرئے دَ اهلِ علم سرهٔ به مینه کوی کهٔ اووینی چه پهٔ زمکه کښ ئے دَ سروزرو یا دَ سپینوزرو میږ لګولے دے تعبیرئے دَ خپل کسب نهٔ به مالداره شی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، پهٔ خوب کښ دَ میږ لیدل پهٔ څلورو وجو وی (۱) وړور (۲) زوئے (۳) ملګرے (۴) وادهٔ کول.

## مچ (مګس)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، پهٔ خوب کښ مچ کمینه او فقیر سړے دے کهٔ اوګوری چه مچان ورباندے جمع شوی دی او یا دَ دهٔ پهٔ خُلهٔ یا سترګو کښ ننوځی تعبیرئے دا دے چه دَ بے وقوفو خلکونه به مال حاصل کړی مګر ضرر به مومی اوکهٔ اوګوری چه مچ ئے پهٔ غوږ کښ ننوځی تعبیرئے دَ بے وقوف سړی نه به خرابه خبره واوری چه پهٔ هغے به دَ دهٔ زړهٔ خفه شی اوکهٔ اوګوری چه دَ مچ آواز اوری تعبیرئے دَ خلکو نه به شور او ز وی اوری.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، مچ پهٔ خوب کښ کینه ګر سړے دے اوکهٔ اوګوری چه مچان ورباندے راجمع شوی دی تعبیرئے دَ کینه ګرو خلکو سرهٔ به ئے کار وی کهٔ اوګوری چه ډیر مچان دَ دهٔ پهٔ کور کښ ګرځی تعبیرئے خلک به دَ دهٔ خبرے کوی اوکهٔ اوګوری چه مچان ئے خوری تعبیرئے کینه ګر خلق به دَ دهٔ خپلوانو سرهٔ حسد کوی اوکهٔ اوګوری چه مچان ئے وژلی دی تعبیرئے پهٔ کینه ګرو به غلبه مومی کهٔ اوګوری چه دَ زمکے لاندے شوے دے تعبیرئے حاسدان به دَ دهٔ جمع کړے مال اخلی او خزانه به ئے کړی او دهٔ ته به نقصان ورکوی.

## مکه مُبارکه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک خپل ځان پهٔ مکه معظمه کښ اووینی تعبیرئے، دَ خانه کعبی مُبارکے

زیارت به کوی او حج به کوی او که اوګوری چه د سوداګرئ د پاره مکے معظمے ته تللے دے نه د حج د پاره تعبیر ئے د دنیا د مال حرص به لری۔
حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه په مکه معظمه کښ په تقوی او پرهیزګارئ سره دی او په عبادت مشغول دی تعبیر ئے د دُنیا په نفع کښ به وی او که مکه ډکه او آباده اووینی تعبیر ئے مال او نعمت به ورباندِ فراخه شی او که خرابه اووینی تعبیر ئے د دے خلاف دے۔

## مُلخ

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ ژوندے ملخ لیدل لښکر دے او پوخ ملخ روپئ او اشرفئ دی که چرے اوګوری چه په کود بنار یا کوم ځائے کښ ملخ ظاهر شوے دے او په هغه ځائے کښ ئے نقصان کړے دے تعبیر ئے د هغه ملخانو په اندازه به هلته لښکر راجمع شی او د هغه ځائے خلکو ته به تکلیف او زحمت ورسوی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوک اوګوری چه ډیر ملخان ئے راجمع کړی دی او په یولو بنی یا یو ظرف کښ ئے اچولی دی، تعبیر ئے مال به جمع کړی او د شخځ په مهر کښ به ئے ورکوی که اوګوری چه بے اندازے ملخان په دریاب کښ را جمع شوی دی او د هغه ځائے بوټی ئے خوړلی تعبیر ئے هلته به بے اندازے مال را جمع کیږی او بیا به لوټ مار کیږی تعبیر ئے خراب به ئے کړی.

## مناره

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، مناره په خوب کښ هغه سړے دے چه خلک د دین لاره ته بلی که اوګوری چه مناره ئے جوړه کړے ده تعبیر ئے د خیر کار به کوی او د مُسلمانانو یوه ډله به راجمع کوی که اوګوری چه مناره ئے ورانه کړے ده او خرابه کړے ئے ده تعبیر ئے مسلمانان به ډلے ډلے شی بعضے معبر یئو وئیلی دی چه د هغے منارے بانګی (مؤذن) به د دُنیا نه لاړ شی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، مناره په خوب کښ بادشاه یا کوم لوئے سړے دے که په خپله کوڅه کښ مناره اوګوری تعبیر ئے څوک لوئے سړے به د دے کوڅے ته راشی که چرے مناره د چونے او د خښتو اوګوری تعبیر ئے شاهی سردار به وی او که مناره د کچه خښتو وی تعبیر ئے هغه لوئے سړے به د رعیت نه وی او دینداره او عاجزه به وی او که د کانړو او چونے مناره اوګوری تعبیر

ئے، هغه بادشاه به ظالم سرداروی اوکهٔ دَ لرګی مناره اووینی تعبیرئے هغه بادشاه به بے وقوف اوبے همته وی اوکهٔ مناره دَ مسجد په دروازه اووینی تعبیرئے، دَ هغه بادشاه به عالم او فاضل وی او خلک به دَ شریعت لارے نه بلی، اوکهٔ اوګوری چه دَ مسجد مناره پریوتے ده تعبیرئے څوك دَدین بزرګ به هلاك شی او دَ خلکو په مینځ کښې به اند یښنه او پریشانی پیدا کیږی کهٔ اوګوری چه دَ ښار په مینځ کښې مناره ده تعبیرئے، په بادشاه دے کهٔ اوګوری چه دَ هغه منارے سرد تانبی یا دَ دیګچون دے تعبیرئے بادشاه به ظالم او جابروی کهٔ اووینی چه دَ منارے سرد سرو یا دَ سپینو رود دے تعبیرئے، بادشاه به دروغژن اوبے قوله او خیانتګر به وی اوکهٔ مناره دَ پینو خښتو وی تعبیرئے بادشاه به مغروره او متکبروی اوکهٔ خپل ځان دَ منارے دَ پاسه اووینی تعبیرئے، دَ بادشاه مقرب به شی او کار به ئے په نظم شی اوکهٔ اووینی چه په منارے ئے ډوډئ ایښی ده تعبیرئے په هغه ښار کښې به بادشاه ظاهریږی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه په مناره کښې دے او دَ موخ دَ پاره اذان کوی تعبیرئے، بادشاه به دَ خلکو سره دَ نیکیو وعده کوی اوکهٔ اوګوری چه جامع مسجد په مناره کښې اذان کوی تعبیرئے عمره به ادا کوی اوکهٔ اوګوری چه مناره اوخوځیده تعبیرئے، بادشاه به بیمار شی اوکهٔ اوګوری چه بادشاه مناره اوغورزوله تعبیرئے، بادشاه به راشی او هغه بادشاه به مغلوبه کړی او دَ هغهٔ نه به ولایت واخلی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښې مناره لیدل په څلوروو جوی (۱) بادشاه (۲) څوك لوئے سړے (۳) امام (۴) مؤذن.

## منبر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، منبر په خوب کښې دَ اهل اسلام بادشا دے اوکهٔ خیراوشر چه په منبر کښې اووینی تعبیرئے دے به بادشاه کوی کهٔ اووینی چه په منبر کښې دے او دَ علم او دَ پوهے خطبه ئے لوستلے ده کهٔ چرے دَ اهلِ علمو څنی نه وی تعبیرئے دَ دهٔ زوئ یا دَ دهٔ خپلوانو کښې به څوك عالِم جوړ شی کهٔ اووینی چه په منبر ئے شعراو دَ شریعت خلاف خبرے کړی دی تعبیرئے دَ مسلمانانو په مینځ کښې به بے دینئ او دَ بدعت په خبرو به رسوا کیږی او څنی معبرینو وئیلی دی چه دَ

به پهانسی (په دار) کړی کهٔ اووینی چه په منبر ختلے دے او منبر پرېوتلو او یا مات شو تعبیر ئے، دَ بادشاهئ نه به لرے کړے شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه په مِنبر ختلے دے او تیوله خُطبه ئے ولوستله او دَ منبر نه راکوز شو تعبیر ئے، دَ خطابت نه به لرے کړے شی او کهٔ ښځه اووینی چه په منبر باندے ئے خلکو ته دَ حکمت او دَ پوهے خبرے کړی دی تعبیر ئے، رسوا به شی ځکه چه ښځو ته دَ عِلم او حِکمت خُطبه لوستل دَ سړو په منځکښ نهٔ دهٔ روا۔ همدارنګه دَ سړو دَ پاره دَ ښځو په منځکښ بد هٔ وی کهٔ اووینی چه دَ منبر نه پرېوتے وی کهٔ هغه عالِم وی یا جاهل تعبیر ئے، دَ خپل عزت نه به پرېوځی او دَ خلکو په وړاندے به ذلیل او خوار شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه په منبر ختلے دے تعبیر ئے عالِم مصلح او دیندار به شی او سرداری، مرتبه او عزت به بیا مومی۔ او کهٔ فاسد وی تعبیر ئے، دے به په غلاکښ ګرفتار کړے شی او پهانسی به شی او چه هر څومره منبر پاک او لوئے اووینی دَ هغے په اندازه به عزت او مرتبه مومی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ منبر لیدل په پنځو وجو وی (۱) بادشاه (۲) قاضی (۳) امام (۴) خطیب (۵) پهانسی کول (په دار کول)۔

## منی (هغه اوبهٔ چه اولادونه پیدا کیږی) حضرت ابن سیرینؒ فرمائی

منی په خوب کښ هغه مال دے چه په لاس ئے راوړی ورباندے خوشحاله شی کهٔ اوګوری چه دهٔ سره دَ منی ډاو یو وه چاتړئ دهٔ تعبیر ئے ډیر مال به حاصل کړی کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ دَ عضو تناسل نه ډیره منی راوتی دهٔ تعبیر ئے دَ خپل کسب نه به ډیر مال حاصل کړی دَ هغه منی په اندازه۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ عضو تناسل نه منی راځی، تعبیر ئے دَ هغه منی په اندازه به ورته دَ پردو خلکو نه مال حاصلیږی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ نه منی راوتے دهٔ، تعبیر ئے مال به بیا مومی لکه څنګه چه الله تعالےٰ فرمائی (اِنَّا خَلَقۡنَا الۡاِنۡسَانَ مِنۡ نُّطۡفَةٍ اَمۡشَاجٍ نَّبۡتَلِیۡهِ) الدهر (بیشکه مونږ انسان دَ نطفے نه پیدا کړے

چه هغه مونږ وآنه مایو).
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښې منې لیدل په څلورو وجو وی (۱) زوئ (۲) د مال نه یا توالے (۳) د مال نقصان (۴) سرداری.
که څوک لیدونکے اوګوری چه د دهٔ منی بهرنه اوتے ده تعبیر دے د مال په نه یا توالی باندے وکړی او که منی اونهٔ وځی نو تعبیر دے د مال نقصان به ئے وی

## مُهر

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه په خاوندوئے د ګوتے مُهرلګولے دے تعبیر ئے، د خاوند د ګوتے به نفع او سرداری موهی او که اوګوری چه په خط ئے مُهرلګولے دے تعبیر ئے د څهٔ شي معنٰی به کوی که اوګوری چه بادشاه یا لوئے سړی ورته خپله ګوته ورکړه او په خزانه مُهرور باندے ولګوه تعبیر ئے، که چرے دے لائق وی نو خزانه به دهٔ ته حواله کړی او که د بادشاه د خزانے لائق نهٔ و تعبیر ئے څوک لوئے سړی به دهٔ ته خپل مال حواله کړی او که اوګوری چه بادشاه ورته خپل مُهرورکړے دے او ورته ئے وسپارلو تعبیر ئے، د بادشاه نه به سردار او مرتبه موهی که اوګوری چه بادشاه په خط مُهرلګولے دے لکه څنګه چه د رسم مطابق وو تعبیر ئے، دولت به بیا موهی او حاجت به ئے پوره شی.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، مُهرلګول په خط یا په تلی باندے په خوب کښې په اوو وجو وی (۱) د کار ختمیدل (۲) د دین قوت (۳) ریاست (۴) حقیقت او د دین خبرونه (۵) مال (۶) دولت او بزرګی (۷) کامیابی د خوب لیدونکی د قدر په اندازه.

## میږے (مورچه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، میږے د خلکو غم دے که اووینی چه میږی په څهٔ شي کښې راغلل او بند او جمع شول تعبیر ئے، ټول خلک به د دهٔ کور ته راځی، که اووینی چه ډیر میږی د دهٔ کورنه راووتل تعبیر ئے د دهٔ د کور خلک به د دے ځائے نه بل ځائے ته ځی که اووینی چه پردی میږی د دهٔ کور ته راغلی دی تعبیر ئے غله به د دهٔ کور ته راځی که اووینی چه میږی د دهٔ په وجود او تن را جمع شوی دی او یا ئے د خولے نه راوتلی دی تعبیر ئے نه ربه هلاک شی.
حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښې میږے کمزورے دُښمن دے که په خپل کور کښې ډیر نه یا ت میږی اووینی تعبیر ئے، د دهٔ اولاد او

نسل به زیات شي که اوګوري چه د ده د کوره میږي راوتلي دي تعبیر ئے نسل او اولاد به ئے کم شي.

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائي، سره او واړه میږي تعبیر ئے کمزورے او ضعیف خلک دي او تور او غټ میږي تعبیر ئے، د کور په غلو کښې دے که اووینې چه میږي د ده د کوره بهر راوتي دي او په هوا بانده الوځي تعبیر ئے خپلوان به ئے د سفر نه راځي.

حضرت امام جعفر صادق فرمائي، د میږ ولیدل په خوب کښې په تعبیر کښې د خوب لیدونکي کوروالا وي که اووینې چه میږے د ده د کوره بهر راوتلے دے تعبیر ئے د ده د کور د خلکو حالات به پریشانه وي.

## مانړوونه (مودو)

حضرت ابن سیرین فرمائي، د مانړوونه په خوب کښې آزاد او خوش طبعه، بنائسته او د پوره عقل خلک دي چه د دوستئ لائق به وي که اووینې چه د مانړو ونه ورسره ده تعبیر ئے د دغه شان خلکو سره به ملګرتیا او صحبت شي او دوئ نه به نفع بیا مومي.

حضرت کرماني فرمائي، د مانړو ونه په خوب کښې نعمت او ډیرمال دے.

او ځنې معبرینو ویلي دي د مانړوونه صالح زوئ دے.

حضرت امام جعفر صادق فرمائي، په خوب کښې د مانړوونه لیدل په څلورو وجوو وي (۱) عقلمند مزدوران (۲) صالح زوئ (۳) ډیرمال (۴) نفع. که ښځه اووینې چه د مانړو ترلے لاستے ئے خپل خاوند ته ورکړي دي تعبیر ئے، د دے نکاح به مضبوطه وي.

## موزه

حضرت ابن سیرین فرمائي، چه په خوب کښې موزه د یخنئ په موسم کښې د خیر او د نیکئ تعبیر لري او د ګرمئ په موسم کښې غم او فکر دے او په موزه کښې د معبرینو اختلاف دے.

حضرت ابن سیرین فرمائي، که اووینې چه موزه ئے په خپو کښې ده او وسله ئے اغوستے ده تعبیر ئے، دښمن به ورنه فکرمند وي او که اووینې چه د موزے سره ئے وسله نشته دے تعبیر ئے غم او فکر به بیا اووینې خاصکر چه موزه تنګه وي که اووینې چه موزه تنګه ده او د څرمنے ده تعبیر ئے ښځه به کوي که اووینې چه د ده په خپو کښې د څرمنے موزه تنګه ده تعبیر ئے د ده ته به غم او فکر رسیږي

حضرت کرمانیؒ فرمائی کهٔ څوک چرے د دهٔ موزه د چیلئ د څرمنے اووینی تعبیرئے د هغې په اندازه به مال ورته ورسیږی کهٔ اووینی چه موزه د لاندے نه شلیدلے ده تعبیرئے ښځه به ئے مری کهٔ اووینی چه د موزے نه ئے خپه راوتلی ده تعبیرئے خوشحالی به بیامومی. کهٔ جیلی دی نو د جیل نه به را خلاص شی کهٔ اووینی چه موزه ئے سوزیدلے ده تعبیرئے ښځه به ئے مری کهٔ اووینی چه موزه ئے ضائع شوے ده تعبیرئے د دهٔ د مال د نقصان به وی او د موزے سرا په هم دے تعبیرلری.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه موزه د دهٔ د کوره بهرته پریوتے ده تعبیرئے ښځے ته به طلاق ورکوی کهٔ اووینی چه پردو خلکوته ئے موزه ورکړے ده یائے خرڅه کړے تعبیرئے ښځه به ئے مری کهٔ اووینی چه موزه ئے خلکو شلولے ده تعبیرئے د دهٔ ښځه به مړه کیږی کهٔ اووینی چه د دهٔ موزه غلا شوه تعبیرئے ځانان سړی به د دهٔ د عیال قصد کوی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی چه په خوب کښ موزه کهٔ نرمه وی او چه ئے نهٔ خوږوی د دے تعبیرئے په اووه وجووی (۱) ښځه (۲) خدمتگار (۳) دینزه (۴) قوت (۵) زندگی (۶) کامیابی موندل (۷) نفع موندل.

## مږه (موش)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، مږه په خوب کښ هغه ښځه ده چه په ښکاره پرهیزګاره وی او په باطن کښ فاسقه وی کهٔ اوګوری چه مږه ئے نیولے ده او یا ورته چا ورکړے ده تعبیرئے په دے صفت چه مونږ کوم یا د کړل ښځه به کوی کهٔ اوګوری چه مږه ئے په نغاره کښ نیولے ده تعبیرئے په مکراو حیلے سره به ښځه کوی کهٔ اوګوری چه ډیرے مږے د دهٔ کورته را جمع شوی دی او ټولے پوشان دی تعبیرئے د دے مږو په اندازه به ښځے د دهٔ کورته را جمع کیږی. کهٔ اووینی چه مختلف قسم مږے دی لکه څنی سپینے دی او څنی تورے دی تعبیرئے د دے معنیٰ اختلاف په شپو او ورځو دی په حدیث شریف کښ راغلی دی چه شپه او ورځ دوه مږے دی چه د خلکو عمرونه خوری.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه د دهٔ د پوزے د سوری نه یا د دهٔ عضوِ تناسل نه مږه بهرراوتے ده تعبیرئے د دهٔ به ناکاره لورپیدا کیږی.

حضرت مغربیؒ فرمائی کهٔ اووینی چه د دهٔ کورته دشتی مږے راغلی دی

تعبیر ئے دلته به ناکاره ښځې ۱۱ جمع کیږی د مړو تعبیر د فسادی ښځو مال اوسامان دے، کورنئی او ځنګلی مړی په تعبیر کښ یوشان دی.

حضرت اسمٰعیل اشعث فرمائی، که اوګوری چه بے لګئی مړه ئے نیولے ده تعبیر ئے بے اصله ښځه به کوی که اووینی چه مړه ئے په لاس کښ مړه شو تعبیر ئے مصیبت به ورته ورسیږی که اووینی چه مړه ئے په خپله پورے مړلے ده تعبیر ئے فاسقه ښځه به کوی او د خانه به ئے جدا کوی که اووینی چه مړه ئے په کانړو ویشتلے ده تعبیر ئے په چا به تهمت لګوی که اووینی چه مړه د ده په بستره کښ ده تعبیر ئے د فاسدے ښځے سره به د فساد قصد کوی که اووینی چه مړه ئے خوړلے ده تعبیر ئے د فاسدے ښځے مال به خوری.

## موم

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، سپین موم په خوب کښ مال او نعمت دے او زیړ موم بیماری ده که اوګوری چه سپین موم ئے خوړلی دی تعبیر ئے د هغے په اندازه به حلال مال بیامومی که اووینی چه موم ورته ضائع شوی دی او یا ئے خرچ کړی دی تعبیر ئے د ده د مال نقصان به وی. حضرت مغربیؒ فرمائی چه موم په هر رنګ وی تعبیر ئے مال او نعمت دے که اووینی چه سپین موم دی او ده چیچلی دی نو د نورو موم ونه بنهٔ دی، که اووینی چه ده موم خوړلی دی تعبیر ئے د چا نه به شکایت کوی. که اووینی چه موم ئے په اور سوزولی دی تعبیر ئے د هغے په اندازه به بادشاه د ده نه مال اخلی که اووینی چه د موم نه ئے شمع جوړه کړے او خلکو ته ئے ورکوی تعبیر ئے مال به په صدقه او خیراو نیکئ کښ خرچه کړی او خلکو ته به بخشش او ورسره به احسان کوی.

## میوه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، خوږه او تروشه میوه تعبیر ئے په خیراو نفع دے هره خامه او په خوړلو کښ چه تروشه وی تعبیر ئے په بیهوده خبرو دے او تور انګور او آلو او زیتون تعبیر ئے غم او فکر دے که اووینی چه د ونے نه ئے میوه شوکولے ده تعبیر ئے د هغے په اندازه به د چالوئے سړی نه مال بیا مومی که اووینی چه ونے لاندے ناست دے او میوه د ونے نه شوکوی تعبیر ئے هغه څه چه مومی حلال او بنأسته به وی که اووینی چه میوه بغیر د لاس لګولو نه پریوتے ده تعبیر ئے چه بغیر د تکلیف نه به حلال مال حاصل کړے شی که اووینی چه د ونے د څانګے

نه ئے میوه شوکولے که په خپل موسم وی څه ویره ئے نشته دے او حلاله روزی به مومی او که بے موسمه وی تعبیرئے دَ دے خلاف دے۔
حضرت دانیالؑ فرمائی، هرهٔ میوه چه په خپل وخت کښ اووینی اوخوړلے ئے وی تعبیرئے، دَ هغے په اندازه به حلال مال حاصل کړی او که میوه په خپل وخت نهٔ وی تعبیرئے، مال به ئے خراب وی او دَ هرے میوے په ونه پورے رجوع کیږی که هغه بنهٔ وه او که بدهٔ او هغه میوے چه زیړے وی تعبیرئے په بیمارئ وی بغیردَ لیمبواو بهئ او نړ ردالونهٔ ځکه چه دَ دریوا ړو کښ نقصان نشته دے او تروشے میوے په غم او فِکر تعبیرلری او خوږے پخے اولوندے میوے په خپل موسم کښ تعبیرئے په حلاله روزئ وی او کچه میوے په خوب کښ لیدل په حرام مال او په غم اوفکر تعبیرلری۔ که اووینی چه دَ اوړی میوے په ژمی کښ خوری تعبیرئے، بیمار به شی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که خوږه میوه بے موسمه اووینی تعبیرئے غم اوفکر دے او که مړئ خرابونکے میوے بے وخته اوخوری تعبیرئے دَ کارونو بندیدل اودَ ژوند تنګی ده خلاصه دا چه هر هغه میوه چه شته او تازه، خوشبویه او خوږے تعبیرئے ډیرخیر اونفع ده۔
حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، که اووینی چه میوه خرڅوی که هغه میوه وی چه خلک ئے خوښوی تعبیرئے په لوئے کار او شغل کښ به مشغول شی او که تروشے او ناخوښه میوے وی تعبیرئے غم اوفکردے اوتکلیف دے۔
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، که میوه خرڅوونکے که بنهٔ اوخوږه میوه خرڅوی تعبیرئے شر اوضرر وی تعبیرکوُنکے باید چه بنهٔ او بده او جنس اوغیرِ جنس اوپیژنی چه چاله څنګه تعبیرورکول پکاردی اودَ هر یو خوب باید فرق وکړی او بیا دے تعبیرورته بیان کړی۔ په دے خاطر چه دَ اصل نه خطا نهٔ شی۔ الله تعالیٰ بنهٔ پوهیږی۔

## مالګه (نمک)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ مالګه نقد درهم او نیک کار دے که څوک په خوب کښ اووینی چه سپینه مالګه ورسرهٔ ده تعبیرئے، دَ هغے په اندازه به نقد درهم حاصل کړی
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که په خوب کښ اووینی چه مالګه ئے خوړلے

ده تعبیرے، دَ پرهیزګارئ لارۍ به اختیاروی او دَ خیر کار به کوی. خیرنه او توره مالګه به جنګ تعبیرلری.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښ مالګه لیدل په پنځو وجووی (۱) نقد درهم (۲) عزت (۳) نیکی (۴) ډیرمال (۵) نیک خدمتګار او خرابه مالګه په خلورو وجووی (۱) کوټه روپئی (۲) خرابه خبره (۳) غم او فکر او (۴) خوشحالی.

## مګرمچه (نهنګ)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، مګرمچه په خوب کښ لیدل غل او ظالم او جنګیالے سړے دے که څوک خوب کښ اووینی چه مګرمچهے ئے اوبوته وړے دے او ډوب شویدے تعبیرئے، په اوبوکښ به هلاك شی که اووینی چه مګرمچه چیچلے دے تعبیرئے، دَ خوړلو په اندازه به دَ دښمن نه ضرر ورته ورسیږی او زحمت به مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه مګرمچه اوبو وړیدے تعبیرئے، کیان به ئے هلاك کړی که اووینی چه مګرمچه په دهٔ غالب شوے دے تعبیرئے، دَ اول خلاف دے که اووینی چه دهٔ سړ دَ مګرمچه غوښه، څرمن یا هډوکی دی تعبیرئے، دَ دښمن نه به ضرر مومی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه مګرمچه دَے اوبوته وړیدے تعبیرئے، دَ دښمن په لاس کښ به شهید شی.

## مالګین څیز (نمک سود)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوك خوب کښ اووینی چه څربه غوښه ئی چه مالګه په کښ اچولے شوے ده او دهٔ خوړلے ده تعبیرئے نعمت او روزی ده او میراث به وړی او که مالګینه کمزورے غوښه وی تعبیرئے دَ بادشاه دَ خلکونه به ورته تاوان او نقصان ورسیږی هر څومره چه زیات مالګین او لاغر او خواروی په هغے اندازه به ئے نقصان زیات وی او وریته کړے غوښه تعبیرئے په غیبت باندے دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی، که چرے اووینی چه دهٔ مالګینه او کمزورے غوښه خوړلے ده تعبیرئے دهٔ ته به دَ بادشاه دَ خلکونه نقصان رسیږی او که دَ کمزوری او بښ غوښه ئے خوړلے وی تعبیرئے، دَ بادشاه نه به

ضرر موهی اوکۀ مالګینه غوښه دَ ځنګلی مانده ښارروی وی تعبیر ئې دَ ځنګلی خلکونه به ضرر او نقصان موهی خلاصه دا ده چه په کمزورے غوښه څۀ فائده نشته.

## دَمارغۀ یوقسم (لقلق)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی دَ لقلق مارغۀ په خوب کښ شریف اعلیٰ نسب والا آزاد اوعاقبت اندیش سړے دے کۀ اووینی چه دَ لقلق مارغۀ ئې نیولے او یا ورته چاورکړے دے تعبیر ئې دَ هغۀ به په دے صفت چاسره صحبت وشی اوکۀ اووینی چه دَلقلق مارغۀ ئې وژلے دے تعبیر ئې دَ دۀ په لاس به دَ دۀ غټ دُښمن هلاك شی اوکۀ اوګوری چه لقلق ورسره خبرے کړی دی، تعبیر ئې دا سے کار به کوی چه خلک به ورته تعجب کوی او دَ بادشاه نه به ورته نفع رسیږی کۀ اوګوری چه لقلق دَ دۀ دَ کور دَ چت دَپاسه ناست دے تعبیر ئې، بادشاه به دَ دۀ کور ته راځی اوکۀ اووینی چه لقلق دَ دۀ دَ لاسه الوتے دے تعبیر ئې دَ زمیندار سړی دَ ناستی نه به جُدا شی اوکۀ اووینی چه دَ لقلق غوښه ئې خوړلی ده تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به دَ دهقان (زمیندار) مال خوری.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ لقلق لیدل په څلورو وجو دی (۱) زمیندارطبقه (۲) کمزورے بادشاه (۳) محافظ (۴) غریبی اوفقیری.

## ملا، شا (پشت)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ ملا لیدل مردانګی قوت، پناه اومدد طلب کول دی کۀ به خوب کښ اووینی چه دَ دۀ ملا ماته شوے ده تعبیر ئې دَ دۀ به څوك ملاتړ والا دَ دُنیا نه سفرکوی کۀ اووینی چه شا ئې زخمی شوے ده تعبیر ئې تکلیف اوآفت به دَ دۀ مددګار ته رسیږی.

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی دَ شا هډوکے قوت اوزوئ دے اوکوم ورانے اوفساد چه دَ ملا په هډوکی کښ دے تعبیر ئې دَ خوب لیدونکی په زامنو دے کۀ په خوب کښ اووینی چه دَ دۀ ملا سخته او قوی ده تعبیر ئې، دَ دۀ زوئ به عقلمند او هوښیار وی کۀ اووینی چه څۀ ئې په شا کړی دی تعبیر ئې، دَ هغې په اندازه به ورته غم اوفکروی کۀ اووینی چه مړے ئې په شا کړے دے تعبیر ئې دَ هغه مړی کسانو نه به ورته محنت رسیږی

او کهٔ اووینی چه دَ دهٔ شا تاؤ شوے ده تعبیرئے حال به ئے بد وی.
حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، په خوب کښې دَ دُښمن شا لیدل تعبیرئے دَ هغهٔ دَ طرفه امن دے او دَ ښځې شا لیدل تعبیرئے گرځیدل دی.
حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، په خوب کښې شا لیدل وروردے کهٔ په خوب کښې اووینی چه شائے ماته شوے ده تعبیرئے رور به ئے مری او کهٔ اووینی چه ملائے درد کوی تعبیرئے دَ بادشاه یا دَ ورور دَ طرفه به ورته غم او فکر رسیږی کهٔ اووینی چه په ملائے دَ ځهٔ بیماریٔ په وجه داغ لگیدلے دے تعبیرئے دَ دین او دُنیا اصلاح ده کهٔ اووینی چه شائے په دیوال لگولے ده تعبیرئے په سفر به ځی او مال به حاصل کړی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې شا لیدل په دولسو وجو دی (۱) قوت (۲) ورورولی (۳) یار (۴) بادشاه (۵) وزیر (۶) ذلیل (۷) پلار (۸) ورور (۹) زوی (۱۰) مال (۱۱) کومک کول (۱۲) نیکهٔ.
او معبرینو ویلی دی چه دَ کافرانو دَ پاره دَ ایمان راوړل دی او فاسقانو ته توبه کول دی او نجومیانو ته اسلام دے او دَ منافق دَ پاره اخلاص دے

## ماشے (پشیم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې ماشے لیدل کمزورے او ذلیل سړے دے چه ذلیل کار کوی کهٔ اوگوری چه دَ ماشوسره ئے جگړه کړے ده تعبیرئے یو کمزوری سړی سره به جنگ کوی کهٔ اوگوری چه ماشے ئے تیر کړو تعبیرئے دے به ذلیل سړی سره په ذلیل کار کښې مصروف شی او دَ هغهٔ به کمتر شئ دهٔ ته رسیږی او کهٔ اووینی چه په دهٔ ډیر ماشی راجمع شوی دی او دے ئے خوړلے دے تعبیرئے دَ عوامو په ژبه کښې به پریوځی او دهٔ ته به ضرر رسیږی دا هم کیدے شی چه تاوان به ورته رسیږی ځکه چه ماشے دَ سړی وینه څښی کهٔ اوگوری چه ماشے دَ دهٔ په غوږ یا په پوزه کښې ننوتے دے او هغهٔ دے چیچلے او خوړلے دے تعبیرئے دَ کمزوری سړی نه به ورته تکلیف رسیږی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوگوری چه ډیر ماشی دَ دهٔ کورته راغلی دی تعبیرئے دهٔ ته به غم او فکر رسیږی او کهٔ اووینی چه ماشو کامیابی موندلے ده او دَ دهٔ په کور کښې راجمع شوی دی تعبیرئے په یو کمزوری دښمن به

کامیابی حاصلوی کهٔ اووینی چه ماشے دَ دهٔ پوزے ته ننوتے دے اوبیا نهٔ دے نو اوتلے تعبیر ئے په بلا او محنت کښ به پریوځی.

## دَ مرغی یو قسم (پنجشک)

حضرت دانیال فرمائی، په خوب کښ مرغے لیدل دَ مرتبے خاوند او قدردان سړے دے کهٔ پرهیزګاره وی او کهٔ پرهیزګاره نهٔ وی او کهٔ اوګوری چه دانے په جال یا په څهٔ حیلے سره نیولے ده تعبیر ئے، دَ بے قدره سړی سره به چل او فریب کوی او هغه به مغلوب کړی کهٔ اووینی چه ښځه مرغه ئے نیولے ده تعبیر ئے قدرمنه ښځه به په دهٔ کامیابه وی

اوکهٔ دَ مرغی غوښه ئے خوړلی وی تعبیر ئے دَ غوښے په اندازه به ورته دَ هغه سړی مال ملاویږی کهٔ اوګوری چه مرغے ئے دَ جالے نه بهر را او ویستله نو تعبیر ئے دهٔ ته به غم او ملامتی ورسیږی۔

حضرت کرمانی فرمائی، کهٔ چرے اووینی چه دَ مرغو دَ بچو ښکار کوی او دَ دوئ خټونه ئے مات کړی دی او په جولئ کښ ئے اچولی دی تعبیر ئے دَ ماشوما نو استاذ به شی او دَ دوئ لاسونه به په چوکو وهی کهٔ اووینی چه سره مرغے ئے ښکار کړے ده تعبیر ئے دے چه ښائسته ښځه به کوی او یا به ښائسته وینزه اخلی او کهٔ اووینی چه نیره مرغے ئے موندلے ده تعبیر ئے بیماره او زیړ رنګه ښځه به کوی ۔ او معبرینو ویئلی دی چه په خوب کښ مرغے موندل زوئ دی یا غلام کهٔ چرے اووینی چه دهٔ سره کنره مرغئ ده تعبیر ئے دَ حریص سړی سره به بد فعله مینه کوی او دا هم ویئلے شی چه په خوب کښ مرغئ موندل کهٔ فقیروی نو شپږ درهم به بیا مومی او کهٔ مالداره وی تو شپږ زره درهم به بیا مومی او دَ مرغئ جاله لیدل تعبیر ئے خیر، خوشحالی او امن دے کهٔ اوګوری چه دَ مرغئ بچی ئے دَ خپل کورنه (جالے) نه راویستی دی تعبیر ئے دَ دهٔ به نه امن دَ حلال او دَ حرام نه وی کهٔ اوګوری چه مرغے آواز کوی او دهغے آواز ئے اوریدے دے تعبیر دا دے چه تعجب راوستونکے خبرے به آوری او معبرینو ویئلی دی چه په خوب کښ دَ مرغو آوازونه تسبیح کول دی کهٔ اوګوری چه دهٔ ته ډیرے مرغئ حاصلے شوی دی تعبیر ئے په یو قوم به مشری کوی او ډیر مال به مومی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې یوه مرغئی اووینی تعبیرئے زوئ دے او کهٔ او گوری چه ډیرې یاتے دی او آوازونه کوی تعبیرئے دهٔ سرهٔ به دَ شور کوونکو کار پیښیږی او کهٔ مرغئی ئے په خوله کښې نیولے ده او تیره ئے کړه تعبیرئے دَ دهٔ به زوئ کیږی کهٔ اوگوری چه چاورته ډیرے مرغئ بخشش کړی دی تعبیرئے دَ هغے په اندازه به مال مومی او کهٔ اووینی چه مرغئ ئے وژلے ده او یائے په لاس کښې مړه شوے ده تعبیرئے تاوان به ورته ورسیږی او زوئ به ئے مړشی کهٔ اووینی چه دَ مرغئ جاله ئے راخستی تعبیرئے دَ دهٔ به زوئ پیدا کیږی چه قوی او مضبوط به دی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ مرغولیدل په نهو وجو دی (۱) بادشاه (۲) والی (گورنر) (۳) لوئے سړے (۴) بناښته غلام (۵) قاضی (۶) سوداگر (۷) دَ سړی دَپارهٔ بنځه (۸) جګړه مار سړے (۹) دَجماع دَپارهٔ حرصناک سړے.

## واقعه، حکایت

ابوخلدهؒ واقعه بیانوی چه زهٔ دَ محمد ابن سیرینؒ په خدمت کښې حاضروم یوسړے ورته راغلو او وے وئیل چه په خوب کښې مې ولیدل چه زما په لستونی کښې ډیرے زیاتے مرغئ دی او یوه یوه مې راویستله او یوه یوه حلالووم او دَ شهادت کلمه مې وئیله او هغه مې په کوهی کښې اچوله تعبیرئے څنګه دے محمد ابن سیرینؒ ورته ووئیل چه کور دے چرته دے وے وئیل په فلانئ کوڅه او فلانی محله کښې دے محمد ابن سیرینؒ ورته ووئیل چه یو ساعت کینه چه زهٔ راځم، زما راتلو پورے انتظار کوه او پاځیدلو او دَ وخت بادشاه ته ورغلو او هغه ئے خبر کړو او ټول حال ئے ورته ووئیلو چه یو سړے دے خلکو په ضرر کښې لګیا دے دوئ دَبادشاه سپاهیان دَهغه کورته بوتلل او دَ هغه کور تلاش ئے واخسته دوئ ولیدل چه تقریبًا پنځوس کسان ئے مړهٔ کړی او په کوهی کښې ئے اچولی دی معلومه شوه چه دی سړی په څهٔ بهانه سړی کورته بوتلل دَ هغهٔ نه به ئے مال واخستو او هغه به ئے مړکړو او په کوهی کښې به ئے اوغورزولو بادشاه امروکړو چه دا سړے دے قصاص کړے شی۔ خلک دَ دے خوب په تعبیر ډیر حیران شول په خوب کښې دَ مرغئ (چرچڼړے) تعبیر وړوکے بچے دے او دَ دے تعبیر په وارهٔ بچی پریوځی۔

## مرخنړے (عناب)

که څوك په خوب كښې اووینی چه دۀ سره مرخنړے دہ او دۀ خوړلے دہ تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به مال حاصل کړی او کۀ اووینی چه دۀ چا ته مرخنړے ورکړہ تعبیر ئے دَ دغه سړی نه به ورته مال رسیږی۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، کۀ اووینی چه دوئ عناب شوکوی یا ئے را جمع کوی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به مال په تکلیف او په غم سره حاصل کړی

## میوه دہ یو قسم (فندق)

دا یو مشهوره میوه دہ چه دَ بیری په اندازه دہ دَ دے په خوب کښې لیدل مال دے کۀ څوك په خوب کښې اووینی چه دۀ سره خندق دے تعبیر ئے دَ چا سره به ئے جګړہ وی۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، کۀ اووینی چه دَ فندق میوے مغز خوړل وو چه دۀ سره وو تعبیر ئے حلال مال به بیا مومی۔

## مارغۀ دے یو قسم (کرک)

دا دَ کونترے په اندازه مارغۀ دے او دَ دے تعبیر په ښځه باندے دے کۀ کرك په خوب کښې اووینی کۀ مُسافر وی تعبیر ئے ښځه به کوی۔ او کۀ مسافرنۀ وی نو وینزه به اخلی کۀ اووینی چه دَ دۀ دَ لاسه اَلوتی دے تعبیر ئے ښځې ته به طلاق ورکوی او کۀ وینزه لری نو هغه به ورنه اوتښتی او کۀ وژلے ئے وی او غوښه ئے خوړلی وی تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ ښځې نه میراث مومی۔

## مارغۀ دے یو قسم (کلازه)

دا یو قسم مارغۀ دے چه عقق ورته هم وئیلے شی او دَ دۀ لیدل په بے وفا او بے دیته سړی تعبیر لری کۀ خوب کښې اووینی چه دۀ کلازه مارغۀ نیولے دے تعبیر ئے دَ ذکر شوی موصوف سړی سره به مینه او دوستی کوی کۀ اووینی چه دَ کلازے سره ئے جنګ کړے دے تعبیر ئے په دے صفت چه ذکر ئے اوشو دَ داسی سړی سره به جګړہ کوی کۀ اووینی چه کلازه ئے دَ لاسه اَلوتے دہ تعبیر ئے دَ داسے سړی به ناسته پریږدی کۀ اووینی چه کلازه ئے وژلے دہ او دَ هغے غوښه ئے خوړلے دہ، تعبیر ئے په دُښمن به کامیابی مومی او دَ هغے په اندازه به دَ هغۀ مال خوری۔

**مُبتلا کیدل (مبتلا شدن)**

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی کهٔ اووینی چه په څهٔ بلا او په تکلیف کښې مبتلا شوے دے دا سے چه دَ هغې نه نشې اوچتیدا ے تعبیرئے په کارونو کښې به سست او کمزورے وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اووینی چه څوک ئے په تکلیف کښې مبتلا کړے دے تعبیرئے، دَ هغه سړی زندګی به تباه کړی او هغهٔ ته به ضرر ورسوی۔

**مجنوغه (منجنیق)** ، یوقسم لویه لیندۍ اوتال دے چه کاڼړی پرے ویشتل کیږی

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اووینی چه چرته ئے په ښار یا دَ مُسلمانانو په قلعه باندے دَ منجنیق نه کاڼړی ویشتلی دی، تعبیرئے په مُسلمانانو پسے به شانته بدے خبرے کوی اوکهٔ اووینی چه دَ کافرانو په ښار دوئ په قلعه دَ منجنیق کاڼړی ویشتلی دی تعبیرئے کافران به دُښمن ګڼړی او دَ دوئ سره به همیشه بدی کوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دَ ښار نه ګیرچاپیره منجنیق کیښودلے شوے دے اودَ هغه ښار آبادی خرابوی تعبیرئے، هغه ښار ته به دَ دښمن نه خطره وی کهٔ اووینی چه منجنیقان مات شوی اویا سوزیدلی تعبیرئے، دَ هغه ملک بادشاه به په دښمنانو کامیابی حاصلوی او دَ هغه ښار خلکو ته به ډیرے اوخطرے نه امن وی۔

**مخوکه (منقار)**

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اووینی په خوب کښې چه دَ دهٔ دَ چرګ په شان مخوکه ده، تعبیرئے، دَ هغه مخوکے په اندازه به مال حاصل کړی کهٔ اووینی چه کوم لوئے مارغهٔ لکه عقاب او تپوس په مخوکه خوړلے دے اودهٔ ته درد رسیدلے دے تعبیرئے تکلیف او سختی به دهٔ ته رسیږی او دَ دهٔ دَ مال نقصان به وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دَ دهٔ دَ چرګ غوندے مخوکه ده تعبیرئے، دَ هغه مارغهٔ دَ قیمت په اندازه به ورته مشری، نفع، نعمت او خیر رسیږی کهٔ اووینی چه دَ دهٔ مخوکه ده او په هغې خلکو ته نقصان رسوی تعبیرئے خلکو ته به دَ دهٔ نه زحمت او تکلیف رسیږی۔

**میلمه (مهمان)**

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې میلمستیا دَ څهٔ شی راجمع کول دی کهٔ اووینی چه څوک دَ میلمستیا

دَ پارهٔ راغوښتي دي تعبیر ئې دا سے کار به کوی چه دے به دَ ټولو کارونو نه
منع کوی کهٔ اووینې چه دے باغ ته دَ میلمستیا دَ پارهٔ بوتلے دے او هغه
باغ دَ قسما قسم میوونه ډک او او به ئې پکښې روانے وے تعبیر ئې جهاد ته به
ځی او شهید به شی دَ الله تعالیٰ قول دے -(فِيهَا فَاكِهَةٌ كَثِيرَةٌ وَّشَرَابٌ)
ص ۵۱ (په دے جنت کښې ډیرے میوے او د سکلو شربتونه دی)

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښې دا سے ځائے کښې میلمستیا چه هلته
ګډا، رباب، دو پړئ او باجه وغیره وی تعبیر ئې غم او فکر او مصیبت
وی او کهٔ دا شیان پکښې نۀ وو بیا ئې تعبیر دَ خیر او برکت دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینې چه ناوے ئې بے نکاح راوستے او میلمنه
کړے ئې ده تعبیر ئې دهٔ ته به غم او فکر رسیږی.

## میښه (میش)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، میښه په خوب کښې غټه ښځه ده دَ دے بیان دَ ګ په حرف کښې راغلے دے او
دلته به ئې څهٔ بحث بیان شی کهٔ اووینې چه په میښه ناست دے او هغه دَ
دهٔ تابع شوے ده تعبیر ئې څوک لوئے سړے به دَ دهٔ تابع وی او کهٔ دَ میښے
سره جنګ کوی او هغه په دهٔ غالبه شوے ده تعبیر ئې دُښمن به په دهٔ غالبه
شی او کهٔ اووینې چه دَ میښو ښکرے مضبوطے او قوی دی تعبیر ئې خوب
لیدونکے به مالداره او قوی وی کهٔ اووینې چه دَ میښے نه ئې څرمن ویستلے
ده او غوښه ئې ورنه جُدا کړے ده تعبیر ئې په چا به کامیابی حاصلوی او
دَ هغهٔ مال به حاصلوی کهٔ اووینې چه میښه ئې دَ حلالولو نه خلاصه کړے ده
تعبیر ئې دَ غم نه به خلاصے اوموهی.

حضرت ابراهیمؒ فرمائی، کهٔ اووینې چه دَ میښے سره جنګ کوی تعبیر ئې څوک
ښځه به دَ دهٔ سره مکر او دهوکه کوی کهٔ اووینې چه دَ میښے غوښه ئې دَ دهٔ دَ کوره
بل کورته وړے ده تعبیر ئې دَ دهٔ ښځه دَ جاهل سړی په عشق کښې ګیره شویده.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې دَ میښے لیدل په شپږو وجو
وی (۱) امام (۲) خلیفه (۳) امیر (۴) رئیس (۵) مال (۶) زوئ.

## ملاچرګک (هدهد)

دا هغه مشهور مارغهٔ دے چه په سر تاج لری۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې ملاچرګک
لیدل دانا او هوښیار سړے دے چه خلکو نه دَ پټو خبرو خبر ورکوی کهٔ اووینې

چه دهٔ هډ هډ نیولے دے او یا ورته چا ورکړے دے تعبیر ئے دَ ذکرشوی موصوف سړی سره به دَ دهٔ صحبت وی او دَ هغهٔ نه به هوښیارتیا زده کړی کهٔ او وینی چه ملاچرګک ئے وژلے دے تعبیر ئے په هوښیار او زیرک سړی به کامیابی مومی او هغه به ځانته مغلوب کړی او کهٔ او وینی چه دَ ملاچرګک غوښه ئے خوړلے ده تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به دَ خلکونه مال په عمل سره حاصل کړی۔

حضرت ابراهیم کرمانی فرمائی، په خوب کښ دَ ملاچرګک لیدل په څلورو وجوو دی (۱) ښهٔ خبره چه واورئ وری (۲) سرداری (۳) په دُښمن غلبه موندل (۴) په هغه کار کښ چه وی په هغې کښ به زیرک او هوښیار وی ۔ دَ الله تعالیٰ دَ فرمان مطابق۔

## موندل (یافتن)

حضرت ابن سیرینؒ کهٔ څوک په خوب کښ او وینی چه څهٔ څیزئے موندلے دے کهٔ خوب لیدونکے پرهیزګاره او صالح سړے وی تعبیر ئے په بیداریٔ کښ به څهٔ شے پیدا کړی او کهٔ پرهیزګاره نهٔ وی تعبیر ئے غم او فکر به ورته رسیږی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښ او وینی چه دوه څیزونه ئے موندلی دی او دواړه څیزونه یوجنس وو تعبیر ئے خیر او نفع ده او ځ او عمره به دواړه کوی کهٔ او وینی چه لس څیزونه ئے بیا موندلی دی او لس واړه څیزونه یو جنس وو تعبیر ئے خیر او نفع ده او حلاله روزی به بیا مومی او دَ نور شمار او تعداد هم په دے قیاس دے او کهٔ هغه څیزونه چه دهٔ موندلی دی له یو جنس نهٔ وی تعبیر ئے بد دے۔

## نوے څیز لیدل (نو دیدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی هر هغه شے چه نوے او پسندیده وی دَ خیر او ښیګړے تعبیر لری او دَ زوړ ذکر په حرف کاف کښ شوے دے۔

## نیکی کول (نیکی کردن)

په خوب کښ نیکی کول په دین کښ دَ هغې په اندازه قوت او سرداری ده او دَ آخرت دَ عذاب نه خلاصے موندل دی۔ خاصکر چه مؤمن او پرهیزګاره وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دهٔ سره چا نیکی کړے ده او هغهٔ دے ذلیل وګڼلو تعبیر ئے په تولو کارونو کښ به ناشکره وی۔ دَ الله تعالیٰ قول دے۔ (وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ) البقرة، په خپلو

کښې احسان مهٔ هیروئ بیشکه الله تعالیٰ ستاسو په اعمالو لیده ونکے دے.
او که اووینی چه دَ مشرکانو سره ئے نیکی کړے ده تعبیر ئے په داسے کسانو به مال خرچه کوی چه هغوئ ته به دَ دواړو جهانو خیر وی.

## نرگس ګل

حضرت دانیال[۴] فرمائی، په خوب کښې دَ نرګس ګل لیدل تعبیر ئے خوش طبعه او ښائسته او پاکیزه سړے دے.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی نرګس په خوب کښې خوږه خبره ده که ښځه او وینی چه دے تازه دَ نرګس ګل اخستے دے او یا ورته چا ورکړے دے تعبیر ئے دَ دے به ښائسته زوئ پیدا کیږی او که خاوند نهٔ لری تعبیر ئے ښائسته خاوند به وکړی او که اووینی چه دَ نرګس ګل ئے دَ زمکے نه ویستلے دے تعبیر ئے ښځے ته به طلاق ورکوی او یا به ئے زوئ مری او که اووینی چه دَ نرګس ګل ئے دَ وینے نه شوکولے او غلام ته ئے ورکړو تعبیر ئے دَ دهٔ غلام به تښتی که ښځه اووینی چه دَ نرګس ګل ګلدسته ئے خاوند ته ورکړه تعبیر ئے خاوند به ورته طلاق ورکړی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې نرګس لیدل په دریو وجو[۳] دی (۱) خوش طبعه او ښائسته سړے (۲) زوئ (۳) دوست چه دَ هغهٔ دوستی به تر ډیره وخته پورے وی او که اووینی چه شین نرګس ئے اخستے دے تعبیر ئے احسان او نیکی به کوی او په خیر سولو کښې به مشهور شی او که اووینی چه دَ نرګس ګل ورسره وو او نور هم زیات شو تعبیر ئے عیال به ئے زیات شی.

## نفرت کول (نفرین)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک په خوب کښې اووینی چه دَ ظالم نه نفرت کوی تعبیر ئے په هغه ظالم به کامیابی مومی او که اووینی چه دے په خپله ظالم دے او مظلوم ورنه نفرت کوی تعبیر ئے دَ دے خلاف دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه ناحقه او بے ګناه دَ یو سړی نه نفرت کوی تعبیر ئے په چا به ظلم کوی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه دَ یو سړی نه ناحقه نفرت کوی تعبیر ئے کار به ئے بند شی او څنی معبرینو ویلی دی په خوب کښې ناحقه نفرت کول وا پس خوب لیدونکی ته ګرځیږی او که په حقه نفرت کوی دَ دهٔ تعبیر په هغه سړی واقع کیږی چه دَ چانه نفرت کوی یا کړے دے او دَ فساد په

نسبت په صالح سړی دیر زړا ثر کوی او مفسد سړے چه په حق یا په ناحقه
باندے نفرت کوی نو په مقابل باندے رجوع کوی۔

## نیلوفر ګل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک د نیلوفر ګل په خپل ځائے او په خپل موسم په بوټی کښې اووینی تعبیرئے د
چا نه به ورته څه ملاویږی او یا به ئے نیک عمله زوئ پیدا کیږی او که د دے
نه جُدا اوی تعبیرئے غم او فکر دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی که ښځه اوګوری چه د نیلوفر بوټی نه ئے د هغه ګل راوشو
کولو او غلام ته ئے ورکړو تعبیرئے غلام به ئے تښتی او که اوګوری چه کوم
ملګری ورته د نیلوفر ګل سته ورکړے ده تعبیرئے د دوئ په منځ کښې جدائی راشی

حضرت دانیالؑ فرمائی د نیلوفر ګل په هغه وینزه تعبیرلری چه ده ته
به ورنه ضرر رسیږی

## نسوت (سینه او توره دوائی ده)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې د نسوت لیدل
تعبیرئے غم او اندیښنه ده۔ که اوګوری چه دهٔ نسوت خوړلی دی تعبیرئے د
مال تاوان دے د خوړلو په اندازه۔

## نکاح کول (تزویج)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه دهٔ ښځه کړے ده تعبیرئے شرف او سرداری به بیا مومی که
خوب لیدونکے غریب وی تعبیرئے مالداره ښځه به کوی او که اوګوری چه
ښځے ته ئے طلاق ورکړے دے تعبیرئے عزت او مشری به ئے د منځه لاړه
شی او که اوګوری چه د مړے ښځے سره ئے واده کړے دے او ورسره ئے جماع
کړے ده تعبیرئے د هغه مړے ښځے د مال او جائیداد نه به ورته څه حصه
ملاویږی او که اوګوری چه د هغه ښځے سره ئے جماع نهٔ ده کړے تعبیرئے د
هغه ښځے د مال نه به لږ شانته ورته ملاویږی که ښځه اوګوری چه د مړ سړی
سره ئے واده کړے او دے سره ئے په کور کښې جماع (کورولے) کړے دے تعبیر
ئے د ښځے د مال نقصان دے او یا به ئے حال بدل شی که اوګوری چه
ښځه ئے غوښتی ده مګر نه ئے لیدلے او نه ئے ورته حال معلوم شوے
تعبیرئے مرګ به ئے نزدے شوے وی، او که ښځه اوګوری او کورنا معلومه وی او هغه
کور د چا مړی ملکیت وو او هغه مړی د هغه ښځے سره جماع اوکړه تعبیرئے

هغه بنځه به مړه شي. او که هغه ځائے او کور معلوم وو تعبیر ئے د ښځے نقصان دے.

حضرت کرمانی فرمائی که واده کړے ښځه او وینی چه دے دویم واده کړے او دویم واده ئے نۀ دے لیدلے، تعبیر ئے د مال زیاتوالے او د شرف او د عزت د ه یا توالی دے او که واده ئے نۀ وی لیدلے او نه ئے خاوند پیژندلے وی تعبیر ئے د مرګ یره ده، ځنی معبرینو ویلی دی چه د دے په لاس څوك هلاك شي که اوګوری چه بیمار دے او نامعلومه ښځه ئے غوښتے او یا څوك اوګوری چه د هغۀ ښځے خاوند کړے او هغه خاوند ئے کورته بوتللے دے تعبیر ئے په دے طریقه به ورته ډیر مال ملاؤ شي او که اووینی چه ناکاره ښځے سره ئے واده کړے او د هغے سره ئے جماع کړے ده تعبیر ئے، سخت کار به ئے آسان شي او که ورسره ئے کورولے نۀ دی کړے نو ما چه څۀ وویل د هغے نه به کم وی.

حضرت مغربی فرمائی، که څوك په خوب کښں اوګوری چه ده پیغله جینئ واده کړے او د هغے پیغلتوب (بکارت) ئے لرے کړے تعبیر ئے هم په دغه کال کښں به ورته ښځه یا وینزه حاصله شي او د بادشاه نه به خیر او نیکی وینی او که اوګوری چه په حرامه ئے پیغله جینئ بوتلے ده تعبیر ئے حرام مال به لاس ته راوړی.

حضرت امام جعفرصادق فرمائی، په خوب کښں واده کول په څلورو وجوی.

(۱) مرداری (۲) د مال زیاتوالے (۳) آرام (۴) خوشحالی او واده.

## نکریزے

حضرت کرمانی فرمائی، که اوګوری چه په لاسونو او پښو ئے نکریزے اینښی دی تعبیر ئے دا دے چه ځان به ښائسته کوی لیکن د دۀ به په دین کښں بدی وی. او ځنی معبرینو ویلی دی چه د دۀ نه به د خپلوانو حال به ئے پټ نۀ وی که دا خوب داسے سړے اوګوری چه د دۀ نکریزے نۀ وی لګیدلی تعبیر ئے دۀ ته به غم رسیږی او زر به خلاصے مومی.

حضرت امام جعفرصادق فرمائی، په خوب کښں نکریزے لګول په دریو وجو وی (۱) د خپلوانو ښائست (۲) د اهلِ بیتو ستر (۳) غم او فکر.

## نکریزے لګول

حضرت دانیال فرمائی، په زیړه نکریزے لګول د کارونو پټول دی که اوګوری چه د سر سره ئے په زیړه هم نکریزے لګولی دی او رنګ شوی نۀ دی تعبیر ئے خپل ځان به خلکو ته ښکاره کوی او که اوګوری چه نکریزے ئے لګولی دی تعبیر ئے کار به ئے نیك شي مګر کارونه به ئے پټ پاتے شي.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه د دا سے ځیزونو سره ئے نکریزے کړیدی چه خلک ئے ورسره کوی تعبیر ئے ځان به په نه کیدونکی شیانو او ناخوښه کارونو کښ لګوی که اوګوری چه په لاسونو او خپو ئے نکریزے لګولی تعبیر ئے لاسه وتلے مال بہ ئے بیا لاس ته راشی که اووینی چه په دواړو لاسونو باندے ئے نکریزے لګولی دی تعبیر ئے خپل ځان به په څه ښائسته ځیز ښائسته کوی چه د شرعے خلاف به وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه ښځینې لاس ئے د نکریزو نقش لګولے دے تعبیر ئے دا دے چه په خپل کار او کسب کښ به مکر او فریب کوی او که اوګوری چه د دهٔ په ټول بدن نقش دے تعبیر ئے د دهٔ به څوک ګران کس مړکیږی او یا به خپله هلاک شی او که دا خوب ښځه اووینی تعبیر ئے وادهٔ او خوشحالی به مومی۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، که اوګوری چه خپلے خپے او لاسونه ئے په نکریزو رنګ کړی دی تعبیر ئے دا سے کار بہ کوی چه خلک به ورباندے افسوس کوی او که اوګوری چه د ګوتو سره ئے نکریزے کړی دی تعبیر ئے تسبیح به وائی

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ نکریزے لګول په څلورو وجو وی (۱) ښائسته کار (۲) د دُنیا د حال ښه کیدل (۳) د عزت او مرتبے غوښتل۔ (۴) په دروغو مشهوره کیدل۔

## ننکئ (دنبل)

یو قِسم ننکئ دی۔ حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری په خوب کښ چه په دهٔ ننکئ دی تعبیر ئے مال به ئے زیات شی د ننکئ په اندازه که اووینی چه ننکئ ماته شوے ده او وینه ورنه راغله تعبیر ئے څهٔ اندازه مال به ئے هلاک شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی که اوګوری چه د ننکئ نه وینه او نور راغلے دی او دے ئے نچوړوی تعبیر ئے، د هغے په اندازه به حرام مال مومی که اوګوری چه په ننکیو ئے دارو ایښی دی او جامه ئے د وینی نه ونجلے ده تعبیر ئے، د حرامو نه به توبه وکړی

## نولے (راسو)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ نولے غل سړے دے که اوګوری چه نولے ئے نیولے دے او یا ئے وژلے دے تعبیر ئے، غل به نیسی او په هغهٔ به کامیابی مومی او که اوګوری چه د نولی غوښه ئے خوړلے ده او د نولی کوم اندام د دهٔ په لاس کښ دے تعبیر ئے، د غل نه به غلا شوے مال اخلی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ خوب کښې اوګوری چه دَهٔ نولے نیولے دَ تعبیر ئے بیمار به شی او اخیر به ښهٔ شی او کهٔ اوګوری چه دَ نولی سره ئے جنګ کړے دے او ور باندے کامیاب شوے دے تعبیرئے په غله به غالب شی او هغه به قابو کړی۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی په خوب کښې دَ نولی لیدل په دریو وجوی (۱) غل (۲) غم او فکر (۳) بیماری۔

## نولی (کرباسو)

نولی یو قِسم ځناور دے چه نیوله ورته وائی او دَ دے لیدل په خوب کښې داسے سړے دے چه دَ خلکو په منځ کښے فسادا چوی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ خوب کښې اوګوری چه کرباسوئے نیولے دے تعبیرئے ځوک سردار به ئے ځان ته نزدے کړی کهٔ اوګوری چه کرباسو ورنه او تښتیدو تعبیرئے، فسادی به دَ دهٔ نه تښتی کهٔ اوګوری چه کرباسو ئے وژلے دے تعبیرئے دَ هغه مفسد حال به تباه شی، او کهٔ اوګوری چه دَ کرباسو غوښه ئے خوړلے ده تعبیرئے فاسدی سړی نه به دَ هغے په اندازه حرام مال خوری۔

## نیزه (زوبین)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اوګوری چه دَ دهٔ په لاس کښې نیزه ده او دَ نیزے نه بل څهٔ څیز نشته دے تعبیرئے، دَ دهٔ به زوئے پیدا کیږی او کهٔ اوګوری چه دَ نیزے سره ورسره نورے وسلے هم شته دے تعبیرئے، دَ بادشاه نه به ورته خیر او نفع ورسیږی او په دُښمن به کامیابی مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه نیزه ئے غورزولے ده، تعبیرئے چا ته به بده خبره کوی او کهٔ اوګوری چه په نیزه ئے څوک زخمی کړے دے تعبیرئے په چا به تهمت لګوی۔

## نیزه وهل (طعن)

کهٔ اوګوری چه څوک ئے په نسینه وهلی دی او نیزه ئے په وجود کښې ننوتی ده تعبیرئے، داسړے به په زړهٔ کښې دَ زخم په اندازه ورسره زړهٔ کښې دُښمنی ساتی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښې نیزه وهل خرابه خبره ده کهٔ اوګوری چه څوک ئے په نیزه وهلے دے او هغه ئے زخمی کړے دے تعبیرئے هغه

خبره چه دَ دهٔ په حق کښې ئے وئیلی ده، دهٔ ته به ورباندے درد حاصلیږی او که زخمی کړے ئے نهٔ دی تعبیر ئے دَ دے خلاف دے.

## وړه نیزه (حربه)

که اووینی په خوب کښ چه دهٔ سره وړه نیزه ده تعبیر ئے دَ دهٔ به زوئ کیږی او که بنځه نهٔ لری نو مال به بیا مومی او که اووینی چه دَ حربې سره نورے وسلے هم دی تعبیر ئے مشری او مرتبه بیا مومی که اووینی چه بادشاه ورته حربه ورکړے ده تعبیر ئے دَ بادشاه نه به نفع مومی او که اوګوری چه چا ته ئے حربه ورکړے ده تعبیر ئے دَ هغه سړی نه به دهٔ ته څهٔ ورسیږی که اووینی چه په لاس کښې ئے حربه وه او ما ته شوه تعبیر ئے دَ دُښمن نه به کومک او مومی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَ حربې لیدل په شپږ وجو وی (۱) غرور (۲) ولایت (۳) لوئے او اودږد عمر (۴) کامیابی (۵) ریاست (۶) نفعه.

## نانزړهٔ (قِطران)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، نانزړهٔ په خوب کښ لیدل حرام مال دے که اوګوری چه دَ دهٔ سره نانزړهٔ دی او دهٔ ورنه خوړلی دی تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به حرام مال حاصل کړی که اوګوری چه جامه ئے په نانزړوګنده شوے ده تعبیر ئے حرامه جامه به ئے اغوستی وی او څنې وائی چه دَ مال په وجه به په بلا او مشقت کښ پریوځی که اوګوری چه نانزړهٔ ئے دَ کوره بهر غورزولے دے تعبیر ئے توبه به اوباسی.

## نصیحت کوونکے (مذکر)

که اوګوری چه چا ته ئے نصیحت کړے دے تعبیر ئے دهٔ ته به خوشحالی رسیږی او که بیمار وی نو صحت به ئے بښهٔ شی او که دښمن لری نو ورباندے به غالب شی. حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه خلکو ته ئے نصیحت کړے دے تعبیر ئے په دهٔ کښ دَ دین اصلاح او دَ آخرت نجات دے او دَ دین او دَ دُنیا په دهٔ کښ دَ خوشحالئ زیرے دے که اوګوری چه خلکو ته نصیحت کوونکے دے تعبیر ئے دے به دَ الله تعالیٰ پناه حاصله کړی بایدٔ چه توبه وکړی چه دَ شر او دَ فتنے نه بچ شی.

## نمرخاتهٔ او نمر پریواتهٔ (شرق وغرب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ نمرخاتهٔ (مشرق) دَ دُنیا دَ بادشاها نو تعبیر لری او دَ نمر راختل تعبیر ئے دَ مراد پوره کیدل او دَ بادشاه دَ طرفه دَ فرمان دے او دَ نمر دوبیدل دَ دے

خلاف دی کهٔ اوګوری چه دَ خیر کار دَ پاره په مشرق کښ دے تعبیر ئے نعمت دے او کهٔ ځپل ځائے خراب اوګوری تعبیر ئے مراد به ئے نهٔ پُوره کیږی او په هرحال کښ دَ نمر راختلو ځائے دَ نمر پریواتهٔ نه ښهٔ دے۔ او دَ نمر راختلو ځائے تعبیر ئے سرداری او بخت دے او دَ نمر پریوتو ځائے تعبیر ئے پسماندګی او عاجزی ده۔

## نجومی (منجم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوګوری په خوب کښ چه نجومی شوے دے تعبیر ئے دَ بادشاهانو په وړاندے به عزت مومی او مرتبه به ئے اوچته شی مګر نه کیدونکی او دروغژنے خبرے به کوی خاصکر چه په خوب کښ دَ نجوم خبرے کړے وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښ اوګوری چه دهٔ په خوب کښ دَ علمِ نجوم او دَ افلاكُ دَ هیئت خبرے کوی تعبیر ئے، بادشاهان او لوئے خلک به دَ دهٔ عزت کوی او کهٔ اوګوری چه دَ نجوم دَ احکامو خبرے کوی تعبیر ئے دَ دے خلاف دے۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښ نجومی دروغژن سړے دے چه دَ الله تعالیٰ شکریه نهٔ اداکوی۔

## نوکونه (ناخن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ نوکونه لیدل تعبیر ئے سخاوت او دَ خلکو او دَ قوم دَ اوځنی معبرینو وئیلی دی چه دَ وسلے والا په حق کښ نوک وسله ده کهٔ اوګوری چه نوکونه ئے په قینچئ کټ کړی دی تعبیر ئے، دَ دهٔ دین به قوی وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښ نوکونه لیدل تعبیر ئے قوت او حکمت او دَ دُنیا دَ مال حاصلول دی کهٔ اوګوری چه نوکونه ئے مات شوی دی تعبیر ئے، مال به نشی حاصلولے او کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ نوکونه پریوتی دی تعبیر ئے، دَ هغے په اندازه مال به ئے ضائع شی او کهٔ اوګوری چه نوکونه ئے پریوتی دی او بیا شوی دی تعبیر ئے، دَ نیکئ کار به کوی او ډیر مال به لاس ته راوړی او کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ نوکونه تور او آسمانی رنګه شوی دے تعبیر ئے دَ دهٔ په مصیبت دے کهٔ اوګوری چه نوکونه ئے دومره غټ شوی دی چه دَ ماتیدو خطره ئے ده تعبیر ئے بد دے کهٔ اوګوری چه نوکونه ئے دَ بیخه پریکړے شوی دی او متغیره شوی دی تعبیر ئے دَ دهٔ

دکار دَ بندیدو دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه نوکونه په درمیانه اندازه دی تعبیرئے دَدهٔ دَ دین او دُنیا اصلاح ده کهٔ اوګوری چه نوکونه ئے صحیح کړی دی تعبیرئے ډیر مال به بیا موحی او دَ خپو او دَ لاسو نوکونه یو تعبیر لری او ځنی معبرینو ویلی دی دَ لاسو نوکونه تعبیر دَ مال حاصلول لری او دَ خپو نوکونه هم مال دے خو په سفر کښ۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښ نوکونه لیدل په شپږ[۶] وجو دی (۱) قوت او توانائی (۲) دَ خلکو اندازه په دُنیا کښ (۳) زړورتیا (۴) پیچیان (۵) نفع (۶) دَ غلام زوئ یا دَ ورزوئ۔

## نارنج

حضرت دانیالؑ فرمائی، چه نارنجان زیړوی مګر ښهٔ لوئے لوئے او په لیدلو کښ ښهٔ او پاکیزه دی او دَ جنت په میوؤ کښ دی خامخا په حقیقت کښ په خوب کښ تعبیرئے ښهٔ دے۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، نارنج په خوب کښ دَ یو[۱] نه تر درې[۳] پورے تعبیرئے زوئ دے او کهٔ دَ دریو نه زیات دی تعبیرئے مال وی دَ هغه نارنجانو په اندازه[۵] او شین نارنج ډیر ښهٔ دے او زیړ نارنج په خپل موسم بد نهٔ دے۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه نارنج شین دے نو دَ ځنو معبرینو په نزد بیماری ده او غم او فکر دے۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښ نارنج لیدل په څلور[۴] وجو وی (۱) دوست (۲) جګړه (۳) زوئ (۴) دَ خلکو نه کنځه۔

## نوم (ناف)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، نوم په خوب کښ ښځه ده او دَ هغه نه لاندے ویړه ده کهٔ اووینی چه نوم ئے پریوتے دے تعبیرئے ښځه ته به طلاق ورکوی او یا به ئے ویړه مری کهٔ اووینی چه نوم ئے پریکړے شوے دے تعبیرئے دا دے چه عیال به ئے مری او ټول شغل او مشغولتیا به ئے تباه شی او کهٔ اووینی چه نوم ئے ورکوے شوے دے تعبیرئے دَ دے خلاف دے او کهٔ اووینی چه په نامه کښ ئے سورے شویدے تعبیرئے دَ دهٔ په حال کښ به نقصان ظاهریږی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ په نوم یا په سینه دَ خط په شان ویښته راوتلی دی تعبیرئے دَ حضرت نبی کریمؐ په سُنتو به مینه کوی او کهٔ اووینی چه دَ دهٔ نوم دَ ښځې نه پریکړے شوے دے تعبیرئے دَ مور پلار نه به جُدا شی

او کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ دَ نوم نه ترخیتے پورے چاؤند را غلے دے تعبیر ئے عالم او هوښیارَ به شي مګرمال به ئے لاړ شي۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی کهٔ اوګوری چه دَ چا نوم ئے پریکړو او ځورلو تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به ئے مال ضائع شي۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښې نوم لیدل په پنځو وجوو (۱) ښائسته ښځه (۲) و ېنزه (۳) مال او زوی (۴) هلک (۵) مور او پلار۔

## دَ نوم بدلول (نام گردانیدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې ئے کهٔ چرے ئے نوم ئے دَ ښو نومونو نه بدل کړے دے لکه محمد، احمد، سعد، سعید، صالح او یا هغه چه دَ دے په شان معنیٰ لری تعبیر ئے خیر او صلاح ده او کهٔ چرے دَ دهٔ دَ نوم او دَ دهٔ دَ لقب نه خراب وی بیا ئے تعبیر شر او فساد دے۔

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښې ښهٔ نوم او ښهٔ لقب (اسم کنیه) اوریدل لکه ابوالبرکات، ابوالخیر، ابوسعید یا ابوالفضل او دَ دے په شانته تعبیر ئے خیر او صلاح ده او کهٔ دَ دے خلاف اووینی لکه ابوجهل، ابولهب، عتبه او شیبه او دَ دوئ په شانته په دوئ دی دَ الله تعالیٰ لعنت وی تعبیر ئے شر او ضرر دے لکه په اوّل دَ کتاب کښې مِ یاد کړل۔

## نقصان

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوک په خوب کښې اوګوری چه دَ دهٔ په بدن کښې نقصان دے تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به ئے دَ مال نقصان وی مګر دَ ښځو په بدن کښې دَ نقصان تعبیر صلاح ده لکه دَ ښځو په باره کښې چه په حرف "ز" کښې یاد شوید ی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ دهٔ په مال یا څهٔ شِی کښې نقصان شوے دے تعبیر ئے فِکرمند به شِی او ضرر به ورته رسیږی۔

## نقاشِی (نګاری)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ خوب کښې اوګوری چه دَ کور په چت او دَ کور په دیوالونو نقاشِی کوی تعبیر ئے په دُنیا به عاشِق وی او په دُنیا به مغروره وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښې نقاشی او تصویر جوړول او ویستل باطل او ناحق کار دے لکه څنګه چه الله تعالیٰ فرمائیلی دی، مَا هٰذِهِ التَّمَاثِيْلُ الَّتِیْٓ اَنْتُمْ لَهَا عٰكِفُوْنَ ترجمه (دا څهٔ تصویرونه دی چه تاسی ورته مُجاوری کوی)

حضرت مغربیؒ فرمائی، نقاشی کول په خوب کښې تعبیرئے په دُنیا مئین توب دے او دَ سمے لارے پریښودل او په باطلے لارے باندے تلل دی.

حضرت اسمٰعیلؒ فرمائی، که په خپلو لاسونو په سیاهي نقش او رنګ جوړوی تعبیرئے دَ دُنیا په کسب او دَ دُنیا په ګټلو کښې به حِیله کوی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، نقاشی په خوب کښې په څلورو وجوو ی (۱) دَ دُنیا راحت (۲) باطِل کار (۳) چل او مکر (۴) دوکه او دروغ.

## نغاره وهل (طبور)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک په خوب کښې او وینی چه په خپل کور کښې نغاره وهي تعبیرئے په دغه ځائے کښې به غم او مصیبت وی که اووینی چه دَ دهٔ نغاره ماته شوے ده تعبیرئے، توبه به اوباسی که بیمار اووینی چه نغاره وهي تعبیرئے مرګ به ئے نزدے شوے وی که اووینی چه دَ نغارے آواز ئے اوریدلے دے تعبیرئے، په باطلو خبرو آوریدلو به خوشحاله وی.

## دَ نهرونو لښتی (رودبار)

که اوګوری چه دَ نهرونو په لښتو کښې تللے دے تعبیرئے په غم او فکر کښې به ګرفتار کړے شی.

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که چرته دَ نهر دَ لښتی نه بهر او تلے وی، تعبیرئے، دَ غم او فکر نه به خلاصے مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، دَ نهر لښتے په خوب کښې لیدل دَ اسلام حج کول دی. دَ الله تعالیٰ قول دے (بِوَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ عِندَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ) بغیر دَ کرکیلے نه ځکے کښې ستا دَ عزتمند کور سره نزدے). (ابراهیم ۳۷)

حضرت مغربیؒ فرمائی، دَ نهر لښتے په خوب کښې لیدل تعبیرئے په شعر ویلو دے. دَ الله قول دے: وَالشُّعَرَاءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوُونَ أَلَمْ تَرَ أَنَّهُمْ فِي كُلِّ وَادٍ يَهِيمُونَ: الشعراء ۲۲۵ (ګمراه خلک دَ شاعرانو تابعداری کوی تاسے نهٔ ګورئ چه دوئ په هره وادئ کښې پریشانه ګرځی.)

## نهر لوئے، سیند (رود)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، لوئے نهر په خوب کښې لوئے سړے دے که اوګوری چه لوئے نهر کښې صفا اوبهٔ دی تعبیرئے دَ لوئے دیندار سره سړی سره به یو ځائے کیږی او دَ هغهٔ نه به خیرا و نفعه مومی که اوګوری چه دَ نهر نه بهر شوے دے تعبیرئے غم او فکر نه به خلاصے مومی که اوګوری چه په لوئے نهر کښې تللے

دے او اوبۀ ئے تورے وے تعبیر ئے دَ لوئے ظالم سړه به یوځائے شی کۀ اوګوری چه په هغه نهرکښې ډوب شوے دے تعبیر ئے ترمرګه پورے به دَ هغۀ نه خلاصے مومی۔

حضرت دانیالؑ فرمائی لوئے نهر په خوب کښې لیدل وزیر دے کۀ اووینی چه لوئے نهر وُچ شوی دے تعبیر ئے وزیر به دَ خپلے عهدے نه لرے کیږی اوکۀ دَ نهر اوبۀ زیاتے اووینی تعبیر ئے دَ وزیر نه به خلاصے مومی اوکۀ دَ نهر اوبۀ تورے اووینی تعبیر ئے حرام مال به بیا مومی اوکۀ اوبۀ ترخے وے تعبیر ئے رشوت به اخلی اوکۀ دَ نهر اوبۀ ګندۀ اووینی تعبیر ئے بیمار به شی اوکۀ دَ نهر اوبۀ یخے او ښائسته وی تعبیر ئے دَ وزیر نه به انعام مومی کۀ اووینی چه په نهرکښې وینه ده او بهیږی تعبیر ئے په هغه ملک کښې به خونریزی زیاته شی کۀ اووینی چه دَ نهر اوبۀ صفا او ښائسته دی تعبیر ئے عام خلک به دَ وزیر صفت کوی کۀ اوګوری چه دَ نهر اوبۀ ټولے په ځمکه کښې بهیږی او هیڅ نشته تعبیر ئے په عذاب دے په هغه ملک کښې دَ الله تعالیٰ قول دے (قُلْ اَرَءَیْتُمْ اِنْ اَصْبَحَ مَآؤُکُمْ غَوْرًا فَمَنْ یَّاْتِیْکُمْ بِمَآءٍ مَّعِیْنٍ) الملک۳۰ (دوئ ته اووایه چه کۀ دَ ستاسی اوبۀ په ځمکه کښې لاړے شی نو تاسے ته به څوک دَ چینے اوبۀ راوباسی)۔

اوکۀ اوګوری چه دَ نهر په اوبو ئے ځان وینځلے دے تعبیر ئے دَ بادشاه دَ ضرر نه به وزیر په امن کښې وی کۀ اوګوری چه په نهرکښې روان دی او ځائے ګندۀ شوے تعبیر ئے دَ سوداګرو دَ طرفه به غم خوری اوکۀ دَ دجله سیند په خوب کښې اوګوری دَ کرمانیؒ په قول به خلیفه (بادشاه) شی او دَ جیحون سیند دَ خراسان بادشاه دے او دَ سیحون سیند دَ هند بادشاه دے او دَ فرات سیند دَ شام بادشاه دے او څنی وائی چه دَ روم بادشاه دے، او دَ نیل سیند دَ مصر بادشاه دے اوکۀ رود ګنړ اووینی نو دَ دارسینا بادشاه شی او دَ اوبو څښل او وینځل خیر او نفع ده دَ هغے اوبو په اندازه چه دَ بادشاه نه به ورته رسیږی اوکۀ دَ پیو نهر اووینی تعبیر ئے په فتنه کښې به پریوځی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې نهر لیدل په اوو وجوی (۱) ج (۲) اطاعت (۳) بادشاهی (۴) سوداګری (۵) مال (۶) ریاست (۷) کامیابی او عِلم۔

## نیزه (سنان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کۀ اوګوری چه دُښمن ئے په نیزه اووهلو او وے غورزولو، تعبیر ئے په دُښمن به

کامیابیږی او دے به په دلیل قائیل کړی، که اوګوری چه نیزه ئے ماته شوه اویا ضائع شوه تعبیر ئے د دے خلاف دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اوګوری چه ده سره د فولادو نیزه چمک وهی نوکه د دے اهل وی تعبیر ئے ولایت به بیا مومی او که د دے اهل نه وی د مشر نه به نفع مومی که اووینی چه نیزے ئے رنګ نیولے دے تعبیر ئے لږه نفع به ورته حاصله کړے شی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښں نیزه لیدل په شپږ وجو وی (۱) دلیل (۲) ولایت (۳) ډیر عمر (۴) کامیابی (۵) ریاست (۶) د نیزے د قیمت په اندازه نفع.

## نصیحت کول (پند دادن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوك په خوب کښں اوګوری چه چرته نیک سړی ته نصیحت کوی چه په هغے کښں د دین او د آخرت خلاصے وی تعبیر ئے د خوشالی زیرے دے چه ده ته به د دین او د دُنیا خیروی او که د دے خلاف اوګوری تعبیر ئے د دین او د دُنیا په فساد دے.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، په خوب کښں چا ته نصیحت کول چه په هغهٔ نصیحت کښں د دین اصلاح وی ښهٔ دے او نصیحت ورکوونکے یوه مقربه فرښته ده چه خوب لیدونکو ته د خوشحالئ زیرے ورکوی چه ده ته به حاصلیږی دا د دے د پاره چه شکریه ادا کړی او دا سے نصیحت چه په هغے کښں د دے فساد وی دا سے ناصح شیطان مردود دے او هغهٔ ته د فساد او د تباهئ خبر ورکوی باید چه په دا سے وخت کښں سړے توبه او باسی او الله تعالیٰ ته رجوع وکړی د دے د پاره چه الله تعالیٰ دے د هغے شر او د فساد نه محفوظ وساتی او د الله تعالیٰ د عذاب نه خلاصے بیا مومی.

## ناجوړتیا (بیماری)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوك په خوب کښں اووینی چه ناجوړه دے تعبیر ئے د ده په دین کښں نساد دے او د خلکو سره خبرے به ئے منافقت وی او څنی وائی چه په دغه کال کښں به مری که اوګوری چه د بیمارئ نه جوړ شویدے او په کور کښں نه وو او د چا سره ئے خبرے نه دی کړی تعبیر ئے بیماری به ئے اوږده شی او په یره او په خطره کښں به وی چه مړ به شی او که اوګوری چه د خلکو سره ئے خبرے اترے کړی وی او ناسته

ئے ورسرہ کرے وہ تعبیرئے، دَ هغه بیمارئ نه به ئے رجوړ شي.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوویني چه دے دَ بیمارئ دَ وجے بربنډ دے تعبیرئے ژر به مړ شي او معبر بینو ټیلي دی بیماری په فسق وفجور (ناروا) باندے تعبیرلری. او دَ بادشاه دَ طرفه یا دَ اهل عیال دَ طرفه ورته به غم اوفکر ورسیږي. حضرت جابرمغربیؒ فرمائی، په خوب کښ قسما قسم بیماری لیدل دا دَ فرضو او سُنتو پسے قاعدګئ تعبیرلری.
حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښ اوویني چه بیماری اوئے ورنه ژاړي تعبیرئے دَ غم نه به خلاصے موهی اوکهٔ په بیمارئ صابراوراضي وو تعبیر ئے په نیکئ او په صحت مندئ دے کهٔ اوګوري چه بیمار دے او بربنډ دے، تعبیرئے دَ دهٔ مرګ نزدے شوے دے دَ الله تعالیٰ قول دے (لَقَدْ جِئْتُمُونَا كَمَا خَلَقْنَاكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ ) الکهف ( ماته به تاسے یوازے راځئ لکه څنګه چه مو تاسے اول ځل پیدا کړی وئ.)

## نغرے (دیګدان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ نغرے لیدل په دوه وجووی (۱) دَ کورمالک (۲) دَ کوربیګمه کهٔ په خوب کښ اوویني چه دهٔ سره نغرے دے او یا ورته چا ورکړے دے تعبیر ئے بیګمه به کورته راولی او کهٔ ښځه اوویني چه نغرے مات شو تعبیرئے دَ کور مالک به مړ کیږي.
حضرت جابرمغربیؒ فرمائی، نغرے په خوب کښ دَ کور تکړه سړے دے چه دَ چا نه ویره وی.

## نَوْ (ریم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ دَ نَو لیدل دَ خوب لیدونکی دَ پاره مال دے. کهٔ اوویني چه دَ دهٔ دَ بدن نه نَو راوځی تعبیرئے، دَ مال نقصان به ئے وی.
کهٔ اوویني چه دَ دهٔ دَ وجود نه نَو راووتلو او بیرته خپل ځائے ته لاړو تعبیر ئے دَ مال نقصان به ئے وی او اخیرانجام به ئے ښهٔ وی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی کهٔ په خوب کښ اوویني چه نَوروی او خوری ئے نو، نَوا وچاندی او سرهٔ زر وغیره دَ غم او فکر تعبیرلری.

## نقش (نقام)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اوویني چه دَ دهٔ په مخ نقش دے تعبیرئے حج به کوی او کهٔ مونځ ورنه قضاء

دی نو ادا به ئے کړی او که امانت ئے په غاړه وی نو ورته دے وسپاری او که قرضداره وی قرض به ادا کړی۔

## ناریل (کوزهندی)

حضرت ابن سیرینؒ، که او وینی چه چا ورته ناریل ورکړے دے تعبیر ئے، فال به نیسی او منجم کیږی او که او وینی چه ناریل ئے خوړلے دے تعبیر ئے، د ده خبره به ربښتینے کیږی او ځنی معبرینو وئیلی دی چه ناریل په خوب کښ کمینه سړے یا هندی وینزه ده۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که او وینی چه ناریل خوری تعبیر ئے، د نجومیانو خبره به بر ربښتینے کیږی او په هغے به یقین کوی۔

## نوړئ (لقمه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، چه چا د خوارهٔ طعام نوړئ د ده په خوله کښ ایښی ده تعبیر ئے هغه سړے به ده ته خوږه او ښهٔ خبره کوی او که هغه نوړئ تروشه او ګنده وی نو د دے تعبیر ئے د اول خلاف دے۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که او وینی چه خوږه او خوندوره نوړئ ئے د ده په خوله کښ ایښی ده که سړے نیک عمله وو تعبیر ئے حلال مال به بیامومی او که نوړئ خوږه او نرمه وی تعبیر ئے، د ځه خبرے نه به بلا کښ واقع شی؛ او که نوړئ په آسانه تیره شوه تعبیر ئے د اول نه خلاف دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ د نوړئ کینبودل لیدل په درے وجو وی۔(۱) ښکلول (۲) پاکے خبرے کول (۳) د نوړئ په اندازه نفع مونډل

## ناشته (نشاسته)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښ د غنمو ناشته حلال مال دے چه د تجارت نه به په تکلیف سره لاس ته راځی که او وینی چه ناشته خوری تعبیر ئے غمژن به شی او ځنی معبرینو وئیلی دی چه بیمار به شی که او وینی چه ناشته ئے حلوا کړله او وے خوړله تعبیر ئے مال او نعمت به لاس ته راوړی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که او ګوری چه د غنمو نه ناشته جوړوی تعبیر ئے، د خپل کسب نه به څهٔ په تکلیف سره حاصل کړی۔

## نیل

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ د نیل لیدل غم او فکر دے که او وینی چه ده سره نیل دے، تعبیر ئے د هغے په اندازه به ورته غم او فکر وی که او وینی چه نیل ئے چا ته ورکړے دے او یا ضائع شوے دے

تعبیر ئے دَ غم او دَ فکر نه به خلاصے اوموهی کهٔ اووینی چه څپلے جامے ئے په نیل لړلے دی تعبیر ئے غم او فکر به ورته را سیږی او دَ خپلوانو او دوستانو به ورته مصیبت وی کهٔ اووینی چه نیل ئے خوړلے دے تعبیر ئے په دریاب کښ به ورته آفت را سیږی۔

## دلنهراوبه (جوئے آب)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښې دَ نهراُوبهٔ لیدل دَ صفا اوبو په شان تعبیر لری چه دَدهٔ ژوند به ښهٔ تیریږی که اوګوری چه دَ نامعلوم نهر نه ئے صفا اُوبه څښلی اودا سړے په سفر کښې دے او یا پردی ځائے کښې دے تعبیر ئے په نامعلوم کار کښې به مشغول وی او خپل عمر به تیروی او دَ اوبو څښلو په اندازه به نفع مومی اوکه دَ نهراوبه ترخې او بے خونده وی تعبیر ئے، ژوند به ئے تریخ اوخراب وی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، چه خوب کښې دَ نهراوبهٔ لیدل دَهغه اصل وکیل دے چه مقرب به وی۔ که څوک دَ نهر اوبه روانے او صفا اووینی تعبیر ئے دَدهٔ کار به روان وی اوکه اووینی چه دَ نهر اوبه ګنده دی تعبیر ئے دَدهٔ کار به تباه او بے انتظامه وی - او په کوم ځائے کښې چه دَ نهر اوبهٔ اووینی دَدے تعبیر ئے دَ وچ دے او هر څو مره زیاتے او کمے چه دَ نهر په اوبو کښې اووینی تعبیر ئے په وکیل به واقع کیږی۔

که اوګوری چه په تخت ناست دے او دَ تخت لاندے اُوبهٔ روانے دی تعبیر ئے دولت او بخت به دَدهٔ طرف ته مخ کوی او دَ دواړو جهانو حال به ئے ښهٔ شی۔ دَ الله تعالیٰ قول دے تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ لَهُمْ فِيْهَا مَا يَشَاءُوْنَ (النحل ۳۱)

ترجمه :- دَدے دَ لاندے نهرونه جاری دی او دوئ چه څهٔ غواړی هغه مراد به ئے حاصل شی۔

او که اوګوری چه دَ نهر په صفا اوبو کښې ناست دے. تعبیر ئے دَ غم نه به خلاصے مومی، که چرے بیمار وی نوصحت به ئے ښهٔ شی او که قرضداره وی دَقرض نه به خلاص شی او که په سفر کښې وی نو دَ سفر نه به واپس راشی۔

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، نهر په تعبیر کښې دَ دبدبے او فائدهٔ مند سړے دے. که اوګوری چه دَ نهر اوبه ئے اوچتے کړی دی، تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به دَ چا مالداره سړی نه مال مومی او دړوکے نهر ژوند دے او الله تعالیٰ دَ تهولو

کاروونو په حقیقت نښه پوهیږي۔

**ورخاړے (کاهو)**

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي که اووینی چه د کاهو په موسم کښې ئے خوارۀ ورخاړے خوړلے دے تعبیرئے غم او فکر دے او کۀ اووینی چه ورخاړے تریخ دے تعبیرئے ضرر او تاوان به بیامومي، کۀ اووینی چه کاهو تراخه او نښۀ نۀ وو تعبیرئے د چا سره به خبرے کوي۔

**وریځ**

حضرت دانیالؑ فرمائي، په خوب کښې وریځې لیدل په شپږ قسمه دے (۱) سپینه وریځ (۲) توره وریځ (۳) زیړه وریځ (۴) سره وریځ۔ (۵) دوددوالا وریځ (۶) نه وروونکے وریځ۔ د هرے وریځ تعبیر جدا جدا دے۔ کۀ څوك په خپل ځائے سپینے وریځې وریدونکے اووینی تعبیرئے الله تعالیٰ به ورته علم او حکمت نصیب کړي او خلکو ته به د دۀ د علم نه فائده وي۔

او کۀ اووینی چه د زیړے وریځې لاندے دے تعبیرئے بیمار به شي او ځنې معبرینو وئیلي دي چه ښځه به وکړي چه د هغې نه به تکلیف او خفگان برداشت کوي او کۀ اوګوري چه سرے وریځې لاندے دے تعبیرئے په بلا او مشقت کښې به ګرفتار کړے شي ځکه چه الله تعالیٰ په هر قوم عذاب نازلولے دے اول ئے ورباندے سره وریځ ظاهره کړے ده او کۀ اووینی چه وریځ نیغه د دۀ په سر وورید تعبیرئے د هغې په اندازه به حکومت مومي او کۀ اووینی چه وریځ د دۀ د سر د پاسه تیره شوه تعبیرئے د دۀ ناسته به د چا نیک سړي او د مرتبے خاوند سره وي او د دۀ مراد به ورته پوره شي۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، کۀ اووینی چه وریځ په هوا کښې چلوي تعبیرئے د دۀ ناسته به د عالمانو او حکیمانو سره وي او کۀ دا خوب بادشاه اووینی تعبیرئے په خپل ملک کښې به خبردار قاصدان کیږي کۀ اووینی چه وریځ هوا په زمکے راولي تعبیرئے کاربه ئے نیک شي او بزرگي به بیامومي او علم به حاصل کړي او کۀ اووینی چه وریځې د دۀ د سر د پاسه سورے کړے تعبیرئے په دے کال کښې به نیکي او نعمت ډیر بیامومي د الله تعالیٰ قول دے (وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَأَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوَىٰ) البقرة ۵۷ (مونږ په تاسو د وریځې سورے وکړو او تاسو ته مو من او سلوی راولیږل چه پاك څیزونه مونږ درکړي دي هغه خورئ) او کۀ اووینی چه په وریځ کښې کپړه توره شوے

ده او هغه ته واغوسته تعبیر ئے دومره عِلم به حاصل کړی چه څا ته نه وی حاصل شوے او کهٔ او وینی چه وریځ ټوله دُنیا پټه کړے ده او باران ورنه نه اوریږی تعبیر ئے خراب او بد دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ او وینی چه وریځے نه اجمع کړه یائے پورته کړه او یائے او خوړله تعبیر ئے دَ حکیمانو په منځ کښ به دَ اوچتے درجے والا وی او په عِلم کښ به یوازینے شخصیت وی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ او گوری چه وریځے خوری تعبیر ئے ژوند به ئے په حِکمت سره وی کهٔ او گوری چه توره وریځ په یو ځائے پریوتے ده تعبیر ئے دَ الله تعالیٰ په عذاب دے په هغه ملک کښ او څوک چه وریځے ته نزدے او گوری هغه به دَ الله تعالیٰ عذاب ته نزدے وی او کهٔ دَ وریځے سره باران او وینی تعبیر ئے دَ الله تعالیٰ په رحمت او په نیکئ دے او کهٔ او گوری چه دَ وریځے نه باران خوری تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به ورته رحمت او نیکی ورسیږی

او کهٔ دَ باران سره وریځ او بریښنا او وینی تعبیر ئے دَ موراو پلار او دَ مسلمانانو دَ خیرونه یره ده او کهٔ دَ بریښنا سره پړق او پړوق هم وی دَ دے تعبیر سخت عذابونه دی کهٔ او وینی چه دَ دهٔ په کور یا دَ دهٔ دَ اوسیدلو په ځائے وریځ راکوزه شوے ده تعبیر ئے دَ دهٔ دَ بچیانو او دَ کور اهلِ بیت دَ پاره عقل او حکمت حاصل شی دَ هغے وریځے په اندازه.

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی، په خوب کښ وریځ لیدل په نهو وجوی (۱) حکمت (۲) ریاست (۳) بادشاهی (۴) رحمت (۵) پرهیزکاری (۶) عذاب (۷) قحط او تنگی (۸) بلا (۹) فِتنه.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، په خوب کښ توره وریځ لیدل تعبیر ئے ویره او سختی ده او دَ باران ورونکے وریځ دَ خیر او دَ برکت تعبیر لری او غم او فِکر هم دی او هغه وریځ چه دَ آسمان دَ کنارے نه را پورته کیږی هغے ته عربئ کښ اسفنج وئیل کیږی دَ دے په خوب کښ لیدل تعبیر ئے غنیمت دے دَ هغه وریځ په اندازه غنیمت به ورته ملاویږی.

## وروځی (ابروها)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، وروځے په خوب کښ لیدل دین دے کهٔ خوب کښ او وینی چه دَ دهٔ وروځے پوره دی او هیڅ نقصان په کښ نشته دے تعبیر ئے دَ دهٔ ښائست

پوره او کامل دے۔ او که اووینی چه دَ دهٔ وروځے پریوتی دی تعبیر ئے دَ اول خلاف دے۔
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه دَ دهٔ وروځے نښتے دے او یائے دَورو ځو ویښتهٔ پریوتی دی تعبیر ئے دَ یو شی اِراده به کوی چه دَ هغے نه دَ دهٔ دَدین فساد او بدنامی به وی او که دَ دے خلاف اووینی تعبیر ئے دَ داسے شی قصد به کوی چه دَ هغے نه به دَ دهٔ نیکی او دَ دین اصلاح وی که اووینی چه دَ دهٔ وروځے سپینے شوی دی تعبیر ئے دَ دهٔ علم او برداشت به زیات وی۔ مګر دَ مال نقصان به ئے وی۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، که یوه وروځه بسمه او بله پریوتی اووینی تعبیر ئے دَ دهٔ په مال او مرتبه کښ به نقصان پریوځی او ځنی تعبیرکونکو ئیلی دی چه دَ دهٔ دَ زینت دَ کموالی تعبیر لری۔

## دَ وسلے پاکوونکے (صیقل)

دَ وسلے پاکوونکے په خوب کښے بادشاه دے او ځنے وائی چه دَ بادشاه وزیر دے که اووینی چه وسله صفا کوی که چرے دَ دے اهل وی تعبیر ئے بادشاهی به بیاموسی یا به دَ بادشاه مقرب وی
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښے دَ وسلے صفا کوونکے داسے سړے دے چه په خپل لاس حق دَ باطل نه جُدا کوی۔

## وَزر (پر)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که څوک په خوب کښ اووینی چه دَ دهٔ وزرے دی لکه دَ چرګ په شان تعبیر ئے دهٔ ته به بادشاهی او بزرګی ملاویږی دَ وزرو په اندازه او ځنی تعبیرکونکو ئیلی دی چه دَ وزرو لیدل تعبیر ئے قوت او ملا تړ دے۔

## واوُره (برف)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښ واوره لیدل غم او فکر دے او همدارنګه عذاب دے او که لږه اووینی بیا خیر دے که په ژمی کښ واوره اووینی یا هغه ځائے اووینی چه هلته همیشه واوره وی تعبیر ئے دَ هغه ځائے خلکو ته به غم او فکر رسیږی۔
حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، په خوب کښ واوره لیدل هغه لښکر دے چه ما ته به ورته ورکړی۔
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ واوره لیدل په شپږ وجوی

(۱) روزی (۲) زندګی (۳) ډیر مال (۴) زیات لښکر (۵) بیماری (۶) غم او فکر.

که اووینی چه په اوړی کښی واوره راجمع کوی تعبیر ئے حلال مال به راجمع کوی او بنه ژوند به تیروی او ډیره نفع به بیا مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په یخ ملک کښی واوره لیدل تعبیر ئے خیر او نیکی ده او په ګرم ملک کښی لیدل د قحط، غم او د فکر تعبیر لری که اووینی چه واوره په خپل موسم خوری نو د بے موسمه خوراک نه دا بنه ده.

## واوره، کنګل (تیخ)

حضرت دانیالؒ فرمائی، په خوب کښی یخ لیدل غم او فکر دے خاصکر چه په خپل موسم ئے اووینی او که اووینی چه واوره ئے خوړلے ده تعبیر ئے ډیره روزی به بیا مومی خو چه ډیره زیاته او بے اندازے واوره اووینی او په خپل وخت (ژمی) کښی ئے اووینی او که اووینی چه صفا واوره ئے کور ته راوړے ده تعبیر ئے د هغے په اندازه به مال جمع کړی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه په اوړی کښی پاکه او صفا واوره ده تعبیر ئے حلال مال به راجمع کړی او که اووینی چه واوره ترخه او خیرنه وه تعبیر ئے د حرام مال به راجمع کړی او که په ژمی کښی پاکیزه او صفا واوره اووینی تعبیر ئے بنه ژوند به تیروی او د خپل کار نه به نفع وینی او د دوستانو نه به ورباندے خوشحالیږی.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، په یخو ملکونو کښی په ژمی کښی یخ لیدل تعبیر ئے خیر او نفع او تندرستی ده او په ګرمو ملکونو کښی یخ (کنګل) لیدل تعبیر ئے قحط، تنګی غم او فکر دے او ځنی تعبیر کوونکو ویلی دی چه کنګل او بریښنا په خوب کښی چه په یخو ملکونو کښی وی تعبیر ئے د نعمت فراخی ده او په ګرم ملکونو کښی د غم او قحط تعبیر لری.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښی کنګل لیدل په شپږ وجوی (۱) فراخه روزی (۲) زندګی (۳) مال (۴) ارزان نرخ (۵) غم او فکر (۶) قحط او تنګی.

## وریژے (برنج)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی په خوب کښی وریژے لیدل هغه مال دی چه په سختئ او تکلیف سره حاصلیږی د هغے لیدلو وریژو په اندازه.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که په خوب کښی اووینی چه یخے وریژے خوری تعبیر ئے حاجت به ئے پوره شی او خیر او نیکی به ورته ورسیږی او که اووینی چه وریژے ئے د غوښے سره خوړلی دی تعبیر ئے بهتری او نیکی ده او د پیتوسره وریژے خوړل

نهایت ډیر ښهٔ دی اوکهٔ اوګوری چه دوه یړښے دَ ماستو (چکی) سره خوړلے دی تعبیر ئے غم اوفکر دے۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښں دوه یړښے لیدل په دریو وجوو دی (۱) مال (۲) مراد (۳) خیراو نفع چه به ورته ورسیږی۔

## وړے (پشم)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښں وړئے لیدل په ټولو وجوکښں حلال مال اوروزی ده اوکومه وړئے چه رنګ شوے نهٔ وی ښهٔ وی اوکهٔ اووینی چه وړئے ورسره دی اویا ورته چا ورکړے اویائے اَخستے دی اویا په خپل ځائے دے تعبیرئے دَ هغے په اندازه به ورته مال حاصل شی، دَالله تعالیٰ قول دے (وَمِنْ اَصْوَافِهَا وَاَوْبَارِهَا وَاَشْعَارِهَا اَثَاثًا وَّمَتَاعًا اِلٰی حِیْنٍ) النّحل (دَ هغے دَ پشم اووړئ اووېښتو نه سامان دے یو وخته پورے فائده ده)۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، چه څوک دَ ځانه وړئے لری غورځوی تعبیرئے خپل مال به ضائع اوتباه کوی اوکهٔ اووینی چه دَ دهٔ په تن دَ وړئے جامه ده تعبیرئے دهٔ ته به دَ ښځونه مال حاصلیږی کهٔ اووینی چه دَ وړئے یا دَ مالوچو کپړے ئے اخستے دی اویا ورسره دَ وړئے بستره ده تعبیرئے مالداره ښځه به کوی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښں دَ اوبں وړئے مال دے دَ بادشاه دَ طرفه نه به حاصلیږی اوتعبیرکوئکو وئیلی دی چه میراث دے۔

## وړئے (صوف)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، دَ وړئے جامے په خوب کښں خیراو نفع ده خاصکر دَ پرهیزګاره خلکو دَ پاره کهٔ اووینی چه دَ صوفیانو دَ وجود نه ئے دَ وړئے جامے اغوستے دی تعبیرئے دَ دهٔ توجّه به دَ ګناه او خطا طرفته وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه صوفی شوے دے اوچیرته ئے اغوستے ده اودَ صوفیانوسره دیره دے تعبیرئے داهرڅهٔ به په ویښه وینی اوکهٔ اووینی چه صوفیانو دَ خپل ځان نه لرے کړے دے تعبیرئے دَ اول خلاف دے کهٔ اووینی چه صوفی شوے دے اویا دَ صوفیانوسره ناست دے تعبیرئے دے چه منافقانه عبادت به کوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښں صوفی کیدل په څلورو وجو وی۔ (۱) دَ دُنیا نه لاس اَخستل (۲) دَ خلکو نه یو طرفته کیدل (۳) په عبادت باندے همیشوالے (۴) دَ چانه طمع نهٔ ساتل۔

## ویریدل (ترسیدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې ویریدل اَمن دے چه هر څوك په خوب کښې اووینی چه ځ ځانه یریږی اوڼه پوهیږی چه دَ ځانه یریږی تعبیرئے دا ده چه ګ ډیره وړنکی ته څهٔ بدالا خبره رسیږی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی په خوب کښې یره دَ نصرت او دَ کومک تعبیر لری ځکه چه نبی کریمؐ فرمائیلی دی (اَلنُّصْرَةُ بِالرُّعْبِ) ترجمه (کومک دَ ویرے سره دے) او کهٔ اووینی چه دَ غل یا دَ ځناورنه ویریدو تعبیرئے دَ هغه کسانو نه چه دَ دے نسبت ورته کیږی، دهٔ ته به ضرر رسیږی.

## ورانی (خرابی)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، ورانی په خوب کښې لیدل، تعبیرئے غم او فِکر دے ځکه چه خرابی دَ بره نه لاندے راتلل دی کهٔ اووینی چه په ویرانئ کښې تللے دے تعبیرئے غمژن به شی او کهٔ اووینی چه په ورانئ کښې ئے غسل کړے دے تعبیرئے دَ غم نه به خلاصے مومی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه په سرائے یا په کوړه کښې ډیر کوروندی تعبیرئے هلته به غم او فِکر او مصیبت وی.

## وینه راتلل (خون آمدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اووینی چه بغیر دَ زخم نه ئے وینه دَ وجود نه راغلے ده تعبیرئے تاوان به ورته رسیږی او کهٔ پخپل وجود زخم پیدا کړی تعبیرئے دَ مال تاوان او غم او فِکر دے کهٔ اووینی چه دے ئے په تروره وهلے دے او وینه ورنه روانه شوے تعبیرئے دَ دهٔ نقصان به اوږدشی او دهٔ ته به په دے کښې ثواب رسیږی کهٔ اووینی چه دَ دهٔ دَ زخم وینے دَ دهٔ جامه ګنده کړے تعبیرئے حرام مال به حاصلوی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ خوب کښې اووینی چه وینه څښی تعبیرئے حرام مال به خوری او یا به په ناحقه وینه تویَوی. کهٔ اووینی چه دَ دهٔ په وجود کښې سورے ود او دَ هغې نه وینه یا نوَ روان شو او دَ دهٔ جامه ئے ګنده کړه تعبیرئے دَ هغې په اندازه به حرام مال حاصل کړی او کهٔ اووینی چه دَ عضوِ تناسل نه وینه روانه شوے ده تعبیرئے دَ دهٔ ګ لور حمل به او غورځیږی او کهٔ اووینی چه دَ دهٔ دَ ډك او دس ماتی دَ لارے نه وینه راوتلے ده تعبیرئے دَ هغې وینے په اندازه به حرام مال بیا مومی کهٔ اووینی چه دَ دهٔ دَ غابنونو نه وینه راوتلے ده تعبیرئے دَ خپلوانو نه به غم او فِکر خوری کهٔ اووینی چه دَ ښار په کوڅو کښې وینه بهیږی تعبیرئے په هغه ځائے کښې به ډیره خونریزی کیږی

حضرت دانیال فرمائی، کهٔ او وینی چه دَ پوزے نه ئے وینه راغلې ده تعبیر ئے دَ حرام مال دَ موندلو دے او چه جامه ئے وربانده نهٔ وی کنهٔ شوی تعبیرئے فقیر به شی او دَ مال نقصان به ئے وی۔

## ونه دَ کجورے (درخت خرما)

کهٔ دَ کجورے ونه په خوب کښې اووینی په عالم او شریف سړی تعبیر لری

کهٔ او وینی چه دَ کجورے ونه په کور کښې لری تعبیرئے دَ لوئے سړی سره به اشنا شی او کهٔ دَ خرما ونه په باغ کښې اووینی تعبیرئے دَ باغ مال تهٔ کرځیږی۔

## الوچه

دا یو طبیب سړے دے چه هر چا ته فائده رسوی.

## ونه دَ بادام (درخت بادام)

دَ بادام ونه ښائسته او ډولی ښځه ده۔

## ونه دَ انار (درخت انار)

دَ انار ونه دولت مند او نفع مند سړے دے۔

## ونه دَ مرچو (درخت پیپل)

دَ مرچو ونه شریف او لوئے سړے دے۔

## ونه دَ بړ (درخت برگد)

دَ بړ ونه د قلار او اطمینان والا سړے دے۔

## ونه دَ ترنج (درخت ترنج)

مخالف سړے او خودرائے بانده تعبیر لری

## ونه دَ زیتون (درخت خونه)

تعبیرئے په اصل او نسب والا سړی بانده دے۔

## ونه دَ مرغونی (درخت حنظل)

تعبیرئے په فقیر او بے دینه سړی بانده دے۔

## ونه دَ زردالو (درخت زردآلو)

په مبارک سړی تعبیر لری چه خلکو ته نفع رسوی۔

## ونه دَ سرو (درخت سرو)

په خوش طبعه عجمی سړی تعبیر لری۔

## ونه دَ عناب (درخت سنجد)

په نازک مزاج او دولتمند سړی بانده تعبیر لری۔

## ونه دَ سیو (درخت سیب)

په ناجوړه سړی بانده تعبیر لری۔

ځنګلي خربوزه (شمامہ) | په تیزدولت مند سړی تعبیر لري چه زر به هلاك شي.

ونه دَ شفتالو (درخت شفتالو) | تعبیرئے په شرمناك عزت مند سړی دے.

ونه دَ عودو (درخت عود) | تعبیرئے په خوش ژبانه او په بشاشته سړی دے.

ونه دَ پستے (درخت فستق) | تعبیرئے په مالدار بخیل سړی دے

ونه دَ ګلاب (درخت گل) | تعبیرئے په خوشحاله سړی دے.

ونه دَ فندق (درخت فندق) | تعبیرئے په غریب سخت ژبه والا دے چه لوبے خوشبوی.

ونه دَ خیړئ (درخت بلوط) | تعبیرئے په بے خیره منافق سړی دے.

ونه دَ غوز (درخت جوز) | تعبیرئے په عزت مند او ځوان مرده سړی دے.

ونه دَ ناریل (درخت جوز هندی) | تعبیرئے په عجمی سړی چه دَخلکو سره به بخل کوی او دَخپل عیال سره به سختی کوی اوکهٔ اوګوری چه دوئ دَ پاسه دے تعبیر دَ چالوئے سړی سره به ملاویږی او دَ هغه نه به نفع او بزرګی مومی.

ونه دَ لیمبو (لیموں) | تعبیرئے په هغه سړی دے چه جادوکوی یا په نجومی تعبیر لري.

ونه دَ مانړو (مورو) | په ناسازګار او په سخت طبعه سړی تعبیر لري.

ونه دَ بانړس (درخت نے) | دَ بانړس ونه په بدخویه او خبرلوټی دښمن بانده تعبیر لري او هر هغه ونه چه میوه داره وی دَ هغے تعبیر په میوے پورے تعلق لري (په میوه قیاس لري) کهٔ اوګوری چه دَ میوه دارے وُنے نه میوه خوری تعبیرئے دَ هغے میوے په اندازه به مال او نعمت مومی او تعبیرکونکی دائ چه په خپل کورکښ میوه داره ونه تعبیر ئے په ښځه دے اوکهٔ دَ بادشاه په کورکښ اووینی تعبیرئے په خدمتګار دَ دے

اوکومے ونے چه تنه نۀ لري لکه ختکې او خربوزے دَ دے تعبیر په کم همته خلکو باندے دے.

حضرت کرمانیؒ فرمائي، کۀ دَ ونے جرړے قوي اووینی تعبیر ئے دَ مال زکوٰة به ئے ورکړے وي او کۀ قوي نۀ وي تعبیر به ئے دَ دے خلاف دي او دَ ونے پوستکي په روزئ تعبیر لري چه دَ ونے مالک ته یه وي او دَ ونے ښاخونه په ورونړو او خپلوانو او په زوئ باندے تعبیر لري او کۀ اووینی چه دَ ونے ډیرے ۔ یا تے پانړے دي تعبیر ئے دَ ونے مالک به خوش طبعه وي او کۀ اووینی چه میوه دَ ونے لږه ده تعبیر ئے دَ اوّل خلاف دے او دَ ونے میوه دَ ونے په مالک تعبیر لري چه دَ ونے مالک پرهیزګاره او دیندار ه دے کۀ اووینی چه ونه پریکړے ده او پریوته تعبیر ئے دَ ونے دمالك مرګ دے.

حضرت مغربیؒ فرمائي، کۀ اووینی چه ونه ښۀ خوشبوئ لري او میوه ئے خوندناکه ده تعبیر ئے په مصلح او پاك دینه سړي باندے دے او کۀ اووینی چه دَ ونے میوه بے خونده ده او اغزي لري دَ دے تعبیر چه مفسد او بدنیاته سړي باندے دے کۀ اوګوري چه دَ دۀ یا دَ بل چا په کور کښې ونه اولګوله دَ ونه ده تعبیر ئے په مصیبت دے (په هغه کور به مصیبت پریوځي) او کۀ اووینی چه په کور کښې تخم کري تعبیر ئے دَ هغه تخم په اندازه به دۀ ته څه شے ملاویږي او کۀ اووینی چه پردے سړے په ۔ مکه کښې ونے لګوي تعبیر ئے دَ پردي او بیګانه سړي سره به ئے صحبت وشي او عزت او سرداري به مومي او کۀ اووینی چه په خپل کور کښې ونے لګوي تعبیر ئے نوم به ئے اوچت اولی او کۀ اووینی چه دَ ونے سر ته ختلے دے تعبیر ئے دَ دۀ کار به لوئے شي او کۀ اووینی چه دَ ونے پانړے راجمع کوي تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به درهم (روپئ) حاصل کړي. او کۀ اووینی چه دَ ونو نه میوه لاس ته راوړي تعبیر ئے دَ دۀ زامن او نسل به زیات شي او کۀ میوه داره ونے ډیرے اووینی او پوهیږي چه دا دَ دۀ ملکیت دے تعبیر ئے عمر به ئے ډیر وي او کامیابي او بزرګي به مومي او کۀ اووینی چه ونه پرے کوي تعبیر ئے بیمار به شي او یا به دَ دۀ دَ خپلوانو نه څوك سړے مري.

حضرت مغربیؒ فرمائي، کۀ پریکړے شوے یا وچے ونے اووینی تعبیر ئے خلک به بے دینه وي او کومه ونه چه ښۀ اووینی تعبیر ئے دَ هغۀ دین به ښۀ وي او چه هر څومره په ونه کښې نقصان اوګوري تعبیر ئے دَ دۀ په نقصان دے. کۀ اوګوري چه دَ ونے دَ سوري لاندے ناست دے او یا اودۀ

دے تعبیرئے دا دے سړی سوری ته به ځی چا ته چه د ونے نسبت کیږی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په خوب کښ ونه لیدل په لسو وجوه،
(۱) بادشاه (۲) ښځه (۳) سوداګر (۴) مردِ میدان (۵) عالِم (۶) مؤمن (۷) عوام (۸) کافر
(۹) جګړه (۱۰) شکمن مال.

**وریځے (روزها)**

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه د جُمع ورځ وه د خالی (هفتے) ورځ شوه تعبیرئے کار به شروع کړی اونیک به ئے وګڼړی حالانکه په هغے کښ به بدی وی او که اوګوری چه د خالی ورځ د جُمع ورځ شوه تعبیرئے د اول خلاف دے او که اوګوری چه شپږ ورځ شوے ده تعبیرئے په نیکئ دے او که اووینی چه د خالی ورځ وه تعبیرئے د یهودیانو سره به دوستی کوی او که یکشنبه (اتوار) اووینی تعبیرئے د عیسایانو دوست به وی او که خوب کښ د خالی ورځ د جمع ورځ معلومه کړی تعبیرئے د نعمت خاوندانو او د مالداره خلقو دوست به وی.

حضرت امام جعفرصادقؒ فرمائی، په ټولو کښ بنه ورځ د جُمع ورځ ده او د دے نه وروسته د خالی او د زیارت وریځے دی.

**وَسله (سلاح)**

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اووینی په خوب کښ چه وَسله ئے اغوستے ده او پردو خلکو ته تللے دے تعبیرئے عام خلق به ورپسے خبرے کوی مګر ورته به څهٔ نقصان نه رسیږی او که اووینی چه اشنا ئے ته لاړ دے تعبیرئے دا دے چه په دُښمنانو به کامیابی مومی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوک د خپل ځان سره غشے او لیندۀ اووینی تعبیرئے سرداری به مومی که اووینی چه هغهٔ د جنګ وَسلے نه څهٔ مات شوی یا ضائع شوی دی تعبیرئے د دهٔ په بزرګئ کښ به نقصان راشی او که اووینی چه د چا سره جنګ کوی تعبیرئے په جنګ او جګړه کښ به پریوځی او که اووینی چه دے چا بو تلو تعبیرئے دے سړی ته به نقصان رسوی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه چا زخمی کړے دے او د هغهٔ پټه ورته نښته چه څوک وو تعبیرئے دهٔ ته به نقصان رسیږی او که اووینی چه په هغه زخم کښ نوجمع شوے دے تعبیرئے د هغے په اندازه به مال راجمع کوی او که اووینی چه د هغهٔ زخم سره غوښه او هډوکے مات شوے دے تعبیرئے د هغه سړی نه به ورته مال او نعمت رسیږی او که اووینی چه په جنګ کښ د چالاس پریکړے شوے دے تعبیرئے هغهٔ ته به سخته خبره

کوي او دَ دوئ تر منځه به جُدائي راځي او که اووینی چه دَ بدن ریا ته حصه ئے پریکړے شوے ده تعبیر ئے دَ هغهٔ مال به اخلی.
حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښ دَسله لیدل په شپږ وجو وی (۱) قوت (۲) بزرگی (۳) دولت (۴) ولایت (۵) ریاست (۶) قلعه او وَسله جوړوونکے سړے او انصاف دار بادشاه دے.

## وینځل (شستن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، خپل ځان دَ ډنډ په اوبو یا دَ نهر یا دَ چینے یا دَ دریاب په اوبوسره وینځل تعبیر ئے دَ غم او فکر نه دَ خلاصی دے او که تیدی سړے دا خوب اووینی تعبیر ئے دَ جیل نه به خلاص (رِها) شی او که قرضدار ئے اووینی تعبیر ئے دَ قرضے نه به خلاص شی او که بیمار ئے اووینی تعبیر ئے صحت به ئے پیښه شی. او که ټول بدن ئے نه وی وینځلے تعبیر ئے کار به ئے تمام نهٔ شی.
حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوک په خوب کښ اوګوری چه خپل مړے ئے خپله لمبولے دے تعبیر ئے تکلیف به ورته رسیږی او که پاکه جامه ئے دَ خیرنوجامو سره وینځلی وی تعبیر ئے دَ کار تباهی او دَ دین په فساد دے او که اووینی چه ځان په یخو یا په ګرمو اوبوسره وینځی تعبیر ئے توبه به اوباسی.
حضرت مغربیؒ فرمائی، په یخو اوبوسره وینځل په څلورو وجو وی. (۱) توبه (۲) عافیت (۳) دَ زندان نه خلاصے (۴) دَ یرے نه اَمن کښ کیدل. او په ګرمو اوبو سره غم او فکر دے. او مخ وینځل په اَتو وجو دی. (۱) دَ مراد حاصلیدل (۲) دَ بیمارئ نه بښه کیدل (۳) دَ مال موندل (۴) حج (۵) خلاصے (۶) اَمن (۷) پاک دین (۸) دَ حاجت پُوره کیدل.

## وابنهٔ، یو قِسم کیاه ده (گاوچشم)

دا یو قِسم کیاه ده چه په خوب کښ دَ دے لیدل نیکه وینزه ده.
حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که ښځه په خوب کښ اوګوری چه دَ ګاوچشم ګلئ ئے اوشوکوله او خپل خاوند ته ئے ورکړه تعبیر ئے دے ته به طلاق ورکوی او که غلام ته ئے ورکړے وی تعبیر ئے غلام به ئے تښتی.
حضرت مغربیؒ فرمائی، که ګاؤچشم په خپل موسم کښ په ونه کښ اووینی تعبیر ئے زوئ به ئے پیدا کیږی او که بی موسمه وی نو تعبیر ئے بَد دے او که مړاوے اووینی تعبیر ئے زوئ به ئے بیمار شی او که زوئ ئے نهٔ وی نو غمژن به شی او دا هم کیدے شی چه نقصان ورته ورسیږی.

## ورکیدل (گم شدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښی اووینی چه ورک شوے دے تعبیر نے دا دے چه چرته دے وی ضایع کیږی او که اووینی چه د دهٔ عیال ورک شوے دے نو دوئ په وجه به غمژن وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ څوك اوګوری چه څهٔ شے ورنه ورك شوے دے کهٔ هغه شے په تعبیر کښی نیک وی تعبیر نے دَ هغے په اندازه به ئے غم او فکر او ضرر نه لرے شی او کارونه به ئے په نظم کړے شی او کهٔ هغه شے په تعبیر کښی بد وو غم او فکر او ضرر به ورته لرے کیږی او همدارنګه کارونه به ئے په نظم نشی۔

## وینزه (کنیزک)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، وینزه دَ خپل بنائست په اندازه خیر او نیکی ده کهٔ څوك خوب کښی اووینی چه دهٔ سره بنائسته او غټه چاقه وینزه ده، تعبیر ئے خوب لید ونکی ته به پټه څهٔ څیز حاصلیږی او دَ هغے نه به فکرمند وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، وینزه په خوب کښی مال دے کهٔ څوك په خوب کښی اووینی چه وینزه ئے اخستے ده تعبیر ئے په خیر او په نیکی دے، او کهٔ اووینی چه وینزه ئے خرڅه کړے ده او قیمت ئے اخستے دے تعبیر ئے دهٔ ته به غم رسیږی او کهٔ اووینی چه وینزه ئے اخستے ده تعبیر ئے خوشحاله به وی او مال او نعمت به بیا مومی او کهٔ اووینی چه وینزه بربنډه ده تعبیر ئے څهٔ اندازه تاوان به ورته ورسیږی او کهٔ اووینی چه بنائسته وینزه ئے پټ مخ بانده کورته راوستله تعبیر ئے خوشحالی او نفع به ورته ورسیږی

## واګے (لګام)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه واګے او شلیدلے او یا ضائع شوے تعبیر ئے دَ هغهٔ په عزت او بزرګئ کښی به نقصان راشی او کهٔ اوګوری چه دَ اسونو په شان دَ دهٔ په سر واګے دی تعبیر ئے روژه به نیسی او دَ ګناه نه به توبه اوباسی او دَ حضرت علیؓ قول دے چه څوك بد خواسړے وی دَ هغهٔ په خُله کښی واګے اچولے شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښی واګے دَ نیك غلام سړے بنځهٔ وی چه همیشه دَ مالك په حکم کښی وی او دَ آرام او سره پښه نهٔ دی۔ او داسے ویلے کیږی چه خوب لید ونکے به ادبناك او هُښیار سړے وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښی واګے لیدل په دریو وجو وی (۱) عزت او بزرګی (۲) ادب او فن (۳) روژه ساتل او واګے خړوونکے په خوب کښی دَ ولایت دَ کارونو منتظم دے۔

## ویښته (موئ)

حضرت دانیالؑ فرمائی، په خوب کښې ویښته دَ سرو دَ پاره غم او فکر دے او دَ ښځو دَ پاره ښائست دے او دَ چارپایانو (ځناورو) ویښته کمتر مال دے که څوک اووینی چه دَ سر ویښته ئې لوئے شوی دی تعبیر ئې دے به ښائست او نیکی به مومی او که څوک نه وی نو غم او فکر به ئې وی دَ ویښتو دَ لوئے والی په اندازه که اووینی چه څه اندازه ویښته ئې پریکړی دی او غورزولی ئې دی تعبیر ئې غم او فکر به ئې لرے شی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اووینی چه دَ حج په موسم کښې ئې دَ سر ویښته خرئیلی دی تعبیر ئې دَ دین صلاح او دَ گناهونو کفاره ده او که په خوب کښې دَ حرام میاشتے یعنی رجب و ذی الحجه و ذیقعده او محرم کښې اووینی قرض به ئې خلاص شی او دَ غم نه به خلاص شی او که اوګوری چه ټول ویښته ئې خرئیلی دی تعبیر ئې چه څه پورته بیان شول دَ هغے نه به ډیر زیات وی۔ او که مالداره ښځه اووینی چه دَ سر ویښته ئې خرئیلی دی تعبیر ئې خاوند به ئې مری یا به ئې څوک مشر مری۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که بادشاه خپل ویښته غټ اووینی تعبیر ئې په لښکر دے او که رعیت ئې اووینی تعبیر ئې غم او فکر دے او دَ بدن دَ ویښتو تعبیر هم غم او فکر دے که سړے اووینی چه دَ ده دَ سر ویښته بیرادګل دی دی تعبیر ئې دَ ده دَ دین دَ زیات نقصان دے او که خپل ویښته نه وړند اووینی تعبیر ئې دَ خپل مشر یا مور او پلار نه دَ غم او دَ فکر دے او که خپل سر ګنجے اووینی تعبیر ئې دَ ژوند دَ خوږوالی او دَ خوشحالئ دے او که اووینی چه دَ علویانو په شان ئې دوه کمڅئ دی تعبیر ئې بادشاهی به بیا مومی او نیک نام به شی او که اووینی چه خپل ویښته ئې ویستلی دی تعبیر ئې څه کسان به دَ ده مال هلاک کړی او که اووینی چه خپل ویښته ئې کومنز کړی دی تعبیر ئې په خپل کارونو به قدرت والاوی او نفع به مومی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اووینی چه ده دَ نامه نه لاندے ویښته خرئیلی دی تعبیر ئې دَ ده دَ دین اصلاح ده او دَ ترخ ویښته خرئیل دَ مال په موندلو او دَ مراد په پوره کیدو تعبیر لری او که اووینی چه په سینه ئې ویښته دی تعبیر ئې قرض به ورباندے را جمع شی او په وجود ویښته دَ مال په قرض باندے تعبیر لری او که اوګوری چه دَ وجود نه ئې ویښته خرئیلی دی تعبیر ئې دَ ده دَ مال په نقصان باندے دے او که خوب لیدونکے

چه وزیر د دهٔ کورته راغلے دے تعبیرئے دهٔ ته به د بادشاه په وجه غم او فکر رسیږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، اوکهٔ اوګوری چه د وزیر سره ئے روټئ خوړلے ده تعبیرئے د دهٔ نه به عزت او بزرګی بیا مومی اوکهٔ اوګوری چه د وزیر کور پریوتے دے یا بیمار شوے دے اویا بادشاه د خپلے عهدے نه لرے کړے دے او یا اس غورزولے دے اویا غوایه په ښکرو وهلے دے دا ټول د دهٔ د خپلے عهدے نه د لرے کیدو تعبیر لری.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښں وزیر لیدل په شپږو وجو وی (۱) د نمر او سپوږمئ سترګه لیدل (۲) د دهٔ سترګه د دجله یا د فرات سیند شو یدګه (۳) دا چه بادشاه ورته په ملا پیټئ تړلے دے (۴) د رسول الله صلی الله علیه وآله وسلم خلور دیارانو ورته تاج په سر اینبے دے دا ټول د وزارت د موندلو تعبیر لری.

## وسمه

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، وسمه لیدل په خوب کښں غم او فکر دے اوکهٔ اوګوری چه د دهٔ ر مکه ده او په دے کښں د وسمے بوټئ دی تعبیرئے په غم او فکر کښں به وی اوکهٔ اوګوری چه د وسمے بوټئ ئے ویستلی دی تعبیرئے د غم او د فکر نه به خلاصے بیا مومی اوکهٔ اوګوری چه وسمه خوری تعبیرئے د خپل عیال په وجه به تکلیف او محنت کښں پریوځی اوکهٔ اوګوری چه چا ورته د وسمے دسته (ګیډئ) ورکړے ده، تعبیرئے د دے دواړو په منځ کښں به جګړه کیږی.

## وکیل (بل چاته د یو معاملے اختیار ورکول)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښں اووینی چه د بادشاه وکیل جوړ شویدے او په خپل کار کښں انصاف دارهٔ دے تعبیرئے خیر او بخت د دنیا به مومی۔ اوکهٔ د قاضی وکیل جوړ شوے وی همدغه تعبیر لری اوکهٔ د وکالت په شغل کښں انصاف دارهٔ نوی تعبیرئے د دے خلاف دے.

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ وکیل اووینی چه په خپل مؤکل باندے مهربانه شوے دے تعبیرئے دے به چاته ښهٔ خبره کوی اوکهٔ خپل مؤکل خوشحاله اووینی تعبیرئے دهٔ ته به د خپل مؤکل نه نفع ورسیږی اوکهٔ د دے خلاف اووینی تعبیرئے د دے خلاف دے۔ (بداری)

## والئی، د غوږونو کالی دی (ګوشواره)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه د دهٔ په هر غوږ کښں والئی دی

تعبیر ئې دَ دهٔ بښائست او زینت به دَ اول نه زیات دی، که اووینی چه دَ دهٔ په غوږونو کښې قیمتی ملغلرے نه دی رښے دی تعبیر ئې عِلم او قرآن مجید به زده کوی او هُسِیار او عالِم به ورنه جوړشی او که اووینی چه دَ دهٔ په یو غوږ کښې ملغلره شته او په بل کښې نشته دے تعبیر ئې عِلم او قرآن مجید به زده کوی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که په خوب کښې اووینی چه دهٔ سره دوه والئی دی۔ تعبیر ئې عزت او مرتبه به بیا مومی او که سړے اووینی چه دَ دهٔ دَ ښځے دوه والئی دی یوه دَ سرو دا و بله دَ سپینو نو تعبیر ئې ښځے ته به طلاق ورکوی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی، په خوب کښې والئی لیدل په څلورو وجوری (۱) بښائسته زوئې (۲)، دَ علم او قرآن مجید زده کول (۳) مشری (۴) غم او فکر به طلاق ورکولو ښځے ته۔

## وبا (طاعون)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، وبا لیدل په خوب کښې تعبیر ئې بلا او فِتنه ده که په خوب کښې اووینی چه دَ دهٔ په وجود دَ وبا بیماری ده تعبیر ئې په بلا او فتنه کښې به پریوځی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، په خوب کښې دَ وبا لیدل دَ جنګ او جګړے میدان دے۔

## وړوکے کوڼکے (چُغد)

کوڼکے په خوب کښې لیدل حرامی او مفسد سړے دے که څوک په خوب کښې اووینی چه کوڼکے نیسی تعبیر ئې په دے صفت موصوف سړی سره به جګړه کوی نو په هر حال کښې دَ کوڼکی لیدل ښهٔ نهٔ دی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که څوک په خوب کښې اووینی چه دَ کوڼکی آواز آوری تعبیر ئې دَ کوڼکی دَ آواز په اندازه به هلته ژړا او انګولا وی که په خوب کښې دَ کوڼکی بچی اووینی تعبیر ئې دَ دهٔ زوئې به کم بخت او نافرمانه وی که اووینی چه دَ کوڼکی غوښه ئې خوړلے ده تعبیر ئې دَ هغې په اندازه به دَ غل او ناکاره سړی مال خوری

## وګی (خوشه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې تازه وګے لیدل زدئی مال او برکت دے او که وُچ دے تعبیر ئې دَ اوږد عمر خاوند، زوئې بانده تعبیر لری مګر دا کال به وربانده تنګی او قحط وی او دَ انګورو او دَ خرما وګے ښهٔ دے چه په خپل موسم کښې وی۔

حضرت ابراهیم کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه شین وګے خوری تعبیر ئې دهٔ ته به په دے کال کښې عیش او فراخی وی او که زیړ او وُچ وګے اووینی تعبیر ئې په دے کال کښې به ورته قحط او تنګی وی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې شنهٔ وګی لیدل تعبیر ئې برکت او ځامن دی د الله تعالیٰ قول دے (سَبْعَ سَنَابِلَ فِي كُلِّ سُنْبُلَةٍ الخ) ترجمه (اووهٔ وګی دی په هر یو وګی کښې الخ) او وُچ وګے قحط دے.

**وُنې (درختان)** حضرت دانیالؒ فرمائی، په خوب کښې هغه وې چه خلکو نه خوښ او ګران وی د دے تعبیر شریف او د عزتمند سړی لیدل دی او که خرابه ونه اووینی د دے تعبیر کمینه سړے دے او هغه میوه داره ونه تعبیر ئې دولت مند سړے به وی او شنه او بے میوے ونه لیدل تعبیر ئې فقیر سړے دے او کومه ونه چه په عربو کښې کیږی د هغے تعبیر په بیابانی سړی دے او کومه ونه چه په عجمو کښې کیږی تعبیر ئې په عجمی سړی دے او که په باغ کښې ونه اووینی تعبیر ئې د باغ د مالک مال دے او که اووینی چه ونه ئې د بیخه ویستلے ده تعبیر ئې څوک به د نعمت او د مرتبے نه غورځوی.

**ونه ده (شاه بلوط)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که اوګوری چه ده سړه د شاه بلوط میوه ده او دهٔ خوړلے ده تعبیر ئې غمژن به وی.

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه شاه بلوط میوه ده او یا ورته چا ورکړے ده تعبیر ئې د هغے په اندازه به د خپل سړی نه نفع مومی.

**وژل (کشتن)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، که په خوب کښې اووینی چه څوک ئې وژلے دے او سر ئې ورنه نهٔ دے پریکړے تعبیر ئې د مالداره سړی نه به ورته خیرا و نیکی ورسیږی او تعبیر کونکو ئیلی دی چه قاتل به په مقتول د ظلم نکرکوی که اووینی چه دے وژلے دے تعبیر ئې د دهٔ عمر به اوږد وی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه دے چا وژلے دے تعبیر ئې خیر او نفع به بیا مومی که اووینی په خوب کښې چه چا یوه ډله په ظلم وژلے تعبیر ئې د دهٔ عمر به اوږد وی او د بادشاه نه به ورته خیرا و نفع ورسیږی، د الله تعالیٰ قول دے (وَمَنْ قُتِلَ مَظْلُومًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِ سُلْطَانًا فَلَا يُسْرِفْ فِي الْقَتْلِ) اسراء ۳۳ (څوک چه وژل شو په ظلم سره نو مونږ د هغه ولی ته غلبه ورکړے ده او هغه به په قتل کښې زیاتے نهٔ کوی)

که اووینی چه څوک ئې په ظلم وژلے دے تعبیر ګنهګار او ظالم به وی او الله تعالیٰ به په هغهٔ څوک مقرر کړی چه دے به تنګوی. د الله تعالیٰ

قول دے ( وَلَا تَقْتُلُوْا اَوْلَادَكُمْ الخ (الاسراء ۳۱) او خپل اولاد مه قتلوئ ) آخر آیت پورے او بعض وائی چه په زوئے بانسے ظلم کول په هر قسم سره دَ دُنیا عزت دے. کهٔ او وینی چه څوك ئے وژلے دے او دَ وجود نه ئے وینه روانه شوه تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به مال پیا مومی او کهٔ خپل ځان په وینوګنډا او وینی تعبیر ئے دَ خپل مال نه به څهٔ حصه دهٔ ته ورکړی کهٔ او وینی چه وینه روانه شوه تعبیر ئے دَ وژلو والا قرض به برباد وی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی چه او وینی چه حشرات یا دزمکے چینجئے وژلے دے تعبیر ئے په خپل دُښمن به کامیابی بیا مومی او دَ چا چه دغه حیوان ته نسبت شوے وی هغه به مغلوب کړی او قاتل په وینوګنډه لیدل دَ بیوفا او دَ ظالم سړی لیدل دی.

## ”هوا“ (باد)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې او وینی چه هوا سخته الوځی تعبیر ئے دَ هغه ملک خلقو ته به یره وی او کهٔ داسے تنده کښې هوا او ګوری چه وُنے دَ بیخه او باسی او وران ئے هم کوی تعبیر ئے دَ هغه ځائے خلکو ته به دَ طاعون او سرخه سره ( بیماری ده ) بلا و مصیبت ورسیږی.

حضرت کرمانیؒ فرمائی، په خوب کښې یخ باد ونه لیدل دَ یخو بیمارو تعبیر لری او معتدل یخه هوا په خوب کښې لیدل تعبیر ئے دَ پریشان حاله بیمار و دے په هغه ملک کښې او معتدل باد په تند رستیٔ بانسے تعبیر لری هم دارنګه دَ نیک کسب تعبیر لری او کهٔ او ګوری چه هوا دَ یو ځائے نه بل ځائے ته وړے تعبیر ئے لرے سفر به کوی او په هغه سفر کښې به مرتبه او بزرګی مومی خودَ هغه هوا دَ وړلو په اندازه بانسے او کهٔ او ګوری چه هوا دَ ګرد او دَ تیارے سره ده تعبیر ئے په دغه قوم کښې یرے او ترس را تلو ګمان دے.

حضرت جابر مغربیؒ فرمائی، کهٔ او ګوری چه یخه هوا دَ آسمان طرفته یوړلو تعبیر ئے مرګ به ئے نزدے شوے وی او کهٔ او ګوری چه هوا دَ آسمان نه زمکے طرفته را اوړیدے تعبیر ئے بیمار به شی او آخر به ښهٔ شی.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې هوا لیدل په نهو وجوو دَ خوشحالئ خبرے (۲) حکومت (۳) مال (۴) مرګ (۵) عذاب (۶) وژل (۷) بیماری (۸) صحت مندی (۹) آرام.

کهٔ او ګوری چه په هوا ناست دے تعبیر ئے بزرګی او حکومت به بیا مومی.

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښې او ګوری چه دَ مغرب

هوا نرمه نرمه اَلوځی ږ الوځی، تعبیر ئې دَ هغه ملک دَ خلکو مال او دولت به زیات شي او کهٔ اوګوري چه دَ مشرق هوا نرمه نرمه چلیږي تعبیر ئې دَ هغه ملک په خلقو دَ صحت مندئ او دَ آرام تعبیر لري او کهٔ دَ دې خلاف اوويني تعبیر ئې دا دے چه خیر به ئې نهٔ وي او کهٔ اوګوري چه دَ هوا آواز آوري تعبیر ئې په دغه ملک کښې به دَ بادشاه خیر ښکاره کیږي او کهٔ اوګوري چه هوا دَ هغه ملک خلک پورته کړي او اوړي ئې دي تعبیر ئې دَ هغه ځائې خلک به عزت او بزرګي بیا مومي.

## هوا

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، کهٔ څوک په خوب کښې اووینې چه ږوښانه او صفا هوا ده تعبیر ئې دَ هغه ملک خلق به تنن رسته او ښهٔ ژوند او په آرام به وي او عالمانو او حکیمانو دَ دغه ځائې ته به دولت او بخت زیات حاصلیږي کهٔ اوويني چه هوا توره او تیاره ده تعبیر ئې دَ هغه ځائې خلکو ته به غم او فکر وي کهٔ اوويني چه دَ هوا سُور رنګ دے تعبیر ئې په هغه ملک کښې به فتنې او جنګ وي کهٔ اوويني چه هوا شنه ده تعبیر ئې په هغه ملک کښې به زراعت بوټي او غله زیاته پیدا کیږي کهٔ اوويني چه هوا سپینه او پاکیزه شوه تعبیر ئې دَ هغې په اندازه دَ هغه ځائې خلکو ته نعمت او فراخي اوژوند کسب به زیات وي

حضرت ابراهیم کرمانيؒ فرمائي، کهٔ اوويني چه هوا دَګرد صفا ده او باد تیز چلیږي تعبیر ئې بل باچا به په هغه ملک راځي او دوئ ته به تکلیف او سختي رسي کهٔ اوويني چه دَ ښار په یوه حصّه یا په یوه محله هوا صافه شوه تعبیر ئې په دغه کال کښې به دَ دغه ځائې خلکو ته نعمت، فراخي، خیر او نفع ورسیږي، کهٔ اوويني چه هوا مختلفه ده تعبیر ئې دَ هغه ځائې خلکو حال به ګډوډ وي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي، په خوب کښې دَ هوا لیدل په پنځو وجو وي (۱) بزرګي (۲) نفعه (۳) صحت مندي (۴) امن (۵) ژوند- دا پنځه دَجے دَ صفا او ږوښانه هوا دي-

## هاتي (پیل)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائي، دَ اهلِ تعبیرو بیان دے چه دَ شپې او دَ ورځې په خوبونو کښې تعبیر دَ هاتي نه فرق پکښې نشته دے کهٔ څوک په خوب کښې اووینې چه په هاتي ناست دے تعبیر ئې ناکاره ښځه به کوي او کهٔ دا خوب دَ ورځې اووينې تعبیر ئې ښځې ته به طلاق ورکوي او یا به وینزه خرڅه کړي او کهٔ اوويني چه هاتي ئې وژلے دے تعبیر ئې دَ دهٔ دَ لاسه به او چت بادشاه مري او یا به مضبوطه قلعه فتح کوي او کهٔ اوګوري چه هاتي ورته په سر

پښه ایښې ده او وژلے ئے دے، تعبیرئے دیر زر به هلاك شي او حال به ئے بد شي او که اوګوري چه د هاتي په سر ناست دے او د دهٔ هاتي سره بل هاتي دے تعبیرئے د یو بادشاه د خدمت نه به د بل بادشاه خدمت ته ځي.

حضرت کرمانيؒ فرمائي، که اووینې چه په هاتي ناست دے او هغه د ده تابع دوا وهاتي د دهٔ تابعدار دے تعبیرئے د عجمو بادشاه به شي او یا به د عجمو په بادشاه غالب کیږي او که اوګوري چه د هاتي غوښه ئے خوړلے ده تعبیرئے د هغه غوښې په اندازه به د عجمي بادشاه نه مال او نعمت مومي او که اووینې چه دهٔ سره د هاتي څرمن یا هډوکے دے تعبیرئے دا ده چه د بادشاه نه مال او نعمت به ملاویږي.

حضرت جابر مغربيؒ فرمائي، که اوګوري چه د جنګ په وخت کښې په هاتي ناست دے تعبیرئے لوټے دُښمن به مغلوبه کړي ځکه چه د دے دلیل د پاره د هاتي د خاوندانو (اصحاب الفیل) قصه ئے ذکر کړے ده، او که اوګوري چه د هاتي د شانه پریوتے دے تعبیرئے په سخته بلا کښې به پریوځي که اوګوري چه هاتي د جنګ په منځ کښې پریوتے دے او مړ شو تعبیرئے د هغه ملک بادشاه به مړ شي.

حضرت مغربيؒ فرمائي، که اوګوري چه د تماشے د پاره په هاتي ناست دے او هغه هاتي په دهٔ زور دوا ورو تعبیرئے عجمي ښځه به خانته په نکاح کوي او هغه ښځه به په دهٔ زوراوره وي او که اوګوري چه په هاتي وسله بار ده او د یو ښار نه بل ښار ته ځي تعبیرئے په دے ملک به د بل ملک بادشاه راځي او دے به هلاک کړي.

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائي په خوب کښې د هاتي لیدل په شپږ وجو وي (۱) عجمي بادشاه (۲) نر غلام (۳) قوتناکه سړے (۴) هیبت ناکه سړے (۶) ظالم او خونخوار.

**هینجه (حلتیت)** حلتیت، انګوزه، هینجه د دے لیدل په هر حال کښې د غم او فکر تعبیر لري.

**هړتال، یو قسم دوائي (زرنیخ)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائي که په خوب کښې اووینې چه هړتال دوائي ئے خوړلے ده تعبیرئے د دهٔ په هلاکت او په بیمارئ دے که اوګوري چه هړتال ئے خرڅ کړي دي او یا ئے چاته ورکړي دي تعبیرئے د بیمارئ نه به په امن کښې شي.

حضرت مغربيؒ فرمائي، که اوګوري چه هړتال ئے بیا موندي دي تعبیرئے بنه ډیر مال به لاس ته راوړي او په بیمارئ کښې به ئے خوري او که اوګوري چه هړتال

ئې به یو ځائې کښې راجمع کړی دی تعبیرئې په سفر کښې به بیمار شی۔

## همسا (عصا)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، همسا په خوب کښې لیدل یو بزرګ او عزتمند سړے دے، که اوګوری چه همسائے په لاس کښې ده او یا ورته چا ورکړے ده تعبیرئې دا ده چه د قوم بزرګ سړی نه عزت او مرتبه حاصلیږی او که اوګوری چه د دهٔ همسا ضائع شوے ده تعبیرئې د دے خلاف دے که اوګوری چه په همسائې تکیه کړے ده تعبیرئې د قوم سړی په مدد سره د قوم څیز په تلاش کښې چه وی حاصل به ئې کړی

حضرت کرمانیؒ فرمائی، که اووینی چه همسائے په لاس کښې او بره شوے ده تعبیرئې مراد به ئې پوره شی او که لاس کښې ئې لنډا شوے دی تعبیرئې د دے خلاف دے که اوګوری چه خپله همسائے چا ته بخښش ورکړے ده، تعبیرئې هلاک به شی او که اووینی چه همسا ورسره خبرے کړی دی تعبیرئې د دهٔ به څوئې پیدا کیږی او د هغه نه به نفع مومی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی، په خوب کښې د همسا لیدل په دریو وجوو دی (۱) لوئې سرداران خلک (۲) بادشاه (۳) قوت۔

## هیجړا (مخنث)

حضرت ابن سیرین فرمائی، که څوک په خوب کښې اووینی چه هیجړا شوے دے او ځان ئې د ښځو په شان ښائسته کړے دے تعبیرئې دا ده چه به د هغې په اندازه یره او خطره دی او ورته به تکلیف رسیږی او که اوګوری چه د ښځو جامے ئې د ځان نه ویستلی دی او د سړو جامے ئې اچولے دی او بیا د سړو په شان شوے دے تعبیرئې خواری ذلت او بلا به ورته لرے کړے شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، که اوګوری چه د دهٔ ناسته د هیجړاګانو سره ده تعبیرئې د ناسدانو سره به ئې ناسته وی او که اوګوری چه د هیجړاګانو سره مقیم شوے دے تعبیرئې د اهل فاسدو د صحبت نه به جدا شی۔

## هډوکی (استخوان)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې هډوکے هغه مال دے چه خلک ژوند ورباندے تیروی که اوګوری چه هډوکی ئې موندلی دی او په هغې غوښه وه تعبیرئې د هغه غوښې په اندازه به خیر او مال مومی او که اوګوری چه بے غوښو دے تعبیرئې لږ شانته خیر به ورته ورسیږی او که اوګوری چه چا ته ئې هډوکے ورکړے دے تعبیرئې دا دے چه د دهٔ نه به چا ته خیر او ښیګړه وی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه دَ چا مات هډوکے تړلے دے تعبیر ئے تسما قِسم صفتونه بیا مومی او نیک کار به کوی او ځنی تعبیر کونکو وئیلی دی چه دَ دهٔ محتاجی او تنګسیا به لرے شی۔

حضرت امام جعفر صادقؓ فرمائی، په خوب کښې هډوکے لیدل په اوو وجوو دی (۱) هنر او مال (۲) خپلوان (۳) اولاد (۴) دَ اوسیدو ځائے (۵) مال (۶) ورونړه (۷) دوست او شریک۔

## هُنر (پیشه)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښې اووینی چه خپله پیشه ئے پریښې ده او بله دَ دے نه ښهٔ پیشه کښې مشغول شوے دے تعبیر ئے حال به ئے ښهٔ شی دَ دے نه او په کار او کسب کښې به ئے ښهٔ ولے ظاهر شی کهٔ اوګوری چه تسما قسم کسبونه کوی کهٔ هغه پیشے ښهٔ دے تعبیر ئے نیکی ده او کهٔ بدی وی تعبیر ئے بد دے او کهٔ ځنی ښے او ځنی بد دے وی چه کومے مضبوطے وی دَ هغے تعبیر لری۔

## هاتی غاښ (عاج)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، په خوب کښې دَ هاتی غاښ لیدل دولت دے کهٔ اووینی چه دهٔ سره دَ هاتی غاښ دے تعبیر ئے دَ بادشاه نه به مال مومی کهٔ اووینی چه دَ هاتی غاښ ورنه ضائع شوے دے تعبیر ئے مال به ورنه ضائع شی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دهٔ سره په صندوق کښې دَ هاتی غاښ دے تعبیر ئے دَ خپلوانو نه به مال اره ښځه کوی کهٔ اووینی چه دهٔ سره دَ هاتی دَ غاښ دوات دے تعبیر ئے بادشاه به ورته وینزه ورکوی او مرتبه به بیا مومی۔

کهٔ اووینی چه دَ هاتی غاښ مات شو او یا ضائع شو تعبیر ئے دَ دهٔ ښځه یا دَ دهٔ وینزه به هلاکه شی چه هر څومره دَ هاتی غاښ صفا او پاکیزه وی مال به ئے زیات وی۔

## هریسه یو قسم خوراك دے

دا دَ عربو مشهور روغندار خوراك دے

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښې اووینی چه دهٔ هریسه خوړلے ده تعبیر ئے دَ هغے په اندازه به خیر او نفع ورته ورسیږی او مراد به ئے پوره شی او ځنے معبرینو وئیلی دی چه تعبیر ئے دا دے چه دَ دهٔ به ځوئے پیدا شی چه په هغه به دَ دے سترګے روښانه شی ځکه چه حضرت نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی (اَلْهَرِيْسَةُ اَطْعِمَةُ الْجَنَّةِ) ترجمه (هریسه دَ جنت بهترین طعام او خوراکه ده۔

حضرت مغربیؒ فرمائی په خوب کښں دَ هر یسے خوړل غم او اندیښنه ده دَخپلو عملونو له وجې۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، چه هریسه دَ خُرب کړ دَ غوښے وی تعبیر ئے خیراو ښیګړه ده او که دَ ماندګه غوښے وی او مزه ئے نهٔ وی تعبیر ئے دَ هغې په اندازه به ورته ضرر رسیږی۔

## یهودی کیدل (یهود شدن)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښں اووینی چه یهودی شوے دے تعبیر ئے دَ بدعت په لاره به وی او دَ یهودیانو مدد به کوی او دَ دوئ وینا به خوښوی۔

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښں اووینی چه یهودی شویدے یا عیسائی شویدے یا مشرك شویدے او یا بُت پرست شویدے تعبیر ئے دَ دهٔ دَ ګمراهئی او دَ ضلالت دے او په الله تعالیٰ به دروغ او بهتان تړی کهٔ اوګوری چه دَ دوئ دَ مذاهب نه واوړیدو او مُسلمان شو تعبیر ئے دَ دهٔ نه به لویه ګُناه کیږی او بیا به توبه او باسی او الله تعالیٰ ته به راوګرځیږی کهٔ په خوب کښں اووینی چه دے نه پوهیږی چه په کوم دین دے او نهٔ پوهیږی چه کومے قبلے ته مخ کوی تعبیر ئے سرګردانه، حیرانه او عاجزه به وی۔

حضرت جابرؒ فرمائی، کهٔ په خوب کښں یهودی اووینی چه مُسلمان شو تعبیر ئے نه ربه مړشی او یا به مُسلمان شی۔

## دَ یهودیانو عبادتخانه (کشت)

حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه دَ یهودو په عبادتخانه کښں ناست دے او دَ قبلے طرفته مونځ کوی تعبیر ئے آخر به توبه او باسی او الله تعالیٰ ته به رجوع کوی او په دین کښں به مضبوط شی ځکه چه کشت دَ عبادت خائے دے او کهٔ دَ یهودیانو دَ قبلے طرفته مونځ کوی نو تعبیر ئے دا دے چه د یهودیانو سره به مینه لری۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ خپل ځان دَ یهودیانو په عبادتخانه کښں اووینی تعبیر ئے دَ بے دینه خلکو په وینا به عمل کوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښں کشت اوګرجه لیدل دَ نیك سړی دَ پاره خیر او نیکی ده او دَ مفسد سړی دَ پاره دَ شر او فساد تعبیر لری

**یخنی (سرما)** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، چه په خوب کښې یخنی لیدل غم او نقصان دے کهٔ اووینی چه د دهٔ یخنی شوے ده تعبیر ئے دا دے په اندازه به دے فقیر او تنګ سته شی۔

او کهٔ اووینی چه یخنی ورته نقصان نهٔ سوے دے تعبیرئے دا خپلوانو نه به ورته نقصان نهٔ سیږی۔

**ونه د شب برګ ـ یو قسم بوټے دے** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، شب برګ په خوب کښې ګمراه او بے لارے سړے دے کهٔ اوګوری چه دهٔ سره شب برګ دے تعبیرئے دا دهٔ به د ګمراه سره صحبت وی او کهٔ اوګوری چه شب برګ ئے خوړلے دے تعبیر ئے د هغه سړی د کاره به ورته نفع وی۔

حضرت مغربیؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه شب برګ ئے د دُنے نه پریکړے یا دُنه اوچه شوه تعبیرئے د ګمراه سړی نه به جُدائی کښې راشی او د دهٔ فائده، صلاح او ښیګړه به په دے کښې وی۔

**یاقوت** حضرت ابن سیرینؒ فرمائی، کهٔ څوك په خوب کښې اووینی چه دهٔ سره سُورا دیا شین یاقوت وو تعبیرئے ښځه یا وینزه نیک خویه به لاس ته ورشی او یا به ئے لُور پیدا شی او کهٔ اووینی چه دهٔ سره عیب ژن یاقوت دے تعبیرئے هغه ښځه یا وینزه چه دے لری هغه به ورباندے حرامه شی۔

حضرت کرمانیؒ فرمائی، کهٔ اووینی چه شین یاقوت ورسره دے تعبیرئے بناسُته او اصل نسبه ښځه به کوی او کهٔ ښځه لری بیا به ئے څوئ پیدا کیږی کهٔ اووینی چه دهٔ سره ګړودیا قوت دی تعبیرئے زوئ به ئے فاسد وی۔

حضرت اسمٰعیل اشعثؒ فرمائی، کهٔ اوګوری چه سُور یاقوت ورسره دے تعبیر ئے مالداره او بناسُته ښځه به کوی او کهٔ اووینی چه شین یاقوت ورسره دے تعبیرئے د ښوا خلاقو خاوندهٔ او بناسُته ښځه به کوی او کهٔ اووینی چه زیړ یاقوت ورسره دے تعبیرئے هغه ښځه به بیماره وی او کهٔ اووینی چه سپین یاقوت ورسره دے تعبیرئے صالحه نیک خویه او پیغله ښځه به کوی۔

حضرت امام جعفر صادقؒ فرمائی، په خوب کښې د یاقوتو لیدل په شپږو وجُوو دی (۱) مال (۲) دینزه (۳) علم (۴) زوئ (۵) نیک سړے (۶) پیغله جینئ۔

**تمت بالخیر**

رحمٰن ګل پبلشرز محلّه جنګی قصه خوانی پشاور